بسم الله الرحمن الرحيم

# صفوة التفاسير

پښتو

تألیف

## محمد علي الصابوني

په مکه مکرمه کښې د پاچا عبدالعزیز پوهنتون
د شرعیاتو او اسلامي زده کړو استاذ

ژباړونکی

مولوي شمس الله کمال زاده

المكتبة المعروفية
کوئټه لاهور پاکستان

# صفوة التفاسير

## څلورم ټوک

د قرآن کریم هغه تفسیر چې د مأثور او معقول ټولګه اوله خورا معتبرو تفسیرونو څخه لکه:
طبري، کشاف، قرطبي، اُلوسي، ابن کثیر، بحر محیط اونورو څخه يې غور چاڼ شوي او په
روانو اونویو اسلوبو چې بیان اولغوي ارخونو ته پکښې پاملرنه شوي ليکل شوي دي.

مؤلف


**محمد علي الصابوني**

په مکه مکرمه کښې د پاچا عبدالعزیز پوهنتون
د شرعیاتو او اسلامي زده کړو استاذ


ژباړونکي:

**مولوي شمس الله کمال زاده**


مکتبة المعروفية

(کوئټه) کاسي روډ شالدره کوئټه پاکستان
(لاهور) بادیه حلیمه سنټر غزنی سٹریټ اردو بازار لاهور

:03337907394-03353132868
Ph:03159807152-03337907398
E-mail:maktabamaroofia786@gmail.com
http://www.facebook.com/maktabamarofia

# دکتاب پیژندنه

دکتاب نوم:---------- پښتو صفوه التفاسیر

تالیف:---------- الشیخ محمد علي الصابوني رحمه الله

پښتو ژباړه:---------- مولوي شمس الله کمال زاده

دکمپوزچاري:---------- مرحوم انجنیر عبدالله گل (ریان) او زیاته برخه مولوي عبد البصیر

خپرونکي اداره:---------- المکتبة المعروفیة (کوئټه) (لاهور)

دچاپ شمیر:---------- ۸۰۰ توکه

دچاپ کال:---------- ۱۴۴۰ هجري قمري دمحرم الحرام میاشت

دکتاب ترلاسه کولو پته---------- المکتبة المعروفیة (کوئټه) (لاهور)

منبع الأنوار پرنٹرز

المکتبة المعروفیة

(کوئٹہ) کاسی روڈ شالدرہ کوئٹہ پاکستان

(لاہور) ہادیہ حلیمہ سنٹر غزنی سٹریٹ اردو بازار لاہور

:03337907394-03353132868

Ph:03159807152-03337907398

E-mail:maktabamaroofia786@gmail.com

http://www.facebook.com/maktabamarofia

الله تعالی فرمايي:

﴿وَلَقَدۡ صَرَّفۡنَا فِي هَٰذَا ٱلۡقُرۡءَانِ لِلنَّاسِ مِن كُلِّ مَثَلٖۚ وَكَانَ ٱلۡإِنسَٰنُ أَكۡثَرَ شَيۡءٖ جَدَلٗا ﴿٥٤﴾ وَمَا مَنَعَ ٱلنَّاسَ
أَن يُؤۡمِنُوٓاْ إِذۡ جَآءَهُمُ ٱلۡهُدَىٰ وَيَسۡتَغۡفِرُواْ رَبَّهُمۡ إِلَّآ أَن تَأۡتِيَهُمۡ سُنَّةُ ٱلۡأَوَّلِينَ أَوۡ يَأۡتِيَهُمُ ٱلۡعَذَابُ قُبُلٗا ﴿٥٥﴾ وَمَا نُرۡسِلُ
ٱلۡمُرۡسَلِينَ إِلَّا مُبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَۚ وَيُجَٰدِلُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ بِٱلۡبَٰطِلِ لِيُدۡحِضُواْ بِهِ ٱلۡحَقَّۖ وَٱتَّخَذُوٓاْ ءَايَٰتِي وَمَآ أُنذِرُواْ هُزُوٗا
﴿٥٦﴾ وَمَنۡ أَظۡلَمُ مِمَّن ذُكِّرَ بِـَٔايَٰتِ رَبِّهِۦ فَأَعۡرَضَ عَنۡهَا وَنَسِيَ مَا قَدَّمَتۡ يَدَاهُۚ إِنَّا جَعَلۡنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمۡ أَكِنَّةً أَن يَفۡقَهُوهُ وَفِيٓ
ءَاذَانِهِمۡ وَقۡرٗاۖ وَإِن تَدۡعُهُمۡ إِلَى ٱلۡهُدَىٰ فَلَن يَهۡتَدُوٓاْ إِذًا أَبَدٗا ﴿٥٧﴾ وَرَبُّكَ ٱلۡغَفُورُ ذُو ٱلرَّحۡمَةِۖ لَوۡ يُؤَاخِذُهُم بِمَا
كَسَبُواْ لَعَجَّلَ لَهُمُ ٱلۡعَذَابَۚ بَل لَّهُم مَّوۡعِدٞ لَّن يَجِدُواْ مِن دُونِهِۦ مَوۡئِلٗا ﴿٥٨﴾ وَتِلۡكَ ٱلۡقُرَىٰٓ أَهۡلَكۡنَٰهُمۡ لَمَّا
ظَلَمُواْ وَجَعَلۡنَا لِمَهۡلِكِهِم مَّوۡعِدٗا ﴿٥٩﴾ وَإِذۡ قَالَ مُوسَىٰ لِفَتَىٰهُ لَآ أَبۡرَحُ حَتَّىٰٓ أَبۡلُغَ مَجۡمَعَ ٱلۡبَحۡرَيۡنِ أَوۡ
أَمۡضِيَ حُقُبٗا ﴿٦٠﴾ فَلَمَّا بَلَغَا مَجۡمَعَ بَيۡنِهِمَا نَسِيَا حُوتَهُمَا فَٱتَّخَذَ سَبِيلَهُۥ فِي ٱلۡبَحۡرِ سَرَبٗا ﴿٦١﴾ فَلَمَّا جَاوَزَا قَالَ لِفَتَىٰهُ
ءَاتِنَا غَدَآءَنَا لَقَدۡ لَقِينَا مِن سَفَرِنَا هَٰذَا نَصَبٗا ﴿٦٢﴾ قَالَ أَرَءَيۡتَ إِذۡ أَوَيۡنَآ إِلَى ٱلصَّخۡرَةِ فَإِنِّي نَسِيتُ ٱلۡحُوتَ وَمَآ أَنسَىٰنِيهُ
إِلَّا ٱلشَّيۡطَٰنُ أَنۡ أَذۡكُرَهُۥۚ وَٱتَّخَذَ سَبِيلَهُۥ فِي ٱلۡبَحۡرِ عَجَبٗا ﴿٦٣﴾ قَالَ ذَٰلِكَ مَا كُنَّا نَبۡغِۚ فَٱرۡتَدَّا عَلَىٰٓ ءَاثَارِهِمَا قَصَصٗا ﴿٦٤﴾
فَوَجَدَا عَبۡدٗا مِّنۡ عِبَادِنَآ ءَاتَيۡنَٰهُ رَحۡمَةٗ مِّنۡ عِندِنَا وَعَلَّمۡنَٰهُ مِن لَّدُنَّا عِلۡمٗا ﴿٦٥﴾ قَالَ لَهُۥ مُوسَىٰ هَلۡ أَتَّبِعُكَ عَلَىٰٓ أَن
تُعَلِّمَنِ مِمَّا عُلِّمۡتَ رُشۡدٗا ﴿٦٦﴾ قَالَ إِنَّكَ لَن تَسۡتَطِيعَ مَعِيَ صَبۡرٗا ﴿٦٧﴾ وَكَيۡفَ تَصۡبِرُ عَلَىٰ مَا لَمۡ تُحِطۡ بِهِۦ خُبۡرٗا ﴿٦٨﴾ قَالَ
سَتَجِدُنِيٓ إِن شَآءَ ٱللَّهُ صَابِرٗا وَلَآ أَعۡصِي لَكَ أَمۡرٗا ﴿٦٩﴾ قَالَ فَإِنِ ٱتَّبَعۡتَنِي فَلَا تَسۡـَٔلۡنِي عَن شَيۡءٍ حَتَّىٰٓ أُحۡدِثَ لَكَ مِنۡهُ ذِكۡرٗا
﴿٧٠﴾ فَٱنطَلَقَا حَتَّىٰٓ إِذَا رَكِبَا فِي ٱلسَّفِينَةِ خَرَقَهَاۖ قَالَ أَخَرَقۡتَهَا لِتُغۡرِقَ أَهۡلَهَا لَقَدۡ جِئۡتَ شَيۡـًٔا إِمۡرٗا ﴿٧١﴾ قَالَ أَلَمۡ أَقُلۡ إِنَّكَ
لَن تَسۡتَطِيعَ مَعِيَ صَبۡرٗا ﴿٧٢﴾ قَالَ لَا تُؤَاخِذۡنِي بِمَا نَسِيتُ وَلَا تُرۡهِقۡنِي مِنۡ أَمۡرِي عُسۡرٗا ﴿٧٣﴾ فَٱنطَلَقَا حَتَّىٰٓ إِذَا لَقِيَا غُلَٰمٗا فَقَتَلَهُۥ
قَالَ أَقَتَلۡتَ نَفۡسٗا زَكِيَّةَۢ بِغَيۡرِ نَفۡسٖ لَّقَدۡ جِئۡتَ شَيۡـٔٗا نُّكۡرٗا ﴿٧٤﴾ ۞ قَالَ أَلَمۡ أَقُل لَّكَ إِنَّكَ لَن تَسۡتَطِيعَ مَعِيَ صَبۡرٗا ﴿٧٥﴾ قَالَ
إِن سَأَلۡتُكَ عَن شَيۡءِۭ بَعۡدَهَا فَلَا تُصَٰحِبۡنِيۖ قَدۡ بَلَغۡتَ مِن لَّدُنِّي عُذۡرٗا ﴿٧٦﴾ فَٱنطَلَقَا حَتَّىٰٓ إِذَآ أَتَيَآ أَهۡلَ قَرۡيَةٍ ٱسۡتَطۡعَمَآ أَهۡلَهَا
فَأَبَوۡاْ أَن يُضَيِّفُوهُمَا فَوَجَدَا فِيهَا جِدَارٗا يُرِيدُ أَن يَنقَضَّ فَأَقَامَهُۥۖ قَالَ لَوۡ شِئۡتَ لَتَّخَذۡتَ عَلَيۡهِ أَجۡرٗا ﴿٧٧﴾ قَالَ هَٰذَا
فِرَاقُ بَيۡنِي وَبَيۡنِكَۚ سَأُنَبِّئُكَ بِتَأۡوِيلِ مَا لَمۡ تَسۡتَطِع عَّلَيۡهِ صَبۡرًا ﴿٧٨﴾ أَمَّا ٱلسَّفِينَةُ فَكَانَتۡ لِمَسَٰكِينَ يَعۡمَلُونَ فِي ٱلۡبَحۡرِ
فَأَرَدتُّ أَنۡ أَعِيبَهَا وَكَانَ وَرَآءَهُم مَّلِكٞ يَأۡخُذُ كُلَّ سَفِينَةٍ غَصۡبٗا ﴿٧٩﴾ وَأَمَّا ٱلۡغُلَٰمُ فَكَانَ أَبَوَاهُ مُؤۡمِنَيۡنِ فَخَشِينَآ أَن يُرۡهِقَهُمَا
طُغۡيَٰنٗا وَكُفۡرٗا ﴿٨٠﴾ فَأَرَدۡنَآ أَن يُبۡدِلَهُمَا رَبُّهُمَا خَيۡرٗا مِّنۡهُ زَكَوٰةٗ وَأَقۡرَبَ رُحۡمٗا ﴿٨١﴾ وَأَمَّا ٱلۡجِدَارُ فَكَانَ لِغُلَٰمَيۡنِ يَتِيمَيۡنِ فِي

ٱلْمَدِينَةِ وَكَانَ تَحْتَهُۥ كَنزٌ لَّهُمَا وَكَانَ أَبُوهُمَا صَٰلِحًا فَأَرَادَ رَبُّكَ أَن يَبْلُغَآ أَشُدَّهُمَا وَيَسْتَخْرِجَا كَنزَهُمَا رَحْمَةً مِّن رَّبِّكَ وَمَا فَعَلْتُهُۥ عَنْ أَمْرِى ذَٰلِكَ تَأْوِيلُ مَا لَمْ تَسْطِع عَّلَيْهِ صَبْرًا ﴿۸۲﴾ ﴾ الكهف: ۵۴ ـ ۸۲

مناسبت او تړاو:

کله چې الله تعالی د دوو باغونو مثال یادکړ ورپسې یې د دنیا د ژوندانه مثال چې تېرایستونکي منافع او نبایست پکې دی راوړ او د غو مثالونو سنّه د پند اخیستلو او عبرت لپاره الله تعالی د خلکو پام را اړوي او له دې وروسته د موسی او خضر علیه السلام کیسه راوړي هغه چې په غیبي چارو او عجائبو مشتمله ده.

لغتونه:

(قبلا) مخامخ (موئلا) پناهګاه ابن قتیبه وایې (وأل فلان) معنا دا چې پناه یې یووړه (حقبا) د حقبه جمع او هغه کال ته وایې دلته یې مراد اوږده زمانه ده (سربا) داو بو په تل کې لاري ته وایې (نصبا) ستړیا او تکلیف (امرا) ستر امر (نکرا) ډېر بد کار.

تفسیر:

﴿ وَلَقَدْ صَرَّفْنَا فِى هَٰذَا ٱلْقُرْءَانِ لِلنَّاسِ مِن كُلِّ مَثَلٍ ﴾ او خامخا په تحقیق مکرر بیان کړی دی موږ په دې قرآن کې خلکو ته (مثال له جنسه) د هر قسم مثل (له جهته د عبرته) ﴿ وَكَانَ ٱلْإِنسَٰنُ أَكْثَرَ شَىْءٍ جَدَلًا ﴾ او دی انسان زیات له هرشي څخه له جهته د جګړې (د خصومته په باطل کې چې نه حق ته غاړه ایږدي او نه هم پند او عبرت نصیحت اوري) ﴿ وَمَا مَنَعَ ٱلنَّاسَ أَن يُؤْمِنُوٓا۟ إِذْ جَآءَهُمُ ٱلْهُدَىٰ ﴾ او ندی منع کړي دا خلګ له دې نه چې ایمان راوړي کله چې راغی دوی ته هدایت (د الله له جانبه) ﴿ وَيَسْتَغْفِرُوا۟ رَبَّهُمْ ﴾ او (له دې نه) چې بښنه وغواړي له ربه خپله ﴿ إِلَّآ أَن تَأْتِيَهُمْ سُنَّةُ ٱلْأَوَّلِينَ ﴾ مګر (د دې خبرې) چې راشي دوی ته هغه طریقه د ړومبنیو (خلګو چې هلاکت دی) ﴿ أَوْ يَأْتِيَهُمُ ٱلْعَذَابُ قُبُلًا ﴾ او یا راشي دوی ته عذاب مخامخ (ښکاره) (څرګند او ښکاره د آیت شریف معنا دا ده چې دوی له ایمان راوړلو او استغفار کولو څخه بل شي نه دي منع کړي مګر دې چې دوی غواړي هغه عذاب چې ورسره وعده شوی دی مخامخ ووینې لکه چې دوی به ویل ﴿ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِّنَ ٱلسَّمَآءِ أَوِ ٱئْتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴾[1]) ﴿ وَمَا نُرْسِلُ ٱلْمُرْسَلِينَ إِلَّا مُبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ ﴾ او نه لېږو موږ رسولان مګر زېری ورکونکي (مؤمنانو ته په جنت سره) او وېرونکي (کفارو ته په جحیم سره) ﴿ وَيُجَٰدِلُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ بِٱلْبَٰطِلِ لِيُدْحِضُوا۟ بِهِ ٱلْحَقَّ ﴾ او جګړې کوي هغه کسان چې کافران شوي دي په باطله سره د پاره د دې چې ورک او لېرې کړي په دې سره حق (نو دوی چې کله معجزې او کله عاجل عذاب غواړي د دې لپاره نه چې د ایمان راوړلو اراده لري بلکه ملنډې او استهزاء ګاني کوي).

[1]) د غه د معنا خلاصه ده چې ابن کثیر غوره کړې ده المختصر ۲ / ۴۲۵

﴿ وَٱتَّخَذُوٓاْ ءَايَٰتِي وَمَآ أُنذِرُواْ هُزُوٗا ﴾ او نیولي یې دي آیتونه (د قرآن څما او هغه شیان چي (پرې) وېرولی شوي وودوی مسخره (ملندي) ﴿ وَمَنۡ أَظۡلَمُ مِمَّن ذُكِّرَ بِـَٔايَٰتِ رَبِّهِۦ فَأَعۡرَضَ عَنۡهَا ﴾ اوڅوک دی ډېر ظالم له هغه چاچي پندورکړی شوی دی ده ته په آیاتونو درب دده (قرآن) خودی ځان ورباندي ړوندا وکوڼ واچوي فکرپکي نه کوي او پند ورڅخه نه اخلي یعني نشته بل لوی ظالم ترده ﴿ وَنَسِيَ مَا قَدَّمَتۡ يَدَاهُۚ ﴾ اوهېر کړي هغه عملونه چي وړاندي لېږلي لاسونو دده (چي جرائم ګناهونه او بد افعال دي دهغوی عاقبت نه سنجوي ﴿ إِنَّا جَعَلۡنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمۡ أَكِنَّةً أَن يَفۡقَهُوهُ ﴾ ببشکه موږ ګرزولي دي په زړونو ددوی پردې دپاره ددې چي پوه نشي (په قرآن او اسرارو یې او په پند اخیستلو په احکامو او مواعظو یې ﴿ وَإِن تَدۡعُهُمۡ إِلَى ٱلۡهُدَىٰ فَلَن يَهۡتَدُوٓاْ إِذًا أَبَدٗا ﴾ (او ګرزولي مودی) په غوږونو ددوی کوڼوالی (د انتفاع او پوهېدلو) او که ته راوبولې دوی د سمي لاري خواته پس له سره به هدایت نه مومي دوی په دغه وخت کي هیڅېږي ؛ ځکه چي دوی نه اوري په سماع د منلو اونه پوهېږي ورباندي دهدایت لپاره هغه زړونه نلري چي ورته خلاص پرانستي وي اود ایمان راوړلو لپاره مستعدوي داکسان دڅارپایانو په شان دي استعداد نلري ﴿ وَرَبُّكَ ٱلۡغَفُورُ ذُو ٱلرَّحۡمَةِۖ ﴾ او رب ستا ډېر ښېونکی ښښتن د رحمت دی ) یعني ای محمده ستا پروردګار زیات ښېونکی او دوېر رحمت خاوند دی چي په بندګانو پېرزوینه کوي سره ددوی له عصیا ن او ګناهونو (ژر یې نه تباه کوي) ﴿ لَوۡ يُؤَاخِذُهُم بِمَا كَسَبُواْ لَعَجَّلَ لَهُمُ ٱلۡعَذَابَۚ ﴾ او که نیولي وای (الله دغه کفار په دنیاکي) په سبب دګناهونو چي دوی یې کوي نو خامخا ژربه یې دوی ته عذاب رالېږلی وای (په دنیاکي هم) خوالله مهلت ورکوي او هغه عذاب چي دوی یې عجالتا غوښتنه کوي څني تاخیر کوي اودغه هم دالله رحمت دی اودالله سنت داسي دی چي ظالم ته مهلت ورکوي خویومخ ایزه یې نه پرېږدي (یمهله ولایهمله ) ﴿ بَل لَّهُم مَّوۡعِدٞ لَّن يَجِدُواْ مِن دُونِهِۦ مَوۡئِلٗا ﴾ بلکه شته دوی ته وخت دوعدې (په قیامت کي) چي له سره به پیدانکړي دوی غیرله الله ځای دپناه تېښتي ﴿ وَتِلۡكَ ٱلۡقُرَىٰٓ أَهۡلَكۡنَٰهُمۡ لَمَّا ظَلَمُواْ ﴾ اودغه (اهل د ) کلیو (چي دی) هلاک کړل موږ دوی هرکله چي ظلم یې غوره کړ (لکه دصالح علیه السلام ، شعیب علیه السلام اودلوط علیه السلام قومونه ﴿ وَجَعَلۡنَا لِمَهۡلِكِهِم مَّوۡعِدٗا ﴾ اومقرره کړي موده ددوی د هلاک لپاره یوه ټاکلی نېټه (نوآیادغه معاندین مکذبین عبرت نه اخلي؟ په آیت شریف کي دقریشو کفارو لپاره وعید او تهدید دی ابن کثیر وایي چي: معنادا چي : ای مشرکانو د رومبنیو اُمتونو له عاقبت څخه ووېرېږئ چي تاسوته به هم هغه هلاکت ورسېږي چي دوی ته رسېدلي ووځکه تاسو د ډېر ستر پیغمبر تکذیب وکړنو تاسو ترهغوی په الله ګران نه یاست نو زماله عذاب او اخطار څخه ووېرېږئ [1]

﴿ وَإِذۡ قَالَ مُوسَىٰ لِفَتَىٰهُ لَآ أَبۡرَحُ حَتَّىٰٓ أَبۡلُغَ مَجۡمَعَ ٱلۡبَحۡرَيۡنِ ﴾ او (یادکړه) هغه وخت چي موسی خپل

---

[1] مختصر ابن کثیر ۲ / ۴۳۲

زلمي (يوشع بن نون) (خادم) ته وويل چي : تل به ځم ترهغه پورې چي ورسېږم ځاى د يوځاى كېدلو ددواړو سنيدونو ؛ (بحرفارس اوبحر روم) دغه په دې سورت كي دريمه كيسه ده[۱] ﴿ أَوْ أَمْضِيَ حُقُبًا ﴾ يابه ګرځم ډېره زمانه (ترڅوهلته ورسېږم) ﴿ فَلَمَّا بَلَغَا مَجْمَعَ بَيْنِهِمَا نَسِيَا حُوتَهُمَا ﴾ بياكله چي ورسېدل ځاى ديوځاى كېدوپه مابين ددواړو سيندونوكي نوهېركړ دواړوماهى خپل (يعني حضرت يوشع دغه دماهي عجيبه كيسه هېره كړه چي موسى عليه السلام ته يې ووايي ؛ روايت كېږي چي الله تعالى موسى عليه السلام ته امروكړچي له ځانه سره وربت (كباب) كړى ماهى واخلي چېري چي دغه ماهى ځني ورک شي نوهلته به هغه صالح بنده بياموميې ﴿ فَٱتَّخَذَ سَبِيلَهُۥ فِى ٱلْبَحْرِ سَرَبًا ﴾ نوونيوله دې (ماهي) لياره خپله په سيندكي (په شان د ) سرنګ (تونل) مفسرين كرام وايې چي : ماهى وريت (كباب ) شوى په زنبيل كي اينبى وواوله هغه راوغورځېدوپه اوبوكي هسي روان شو چي ابولكه كوڅه ياطاق غوندي ورته جوړشو چي اوبه ودرېدې اوهغه پكي روان وو اودغه دالهي آياتوڅخه يو آيت (نښاني) وه چي موسى عليه السلام ته يې وروښودله ﴿ فَلَمَّا جَاوَزَا قَالَ لِفَتَىٰهُ ءَاتِنَا غَدَآءَنَا ﴾ نوكله چي(له مجمع البحرين څخه) تېرشول وويل : ( موسى) خپل زلمي ته راوړه موږته سبانهارى (خوراک) زموږ ﴿ لَقَدْ لَقِينَا مِن سَفَرِنَا هَٰذَا نَصَبًا ﴾ په تحقيق پېښه شوه موږته له دغه سفره زموږ ډېره سختي (اودوى له هغې لويې تيرې څخه يوه شپه اوڅه موده دورځي سفركړى وو ﴿ قَالَ أَرَءَيْتَ إِذْ أَوَيْنَآ إِلَى ٱلصَّخْرَةِ فَإِنِّى نَسِيتُ ٱلْحُوتَ ﴾ ووېل (زلمي) آياتاوليد(خبرشوې) كله چي ځاى ونيو موږ هغې لويې تيرې ته (چي دچينې سره وه ) نوبېشكه ماهېركړ(بيان دحال د ) ماهي؟ (كله چي ته هلته ويده شوې عجيبه پېښه وشوه ماهى له زنبيل څخه رابهرشوپه اوبوكي يوتونل ورته پرانستل شواوله ماڅخه كله چي ته راوېښ شوې دغه كيسه هېره شوه ﴿ وَمَآ أَنسَىٰنِيهُ إِلَّا ٱلشَّيْطَٰنُ أَنْ أَذْكُرَهُۥ ﴾ هېره نكړه له مانه دغه پېښه مګرشيطان (چي تاته يې ووايم) ﴿ وَٱتَّخَذَ سَبِيلَهُۥ فِى ٱلْبَحْرِ عَجَبًا ﴾ ونيوله دغه (ماهي) خپله لاره په بحركي ډېره عجيبه (زلمى له دې پېښې ليدلوڅخه ډېرپه تعجب كي شوځكه چي كباب كړى شوى ماهى څرنګه بياژوندى اوپه بحركي روان شي ﴿ قَالَ ذَٰلِكَ مَا كُنَّا نَبْغِ ﴾ ووېل :( موسى ) همدغه (وركول دماهي ) هغه څه دي چي موږ يې طلب كاووځكه دغه دهغه صالح سړي دموندلو نښه اوعلامه ده ﴿ فَٱرْتَدَّا عَلَىٰٓ ءَاثَارِهِمَا قَصَصًا ﴾ پس بيرته دواړه راوګرزېدل په هغوخپلو پلو قدم په قدم (چي له لاري څخه ونه وزي ) ﴿ فَوَجَدَا عَبْدًا مِّنْ عِبَادِنَآ ﴾ نوومونده دوى دواړو يوبنده (صالح خضرعليه السلام) له بندګانو زموږ په حديث شريف كي راځي چي خضرعليه السلام يې له هغې غټې تيږې سره پيداكړچي هلته ورڅخه ماهى ورک شوى وو خضرعليه السلام په خپله جامه كي ځان نغښتى پرځمكه ستوني ستغ پروت ووموسى عليه السلام

---

[۱] همداسي طبري له قتاده څخه رانقل كړي ۱۵/ ۲۷۱

سلام ور واچاوو هغه سر ورته راپورته کړ او ورته يې وويل: ( وأنی بارضک السلام (١) ﴿ ءَاتَيْنَـٰهُ رَحْمَةً مِّنْ عِندِنَا ﴾ چې مونږ ده ته له خپله نزده رحمت ورکړی وو (چې هغه کرامات وودده په لاس به څرګندېدل (٢) ﴿ وَعَلَّمْنَـٰهُ مِن لَّدُنَّا عِلْمًا ﴾ او ورښودلی وو مونږ ده ته له خپله جانبه يولوی علم (چې زمونږ له توفيق څخه بغيرېې نه شوی زده کولای او دغه غيبي علم وو. علماء کرام وايي چې: دغه رباني علم دی چې د تقوی او اخلاص ثمره ده او (علم لدُني) يې بولي الله يې هغه چاته ورکوي چې په اخلاص يې عبادت وکړي دغه په کسب او محنت زيار پسي اړه نلري الله يې هغه چاته وربښي چې د قرب او نژدې والي ځانګړتياوي لري نو په ولايت او کرامت يې نازوي ﴿ قَالَ لَهُۥ مُوسَىٰ هَلْ أَتَّبِعُكَ عَلَىٰٓ أَن تُعَلِّمَنِ مِمَّا عُلِّمْتَ رُشْدًا ﴾ وويل: دغه (خضر) ته موسی چې آيا زه ستا تابع شم؟ په دې شرط چې ته ما ته وښيې له هغه علم چې تا ته ښودلی شوي ده ښه لاره (د رشد او صواب) يعني آيا ما ته اجازه راکوې چې ستا ملګرتيا وکړم او ستا له علمه څخه پخپل ژوندانه کي بهرمند شم؟ مفسرين کرام وايي چې دغه هسې مخاطبه ده چې تواضع او پسته ژبه پکې کارول شوي ده دغه ديوسترنبي عليه السلام أسلوب دی نوښايي چې هرڅوک له خپله استاذه سره همداسې د ادب او تعظيم رويه وکړي ﴿ قَالَ إِنَّكَ لَن تَسْتَطِيعَ مَعِىَ صَبْرًا ﴾ نو وويل: (خضر موسی ته) چې بېشکه ته له سره به ونکړی شې طاقت له ما سره د صبر ( چې زما کارونه ووينې ) ابن عباس رضی الله عنه وايي: ته به زما په کړنو صبرونکړی شې ځکه زه د الله په خفي علم غيب پوهېږم ﴿ وَكَيْفَ تَصْبِرُ عَلَىٰ مَا لَمْ تُحِطْ بِهِۦ خُبْرًا ﴾ او څرنګه به ته صبروکړې په هغه کار چې تا نه وي کړی احاطه په هغه کار له جهته د علم (او پوهې) يعني ظاهرېې ناروا او باطن يې تا ته معلوم نه وي ﴿ قَالَ سَتَجِدُنِىٓ إِن شَآءَ ٱللَّهُ صَابِرًا وَلَآ أَعْصِى لَكَ أَمْرًا ﴾ وويل: ( موسی خضر ته) چې انشآء الله ژر به ما وموميې صبرکونکی او زه به ستا د هيڅ يو حکم نافرماني نه کوم ﴿ قَالَ فَإِنِ ٱتَّبَعْتَنِى فَلَا تَسْـَٔلْنِى عَن شَىْءٍ حَتَّىٰٓ أُحْدِثَ لَكَ مِنْهُ ذِكْرًا ﴾ نو وويل: (خضر موسی ته) پس که ته زما متابعت کوې پس له ما نه د هيڅ څېز پوښتنه مکوه تر هغه چې زه شروع وکړم تا ته د هغه د بيان خضر عليه السلام وربانديشرط کړو چې له هيڅ څېز څخه به پوښتنه نه کوې تر څو چې پخپله يې دی ورته اسرار او رازونه وښيې او موسی عليه السلام هم لکه چې څرنګه د متعلم ادب ايجابوي دغه شرط ومانه ﴿ فَٱنطَلَقَا حَتَّىٰٓ إِذَا رَكِبَا فِى ٱلسَّفِينَةِ خَرَقَهَا ﴾ (پس دواړه روان شول تر هغه پورې چې سپاره شول په بېړۍ کي (او بلي غاړې ته نژدې شول) نو سوری کړه (خضر) هغه کښتۍ ) يعني موسی او خضر عليهما السلام روان وو د بحر غاړه يې اخيستي وه چې يوه بېړۍ راغله او خضر عليه السلام يې وپېژاند نو دواړه يې بې له

---

(١) حديث به انشآء الله مفصل راشي.

(٢) د اخبره سمه ده چې خضر عليه السلام نبي نه دی او له صالحانو بندګانو څخه دی د الله له هغو اولياوو مقربينو څخه دی چې ده په لاس يې دغه کرامات ښکاره کړي غيبي شيان يې ورښودلي چې خلګو ته د عبادت بهترې ورزده کړي.

بارې (کرايې) سپاره کړل او بيا خضر (عليه السلام) په تبر باندي د هغې بېړۍ تخته له بېخه وايستله ﴿ قَالَ أَخَرَقْتَهَا لِتُغْرِقَ أَهْلَهَا لَقَدْ جِئْتَ شَيْئًا إِمْرًا ﴾ وويل: ( ده ته موسى ) آيا سورى دي كړه (دا بېړۍ ) لپاره د دې چي غرق کړې اهل د دې خامخا په تحقيق يو درونډ کار دي وکړ ) روايت کېږي چي کله موسى عليه السلام دا وليد نو خپله جامه يې را واخيسته او په سوري خاى کي يې ودننه کړه بيا يې خضر ته وويل: هغه خلګو چي موږ يې بې له مزدوري را پوري ايستلو تاولې د دوى بېړۍ ورانه کړه تا د هر بدكار وكړ؟! ﴿ قَالَ أَلَمْ أَقُلْ إِنَّكَ لَن تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا ﴾ وويل: ( خضر موسى ته ) آيا ما نه وو ويلي چي: بېشکه ته به له سره ونکړى شې له ماسره طاقت د صبر؟ (په آرامي او نرمي سره يې د شرط مخالفت ورپه ياد کړ) ﴿ قَالَ لَا تُؤَاخِذْنِي بِمَا نَسِيتُ ﴾ وويل: (موسى خضر ته) مه نيسه ما په هغه کار چي هېر کړى مي وو (هغه ستا وصيت) ﴿ وَلَا تُرْهِقْنِي مِنْ أَمْرِي عُسْرًا ﴾ (او مه غورځوه ما ته په دې کار زما اشكال) يعني له ما سره پخپله ملګرتيا کي له مشقت او تکلف څخه کار مه اخله بلکه راسره آسانتيا کوه ﴿ فَانطَلَقَا حَتَّىٰ إِذَا لَقِيَا غُلَامًا فَقَتَلَهُ ﴾ پس بيا روان شول تر هغه پوري چي پر يو هلک پېښ شول پس( خضر) هغه مړ کړ ) يعني خضر عليه السلا م د ده عذر ومانو اوله بېړۍ څخه رابښکته شول ،پياده روان وو چي يو ښايسته هلک يې وليد چي له نورو هلکانو سره لوبي کوي نو خضر عليه السلام هغه راونيو او سريې په لاس خني غوڅ کړ او په ځمکه يې وويشت) ﴿ قَالَ أَقَتَلْتَ نَفْسًا زَكِيَّةً بِغَيْرِ نَفْسٍ ﴾ وويل: ( موسى خضر ته ) آيا مړ دي کړ يو نفس پاک بې ګناه؟ غير له عوضه د نفسه ) يعني چي هيڅ ګناه يې نه وه کړي او نه يې بل څوک وژلى وو چي تا ور باندي قصاص کړى واى ) ﴿ لَقَدْ جِئْتَ شَيْئًا نُّكْرًا ﴾ په تحقيق را دي وړ (ودي کړ) يو کار نامعقوله (چي سړى ورباندي چُپ نشي پاتي کېدلاى ؛ داخلي د موسى عليه السلام هېرنه وو او په قصدي تو ګه يې ورته د بد کار بدګڼل څرګند ول وعده يې هم په ياد وه نو ځکه يې وويل : نامعقوله (مخالف له شرعي كار دي وكړ او دا تر هغه ړومبۍ کلمې چي(امرًا ) وو بليغه او هيبت ناكه ده . قرطبي وايي: كله چي موسى عليه السلام خضر ته وويل چي: ﴿ أَقَتَلْتَ نَفْسًا زَكِيَّةً ﴾ نو خضر عليه السلام ته قهر ورغى او د ماشوم چَپ (ګس) وزر يې له غوږنې څخه لوڅ کړ چي هلته ليکلي وو (کافر دى هيڅلکه به په الله ايمان نه راوړي ([1]) ﴿ قَالَ أَلَمْ أَقُل لَّكَ إِنَّكَ لَن تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا ﴾ وويل: ( خضر موسى ته) آيا ما تا ته نه وو ويلي چي : بېشکه ته له سره به ونکړاى شې طاقت د صبر له ماسره ) يعني ما تا ته ويلي وو چي يقينًا به ته زما د کارونو په ليدلو له ماسره طاقت د صبر ونلرې ؛ مفسرين کرام وايي : لومړى ځل يې د ده عزت وکړ او مخاطب يې ونه ګرزاو وچي د خطاب (كاف) يې راوړى دى او كله چي يې دوهم ځل مخالفت وکړ نو يې د(لک ) خطاب ورته وکړ ځکه چي عذر يې پاتي نشو او د لته موسى عليه السلام له ځانه سره فکر کوي چي دوه ځلي يې له وعدې څخه

---

([1]) القرطبي ١١ / ٢٢

مخالفت وکړ نويې پرځان لاره وتړله او دغه يې دځان لپاره وروستی وار (فرصت) وباله چې: ﴿ قَالَ إِن سَأَلْتُكَ عَن شَيْءٍ بَعْدَهَا فَلَا تُصَاحِبْنِي ﴾ نووويل: (موسی) که چېرې تاوپوښتم دڅه (منکر) شي (چې له تاصادرشي) وروسته له دې سواله بيا له ماسره ملګرتيا مکوه ﴿ قَدْ بَلَغْتَ مِن لَّدُنِّي عُذْرًا ﴾ په تحقيق ته ورسېدې زماله طرفه عذرته (چې درې ځلي مې ستا مخالفت وکړاووعده مې ماته شوه) ﴿ فَانطَلَقَا حَتَّىٰ إِذَا أَتَيَا أَهْلَ قَرْيَةٍ اسْتَطْعَمَا أَهْلَهَا فَأَبَوْا أَن يُضَيِّفُوهُمَا ﴾ بيا دواړه روان شول ترهغه پورې کله چې راغلل اهل ديوه کلي ته نوددې کليوالو څخه يې ډوډۍ وغوښته پس منع راوړه هغو(خلګو) له دې نه چې مېلمستياورکړي دوی دواړو ته ؛ ابن عباس رضی الله عنه وايي چې: دغه د انطاکيې خلک وو خورابخيلان وونه يې چاته ډوډۍ ورکوله اونه مېلمستيا ﴿ فَوَجَدَا فِيهَا جِدَارًا يُرِيدُ أَن يَنقَضَّ ﴾ بيادوی دواړو وموند دېوال په هغه کلي کې چې په نړېدو وو ﴿ فَأَقَامَهُ ﴾ پس سم کړ(خضر) هغه دېوال (په يوډول ترميم سره چې په لاس يې مسح کړاوهغه سم سيخ ودريدو او يوروايت داچې ويې نړاوو، له سره يې بيرته ودان کړ دواړه روايتونه له ابن عباس رضی الله عنه څخه راغلي دي ﴿ قَالَ لَوْ شِئْتَ لَتَّخَذْتَ عَلَيْهِ أَجْرًا ﴾ (وويل (موسی خضرته ) که تاداجر اخيستلو اراده کړي وای نوخامخابه دي (ددې دېوال په جوړولو) مزدوري اخيستې وه) چې بيابه مود ډوډۍ رانيولو لپاره هغه تکې پيسې په کارکړي وی يعني موسی عليه السلام دغه کارله دغوخلګو سره نامناسبه وګاڼه (چې دوی دومره سپېڅانه وکړه يوه مړۍ ډوډۍ يې رانکړه اوتادېوال ورته وړيا ودان کړ؟) ﴿ قَالَ هَٰذَا فِرَاقُ بَيْنِي وَبَيْنِكَ ﴾ وويل: (خضرموسی ته) دازمااوستاترمينځ دبېلتون وخت دی (لکه چې تاوعده کړي وه) ﴿ سَأُنَبِّئُكَ بِتَأْوِيلِ مَا لَمْ تَسْتَطِع عَّلَيْهِ صَبْرًا ﴾ اوس به ژرتاخبرکړم (ای موسی) په غرض دهغه کارچې ونکړی شو تاطاقت په هغه باندې دصبر(اوماته دې ناروا ويل) په حديث شريف کې راځي: الله دې په موسی عليه السلام ورحمېږي زمازړه ووچې يوڅه صبريې لاکړی وای څوالله ددوی دواړو کيسه موږته ويلي وای اوکه يې وخت ورسره نورتېرکړی وای عجائبات به يې ليدلي وو(١) ﴿ أَمَّا السَّفِينَةُ فَكَانَتْ لِمَسَاكِينَ يَعْمَلُونَ فِي الْبَحْرِ ﴾ هرچې هغه بېړۍ وه (چې ماسوری کړه ) نووه لپاره دهغوعاجزانوچې په سيند کې به يې (ورباندې) کارکاوو) دغه خوهغه بيان دی چې موسی عليه السلام ورباندې صبرنشوای کولای نوخضرعليه السلام ورته وايې چې: داډېربېوزله کسان وو دظالمانو مخنيوی يې نشوای کولای ﴿ فَأَرَدتُّ أَنْ أَعِيبَهَا ﴾ نوماوغوښتل چې (هغه) عيبي کړم (چې ظالم پاچايې بېګار او غصب نکړي ﴿ وَكَانَ وَرَاءَهُم مَّلِكٌ يَأْخُذُ كُلَّ سَفِينَةٍ غَصْبًا ﴾ حال داچې وو له وروسته د دوی نه يوپاچا (ظالم کافر) چې اخيسته به يې هره يوه بېړۍ په زور سره (کومه چې

(١) دغه ديوحديث ټوټه ده چې شيخان يې روايت کوي

عيب جنه به نه وه) ﴿ وَأَمَّا ٱلْغُلَٰمُ فَكَانَ أَبَوَاهُ مُؤْمِنَيْنِ ﴾اوهرچي هلك وو (كوم چي ماوواژه هغه كافر اوفاجر وو) پس وو موراوپلارردده مؤمنان ؛ په حديث شريف كي راځي هغه غلام چي خضرعليه السلام وواژه كافرپيدا شوی وواوكه لوی شوی وای مور اوپلاربه يې هم كافران كړي اوپه طغيان كي غورزولي وای[1]) ﴿ فَخَشِينَآ أَن يُرْهِقَهُمَا طُغْيَٰنًا وَكُفْرًا ﴾پس وو ويرېدو موږ له دې چي وبه رسوي (مكلف به كړي دغه هلك) دوی په سركښي اوطغيان كفر(كه ژوندی پاتي شي) ﴿ فَأَرَدْنَآ أَن يُبْدِلَهُمَا رَبُّهُمَا خَيْرًا مِّنْهُ زَكَوٰةً وَأَقْرَبَ رُحْمًا ﴾نو وموغوښتل چي بدل وركړي دوی ته رب ددوی غوره له دې هلك څخه په پاكي اودېرنژدې به وي له جهته دمهرباني (په مور اوپلارله پاره د نېكي كولو) ﴿ وَأَمَّا ٱلْجِدَارُ فَكَانَ لِغُلَٰمَيْنِ يَتِيمَيْنِ فِى ٱلْمَدِينَةِ وَكَانَ تَحْتَهُۥ كَنزٌ لَّهُمَا ﴾اوهرچي هغه دېوال (نړېدونكی چي جوړمي كړ)پس وودهغو دوو هلكانويتيمانوپه (هغه) ښاركي او وولاندي له هغه (دېوال)خزانه ددغو دواړو (دسروسپينوزرو) ﴿ وَكَانَ أَبُوهُمَا صَٰلِحًا ﴾اووو پلارددوی صالح (پرهېزگاره نوالله ددوی لپاره دپلارپه صلاح باندي ددوی خزانه خوندي وساتله [2]) مفسرين كرام وايي چي : د پلرونو صُلحيت اولاد ته گټه رسوي اوددوی تقوی داولادونو لپاره هم گټه وره وي ﴿ فَأَرَادَ رَبُّكَ أَن يَبْلُغَآ أَشُدَّهُمَا وَيَسْتَخْرِجَا كَنزَهُمَا ﴾نواراده وكړه رب دتاچي ورسېږي (دغه دواړه)قوت د(ځلميتوب) خپلو ته اوبيا يې راوباسي هغه (خښي شوي )خزانې خپلي ﴿ رَحْمَةً مِّن رَّبِّكَ ﴾له جهته درحم مهرباني له جانبه درب دتا(په سبب دصُلحيت دپلار ددوی ) ﴿ وَمَا فَعَلْتُهُۥ عَنْ أَمْرِى ﴾اوندي كړي مادغه تېراعمال (چي تاوليدل) له خپله ځانه (چي كښتۍ مي سوري كړه، هلك مي وواژه اودېوال مي سم جوړكړ)امي پخپل حكم اوفكرنه دي كړي بلكه دالله په امراوالهام مي ترسره كړي دي ﴿ ذَٰلِكَ تَأْوِيلُ مَا لَمْ تَسْطِع عَّلَيْهِ صَبْرًا ﴾دغه (درې واړه) جوابونه دهغو پېښو چي تاپرهغه باندي دصبركولو طاقت نه شوای كولاي (او له ماسره دي اختلاف كاوو ترپخواله دي چي زه تاته دهغوپه هكله معلومات دركړم.

**بلاغت:**

١- دطباق صنعت چي د﴿ مُبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ ﴾ترمينځ او﴿ نَسِيتُ ﴾ اود﴿ أَذْكُرَهُۥ ﴾ترمينځ راغلی دی.

٢- مرتب لف اونشرچي: ﴿ أَمَّا ٱلسَّفِينَةُ ﴾﴿ وَأَمَّا ٱلْغُلَٰمُ ﴾﴿ وَأَمَّا ٱلْجِدَارُ ﴾نولومړی دبېړی بيا د هلك او وروسته ددېوال تفصيل په لف اونشرمرتب سره راغلي چي دغه له بديعي محسناتوڅخه دي

---

[1]) رواه مسلم.
[2]) چاويلي چي دغه يې اووم پلاروو اودلفظ ظاهرڅخه ښكاري چي هغه يې سكنی پلاروو.

۳ - پدې كلام كې چې الله فرمايي: ﴿كُلَّ سَفِينَةٍ﴾ ايجاز بالحذف راغلی چې دلته (صالحة) كلمه ورسره شته اوپدې باندې ﴿أَعِيبَهَا﴾ دلالت كوي اوهمداسې د (كافر) لفظ له ﴿وَأَمَّا ٱلْغُلَٰمُ﴾ څخه حذف شوی ځكه چې ﴿فَكَانَ أَبَوَاهُ مُؤْمِنَيْنِ﴾ وربانډې دلالت كوي.

۴ - تغليب چې په ﴿أَبَوَاهُ﴾ كې شته اومراد مور او پلار دواړه دي.

۵ - استعاره چې فرمايي: ﴿يُرِيدُ أَن يَنقَضَّ﴾ ځكه چې اراده خو دعاقلانو صفت وي او دهغې نسبت دېوال ته مجازي دی.

۶ - تنكير د تفخيم لپاره لكه چې فرمايي: ﴿عَبْدًا مِّنْ عِبَادِنَآ﴾ او اضافت د تشريف لپاره راغلی دی.

۷ - سجع اومراعات دآيتونو دپيل لكه: ﴿عَجَبًا ,نَصَبًا ,سَرَبًا﴾.

۸ - دادب ښوونه چې فرمايي: ﴿فَأَرَدتُّ أَنْ أَعِيبَهَا﴾ اوهلته فرمايي ﴿فَأَرَادَ رَبُّكَ﴾ چې دلته يې هغه څه چې په ظاهري توګه شر معلومېده ځان ته يې نسبت وكړاود خير نسبت يې الله ته وكړاو دادې لپاره چې بندګان په دې وپوهېږي له الله جل وعلا سره ادب كول پكاردي.

د موسی اوخضر عليهما السلام كېسه لكه چې په صحيحينو كې راغلې ده.

أبی ابن كعب روايت كوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: يوه ورځ حضرت موسی عليه السلام په بني اسرائيلو كې خطبه ايرادكړه نوچا ورڅخه پوښتنه وكړه چې ترټولو ستر عالم څوک دی؟ ده ورته وويل: زه يم نو الله تعالى ته دغه خبره غوره نه وه (چې سمدلاسه يې خواب وركړاو الله ته يې دعلم حواله ورنكړه بهتره خو داوه چې ويلي يې وای: (الله أعلم) يعني الله ښه خبردار دی چې ستر عالم به په خلكو كې څوک وي؟) الله تعالى ورته وحی وكړه چې په مجمع البحرين كې زما يو بنده ترتا لوی عالم دی موسی عليه السلام عرض وكړچې ای ربه! څرنګه به زه له هغه سره ووينم او ملګری شم؟ پروردګار ورته وويل: چې ماهی به په زنبيل كې درسره واخلې هرچېرې چې دغه ماهی درڅخه ورک شو هلته به هغه بنده بيامومې موسی عليه السلام او ورسره بل ځلمی (يوشع بن نون) روان شول ترڅو هغه سترې تيږې ته راورسېدل اوسرونه يې كېښېښودل، ويده شول (يوشع بن نون ورته كتل چې) ماهی په زنبيل كې سره وخوځېدو اوله زنبيل څخه راوښوئېدو په سيندكې ولوېدو اود سرنګ په شان ورته په اوبو كې لاره پرانيستل شوه چې الله پاک اوبه ورته ودرولې اوديوسوپ يا يوتونل غوندې ودرېدې كله چې موسی عليه السلام راويښ شونود ملګري هېرشول چې دماهي كيسه ورته ووايي پاتې ورځ اوګرده شپه يې مزل وكړ څوسهار شو موسی عليه السلام زلمي ته وويل: سباناری راوړه له دې سفر څخه ستړی شوم (وايي چې موسی عليه السلام ترهغه پورې ستړيانه احساسوله څو چې له هغه ځايه تېر شوكوم چې الله ورته امركړی وو) نوملګري يې ورته وويل: ﴿أَرَءَيْتَ إِذْ أَوَيْنَآ إِلَى ٱلصَّخْرَةِ فَإِنِّى نَسِيتُ ٱلْحُوتَ وَمَآ أَنسَىٰنِيهُ إِلَّا ٱلشَّيْطَٰنُ أَنْ أَذْكُرَهُۥ ۚ وَٱتَّخَذَ سَبِيلَهُۥ فِى ٱلْبَحْرِ عَجَبًا﴾ ويل يې چې دماهي لپاره سرنګ او دموسی اوملګري

لپاره يې دتعجب وړوه موسى عليه السلام ورته وويل ﴿ ذَٰلِكَ مَا كُنَّا نَبْغِ فَارْتَدَّا عَلَىٰ آثَارِهِمَا قَصَصًا ﴾ وويل يې دا هغه ځای دی چې موږ غوښتل دواړه پرخپلو پلونو باندي راروان شول څوتيږي ته راورسېدل نوهلته يې خضرعليه السلام چې سرترپايه يې په څادرکي ځان نغښتی پروت دی وليدموسى عليه السلام سلام ورواچاوو خضرعليه السلام ورته وويل: (وأنى بارضک السلام) (۱) ته څوک يې ؟ موسى عليه السلام ورته وويل: زه موسى يم خضرورڅخه پوښتنه وکړه چې آيادبني اسرائيلوموسى يې ده ورته وويل: هو راغلى يم چې له هغه پوهي څخه چې تاته درکول شوي ماته هم رازده کړې ﴿ قَالَ إِنَّكَ لَن تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا ﴾ اى موسى الله ماته داسي علم راکړی چې ته ورباندي نه پوهېږې اوتاته الله جل جلاله بياداسي علم درکړی چې زه ورباندي نه پوهېږم موسى عليه السلام ورته وويل: ﴿ قَالَ سَتَجِدُنِي إِن شَاءَ اللَّهُ صَابِرًا وَلَا أَعْصِي لَكَ أَمْرًا ﴾ خضرورته وويل: ﴿ قَالَ فَإِنِ اتَّبَعْتَنِي فَلَا تَسْأَلْنِي عَن شَيْءٍ حَتَّىٰ أُحْدِثَ لَكَ مِنْهُ ذِكْرًا ﴾ نودواړه دسيند په غاړه روان شول يوه بېړۍ تېرېدله دوی ورسره خبره وکړه چې پوري يې باسي هغوی خضرعليه السلام وپېژانده نو وړيا، پرته له کرايې څخه يې سپاره کړل کله چې په بېړۍ کې سپاره شول نوهماغه ووچې خضرعليه السلام دبېړۍ يوه تخته په تبرګي وايستله نوموسى عليه السلام ورته وويل: دغو خلګوموږ بې باړې اوکرايې سپاره کړو اوتابيا دهغوی بدله داورکړه چې کښتۍ دې ورسوری کړه ﴿ لِتُغْرِقَ أَهْلَهَا لَقَدْ جِئْتَ شَيْئًا إِمْرًا ﴾ رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايل: چې لومړی له موسى عليه السلام څخه په هېره اونسيان يادونه وشوه اويوه چرچنه راغله دبېړۍ په څوکه کښېناستله اوپه درياب يې منبوکه ډوبه کړه خضرعليه السلام موسى عليه السلام ته وويل: زمااو ستاعلم دالله جل جلاله علم ته همدومره دی لکه: چې دغي چرچنې له دې دريابه اوبه راواخيستې اوبيالة بېړۍ راکوزشول دوی په ساحل باندي روان ووچې خضرعليه السلام يوماشوم وليد له نورو ماشومانوسره يې لوبې کولې نوخضرعليه السلام يې سرونيو اوغوڅ يې کړهغه يې ووازو موسى عليه السلام ورته وويل: ﴿ أَقَتَلْتَ نَفْسًا زَكِيَّةً بِغَيْرِ نَفْسٍ لَّقَدْ جِئْتَ شَيْئًا نُّكْرًا (۷۴) ۞ قَالَ أَلَمْ أَقُل لَّكَ إِنَّكَ لَن تَسْتَطِيعَ مَعِيَ صَبْرًا (۷۵) ﴾ سفيان وايي چې دغه تررومبنۍ سخته ده ﴿ قَالَ إِن سَأَلْتُكَ عَن شَيْءٍ بَعْدَهَا فَلَا تُصَاحِبْنِي قَدْ بَلَغْتَ مِن لَّدُنِّي عُذْرًا (۷۶) فَانطَلَقَا حَتَّىٰ إِذَا أَتَيَا أَهْلَ قَرْيَةٍ اسْتَطْعَمَا أَهْلَهَا فَأَبَوْا أَن يُضَيِّفُوهُمَا فَوَجَدَا فِيهَا جِدَارًا يُرِيدُ أَن يَنقَضَّ فَأَقَامَهُ ﴾ نوخضرعليه السلام په لاس ورته اشاره وکړه هغه دېوال سم جوړشوموسى عليه السلام ورته وويل: موږدوی ته راغلوډوډۍ يې رانکړه اوميلمانه يې نکړو: ﴿ قَالَ لَوْ شِئْتَ لَتَّخَذْتَ عَلَيْهِ

(۱) يعني له کومه پدې ځمکه کي سلام واچول شوچې دلته په سلام څوک نه پوهېږي

أَجْرًا ﴾ خضر علیه السلام وویل: ﴿ هَٰذَا فِرَاقُ بَيْنِي وَبَيْنِكَ ۚ سَأُنَبِّئُكَ بِتَأْوِيلِ مَا لَمْ تَسْتَطِع عَّلَيْهِ صَبْرًا ﴾ رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: الله دي په موسی (علیه السلام) رحم وکړي زړه مي غواړي چي صبريې کړی وای ترڅو الله موږ ته ددوی دواړو کیسه کړي وای. رواه الشیخان.

تنبیه:

علامه قرطبي وايې چي: داولیاء الله کرامات لکه چي آیتونه او احادیث متواتره وربانديې دلالت کوي ثابت دي او له هغه څخه پرته له منکر مبتدع او فاسق ګمراه څخه بل څوک انکار نه کوي آیتونه دادي په کوموکي چي دمریمي (علیها السلام) په هکله هغومېوو چي دژمي به وې په دوبي کي ورته راتلو خبر ورکوي او داچي دهغې په لاس وچه خرماونه وخوځول شوه او مېوه یې وکړه هغه خو نبي نه وه او همداسي دخضر(علیه السلام) په لاس دبېړۍ سوری کېدل ، دماشوم وژل او ددېوال سمول دهغه کرامات څرګندوي. القرطبي ١١ / ٢٨

الله تعالی فرمایي:

﴿ وَيَسْـَٔلُونَكَ عَن ذِي ٱلْقَرْنَيْنِ ۖ قُلْ سَأَتْلُواْ عَلَيْكُم مِّنْهُ ذِكْرًا ﴿٨٣﴾ إِنَّا مَكَّنَّا لَهُۥ فِي ٱلْأَرْضِ وَءَاتَيْنَٰهُ مِن كُلِّ شَيْءٍ سَبَبًا ﴿٨٤﴾ فَأَتْبَعَ سَبَبًا ﴿٨٥﴾ حَتَّىٰٓ إِذَا بَلَغَ مَغْرِبَ ٱلشَّمْسِ وَجَدَهَا تَغْرُبُ فِي عَيْنٍ حَمِئَةٍ وَوَجَدَ عِندَهَا قَوْمًا ۗ قُلْنَا يَٰذَا ٱلْقَرْنَيْنِ إِمَّآ أَن تُعَذِّبَ وَإِمَّآ أَن تَتَّخِذَ فِيهِمْ حُسْنًا ﴿٨٦﴾ قَالَ أَمَّا مَن ظَلَمَ فَسَوْفَ نُعَذِّبُهُۥ ثُمَّ يُرَدُّ إِلَىٰ رَبِّهِۦ فَيُعَذِّبُهُۥ عَذَابًا نُّكْرًا ﴿٨٧﴾ وَأَمَّا مَنْ ءَامَنَ وَعَمِلَ صَٰلِحًا فَلَهُۥ جَزَآءً ٱلْحُسْنَىٰ ۖ وَسَنَقُولُ لَهُۥ مِنْ أَمْرِنَا يُسْرًا ﴿٨٨﴾ ثُمَّ أَتْبَعَ سَبَبًا ﴿٨٩﴾ حَتَّىٰٓ إِذَا بَلَغَ مَطْلِعَ ٱلشَّمْسِ وَجَدَهَا تَطْلُعُ عَلَىٰ قَوْمٍ لَّمْ نَجْعَل لَّهُم مِّن دُونِهَا سِتْرًا ﴿٩٠﴾ كَذَٰلِكَ وَقَدْ أَحَطْنَا بِمَا لَدَيْهِ خُبْرًا ﴿٩١﴾ ثُمَّ أَتْبَعَ سَبَبًا ﴿٩٢﴾ حَتَّىٰٓ إِذَا بَلَغَ بَيْنَ ٱلسَّدَّيْنِ وَجَدَ مِن دُونِهِمَا قَوْمًا لَّا يَكَادُونَ يَفْقَهُونَ قَوْلًا ﴿٩٣﴾ قَالُواْ يَٰذَا ٱلْقَرْنَيْنِ إِنَّ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ مُفْسِدُونَ فِي ٱلْأَرْضِ فَهَلْ نَجْعَلُ لَكَ خَرْجًا عَلَىٰٓ أَن تَجْعَلَ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُمْ سَدًّا ﴿٩٤﴾ قَالَ مَا مَكَّنِّي فِيهِ رَبِّي خَيْرٌ فَأَعِينُونِي بِقُوَّةٍ أَجْعَلْ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ رَدْمًا ﴿٩٥﴾ ءَاتُونِي زُبَرَ ٱلْحَدِيدِ ۖ حَتَّىٰٓ إِذَا سَاوَىٰ بَيْنَ ٱلصَّدَفَيْنِ قَالَ ٱنفُخُواْ ۖ حَتَّىٰٓ إِذَا جَعَلَهُۥ نَارًا قَالَ ءَاتُونِيٓ أُفْرِغْ عَلَيْهِ قِطْرًا ﴿٩٦﴾ فَمَا ٱسْطَٰعُوٓاْ أَن يَظْهَرُوهُ وَمَا ٱسْتَطَٰعُواْ لَهُۥ نَقْبًا ﴿٩٧﴾ قَالَ هَٰذَا رَحْمَةٌ مِّن رَّبِّي ۖ فَإِذَا جَآءَ وَعْدُ رَبِّي جَعَلَهُۥ دَكَّآءَ ۖ وَكَانَ وَعْدُ رَبِّي حَقًّا ﴿٩٨﴾ ۞ وَتَرَكْنَا بَعْضَهُمْ يَوْمَئِذٍ يَمُوجُ فِي بَعْضٍ ۖ وَنُفِخَ فِي ٱلصُّورِ فَجَمَعْنَٰهُمْ جَمْعًا ﴿٩٩﴾ وَعَرَضْنَا جَهَنَّمَ يَوْمَئِذٍ لِّلْكَٰفِرِينَ عَرْضًا ﴿١٠٠﴾ ٱلَّذِينَ كَانَتْ أَعْيُنُهُمْ فِي غِطَآءٍ عَن ذِكْرِي وَكَانُواْ لَا يَسْتَطِيعُونَ سَمْعًا ﴿١٠١﴾ أَفَحَسِبَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓاْ أَن يَتَّخِذُواْ عِبَادِي مِن دُونِيٓ أَوْلِيَآءَ ۚ إِنَّآ أَعْتَدْنَا جَهَنَّمَ لِلْكَٰفِرِينَ نُزُلًا ﴿١٠٢﴾ قُلْ هَلْ نُنَبِّئُكُم بِٱلْأَخْسَرِينَ أَعْمَٰلًا ﴿١٠٣﴾ ٱلَّذِينَ ضَلَّ سَعْيُهُمْ فِي ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا وَهُمْ يَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ يُحْسِنُونَ صُنْعًا ﴿١٠٤﴾ أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ بِـَٔايَٰتِ رَبِّهِمْ وَلِقَآئِهِۦ فَحَبِطَتْ أَعْمَٰلُهُمْ فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ وَزْنًا ﴿١٠٥﴾ ذَٰلِكَ جَزَآؤُهُمْ جَهَنَّمُ بِمَا كَفَرُواْ وَٱتَّخَذُوٓاْ ءَايَٰتِي وَرُسُلِي هُزُوًا ﴿١٠٦﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ كَانَتْ لَهُمْ جَنَّٰتُ ٱلْفِرْدَوْسِ نُزُلًا ﴿١٠٧﴾ خَٰلِدِينَ فِيهَا لَا يَبْغُونَ عَنْهَا حِوَلًا ﴿١٠٨﴾ قُل لَّوْ كَانَ ٱلْبَحْرُ مِدَادًا لِّكَلِمَٰتِ رَبِّي لَنَفِدَ ٱلْبَحْرُ قَبْلَ أَن تَنفَدَ كَلِمَٰتُ رَبِّي وَلَوْ جِئْنَا بِمِثْلِهِۦ مَدَدًا ﴿١٠٩﴾

قُلْ إِنَّمَآ أَنَا۠ بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوحَىٰٓ إِلَىَّ أَنَّمَآ إِلَـٰهُكُمْ إِلَـٰهٌ وَٰحِدٌ ۖ فَمَن كَانَ يَرْجُوا۟ لِقَآءَ رَبِّهِۦ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَـٰلِحًا وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِۦٓ أَحَدًۢا ﴿١١٠﴾ ﴾ الكهف: ٨٣ – ١١٠

## مناسبت او تړاو:

کله چې الله تعالی د خضر (علیه السلام) کیسه یاده کړه وروسته یې د ذوالقرنین کیسه او د هغه درې واړه سفرونه چې لویدیز، ختیځ او سدّین ته وو راوړل او بیا داچې د یأجوج او ماجوج په وړاندې یې سدّ تیار کړ او د غه په سورت کې څلورمه کیسه ده چې ټولې یې له عقیدې او ایمان سره اړیکې لري او هم د غه د مبارک سورت اساسي موخه او هدف دی.

## لغتونه:

(ذوالقرنین) د غه سکند رمقدوني دی[1] چې د حکمت خاوند صالح پاچا وو ځکه یې ذوالقرنین بولې چې د ځمکې ختیځ او لویدیز یې په پاچهي کې شامل وو هغه مسلمان او عادل وو (حمئة) د بړه توره خټه (سدّا) بند او حاجز (ردما) ستربند چې یو په بل پوړ په پوړ جوړ شوی او خورا محکم او ټینګ وي نو (ردم) تر (سد) لوی اوستردی (زبرالحدید) د زبرة جمع او زبرة یوې ټوټې ته وایي (الصدفین) دغره اړخونه ابوعبیده وایې چې صدف هره ستره اولوړه بنا بلل کیږي (قطرا) ویلې شوي زیړ (نقبا) سوري او د رزونه (دکاء) له ځمکې سره برابر ازهري وایې: ددې کلمې معنا چې (دککته) دادی چې (د ققته) میده مې کړ (یموج) ګډوډ کیږي (الفردوس) فراء وایې چې فردوس هغه باغ ته وایې چې انګور پکې وي او ثعلب وایې چې هر هغه باغ چې د بوالونه لري هغه ته فردوس وایه شي.

## د نزول سبب یې:

أ- قتاده وایې چې: یهودانو له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه د ذوالقرنین په هکله وپوښتل نو الله دا آیتونه نازل کړل ﴿ وَيَسْـَٔلُونَكَ عَن ذِى ٱلْقَرْنَيْنِ ﴾[2]

ب – مجاهد وایې چې یو سړی رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغی او ورته ویل یې :زه صله رحمی پالم خیراتونه کوم او دا هر څه د الله درضا لپاره کوم خو خلک می ستایي اوصفتونه می کوی ماته هم دغه خوند راکوی او وربا ندی خوشحاله کیږم رسول الله صلی الله علیه وسلم پټه خوله شو نو الله دا آیتونه نازل کړل ﴿ فَمَن كَانَ يَرْجُوا۟ لِقَآءَ رَبِّهِۦ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَـٰلِحًا وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِۦٓ أَحَدًۢا ﴾[3]

تفسیر: ﴿ وَيَسْـَٔلُونَكَ عَن ذِى ٱلْقَرْنَيْنِ ﴾ او پوښتنه کوي (یهودان ای محمده!) له تا نه د (کیسې) د ذوالقرنین (چې څه ډول وه؟) ﴿ قُلْ سَأَتْلُوا۟ عَلَيْكُم مِّنْهُ ذِكْرًا ﴾ ووایه (ای محمده دوی ته!) اوس به زه

---

([1]) دې ته ترجیح ورکول شوي چې دغه د یمن له مسلمانو پاچهانو څخه یو دی.
([2]) اسباب النزول ۱۷۲
([3]) القرطبي ۱۱/ ۷۰

ولولم پرتاسي له ده څه احوال د(قرآنکريم اووحی څخه) ﴿ إِنَّا مَكَّنَّا لَهُۥ فِي ٱلۡأَرۡضِ وَءَاتَيۡنَٰهُ مِن كُلِّ شَيۡءٖ سَبَبٗا ﴾
بېشکه چي موږ قدرت ورکړی ووده ته په ځمکه کي او ورکړی وو موږ ده ته له هرڅېزڅخه (هغه محتاج اليه) يوه لاره رسونکي مقصودته ( چي ورته موده علم اوقدرت اسباب ورکړي وومفسرين وايي چي: ذوالقرنين يوناني اسکندر دی چي مشرق اومغرب ته يې دپاچهي قلمرو غزېدلی ووځکه يې ذوالقرنين بولي هغه ته الله په ځمکه کي قدرت ورکړی وواوهغه مسلمان ووپه ښه توګه اوعدالت سره يې دپاچهي چاري پرمخ بېولې اودده دسلطنت موده دحضرت عيسی اومحمدصلی الله عليهما السلام ترمينځ وه.
روايت کېږي چي څلورتنودګردي ځمکي پاچهي کړي چي دوه مؤمنان اودوه کافران وو مؤمنان سليمان اوذوالقرنين وو کافران بيانمرود اوبخت نصروو[1] ﴿ فَأَتۡبَعَ سَبَبًا ﴾پس نيوله ده لاره (هغه چي ويې رساوولويديزته) ﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا بَلَغَ مَغۡرِبَ ٱلشَّمۡسِ ﴾ترهغه پوري چي ورسېدوځای دپرېوتلو دلمرته ﴿ وَجَدَهَا تَغۡرُبُ فِي عَيۡنٍ حَمِئَةٖ ﴾(ويې مونده دغه (لمر) ته چي ډوبېدوپه (لويه) چينه کي له توروختو) يعني ويې موندل چي لمرپه اوبواوختوکي لوېږي لکه چي ده وليدل خوحقيقتاًهسي نه ووځکه لمرخوراسترډي اوامکان نلري په کومه چينه کي پټ شي . امام رازي وايي : کله چي ذی القرنين پوري لويديزته ورسېدونوهيڅ آبادي اوتعمېرات نور پاتي نشول نو ويې ليدل چي لمرلکه چي په کومه چينه کي ولوېږ‌ي که څه هم په حقيقت کي خوداسي نه ده اودالکه چي په سيندکي سفرکونکی چي کله دلمرلوېدونظاره کوي داسي انګېري چي ګواکي لمرپه همدې درياب کي غوپه شوخوپه حقيقت کي لمرتردرياب هاخوالوېږي ﴿ وَوَجَدَ عِندَهَا قَوۡمٗا ﴾او ويې مونده هغه ته نژدې يوقوم (چي له ختمني چينې سره نژدې هستوګن وو ﴿ قُلۡنَا يَٰذَا ٱلۡقَرۡنَيۡنِ إِمَّآ أَن تُعَذِّبَ وَإِمَّآ أَن تَتَّخِذَ فِيهِمۡ حُسۡنٗا ﴾وويل: موږ (په الهام سره) ای ذوالقرنينه ! ياخوپه عذاب کړه دغه خلګ (په وژلو) ياونيسه په دوی کي ښه لاره (دعوت ورکړه چي ايمان راوړي اوبياورسره ښه وکړه . مفسرين کرام وايي چي : دغه خلګ کافران وونوالله ذوالقرنين ته اختيارورکړچي يايې ووژنه اويابلنه ورکړه ورسره ښه وکړه ﴿ قَالَ أَمَّا مَن ظَلَمَ فَسَوۡفَ نُعَذِّبُهُۥ ﴾نووويل (ذوالقرنين) هرهغه څوک چي ظلم يې وکړ(په ايمان نه راوړلواو په کفريې اصرار وکړ) پس ژربه په عذاب کړو دوی(په وژلوسره) ﴿ ثُمَّ يُرَدُّ إِلَىٰ رَبِّهِۦ فَيُعَذِّبُهُۥ عَذَابٗا نُّكۡرٗا ﴾بيابه بوتلی شي (طرف د ) رب خپل ته پس په عذاب به کړي دی په عذاب لوی سره(ددوزخ په اورکي) ﴿ وَأَمَّا مَنۡ ءَامَنَ وَعَمِلَ صَٰلِحٗا فَلَهُۥ جَزَآءً ٱلۡحُسۡنَىٰۖ ﴾اوهرهغه چي ايمان يې راووړاوصالح عمل يې وکړپس ده ته ده جزاء نېکه (دجنت اونعمتونو) ﴿ وَسَنَقُولُ لَهُۥ مِنۡ أَمۡرِنَا يُسۡرٗا ﴾(اوژردی چي وبه وايودده ته له کاره خپله آسانه) يعني ده ته به په دنياکي هم سخت کارونه نه ورسپارو بلکه په آسانه اوتر وس لاندي کارونو به يې مکلف کوو دغه عادل باچادوی ته په نېکي بلنه ورکول غوره کړل څوک چي ايمان يې راوړی هغه لره به جنت وي نرمه اوپسته معامله به

---

[1] البحر ۶/ ۱۵۷

ورسره کېږي اوڅوک چې په کفردوام غوره کړي هغه ته به په دنیاکې هم عذاب ورکول کېږي او په آخرت کې هم ﴿ ثُمَّ أَتْبَعَ سَبَبًا حَتَّىٰ إِذَا بَلَغَ مَطْلِعَ الشَّمْسِ ﴾بیایې (په لښکر) بله لاره ونیوله ترهغه پورې چې ورسېدو ځای دراختلودلمرته( دکتونکي په ګمان) ﴿ وَجَدَهَا تَطْلُعُ عَلَىٰ قَوْمٍ لَّمْ نَجْعَل لَّهُم مِّن دُونِهَا سِتْرًا ﴾نوویې موندهغه لمرچې راخوت په یوه قوم باندې چې نه وه ګرځولې موږ دوی ته له لاندې ددې (لمر) کومه پرده (لباس) یعني لمریې ولیدچې په داسې خلګو راخېژي چې نه لباس لري اونه هم هستوګنځی کله چې به لمر راوخوت دوی به په ځمکني سمڅوکې ننوتل اوچې لمربه پرېووت بیابه راووتلو اوډژوندژواک لپاره به یې هلې ځلې کولې. قتاده وایې چې ذوالقرنین روان ووښارونه اوهیوادونه یې فتح کول خزانې یې راټولولې اوخلګ یې چې ایمان به یې نه راووړ وژل آن تردې چې دلمرختیزته ورسېدونوهلته یې بربنډ لغړخلګ ولیدل چې دخوراک یې هیڅ نلرل مګرهغه چې لمربه پاخه کړې (مېوې دانې) وې چې کله به لمرولوېدوله خپلوځایونو به رابهرشول اودمعاش موندلوپه لټه کې به وو اوداسې ویل شوي چې هغه (زنجي) تېبروو(١) ﴿ كَذَٰلِكَ وَقَدْ أَحَطْنَا بِمَا لَدَيْهِ خُبْرًا ﴾همداسې (یې له ختیز اوسېدونکوسره معامله وکړه لکه چې له لوېدیزوالوسره یې کړې وه چاچې به ایمان راووړ هغه به یې پرېښود اوچاچې به په کفراصرار(دوام) کاوو هغه یې واژو) اوپه تحقیق احاطه کړې وه (علم د ) موږ په هغه شي باندې چې له ده ځخه وو( له اسباب ,لښکرو,عظمت اوډېروخلګوځخه دبل چاعلم اوپوهه نه ور رسېدله ﴿ ثُمَّ أَتْبَعَ سَبَبًا ﴾بیاونیوله ده بله لاره دشمال په لورېې مخه کړه چېرې چې آسمان څک غرونه دي) ﴿ حَتَّىٰ إِذَا بَلَغَ بَيْنَ السَّدَّيْنِ ﴾ترهغه پورې چې ورسېدومینځ ددواړو بندونو غرونو ) ته (سَد ) ستربندته وایې چې دغه دترک دښارونو، ارمینیااوآذربایجان ته نژدې وو. طبري وایې (سد ) هغه حاجزته وایې چې ددوو څیزونو ترمینځ وي اودلته دغه دوه غرونه ووچې رابندکړې یې ووهغه چې ددوی ترمینځ وو نوذوالقرنین دیاجوج اوماجوج په وړاندې دغه بندټینګ کړچې له خلګوځخه دیاجوج اوماجوج شردفع کړي ﴿ وَجَدَ مِن دُونِهِمَا قَوْمًا لَّا يَكَادُونَ يَفْقَهُونَ قَوْلًا ﴾نو ویې موندو وړاندې ددغودواړو (غرونو ) داسې قوم چې نه وونژدې (اکثرددوی) چې وپوهېږي په خبره د(ذوالقرنین) باندې (یوازې دوی پخپله ژبه ګړېدلای شوای دبل چاپه ژبه نه پوهېدل مګرپه ډېره سختۍ. مفسرین کرام وایې: دوی ځکه نه پوهېدل چې نادره ژبه یې وه اودپوهې خاوندان نه ووخلګ یې نه ولیدلي، له چاسره یې راشه درشه نه وه نوددوه خبره یې دترجمان په ذریعه اورېدله ﴿ قَالُوا يَا ذَا الْقَرْنَيْنِ إِنَّ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ مُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ ﴾وویل: دغو(ترجمانانو) بېشکه چې یاجوج اوماجوج (دوه قبیلې بنیادمان دي ځیني یې ډېرغټ اوځیني ډېر واړه اوناموزه دي(٢) فسادکونکي دي په ځمکه کې (خلګ وژني ، لوټ اوتالان کوي اونورډېرد شر کارونه کوي. مفسرین کرام وایې چې: دوی سړي خواره اودبشرغوښې به یې خوړلې په پسرلي کې به

---

(١) زادالمسير ٥ / ١٨٧ - الطبري ١٢ / ١٤

(٢) ددې روایت له علي او ابن عباس رضی الله عنهم ځخه شوی دی.

راوتل نونه به يې لامده وانښه پرېښودل بلکه هغه به يې خوړل اونه به يې وچ پرېښودل له ځانه سره به يې وړل ﴿ فَهَلْ نَجْعَلُ لَكَ خَرْجًا ﴾ پس آيامقررکړو تالره څه خرڅ اومحصول ؟(لکه ماليه ) ﴿ عَلَىٰٓ أَن تَجْعَلَ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُمْ سَدًّا ﴾ لپاره ددې کارچې ته جوړکړې په مينځ زموږ اومينځ ددوی کې يودېوال (اوموږ يې له شرنه وژغورې په البحرالمحيط کې وايې چې دغه ددوی له لوري يوه استدعاء ده چې په نېک ادب محصول ورکولوته تيار دي ﴿ قَالَ مَا مَكَّنِّى فِيهِ رَبِّى خَيْرٌ فَأَعِينُونِى بِقُوَّةٍ ﴾ وويل: ( ذوالقرنين ) هغه چې اقتدار راکړی دی ماته په هغه (شي ) کې رب زماډېرغوره دی پس مرسته وکړئ تاسي له ماسره په محنت زيارکې (دسړو ) ﴿ أَجْعَلْ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ رَدْمًا ﴾ چې جوړکړم په مينځ دتاسواوددوی کې يوپرېړ دېوال (محکم) دغه دده شهامت اومېړانه وه چې ددوی څخه يې مال اخيستل ونه منل اويوازې دخلګود محنت اودزيارېې ورڅخه غوښتنه وکړه ﴿ ءَاتُونِى زُبَرَ ٱلْحَدِيدِ ﴾ راواخلئ تاسي ماته تختې داوسپنو (او هلته يې راته کنښېږدئ) ﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا سَاوَىٰ بَيْنَ ٱلصَّدَفَيْنِ ﴾ ترهغو پوري (يې اېښودلې چې) برابرشودا دېوال په مينځ ددوڅوکوکي (دغرونو ) ﴿ قَالَ ٱنفُخُوا۟ حَتَّىٰٓ إِذَا جَعَلَهُۥ نَارًا ﴾ نوويل (ذوالقرنين) چې پوکړئ (په بنيو(منافيخو ) سره په دغوتختوچې په مينځ کې يې سکاره اچول شوی نوپوېې کړل ) ترڅوچې ويې ګرځوله دغه اوسپنه (سور) اور(له ډېرګرموالي) ﴿ قَالَ ءَاتُونِىٓ أُفْرِغْ عَلَيْهِ قِطْرًا ﴾ وويل: (ذوالقرنين ) راوړي ماته چې توئې کړم په دوې (دېوال ) زېړ(ويلي شوي) امام رازي وايې چې کله يې داوسپني تختې ورته راوړي ځيني يې په ځينو دپاسه کښېښودلې ترڅويې ددواړو غرونو څوکوته ورسولې بيا يې دپوکونکي آلاتوپه ذريعه ور وپوکل ترڅوچې لکه اورغوندي وګرځېدې پسي يې ويلي شوي ژېړ ورباندي توئې کړل چې يوله بله ونښتلې اونښوی دېوال ځني جوړشو(١) ﴿ فَمَا ٱسْطَٰعُوٓا۟ أَن يَظْهَرُوهُ وَمَا ٱسْتَطَٰعُوا۟ لَهُۥ نَقْبًا ﴾ پس طاقت به نه وي ددوی چې پرې وخېژي (له جهته دلوړوالي اونښويوالي اونه به طاقت وي ددوی دغه غره ته دسوري کولو(له جهته دپېړوالي)په همدغه لوړدېوال ذوالقرنين وکولای شوچې دياجوج ماجوج لاره ډب کړي ﴿ قَالَ هَٰذَا رَحْمَةٌ مِّن رَّبِّى ﴾ وويل : ( ذوالقرنين ) دغه (بشپړېدل دسد ) زماد رب له لوري رحمت دی (په بندګانو خپلو ) ﴿ فَإِذَا جَآءَ وَعْدُ رَبِّى جَعَلَهُۥ دَكَّآءَ وَكَانَ وَعْدُ رَبِّى حَقًّا ﴾ نوهرکله چې راغله وعده درب زما( په راتلودغوياجوج اوماجوج چې قيامت ته به نژدې وي ) نووبه ګرځوي (داسد ) برابرهوار له ځمکي سره اوزما درب وعده حقه ده اودقيامت راتله اروموردي پرهمدغه ځای دذوالقرنين کيسه پای ته ورسېده او وروسته دقيامت دورځي له کړاوونو اوخواريو څخه الله جل جلاله داسي يادونه کوي ﴿ وَتَرَكْنَا بَعْضَهُمْ يَوْمَئِذٍ يَمُوجُ فِى بَعْضٍ ﴾ اوپرې به ږدو موږ ځيني ددوی په دغه ورځ (دقيامت) چې څپې به وهي (له ډېره ازدحامه اوننوزي به) په ځينونوروکي (لکه ددرياب څپې غوندي) ﴿ وَنُفِخَ فِى ٱلصُّورِ فَجَمَعْنَٰهُمْ

---

(١) التفسيرالكبير٢١ / ١٧٢

جَمْعًا ﴾او پوبه کړی شي په صور شپېلۍ کي پس را جمع به کړو موږ دغه (مخلوقات ) ټول( لپاره دجزاء په) يوه ميدان کي چي هيڅوک به هم پرې نږدو ) ﴿ وَعَرَضْنَا جَهَنَّمَ يَوْمَئِذٍ لِّلْكَٰفِرِينَ عَرْضًا ﴾اوراوړاندي به کړو جهنم (ښکاره) په دغه ورځي کي دکافرانو په وړاندي (اوښکاره) کولوسره (ترڅوېې ووېني سره له هغووېرونکو کړاوونو ) ﴿ ٱلَّذِينَ كَانَتْ أَعْيُنُهُمْ فِى غِطَآءٍ عَن ذِكْرِى ﴾هغه کافران چي وې سترګي د(دزړه) ددوی په پرده کي (له غفلته) دياده زما(يعني دالله دقدرت اووحدانيت له دلائلوړانده وي اونه ورته ګوري نه پکي سوچ کوي ﴿ وَكَانُوا۟ لَا يَسْتَطِيعُونَ سَمْعًا ﴾اوودوی چي نه توانېدل په اورېدو(دکلام دحق له جهته دتاريکي د زړونو ددوی. ابو السعود وايې چي همدغه ددوی داعراض تمثيل دی چي نه يې اورېدونکي دلائل اورېدل اونه يې ليدونکي نښانې کتلې ګواکي ړانده اوکاڼه وو([1]) ﴿ أَفَحَسِبَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ أَن يَتَّخِذُوا۟ عِبَادِى مِن دُونِىٓ أَوْلِيَآءَ ﴾آيا ګمان کوي هغه کسان چي کافران شوي دي ددې چي نيسي دوی بندګان زما(لکه ملائک، عزيراومسيح بن مريم ) پرته له ماڅخه دوستان (معبودان چي دوی ته به ګټه ورسوي اوزماعذاب به ورڅخه دفع کړي ؟ قرطبي وايې چي: داستفهام ځواب محذوف اوهغه دادی چي آيا ګمان کوي چي دوی ته دغه آلهه ګټه رسوي اوزه به دوی نه په عذابوم ؟ استفهام دتوبيخ او انکار لپاره دی ﴿ إِنَّآ أَعْتَدْنَا جَهَنَّمَ لِلْكَٰفِرِينَ نُزُلًا ﴾(بلکه) بېشکه موږ تيار کړی دی دوزخ لپاره دکافرانو مېلمستيا ؛ بيضاوي وايې چي: پدې کي تهکم نغښتی اوددې تنبيه ده چي پدې پسي وروسته دجهنم عذاب دی ([2]) ﴿ قُلْ هَلْ نُنَبِّئُكُم بِٱلْأَخْسَرِينَ أَعْمَٰلًا ﴾ووايه(ای محمده! دوی ته) آياخبرکړو تاسي په ډېروسختوزيانکارانو باندي له جهته دعمله؟ ﴿ ٱلَّذِينَ ضَلَّ سَعْيُهُمْ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ﴾ددوی هغه کسان دي چي ورک دي منډي اوزيارد دوی په دغه ژوندون ددنياکي (ځکه له کفرسره طاعت ګټه نه لري ضحاک وايې چي دوی هم دغه قسيسان اورهبانان دي چي عبادت کوي اوګمان لري چي دابه ورته ګټه رسوي خوهغه له دوی څخه نه منل کېږي ﴿ وَهُمْ يَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ يُحْسِنُونَ صُنْعًا ﴾حال داچي دوی ګمان کوي چي بېشکه دوی ښه کارکوي ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ بِـَٔايَٰتِ رَبِّهِمْ وَلِقَآئِهِۦ فَحَبِطَتْ أَعْمَٰلُهُمْ ﴾ دغه کسان (چي پورته يادشول) هغه دي چي کافران شوي دي په آيتونو (دقرآن) درب خپل اوپه ملاقات ددغه الله په آخرت کي ) پس خراب شول عملونه ددوی ﴿ فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ وَزْنًا ﴾پس وبه نه دروولپاره ددوی په ورځ دقيامت کي تله) يعني ددوی لپاره په نزد دالله هيڅ قدر اومنزلت په قيامت کي نشته په حديث شريف کي راغي چي: دقيامت په ورځ به غټ، اوږد دډېرخوراک اوڅښاک خاوندراوستل شي مګردالله په وړاندي به دغوماشي دوزر تول نلري ([3]) ﴿ ذَٰلِكَ جَزَآؤُهُمْ جَهَنَّمُ بِمَا كَفَرُوا۟ وَٱتَّخَذُوٓا۟ ءَايَٰتِى وَرُسُلِى هُزُوًا ﴾(داخبره ده چي اعمال ددوی ابته شول) جزاء

---

([1]) ابو السعود ۳ / ۳۶۷

([2]) البيضاوي ۲ / ۱۳

([3]) دغه حديث الحافظ په الفتح کي راوړی دی ۸ / ۳۲۴

ددوی دی دوزخ په سبب ددې چې دوی کافران شوي وواونیولي دوی آیتونه اوپیغمبران زما مسخره
﴿إِنَّ الَّذِينَ ءَامَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ﴾ بېشکه هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی اوکړي یې دي ښه عملونه
﴿كَانَتْ لَهُمْ جَنَّاتُ الْفِرْدَوْسِ نُزُلًا﴾ شته دوی ته جنتونه دفردوس (غوره) بهترځای دهستوګنې (مېلمستیا)
﴿خَالِدِينَ فِيهَا لَا يَبْغُونَ عَنْهَا حِوَلًا﴾ چې تل به وي په دغو (جنتونو) کې نه به غواړي دوی له دغو (جنتونو)
څخه ګرزېدل (وتل) ابن رواحه وایي چې: په جنت الفردوس کې به له وتلو اوګرزېدلو څخه نه وېرېږي ﴿قُل
لَّوْ كَانَ الْبَحْرُ مِدَادًا لِّكَلِمَاتِ رَبِّي﴾ (دغه دالله دپراخ علم اوپوهې لپاره تمثیل دی) ووایه (ای محمده دوی ته)
که شي (اوبه د) بحرسیاهي دپاره (دلیکلو) دکلماتودرب زما (اوحکمتونو عجائباتويې) ﴿لَنَفِدَ الْبَحْرُ
قَبْلَ أَن تَنفَدَ كَلِمَاتُ رَبِّي﴾ نوخامخاتمام به شي بحرپخوا له هغه نه چې تمام شي کلمات درب زما (ځکه چې
معلومات دالله غیرمتناهي دي لکه چې علم دالله رب العزت غیرمتناهي دی ﴿وَلَوْ جِئْنَا بِمِثْلِهِ مَدَدًا﴾ او
اګرکه راوړو په مثل ددغه بحر (نوربحاراو زیات کړو) مددګار (ځکه دالله کلام لایتناهي دی ﴿قُلْ إِنَّمَا أَنَا
بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوحَىٰ إِلَيَّ أَنَّمَا إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ﴾ ووایه (ای محمده!) بېشکه همداخبره ده چې زه یم یوبشر سری
ستاسي په شان چې وحی راځي ماته چې بېشکه همداخبره ده چې معبود ستاسي یو معبود دی (شریک
نلري) ﴿فَمَن كَانَ يَرْجُو لِقَاءَ رَبِّهِ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا﴾ پس هرڅوک چې وي اُمید لري د (اُخروي) ملاقات درب
خپل نوښایې چې تل صالح عمل وکړي (که څوک ثواب غواړي اودالله له عذابه وېرېږي) ﴿وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ
رَبِّهِ أَحَدًا﴾ (اونه شریکوي په عبادت درب خپل کې هیڅوک) یعني ریاکاري دې نه کوي اوپخپل عمل
کې دې دالله له رضاپرته دبل هیڅ شي طمع نه لري ځکه الله هغه عملونه نه مني کوم چې خاص دالله جل
جلاله درضا اوخوښې لپاره په اخلاص نه وي ترسره شوي.

**بلاغت:**

پدې آیتونوکې چې دبدیع اوبیان کومې ښکلاوې شته لندیزیې په لاندې ډول دی:

۱ - دطباق صنعت چې د ﴿مَغْرِبَ... مَطْلِعَ﴾ ترمینځ راغلی دی.

۲ - بلیغه تشبیه چې الله فرمایي ﴿جَعَلَهُ نَارًا﴾ یعني لکه اورپه حرارت اوسوروالي کې دتشبیه
ادات اودشبه وجه یې حذف کړه نوبلیغه تشبیه یې لولو.

۳ - پدې کلام کې چې الله تعالی فرمایي: ﴿يَمُوجُ فِي بَعْضٍ﴾ دوی یې دزیاتوالي له وجهې چې یوپه بل
کې ګډېږي دبحرله څپوسره مشابه کړل اود(موج) لفظ یې ورته استعاره راوړ نوله دې کبله دې ته په
نـ ـه تبعیه استعاره وایي.

۴ - بله استعاره دالله جل جلاله پدې كلام كې چې ﴿كَانَتْ أَعْيُنُهُمْ فِي غِطَآءٍ عَن ذِكْرِي﴾ يعني كتل به يې خوپنديې ورباندي نه اخيستل اودكائناتوآيات بې ليدل خوايمان بې ورباندي نه راوور حقيقتاً خوددوى په ستركو پردې نه وې بلكه دتمثيل په توګه بې راوړى دى.

۵ - ناقص جناس لكه: ﴿ يَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ يُحْسِنُونَ ﴾ چې پكي دڅينوتوروتغييردى اودې ته جناس تصحيف هم وايې.

۶-استفهام چې توبيخ اوتقريع افاده كوي لكه چې: ﴿ أَفَحَسِبَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓاْ ﴾.

۷- لطيفه مقابله چې فرمايې: ﴿ وَأَمَّا مَنْ ءَامَنَ وَعَمِلَ صَٰلِحًا فَلَهُۥ جَزَآءً ٱلْحُسْنَىٰ ﴾ ددې په مقابل كې چې: ﴿ أَمَّا مَن ظَلَمَ فَسَوْفَ نُعَذِّبُهُۥ ﴾.

لطيفه:

دبرخله په قرآنكريم كي د(حبط) لفظ راځي اوداپه اصل كي هغه وخت كوم چې بوده زهرجن وابنه وخوري اوګېډه يې وپړسېږي اوومري دهغه لپاره ويل كېږي همدغه ترڅولومناسبه كلمه ده دهغه چالپاره چي عملونه كوي ګېډه يې پړسوي دوى ګمان كوي چې داګټوردي اوچاغښت (څربښت) راولي مګردهغوى انجام هلاكت اوخواري وي.

دالله جل جلاله په مرسته دالكهف سورت بشپړشو.

***

# دمریم سورت مکي دی او اته نوي آیتونه لري

## دسورت په وړاندي:

* دمریم سورت مکي اومقصدیې توحیددی اوداچي دالله تعالی تنزیه کوي اوپه بعث اوجزاء دایمان راوړلوحکم فرمایې دسورت محور په توحیداوایمان بالله راڅرخي اوبیادلاره موندونکواو ګمراهانوبېلې بېلې لاري ښیي.
* پدې سورت کي دځینوانبیاء کرامو کیسې راغلي چي دحضرت زکریاعلیه السلام په کیسه پیلېږي وروسته دهغه دزوی چي الله تعالی په سپین ږیرتوب کي په داسي حال کي چي ښځه یې شنده وه ورکړ اوداښیې چي الله تعالی په هرڅه قادردی اودمظلوم دعا اوري ځکه یې دزکریاعلیه السلام ددعااستجابت وکړ اوپوهیالی زوی یې ورباندي ولوراوو.
* په سورت کي ددې نه هم بل سترعجیب امردادی چي الله (عذرآء) مریمي رضی الله عنهاته زوی ورکړ په داسي حال کي چي مېړه یې نه درلود همدغه دالهي حکمت غوښتنه وه چي دغسي معجزه د حضرت عیسی علیه السلام په میلاد یوازې له موره بې پلاره زېږېدلوڅرګنده کړي ترڅوتل ترتله دواحد قهارذات دعظمت اولویې ښکارندوی وي.
* سورت دابراهیم علیه السلام کیسه له خپله پلاره سره را اخلي اوبیاپه انبیاوو علیهم السلام لکه اسحاق ، یعقوب ، موسی ، هارون ، اسماعیل ، ادریس اونوح علیهم السلام باندي ثناوایي دسورت دوه په درې برخي نژدې دهمدې نبیانوپه هکله خبري کوي اومقصدپه دې کي درسالت وحدت دی چي ګرده نبیان دالله توحیدته دخلکو دبلني لپاره راغلي دي اوددې لپاره چي خلګ له شرک اوبت پرستي څخه راوګرزوي.
* په سورت کي دقیامت دورځي ځني مشاهد راځي هغه چي وېرونکي بوږنونکي دي کله چي کافران ددوزخ په خواوشاپه زنګنونولوېږي ترڅودوزخ ته ور وغورځول شي اوددوزخ ازوغه اوشومه شي.
* په پای کي سورت دالله جل جلاله په تنزیه اوتقدیس بیان راوړي چي الله له زویه ، سیاله ، مثله اوشریکه پاک دی اودګمراهانوپه ګمراهي باندي خاوري اړوي پدې هکله ښکاره دلیل اوروښانه بیان فرمایې.

## تسمیه اونوموول یې:

ځکه دې سورت ته سورت مریم وایې چي ددغي ستري معجزې تخلیدوفرمایې چي بې پلاره فرزندوزېږي اوبیاپه زانګوکي خبري وکړي اونوري ډېري هغه پېښې چي له دې مقدس میلاد سره رادبره شوي دي

اللہ تعالی فرمایي:

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

كٓهيعٓصٓ ﴿١﴾ ذِكْرُ رَحْمَتِ رَبِّكَ عَبْدَهُۥ زَكَرِيَّآ ﴿٢﴾ إِذْ نَادَىٰ رَبَّهُۥ نِدَآءً خَفِيًّا ﴿٣﴾ قَالَ رَبِّ إِنِّى وَهَنَ ٱلْعَظْمُ مِنِّى وَٱشْتَعَلَ ٱلرَّأْسُ شَيْبًا وَلَمْ أَكُنۢ بِدُعَآئِكَ رَبِّ شَقِيًّا ﴿٤﴾ وَإِنِّى خِفْتُ ٱلْمَوَٰلِىَ مِن وَرَآءِى وَكَانَتِ ٱمْرَأَتِى عَاقِرًا فَهَبْ لِى مِن لَّدُنكَ وَلِيًّا ﴿٥﴾ يَرِثُنِى وَيَرِثُ مِنْ ءَالِ يَعْقُوبَ ۖ وَٱجْعَلْهُ رَبِّ رَضِيًّا ﴿٦﴾ يَٰزَكَرِيَّآ إِنَّا نُبَشِّرُكَ بِغُلَٰمٍ ٱسْمُهُۥ يَحْيَىٰ لَمْ نَجْعَل لَّهُۥ مِن قَبْلُ سَمِيًّا ﴿٧﴾ قَالَ رَبِّ أَنَّىٰ يَكُونُ لِى غُلَٰمٌ وَكَانَتِ ٱمْرَأَتِى عَاقِرًا وَقَدْ بَلَغْتُ مِنَ ٱلْكِبَرِ عِتِيًّا ﴿٨﴾ قَالَ كَذَٰلِكَ قَالَ رَبُّكَ هُوَ عَلَىَّ هَيِّنٌ وَقَدْ خَلَقْتُكَ مِن قَبْلُ وَلَمْ تَكُ شَيْـًٔا ﴿٩﴾ قَالَ رَبِّ ٱجْعَل لِّىٓ ءَايَةً ۚ قَالَ ءَايَتُكَ أَلَّا تُكَلِّمَ ٱلنَّاسَ ثَلَٰثَ لَيَالٍ سَوِيًّا ﴿١٠﴾ فَخَرَجَ عَلَىٰ قَوْمِهِۦ مِنَ ٱلْمِحْرَابِ فَأَوْحَىٰٓ إِلَيْهِمْ أَن سَبِّحُوا۟ بُكْرَةً وَعَشِيًّا ﴿١١﴾ يَٰيَحْيَىٰ خُذِ ٱلْكِتَٰبَ بِقُوَّةٍ ۖ وَءَاتَيْنَٰهُ ٱلْحُكْمَ صَبِيًّا ﴿١٢﴾ وَحَنَانًا مِّن لَّدُنَّا وَزَكَوٰةً ۖ وَكَانَ تَقِيًّا ﴿١٣﴾ وَبَرًّۢا بِوَٰلِدَيْهِ وَلَمْ يَكُن جَبَّارًا عَصِيًّا ﴿١٤﴾ وَسَلَٰمٌ عَلَيْهِ يَوْمَ وُلِدَ وَيَوْمَ يَمُوتُ وَيَوْمَ يُبْعَثُ حَيًّا ﴿١٥﴾ وَٱذْكُرْ فِى ٱلْكِتَٰبِ مَرْيَمَ إِذِ ٱنتَبَذَتْ مِنْ أَهْلِهَا مَكَانًا شَرْقِيًّا ﴿١٦﴾ فَٱتَّخَذَتْ مِن دُونِهِمْ حِجَابًا فَأَرْسَلْنَآ إِلَيْهَا رُوحَنَا فَتَمَثَّلَ لَهَا بَشَرًا سَوِيًّا ﴿١٧﴾ قَالَتْ إِنِّىٓ أَعُوذُ بِٱلرَّحْمَٰنِ مِنكَ إِن كُنتَ تَقِيًّا ﴿١٨﴾ قَالَ إِنَّمَآ أَنَا۠ رَسُولُ رَبِّكِ لِأَهَبَ لَكِ غُلَٰمًا زَكِيًّا ﴿١٩﴾ قَالَتْ أَنَّىٰ يَكُونُ لِى غُلَٰمٌ وَلَمْ يَمْسَسْنِى بَشَرٌ وَلَمْ أَكُ بَغِيًّا ﴿٢٠﴾ قَالَ كَذَٰلِكِ قَالَ رَبُّكِ هُوَ عَلَىَّ هَيِّنٌ ۖ وَلِنَجْعَلَهُۥٓ ءَايَةً لِّلنَّاسِ وَرَحْمَةً مِّنَّا ۚ وَكَانَ أَمْرًا مَّقْضِيًّا ﴿٢١﴾ ۞ فَحَمَلَتْهُ فَٱنتَبَذَتْ بِهِۦ مَكَانًا قَصِيًّا ﴿٢٢﴾ فَأَجَآءَهَا ٱلْمَخَاضُ إِلَىٰ جِذْعِ ٱلنَّخْلَةِ قَالَتْ يَٰلَيْتَنِى مِتُّ قَبْلَ هَٰذَا وَكُنتُ نَسْيًا مَّنسِيًّا ﴿٢٣﴾ فَنَادَىٰهَا مِن تَحْتِهَآ أَلَّا تَحْزَنِى قَدْ جَعَلَ رَبُّكِ تَحْتَكِ سَرِيًّا ﴿٢٤﴾ وَهُزِّىٓ إِلَيْكِ بِجِذْعِ ٱلنَّخْلَةِ تُسَٰقِطْ عَلَيْكِ رُطَبًا جَنِيًّا ﴿٢٥﴾ فَكُلِى وَٱشْرَبِى وَقَرِّى عَيْنًا ۖ فَإِمَّا تَرَيِنَّ مِنَ ٱلْبَشَرِ أَحَدًا فَقُولِىٓ إِنِّى نَذَرْتُ لِلرَّحْمَٰنِ صَوْمًا فَلَنْ أُكَلِّمَ ٱلْيَوْمَ إِنسِيًّا ﴿٢٦﴾ فَأَتَتْ بِهِۦ قَوْمَهَا تَحْمِلُهُۥ ۖ قَالُوا۟ يَٰمَرْيَمُ لَقَدْ جِئْتِ شَيْـًٔا فَرِيًّا ﴿٢٧﴾ يَٰٓأُخْتَ هَٰرُونَ مَا كَانَ أَبُوكِ ٱمْرَأَ سَوْءٍ وَمَا كَانَتْ أُمُّكِ بَغِيًّا ﴿٢٨﴾ فَأَشَارَتْ إِلَيْهِ ۖ قَالُوا۟ كَيْفَ نُكَلِّمُ مَن كَانَ فِى ٱلْمَهْدِ صَبِيًّا ﴿٢٩﴾ قَالَ إِنِّى عَبْدُ ٱللَّهِ ءَاتَىٰنِىَ ٱلْكِتَٰبَ وَجَعَلَنِى نَبِيًّا ﴿٣٠﴾ وَجَعَلَنِى مُبَارَكًا أَيْنَ مَا كُنتُ وَأَوْصَٰنِى بِٱلصَّلَوٰةِ وَٱلزَّكَوٰةِ مَا دُمْتُ حَيًّا ﴿٣١﴾ وَبَرًّۢا بِوَٰلِدَتِى وَلَمْ يَجْعَلْنِى جَبَّارًا شَقِيًّا ﴿٣٢﴾ وَٱلسَّلَٰمُ عَلَىَّ يَوْمَ وُلِدتُّ وَيَوْمَ أَمُوتُ وَيَوْمَ أُبْعَثُ حَيًّا ﴿٣٣﴾ ذَٰلِكَ عِيسَى ٱبْنُ مَرْيَمَ ۚ قَوْلَ ٱلْحَقِّ ٱلَّذِى فِيهِ يَمْتَرُونَ ﴿٣٤﴾ مَا كَانَ لِلَّهِ أَن يَتَّخِذَ مِن وَلَدٍ ۖ سُبْحَٰنَهُۥٓ ۚ إِذَا قَضَىٰٓ أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُۥ كُن فَيَكُونُ ﴿٣٥﴾ وَإِنَّ ٱللَّهَ رَبِّى وَرَبُّكُمْ فَٱعْبُدُوهُ ۚ هَٰذَا صِرَٰطٌ مُّسْتَقِيمٌ ﴿٣٦﴾ فَٱخْتَلَفَ ٱلْأَحْزَابُ مِنۢ بَيْنِهِمْ ۖ فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ كَفَرُوا۟ مِن

مَشۡهَدِ يَوۡمٍ عَظِيمٍ ﴿٣٧﴾ أَسۡمِعۡ بِهِمۡ وَأَبۡصِرۡ يَوۡمَ يَأۡتُونَنَا لَٰكِنِ ٱلظَّٰلِمُونَ ٱلۡيَوۡمَ فِي ضَلَٰلٖ مُّبِينٖ ﴿٣٨﴾ وَأَنذِرۡهُمۡ يَوۡمَ ٱلۡحَسۡرَةِ إِذۡ قُضِيَ ٱلۡأَمۡرُ وَهُمۡ فِي غَفۡلَةٖ وَهُمۡ لَا يُؤۡمِنُونَ ﴿٣٩﴾ إِنَّا نَحۡنُ نَرِثُ ٱلۡأَرۡضَ وَمَنۡ عَلَيۡهَا وَإِلَيۡنَا يُرۡجَعُونَ ﴿٤٠﴾ ﴾ مريم: ١ ـ ٤٠

لغتونه:

(وهن) ضعف اوكمزورتياته وايي (اشتعل) داورلمبې خپرېدل (عاقرًا) هغه مېرمن چي دبوډا توب له امله اويا له سره اولادنشي راوړلای (عتيا) په بوډاتوب كي سرحدته رسېدلی اووچ والي ته وايي (حنانا) شفقت ، رحمت اومحبت ته وايي اصل يې له (حنين الناقة على ولدها) څخه اخيستل شوی او ويل كېږي (حنانيک) هغه ته چي دمهرباني غوښتنه كوي (انتبذت) ليري اوگوښه شوه (سويا) مستوی الخلقة برابر( المخاض) دزېږېدلودوخت دردونه (سريا) نهراو وياله (النبتی) څكه چي اوبه پكي رواني وي سريان لري (فريا) سترامر اومهمه لويه خبره.

تفسير:

﴿ بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ ﴾ شروع په نامه دالله چي خورامهربان ډېررحم والادی

﴿ كٓهيعٓصٓ ﴾ مقطعات حروف دي چي دقرآنكريم په اعجازدلالت كوي (¹) ﴿ ذِكۡرُ رَحۡمَتِ رَبِّكَ عَبۡدَهُۥ زَكَرِيَّآ ﴾ ذكردمهرباني درب ستادی په خپل بنده زكرياباندي (هغه څوک چي پرتايې كيسه لولو(ای محمده !) ﴿ إِذۡ نَادَىٰ رَبَّهُۥ نِدَآءً خَفِيّٗا ﴾ كله چي غږ(دعا ) يې وكړه خپل رب ته غږ(دعا ) ورو(چي په زوره نه اوربېدل كېده مفسرين كرام وايي چي ورودعاكول اخلاص ته نژدې اوله رياڅخه ليري ده ﴿ قَالَ رَبِّ إِنِّي وَهَنَ ٱلۡعَظۡمُ مِنِّي ﴾ وويل: (زكرياپخپله دعاكي په عجزسره ) ای زمار به ببشكه زه چي يم سست شوي دي تول هډوكي له ماڅخه (اودبوډاتوب په سبب مي توان طاقت بايللی دی ) ﴿ وَٱشۡتَعَلَ ٱلرَّأۡسُ شَيۡبٗا ﴾ (اوشغلې وهي سرزماله جهته دسپين والي) يعني سپين ږيرتوب داسي زماپه سركي خپور شوی لكه چي اورپه خاشاک كي ولگېږي ﴿ وَلَمۡ أَكُنۢ بِدُعَآئِكَ رَبِّ شَقِيّٗا ﴾ (حال داچي هيچېري نه يم پاتي شوی په دعازماله تانه اي زما ربه محروم نااُميده ) يعني ای الله تاخوزه په احسان اوفضل روږدی كړی يم هروخت دي زماسوال منلی همدا دعاهم لكه دپخواپه شان راته ومنه بيضاوي وايي چي دغه دپخوانيودعاگانوپه واسطه توسل دی اوالله پاک هغه په دعاقبلولوعادت كړی اودمنلواُميدېې وركړی وواودكريم ذات عادت خوادوي چي چاته طمع وركړي بيايې نه محروموي (²) ﴿ وَإِنِّي خِفۡتُ ٱلۡمَوَٰلِيَ مِن وَرَآءِي ﴾ (اوببشكه زه وېرېږم له دې خپلوانو(خپلو ) وروسته (له مرگه) زما ) يعني زه له تربوررونوڅخه وېرېږم چي زماله مړيني وروسته به دين ضائع كړي اودعلم اونبوت مېراث به په بنه توگه

(¹) وگوره هغه تفصيل چي دالبقره سورته په پيل كي موليكلی دی.
(²) البيضاوي ٢/ ١۴

خوندي نکړای شي ﴿ وَكَانَتِ ٱمۡرَأَتِي عَاقِرٗا ﴾ او ده ښځه زما شنډه (چي له زوړوالي او یا له لومړۍ ورځي نه ،نه ښېرازه کېږي چي اولاد راوړي ) ﴿ فَهَبۡ لِي مِن لَّدُنكَ وَلِيّٗا ﴾ نو وبښه ماته له خپله طرفه یو متولي (صالح زوی) ﴿ يَرِثُنِي وَيَرِثُ مِنۡ ءَالِ يَعۡقُوبَ ﴾ چي میراث یوسي له ما څخه (دیني امور) او میراث یوسي (دده له اجدادو) آل دیعقوب نه دعلم اونبوت) بیضاوي وایې چي مرادله میراث وړلو څخه علم اوشریعت دی ځکه له انبیاووعلیهم السلام څخه مال په میراث نه دی وړل شوی (۱) ﴿ وَٱجۡعَلۡهُ رَبِّ رَضِيّٗا ﴾ او وګرزوې دی ای زما ربه غوره کړی شوی (ستا په نزد ) امام رازي وایې چي: زکریا علیه السلام دزوی دغوښتلو ترد عادرې ځیزونه وړاندي بیان کړل یو دا چي دهرناتوان اوضعیف دی دویم دا چي الله یې هیڅکله دعانه ده رده کړي اودریم دا چي مقصدله دعا څخه یې ددین منفعت دی او بیا یې دزوی غوښتنه وکړه اوپدې کي ددعالپاره یو بل تاکید دی چي هغه یوازي دالله په قوت باندي تکیه کړي اوله ظاهري اسبابو څخه بېزاره دی (۲) ﴿ يَٰزَكَرِيَّآ إِنَّا نُبَشِّرُكَ بِغُلَٰمٍ ٱسۡمُهُۥ يَحۡيَىٰ ﴾ ای زکریا بېشکه موږ زېری درکووتاته په یوداسي هلک چي نوم یې یحیی دی ) یعني موږتاته دپرښتوپه وسیله زېری درکوولکه چي په آل عمران کي راغلي وو ﴿ فَنَادَتۡهُ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ وَهُوَ قَآئِمٞ يُصَلِّي فِي ٱلۡمِحۡرَابِ أَنَّ ٱللَّهَ يُبَشِّرُكَ بِيَحۡيَىٰ ﴾ آل عمران: ۳۹ ترپایه ﴿ لَمۡ نَجۡعَل لَّهُۥ مِن قَبۡلُ سَمِيّٗا ﴾ نه مودی ګرزولی تر پخوا له ده په دغه نامه (بل همنامه) هودا یوداسي نادر نوم دی چي الله ورباندي اینبی دی اووالدینو ته یې دهغه نومول ندي پرې اینبي مجاهد وایې چي معنایې داده چي دده غوندي یې په فضل او کمال کي بل سیال نشته ﴿ قَالَ رَبِّ أَنَّىٰ يَكُونُ لِي غُلَٰمٞ ﴾ وویل: ( زکریا ) ای ربه زما څرنګه به وي ما لره هلک؟ دغه استفهام دتعجب او خوښي لپاره دی ﴿ وَكَانَتِ ٱمۡرَأَتِي عَاقِرٗا وَقَدۡ بَلَغۡتُ مِنَ ٱلۡكِبَرِ عِتِيّٗا ﴾ (او ښځه زما شنډه ده او په تحقیق زه رسېدلی یم له ډېره زوړوالي دهر ضعف ته) یعني زما ښځه په ځواني کي هم داولادراوړلو نه وه اوس به څنګه اولادراوړي چي بوډۍ ده؟!! او زه هم دعمرووروستي سرحد ته رسېدلی یم. مفسرین کرام وایې چي دده عمرداوخت (۱۲۰ ) یو سل اوشل کاله وواومېرمن یې د(۹۸) کالو وه نو ویې غوښتل چي مطمئن شي او پدې وپوهېږي چي په څه وسیله به الله جل جلاله ده ته اولاد ورکوي ﴿ قَالَ كَذَٰلِكَ قَالَ رَبُّكَ هُوَ عَلَيَّ هَيِّنٞ ﴾ وفرمایل: ( الله کار) هم داسي دی ( زه له دوو بوډاګانو اولادپیداکوم) فرمایلي دي رب ستا چي دا کار پر ما آسان دی ﴿ وَقَدۡ خَلَقۡتُكَ مِن قَبۡلُ وَلَمۡ تَكُ شَيۡـٔٗا ﴾ او په تحقیق ته مي پیداکړی یې پخوا له دې نه او نه وې ته هیڅ ځیز( همداسي به یحیی له تاسي دواړو څخه پیداکړم. مفسرین کرام وایې چي په خلقت کي آسانه او سخت دالله لپاره هېڅ نشته دخلقت وسیله دزاړه. او واړه جلیل او حقیر لپاره همدا یوه

---

(۱) البیضاوي لومړی مرجع

(۲) التفسیر الکبیر ۲۱/ ۱۸۱

وسيله ده چي (كُن فيكون) (آل عمران ٤٧ ) بلكه آسانه ده د خلگو په اعتبار ښېښكه هغه څوک چي له عدم څخه پيدا ينبت كولاى شي نوله دووبوډاگانوڅخه هم په پيدا كولوقادردى ﴿ قَالَ رَبِّ ٱجْعَل لِّيٓ ءَايَةً ﴾ وويل: ( زكرياله ډېري خوشحالي ) اى ربه زماوگرزوه ماته يوه نښنه ( په قرارنيولودولد په رحم دموركي) ﴿ قَالَ ءَايَتُكَ أَلَّا تُكَلِّمَ ٱلنَّاسَ ثَلَٰثَ لَيَالٍ سَوِيًّا ﴾ وفرمايل: ( الله ) چي دانښنه ده چي ته به خبري نشې كولاى له خلگوسره درې شپې ( اوورځي پرله پسې ) پداسي حال كي چي جوړ اوروغ به اوسې هيڅ گونگتيااوبله ناروغي به نلرې. ابن عباس رضى الله عنه وايې چي ژبه يې بې له كومي ناروغي بنده شوه اوابن زيدوايې چي ژبه يې هسي گونگه شوه چي له خلگوسره يې خبري نشواى كولاى خوله دې سره سره تسبيح به يې ويل اودتورات تلاوت به يې كاووترهغوپوري لا انجيل نه وونازل شوى څكه دعيسى عليه السلام له ولادت څخه مخكښي موده وه او كه به يې غوښتل چي له خلگوسره خبري اتري وكړي نه يې شواى كولاى (١) ﴿ فَخَرَجَ عَلَىٰ قَوْمِهِۦ مِنَ ٱلْمِحْرَابِ فَأَوْحَىٰٓ إِلَيْهِمْ أَن سَبِّحُوا۟ بُكْرَةً وَعَشِيًّا ﴾ پس ووت (زكريا ) پرخپل قوم له خپل محراب دحجرې، معبد ) څخه دوى ته يې داسي اشاره وكه چي تسبيح واياست په سبابېگاه كي ; اوله خلگوسره يې خبري په اشاره وې لكه چي په آل عمران كي راغلي: ﴿ قَالَ رَبِّ ٱجْعَل لِّيٓ ءَايَةً قَالَ ءَايَتُكَ أَلَّا تُكَلِّمَ ٱلنَّاسَ ثَلَٰثَةَ أَيَّامٍ إِلَّا رَمْزًا ﴾ (آل عمران ٤١ ) ﴿ يَٰيَحْيَىٰ خُذِ ٱلْكِتَٰبَ بِقُوَّةٍ ﴾ (اى يحيى واخله دغه كتاب (تورات) په قوت (اوجديت اواجتهاد ) سره ) دلته په كلام كي حذف راغلى هغه داچي كله يحيى عليه السلام وزېږېدو بيالوى شودبلوغ مرحلې ته ورسېدونو الله ورته وويل: اى يحيى واخله دغه كتاب په قوت سره ﴿ وَءَاتَيْنَٰهُ ٱلْحُكْمَ صَبِيًّا ﴾ او وركړى وو موږ دغه يحيى ته حكمت (اوفهم فراست) په هلكتوب كي( روايت كېږي چي يوځلي هلكانويحيى عليه السلام ته وويل: راځه چي سره لوبي وكړو ! ) ده ورته وويل: موږ ددې لپاره نه يو پيداشوي چي لوبي وكړو اوچابياويلي چي نبوت الله تعالى په وړكتوب كي وركړى وو خواول قول ډېرڅرگند ښكاري. طبري وايي چي: دحكم معناداچي موږ ده ته دكتاب الله فهم دهلكتوب په وخت كي لاوركړى ووپخواله دې نه چي دسړيتوب مرحلې ته ورسېږي (٢) ﴿ وَحَنَانًا مِّن لَّدُنَّا وَزَكَوٰةً ﴾ او(داموڅكه وكړل چي پرمور اوپلاربې ) رحمت وي زموږ له نزده اوپاكي ( موووركړي وه يحيى ته له گناهونو اوبدوخويونو څخه ﴿ وَكَانَ تَقِيًّا ﴾ او وو يحيى پرهېزگار(چي هيڅكله يې گناه نه وه كړي اونه يې هم چېري دگناه اراده كړي وه ابن عباس رضى الله عنهماوايې: معناداچي پاكيزه وو هيڅ وخت يې گناه نه وه كړي ﴿ وَبَرًّۢا بِوَٰلِدَيْهِ ﴾ اونيكوكار ووپرمور اوپلاربې ﴿ وَلَمْ يَكُن جَبَّارًا عَصِيًّا ﴾ اونه وو سركښه نافرمانه ) ( له ربه خپله ) ﴿ وَسَلَٰمٌ عَلَيْهِ يَوْمَ وُلِدَ وَيَوْمَ

---

(١) الطبري ١٢/ ٥٢

(٢) الطبري ١٢/ ٥٥

﴿يَمُوتُ وَيَوْمَ يُبْعَثُ حَيًّا﴾ اوسلام دي وي پردغه (يحي له جانبه دالله). په هغه ورځ چي پيدا کړی شوی دی او په هغه ورځ چي مري به دی او په هغه ورځ چي پورته کړی شي دی ژوندی (له قبره. ابن عطيه وايې چي: الله تعالى په ټولو هغو ځايونو کي چي انسان خوار او محتاج وي د يحيى عليه السلام سلامتيا او لاس نيوی وکړ(١) ﴿وَٱذۡكُرۡ فِي ٱلۡكِتَٰبِ مَرۡيَمَ﴾ اوياد کړه په کتاب کي (کيسه د) مريمي دغه دوهمه کيسه ده او له لومړنۍ څخه ډېره عجيبه ده څکه چي دغه د پېغلي ښځي د اولاد زاوړلو ده هغه چي مېړه نه لري او د هغې بوډۍ تر اولاد راوړلو دغه ډېره نادره ده څکه هغې خو بوډا خاوند درلود معنا دا چي ای محمده! (صلی الله عليه وسلم) د مريمي عجيبه او غريبه کيسه چي الله په بشپړ قدرت دلالت کوي ياده کړه ﴿إِذِ ٱنتَبَذَتۡ مِنۡ أَهۡلِهَا مَكَانٗا شَرۡقِيّٗا﴾ کله چي په څنګ شوه (لاړه) له خپلي کورنۍ هغه ځای ته چي (د بيت المقدس) شرقي (لوری) وو (د عبادت لپاره) ﴿فَٱتَّخَذَتۡ مِن دُونِهِمۡ حِجَابٗا﴾ پس ونيوله (ولګوله) دې د دوی له طرفه پرده ﴿فَأَرۡسَلۡنَآ إِلَيۡهَا رُوحَنَا فَتَمَثَّلَ لَهَا بَشَرٗا سَوِيّٗا﴾ نو ولېږه مو دې ته روح خپل شکل يې جوړ کړ دې ته د کامل سړي (نوراني زلمي) ابن عباس رضی الله عنهما وايې چي: حضرت جبريل (عليه السلام) د يو ښايسته زلمي په بڼه چي ګارګوتي (مجعد) وېښتان يې درلود ل مستوی الخلقة ځوان وو راغی (٢) مفسرين کرام وايې: څکه دانسان په بڼه او څېره ورته راغی ترڅو يې له خبرو څخه کرکه ونکړي او خبرو ته يې په آرامه (الفت) غوږ ونيسي که چېري د پرښتې په صورت ورته راغلی وای نو به يې څيني نفرت کړی وو او خبري به يې نشوای اورېدلای او د دې په پاک لمني باندي دغه ښه شاهدي ورکوي چي هغې د داسي ښائسته ښکلي بشر څخه په الله پناه وغوښتله او ويې ويل: (٣) ﴿قَالَتۡ إِنِّيٓ أَعُوذُ بِٱلرَّحۡمَٰنِ مِنكَ إِن كُنتَ تَقِيّٗا﴾ (وويل (مريمي دغه زلمي ته) بېشکه زه پناه غواړم په رحمان له تا څخه که يې ته پرهېزګار) يعني کله چي يې وليد و وېرېدله چي ګواکي هغه د دې په هکله ناسمه اراده لري نو يې دغه ويناوکړه او ځواب د شرط محذوف دی يعني که ته وېرېږې له الله نو له ما څخه په ډډه شه او مه مي ځوروه ﴿قَالَ إِنَّمَآ أَنَا۠ رَسُولُ رَبِّكِ لِأَهَبَ لَكِ غُلَٰمٗا زَكِيّٗا﴾ وويل: (جبريل) بېشکه همدا خبره ده چي زه رالېږلی شوی يم د رب ستا د پاره د دې چي وبښم تا ته (په امر د رب ستا) يو هلک صالح (له ګناهونو پاک) يعني کله چي جبريل عليه السلام د دې وېرېدلی حالت وليد دوېري د هيسته کولو لپاره يې ورته وويل: چي زه يو رالېږلي شوي پرښته يم چي الله تا ته يو له ګناهونو پاک فرزند درکړي ﴿قَالَتۡ أَنَّىٰ يَكُونُ لِي غُلَٰمٞ وَلَمۡ يَمۡسَسۡنِي بَشَرٞ وَلَمۡ أَكُ بَغِيّٗا﴾ وويل: (مريمي له ډېره تعجبه چي په څه ډول) څرنګه به پيداشي ماته زوی حال دا چي نه دی رسېدلی ماته هيڅ بشر (مېړه نلرم) او نه و مه زه هيڅېري بدکاره ﴿قَالَ كَذَٰلِكِ قَالَ رَبُّكِ هُوَ عَلَيَّ هَيِّنٞ﴾

---

(١) القرطبی ١١ / ٨٨
(٢) زاد المسير ٥ / ٢١٧
(٣) البحر ٦ / ١٨٠

نووویل جبریل مریمي ته کار) هم داسي دی (لکه چي ته وایې ) فرمایلی دی رب ستادغه (کار) پرمابانديِ آسان دی (دغه بې پلاره زوی درکول په الله باندي سهل اوآسان دی ) ﴿ وَلِنَجْعَلَهُۥٓ ءَايَةً لِّلنَّاسِ وَرَحْمَةً مِّنَّاۚ ﴾اوچي وګرزوومونږ دغه هلک لویه ) علامه دلیل (په عجیبه قدرت زمونږ) لپاره دخلګواورحمت له (طرفه) زمونږ(ددوی لپاره دنبي په رااستولوچي دوی سمي لاري ته رهبري کړي) ﴿وَكَانَ أَمْرًا مَّقْضِيًّا ﴾اودی (وجود دده) یوکارمقرر کړی شوی ( په ازلي علم دالله کي چي هیڅ تغیر اوتبدیل پکي راتلونکي نه دی ﴿ فَحَمَلَتْهُ فَٱنتَبَذَتْ بِهِۦ مَكَانًا قَصِيًّا ﴾پس (مریمه) حامله شوه په دغه (عیسی) سره نوپه څنګ شوه سره له دغه (عیسی) یولیري ځای ته دلته دحضرت جبریل اومریمي خبري اتري پای ته ورسېدي. مفسرین کرام وایې چي: پرښتې یې په ګرېوان کي وپوکل نوهغه حامله شوه اوبیاکوم لیري ځای ته ولاړه ځکه هغه وېرېدله چي ددی خپلوان به دبې پلاره ماشوم په زېږېدلو دې ته پېغور ورکړي ﴿ فَأَجَآءَهَا ٱلْمَخَاضُ إِلَىٰ جِذْعِ ٱلنَّخْلَةِ ﴾پس راوسته (مریمه) درددلنګېدو ببخ تنه دوني دخرماته (ترڅودولادت په وخت کي وربا ندي تکیه وکړي ) ﴿ قَالَتْ يَٰلَيْتَنِى مِتُّ قَبْلَ هَٰذَا وَكُنتُ نَسْيًا مَّنسِيًّا ﴾وویل: ( مریمي) کاشکي چي زه مړه وای ترېخواله دې حاله اووای زه هېره شوي بېخي له زړونوڅخه وتلي یعني زه یوداسي ناڅیزه شي وای چي نه چاپېژاندای اونه یې یادولای. ابن کثیر وایې: چي داپدې وپوهېدله چي ددغه ماشوم په زېږېدلوبه ازمویله کېږي نویې دمرګ هیله وکړه ځکه هغې ته معلومه وه چي خلګ به ددې خبره په رښتیاونه مني وروسته له هغه چي داعابده زاهده وه ولي بدنامه اورسواشوه ؟ نوځکه یې له سختي پرېشاني دغه خبره له خولې ووته(۱) ﴿ فَنَادَىٰهَا مِن تَحْتِهَآ أَلَّا تَحْزَنِى ﴾پس ﴾پس غږ وکړ(پرښتې) دغي (مریمي) ته له لاندي طرفه ددې (خرما ) چي مه خفه کېږه (په دې کار) ﴿ قَدْ جَعَلَ رَبُّكِ تَحْتَكِ سَرِيًّا ﴾په تحقیق ګرزولی دی رب دتالاندي ( له قدمو ) دتالښتی (داوبوچي ستاپه وړاندي بهېږي. ابن عباس رضی الله عنهماوایې چي: جبریل علیه السلام په پښه ځمکه ووهله نودخوږو اوبوچینه راڅرګنده شوه اودلښتي په شکل روانه شوه ﴿ وَهُزِّىٓ إِلَيْكِ بِجِذْعِ ٱلنَّخْلَةِ تُسَٰقِطْ عَلَيْكِ رُطَبًا جَنِيًّا ﴾(اووښنده خپل ځان ته ببخ (دوچي) خرماچي راتوی کاندي پرتاخرما پخې لمدې تازه) مفسرین کرام وایې چي هغې ته یې دوچي خرماد خوځولو امروکړ ددې لپاره چي ووینې یوه بله نښنه وروسته له هغه چي دخوږو اوبوچینه یې ورولیدله چي په لښتي کي یې اوبه رواني شوې ددې به وربا ندي دردونه تسکین شي اودابه ورته معلومه شي چي همدغه الله جل جلاله دې ته کرامت ورکړ ﴿ فَكُلِى وَٱشْرَبِى ﴾پس خوره دا(خرما ) اوڅښه (دااوبه خوږې خوندوري) ﴿ وَقَرِّى عَيْنًاۖ ﴾اوېخي کړه سترګي خپلي (په عیسی اوخوشحاله شه) ﴿ فَإِمَّا تَرَيِنَّ مِنَ ٱلْبَشَرِ أَحَدًا ﴾پس که ولیدتاله خلګوڅخه یو څوک (اودرڅخه یې

---

(۱) مختصرابن کثیر۲/ ۴۴۸

دزېږېدلي ماشوم پوښتنه وکړه ﴿ فَقُولِىٓ إِنِّى نَذَرْتُ لِلرَّحْمَٰنِ صَوْمًا ﴾ نو ووایه بېشکه چي یم نذر کړي مي ده پرځان رحمان ته روژه ﴿ فَلَنْ أُكَلِّمَ ٱلْيَوْمَ إِنسِيًّا ﴾ پس له سره به خبري ونکړم نن ورځ له هیڅ یو انسان سره (الله تعالی ورته امروکړچي خبري دي ونکړي ترڅو له دې څخه یې عیسی علیه السلام کفایت وکړي اودابه څرګنده معجزه وي ﴿ فَأَتَتْ بِهِۦ قَوْمَهَا تَحْمِلُهُۥ ﴾ (پس راغله (مریمه) سره له دغه (عیسی) قوم خپل ته چي هغه (عیسی) یې (په غېږکي ) اخیستی وو ) یعني کله چي هغه له نفاس څخه پاکه شوه نوعیسی علیه السلام یې په لاسونوکي رااخیستی وو ﴿ قَالُوا۟ يَٰمَرْيَمُ لَقَدْ جِئْتِ شَيْـًٔا فَرِيًّا ﴾ نوو ویل دوی (لکه چي یې عیسی ولیدله دې سره) ای مریمي په تحقیق راوړی دی تایوڅیزمخالف له عادته (دېربد)

﴿ يَٰٓأُخْتَ هَٰرُونَ مَا كَانَ أَبُوكِ ٱمْرَأَ سَوْءٍ وَمَا كَانَتْ أُمُّكِ بَغِيًّا ﴾ ای دهارون خوري ستاپلاردبدي سړی نه وواونه دي موربدعمله وه (نوله تاولي داسي کار وشو؟ ته خودداسي کورنۍ څخه وې چي په صلاح اوعبادت مشهوره وه. دهارون خوریې وبلله یعني ای مریمې ته خوپه صلاح اوعبادت کي هارون ته ورته وې قتاده وايي چي: هارون په بني اسرائیلوکي په صلاح سره مشهورسړی وو نودوی هم مریمه دهغه سره مشابه کړه[1] اوداهغه هارون چي د موسی علیه السلام ورور وونه دی څکه ددوی ترمینځ تریوزرلازیات کلونه تېرشوي دي همدارنګه سهیلي وایې چي هارون په بني اسرائیلوکي یوعابدسړی وو نومریمه یې له هغه سره په زیار اواجتهاد کي مشابه وګڼله اودغه هارون هغه دموسی علیهما السلام ورور نه دی څکه ددوی تر مینځ خوراډېره زمانه تېره شوي وه[2] ﴿ فَأَشَارَتْ إِلَيْهِ ۖ قَالُوا۟ كَيْفَ نُكَلِّمُ مَن كَانَ فِى ٱلْمَهْدِ صَبِيًّا ﴾ نو اشاره وکړه مریمي هغه ته (غږیې ورته ونکړ اوپه اشاره یې وپوهول چي له عیسی سره وغږېږئ اوځني وپوښتئ) نوو ویل (دوی ) څرنګه مونږ له هغه چاسره خبري وکړو؟ چي هغه په ځانګوکي وړوکی (ماشوم) دی (چي دمور تی روي) امام رازي وايي چي: عیسی علیه السلام دمورتی رودل اوکله چي یې دغه خبري واورېدې تی یې پرېښود اوپردوی یې مخ راواړاوو. ورسره خبري یې پیل کړې اوبیایې نوري خبري ترهغو (پوري نه کولې څو چي هغه وخت ته ورسېدوچي ماشومان هم هغه وخت خبري کولای شي[3]) ﴿ قَالَ إِنِّى عَبْدُ ٱللَّهِ ءَاتَىٰنِىَ ٱلْكِتَٰبَ وَجَعَلَنِى نَبِيًّا ﴾ (وویل (عیسی) چي بېشکه زه دالله بنده یم راکړی یې دی ماته کتاب اوزه یې نبي ګرزولی یم) یعني عیسی علیه السلام کله چي دوی ته خبري کولې ورته یې وویل: زه دالله بنده یم په خپل قدرت یې یې پلاره پیدا کړی یم عبودیت یې څکه رومبی یادکړچي دهغو کسانو تردید وکړي چي دده دربوبیت دمقام دعوی یې وکړي بل یې وویل چي: الله فیصله کړي ده چي ماته انجیل کتاب راکړي اوپیغمبري مي وګرزوي داچي دماضي په لفظ یې تعبیروفرمایوددې لپاره چي تحقق افاده کړي څکه کوم حکم چي الله پاک په ازل کي فرمایلی دی ارو

---

(1) الطبري ۱۲/ ۷۷
(2) مختصرابن کثیر۲/ ۴۵۰
(3) التفسیرالکبیر۲۱/ ۲۰۸

مرو هغه کېدونکی دی ﴿ وَجَعَلَنِي مُبَارَكًا أَيْنَ مَا كُنتُ ﴾ او زه الله برکتناک گرزولی یم چي پرهرځای کي اوسېږم ﴿ وَأَوْصَنِي بِالصَّلَوٰةِ وَالزَّكَوٰةِ مَا دُمْتُ حَيًّا ﴾ تاکیدي حکم يې فرمایلی دی ماته په لمانځه او زکات سره ترڅوچي زه ژوندی یم ﴿ وَبَرًّا بِوَالِدَتِي ﴾ او (گرزولی يې یم الله) نېکي کونکی له خپلي مور سره ﴿ وَلَمْ يَجْعَلْنِي جَبَّارًا شَقِيًّا ﴾ او نه يې یم گرزولی سرکښ او بدبخته (په هیچاباندي په خپل ژوندکي) ﴿ وَالسَّلَامُ عَلَيَّ يَوْمَ وُلِدتُّ وَيَوْمَ أَمُوتُ وَيَوْمَ أُبْعَثُ حَيًّا ﴾ او سلام دي وي پرماپه هغه ورځ چي (له موره) زېږېدلی شوی یم او هغه ورځ چي مرم او په هغه ورځ چي پورته به کړی شم ژوندی (دا هغه وینا ده چي حضرت عیسی علیه السلام دتي رودونکی ماشوم په حالت کي کړي وه همداسي هغه دبندگی اعلان کوي او دا ځرگندوي چي نه خو پخپله اِله دی او نه هم دالِه زوی او نه ددریودریم لکه چي نصرانیان گمان کوي بلکه هغه بنده دی ژوندی کېږي او مري دنوربشرپه شان يې الله پیدا ایښت فرمایلی دی چي یوازي له موره او بې پلاره زېږېدلی دی څوچي د الله په سترقدرت یوه نښه وي ځکه نو سمدستي الله فرمايي: ﴿ ذَٰلِكَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ قَوْلَ الْحَقِّ الَّذِي فِيهِ يَمْتَرُونَ ﴾ (دغه (موصوف) عیسی د مریمي زوی دی (فرمایلي ده الله) خبره حقه رښتیا هغه چي په دې کي سره خلک جگړې کوي ) یعني دغه دعیسی بن مریم په باب حقه خبره ده نه هغه چي نصاری يې په ابن الله سره موصوف کوي او یا يې یهودیان ابن زنا بولي او دده په شان کي یو له بله جگړې کوي ﴿ مَا كَانَ لِلَّهِ أَن يَتَّخِذَ مِن وَلَدٍ ﴾ نه ښايي الله داچي ونیسي ولد (هیڅوک او نه جائزه ده) ﴿ سُبْحَانَهُ إِذَا قَضَىٰ أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُن فَيَكُونُ ﴾ پاکي ده ده ته (له نیولو دولد) هرکله چي وکړي دی حکم دیوکار پس بېشکه هم دا خبره ده چي وايي هغه ته (موجود) شه پس هغه موجود شي (هیڅ تکلیف او محنت کولو ته اړنه دی نوځرنگه به هغه چي داسي بې پرواوي زوی ته اړتیاولري مفسرین کرام وايي چي: دغه لکه دړومبني لپاره چي دلیل وي او هغه داچي دزوی نیول خو د هغه چاکاروي چي اړتیالري او په هیڅ شي قادرنه وي او څوک چي قادر او غني وي هغه چي یو څیزته ﴿ كُن ﴾ ووايي او هغه سمدستي ﴿ فَيَكُونُ ﴾ شي نو بیا هغه دې ته اړنه دی چي زوی ونیسي او یا مېرمن ولري او کوم مخلوق چي د ﴿ كُن ﴾ په کلمه يې پیداکوي هغه ته بیا زوی نه ویل کېږي بلکه بنده يې وي او پدې کي ددوی لپاره تبکیت او ملزم کول دي ﴿ وَإِنَّ اللَّهَ رَبِّي وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ هَٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ ﴾ او وویل: (عیسی) بېشکه الله زما او ستاسي رب دی پس تاسي دالله عبادت کوئ همدغه صافه برابره لاره ده ) یعني او له هغو خبرو څخه چي عیسی علیه السلام خپل قوم ته په ځانگوکي وکړې یو دا هم ووچي دوی ته يې خبر ورکړ الله ددوی او دده پروردگار (پالونکی) دی او دوی ته يې امر وکړچي یوازي دالله عبادت دي وکړي دا هغه دین دی چي سم صاف برابر او هیڅ کږوالی پکي نشته ﴿ فَاخْتَلَفَ الْأَحْزَابُ مِن بَيْنِهِمْ ﴾ نو بیا خلاف وکړو (اهل کتابو) له مینځ ددغو (خلگو ځیني گمان کوي چي دي دالله زوی او ځیني

بیاوابې چي هغه له زنازېږېدلی دی) معاذ الله﴿ فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ كَفَرُوا۟ مِن مَّشْهَدِ يَوْمٍ عَظِيمٍ ﴾نوهلاکت (خرابي) دی لپاره دهغو کسانو چي کافران شوي دي له حاضرېدودهغې دېري لويي ورځي (دحساب اوجزا) ﴿ أَسْمِعْ بِهِمْ وَأَبْصِرْ يَوْمَ يَأْتُونَنَا ﴾( څه ډېرښه اورېدونکي به وي دوی اوڅه ډېرښه ليدونکي به وي دوی په هغې ورځي کي چي دوی به موږته راشي ﴿ لَٰكِنِ ٱلظَّٰلِمُونَ ٱلْيَوْمَ فِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴾لاکن ظالمان نن ورځ په ښکاره ګمراهي کي دي (ليري اوپه غفلت کي دي له ځرګنده حق څخه) ﴿ وَأَنذِرْهُمْ يَوْمَ ٱلْحَسْرَةِ ﴾اوته دوی وويروه له ورځي دحسرته (چي ګناهکاربه هم حسرت اوارمان کوي چي ولي بې ښه عمل ندی کړی ؟ اومقصربه هم آرمان کوي چي ولي مي زياته نېکي نه ده کړي ﴿ إِذْ قُضِىَ ٱلْأَمْرُ وَهُمْ فِى غَفْلَةٍ وَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴾کله چي کارفيصله کړی شي (څوک جنت ته اوڅوک دوزخ ته لاړشي) حال داچي دوی په دنيوي غفلت کي دي اودوی (په بعث اونشور) ايمان نه راوړي ﴿ إِنَّا نَحْنُ نَرِثُ ٱلْأَرْضَ وَمَنْ عَلَيْهَا ﴾بېشکه موږ وارث کېږو دځمکي اودهغه چاچي پردغه ځمکه دي (له خزانو او بشرڅخه) ﴿ وَإِلَيْنَا يُرْجَعُونَ ﴾اوخاص موږته به دوی راوستل شي (لپاره دحساب اوجزاء).

**بلاغت:**

۱ – دکنايې صنعت چي فرمايې ﴿ وَهَنَ ٱلْعَظْمُ مِنِّى ﴾چي دوجوددناتواني اودقوت دتللواوضعف راتللوڅخه کنايه راغلي.

۲ – استعاره چي فرمايې: ﴿ وَٱشْتَعَلَ ٱلرَّأْسُ شَيْبًا ﴾دسپين ږيرتوب خپراوی يې داور دخپرېدلو سره چې په خس او خاشاک کي بل شي تشبيه کړی اودخپرېدلولپاره يې اشتعال (بليدل )استعاره کړی له هغه څخه يې اشتعل مشتق کړچي دانتشاراوخپراوي په معناده نودې ته تبعيه استعاره ويل کېږي

۳ – دطباق صنعت د﴿ وُلِدَ ... يَمُوتُ ﴾ترمينځ.

۴ – اشتقاقي جناس لکه: ﴿ نَادَىٰ... نِدَآءً ﴾.

۵ – لطيفه کنايه پدې کلام کي چي: ﴿ وَلَمْ يَمْسَسْنِى بَشَرٌ ﴾چي دغه کنايه ده له زوجې معاشرت اوکوروالي څخه

۶ – دتعجب صيغه لکه: ﴿ أَسْمِعْ بِهِمْ وَأَبْصِرْ ﴾.

۷ – سجع چي پدې فواصلوکي لکه: ﴿ سَوِيًّا..بَغِيًّا..صَبِيًّا ...نَبِيًّا ﴾کي راغلي اودغه له بديعي محسناتوڅخه ګڼل کېږي.

تنبيه:

دقيامت په ورځ به آرمانونه ډېرزيات وي آن تردې چي ته به وادايوازي دحسرت ورځ ده بل هيڅ شی پکي نه ځائېږي په صحيح مسلم کي له ابي سعيد خُدري ﷺ څخه روايت راځي چي رسول الله صلی الله

عليه وسلم وفرمايل: كله چي دقيامت په ورځ جنتيان جنت ته اودوزخيان دوزخ ته داخل شي نومرګ ديوګډ(پسه) په شان راوستل شي اودجنت اودوزخ په مينځ کي ودرول شي اوجنتيانوته به وويل شي چي: آياداپيژنئ هغوی به غاړي را اوږدې کړي، وبه ګوري اووبه وايي هودغه مرګ دی اوبيابه دوزخيانوته وويل شي چي: آياداپيژنئ هغوی به هم سرونه راأوچت کړي اووبه ويني بيابه ووايي هو دغه مرګ دی نوبه هغه حلال کړی شي اوداسي به وويل شي: ای جنتيانو ! تل ترتله به په جنت کي ياست اومرګ نورنشته ، ای دوزخيانوتل ترتله به په دوزخ کي ياست نورمرګ نشته اوبيابي داآيت تلاوت کړ: ﴿ وَأَنذِرْهُمْ يَوْمَ الْحَسْرَةِ ﴾ دآيت ترپايه.

***

الله تعالى فرمايي:

﴿ وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّهُ كَانَ صِدِّيقًا نَّبِيًّا (٤١) إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ يَا أَبَتِ لِمَ تَعْبُدُ مَا لَا يَسْمَعُ وَلَا يُبْصِرُ وَلَا يُغْنِي عَنكَ شَيْئًا (٤٢) يَا أَبَتِ إِنِّي قَدْ جَاءَنِي مِنَ الْعِلْمِ مَا لَمْ يَأْتِكَ فَاتَّبِعْنِي أَهْدِكَ صِرَاطًا سَوِيًّا (٤٣) يَا أَبَتِ لَا تَعْبُدِ الشَّيْطَانَ إِنَّ الشَّيْطَانَ كَانَ لِلرَّحْمَٰنِ عَصِيًّا (٤٤) يَا أَبَتِ إِنِّي أَخَافُ أَن يَمَسَّكَ عَذَابٌ مِّنَ الرَّحْمَٰنِ فَتَكُونَ لِلشَّيْطَانِ وَلِيًّا (٤٥) قَالَ أَرَاغِبٌ أَنتَ عَنْ آلِهَتِي يَا إِبْرَاهِيمُ لَئِن لَّمْ تَنتَهِ لَأَرْجُمَنَّكَ وَاهْجُرْنِي مَلِيًّا (٤٦) قَالَ سَلَامٌ عَلَيْكَ سَأَسْتَغْفِرُ لَكَ رَبِّي إِنَّهُ كَانَ بِي حَفِيًّا (٤٧) وَأَعْتَزِلُكُمْ وَمَا تَدْعُونَ مِن دُونِ اللَّهِ وَأَدْعُو رَبِّي عَسَىٰ أَلَّا أَكُونَ بِدُعَاءِ رَبِّي شَقِيًّا (٤٨) فَلَمَّا اعْتَزَلَهُمْ وَمَا يَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ وَهَبْنَا لَهُ إِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ وَكُلًّا جَعَلْنَا نَبِيًّا (٤٩) وَوَهَبْنَا لَهُم مِّن رَّحْمَتِنَا وَجَعَلْنَا لَهُمْ لِسَانَ صِدْقٍ عَلِيًّا (٥٠) وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ مُوسَىٰ إِنَّهُ كَانَ مُخْلَصًا وَكَانَ رَسُولًا نَّبِيًّا (٥١) وَنَادَيْنَاهُ مِن جَانِبِ الطُّورِ الْأَيْمَنِ وَقَرَّبْنَاهُ نَجِيًّا (٥٢) وَوَهَبْنَا لَهُ مِن رَّحْمَتِنَا أَخَاهُ هَارُونَ نَبِيًّا (٥٣) وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ إِسْمَاعِيلَ إِنَّهُ كَانَ صَادِقَ الْوَعْدِ وَكَانَ رَسُولًا نَّبِيًّا (٥٤) وَكَانَ يَأْمُرُ أَهْلَهُ بِالصَّلَاةِ وَالزَّكَاةِ وَكَانَ عِندَ رَبِّهِ مَرْضِيًّا (٥٥) وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ إِدْرِيسَ إِنَّهُ كَانَ صِدِّيقًا نَّبِيًّا (٥٦) وَرَفَعْنَاهُ مَكَانًا عَلِيًّا (٥٧) أُولَٰئِكَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِم مِّنَ النَّبِيِّينَ مِن ذُرِّيَّةِ آدَمَ وَمِمَّنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوحٍ وَمِن ذُرِّيَّةِ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْرَائِيلَ وَمِمَّنْ هَدَيْنَا وَاجْتَبَيْنَا إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُ الرَّحْمَٰنِ خَرُّوا سُجَّدًا وَبُكِيًّا ۩ (٥٨) ۞ فَخَلَفَ مِن بَعْدِهِمْ خَلْفٌ أَضَاعُوا الصَّلَاةَ وَاتَّبَعُوا الشَّهَوَاتِ فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا (٥٩) إِلَّا مَن تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَأُولَٰئِكَ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُونَ شَيْئًا (٦٠) جَنَّاتِ عَدْنٍ الَّتِي وَعَدَ الرَّحْمَٰنُ عِبَادَهُ بِالْغَيْبِ إِنَّهُ كَانَ وَعْدُهُ مَأْتِيًّا (٦١) لَّا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا إِلَّا سَلَامًا وَلَهُمْ رِزْقُهُمْ فِيهَا بُكْرَةً وَعَشِيًّا (٦٢) تِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِي نُورِثُ مِنْ عِبَادِنَا مَن كَانَ تَقِيًّا (٦٣) وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ لَهُ مَا بَيْنَ أَيْدِينَا وَمَا خَلْفَنَا وَمَا بَيْنَ ذَٰلِكَ وَمَا كَانَ رَبُّكَ نَسِيًّا (٦٤) رَّبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا فَاعْبُدْهُ وَاصْطَبِرْ لِعِبَادَتِهِ هَلْ تَعْلَمُ لَهُ سَمِيًّا (٦٥) ﴾ مريم: ٤١ ـ ٦٥

مناسبت او تړاو:

كله چي الله تعالى دحضرت مريمي كيسه ياده كړه اودعيسى عليه السلام په هكله يې دنصرانيانو اختلاف وښود چي هغوى حضرت عيسى بغيرله الله څخه په عبادت كولو غوره كړنو وروسته يې دابراهيم عليه السلام كيسه راوړه هغه چي بتان يې كوندي كړل، ګوډ اومات كړل ترڅوالله خلكوته وښيي چي حضرت ابراهيم عليه السلام څرنګه دالله په توحيد ټينګ ولاړوو او په ګمراهي كي هغه دواړه ډلي سره برابري دي څوک چي دبشرعبادت كوي اويادحجر ، نصرانيانودمسيح عليه السلام عبادت كاوو اودعربو مشركان بيادبتانو عبادت كوي.

لغتونه:

(صِدِّيقًا) دمبالغې صيغه ده اومعنايې ډېرربښتياګوى دى (مليًّا) ډېروخت ويل كېږي: (أمليت لفلان فى الأمر) يعني فلاني ته مي په كاركي زښته ډېروخت وركړ(حفيًّا) په نېكي اولطف كي يكتاته وايي (خَلْفٌ) دلام په سكون سره دهغه چالپاره استعمالېږي چي دخپل سلف له وروسته شرارت پيل كړي اوپه فتح (زبر) سره هغه چاته وايې چي دخپل سلف نه وروسته دخيركارونه كوي داسي وايي: ( جعلك الله خيرخلف لخيرسلف) الله دي نېک خليفه دخپل نېک سلف لپاره وګرزوه (غيًّا) شراوضلال ته وايي دلغت علماء وايي چي هرشردعربو په نزد(غيّ) اوهرخير(رشاد) دى.

دنزول سبب يې:

ابن عباس رضى الله عنهماوايي: رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: اى جبرائيله ولى تردې زيات نه راځې كوم چي اوس راځې؟ نودا آيت نازل شو: ﴿ وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ ﴾.

تفسير:

﴿ وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ إِبْرَاهِيمَ ﴾ اويادكړه (اى محمده) په كتاب (عزيز) كي (كيسه دخليل الرحمن) ابراهيم ﴿ إِنَّهُ كَانَ صِدِّيقًا نَّبِيًّا ﴾ بېشكه دغه (ابراهيم )وو ډېرربښتينى نبي؛ مقصددلته دعربوتنبيه كول دي چي دوى ګمان كوي هغه ته منسوب دي خوبياهم دوى دبتانو عبادت كوي ابراهيم خوله نبوت سره صديقيت هم لاره اودحُنفاووامام ، دتوحيدراوړونكى ووكوم چي خاتم المرسلين هم دغه توحيدته بلنه كوي ﴿ إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ يَا أَبَتِ لِمَ تَعْبُدُ مَا لَا يَسْمَعُ وَلَا يُبْصِرُ وَلَا يُغْنِي عَنكَ شَيْئًا ﴾ كله چي وويل: (ابراهيم) خپل پلارته اى پلاره دڅه لپاره ته دهغه څيزعبادت كوې چي نه ويني ، نه اوري اونه له تاڅخه هيڅ څيزدفع كوي؟ په داسي غږسره بيي ورته ناري كړې چي تلطف پكي نغښتى وو ترڅويې دايمان اوهدايت لوري ته راكاږي ﴿ يَا أَبَتِ إِنِّي قَدْ جَاءَنِي مِنَ الْعِلْمِ مَا لَمْ يَأْتِكَ فَاتَّبِعْنِي أَهْدِكَ صِرَاطًا سَوِيًّا ﴾ اى پلاره زمابېشكه زه چي يم ماته راغلى له علمه هغه قدرچي تاته ندى راغلى نوزمامتابعت وكړه چي وښيم تاته لاره سمه برابره؟ بيايې نصيحت تكراركړ اوډېره پسته ژبه يې وكاروله پلاريې پدې چي دبُتانوعبادت كوي په جهل اوناپوهي تورن نكړبلكه هسي وراندېز يې ورته وكړچي ماته دالله په هكله اودقدسي صفاتوپه هكله داسي معلومات شته چي تاسره نشته نوزمانصيحت واوره اومتابعت مي وكړه چي سمه سيخه دنجات

اوخلاصون لاره دروښيم چي دالله دين دی اوهيڅ كږوالی پكي نشته ﴿ يَٰٓأَبَتِ لَا تَعۡبُدِ ٱلشَّيۡطَٰنَۖ إِنَّ ٱلشَّيۡطَٰنَ كَانَ لِلرَّحۡمَٰنِ عَصِيّٗا ﴾ای زماپلاره دشيطان عبادت مكوه (چي امريې دكفراود بُتانو (عبادت په هكله مني) بېشكه شيطان له رحمان څخه ډېرنافرمانه دی ؛ (هرڅوک چي دشيطان عبادت وكړي نوهغه هم دالله څخه سرغړونكی شي. قرطبي وايې چي: دلته يې له طاعت څخه په عبادت څكه تعبيروفرمايوچي كوم څوک ديوچاخبره دمعصيت په هكله مني نوهغه يې عبادت كوي (١)﴿ يَٰٓأَبَتِ إِنِّيٓ أَخَافُ أَن يَمَسَّكَ عَذَابٞ مِّنَ ٱلرَّحۡمَٰنِ فَتَكُونَ لِلشَّيۡطَٰنِ وَلِيّٗا ﴾ای پلاره زمابېشكه زه چي يم وېرېږم له دې نه چي وبه رسېږي تاته عذاب له رحمان څخه پس شې به ته شيطان ته دوست پدې كي له بدعاقبت څخه تحذيراو وېرونه ده يعني په كفربه ومرې اودردناک عذاب به دركول شي اوله شيطان سره به تل ترتله په اوركي ملګری شې. امام رازي وايې چي په لفظ د﴿ يَٰٓأَبَتِ ﴾كي چي هرځلي خطاب ورته كړي دغه يې له هغه سره دزيات محبت اوبې كچي رغبت له وجهي دی چی نه غواړي پلاريې په عذاب كي اخته شي اوحضرت ابراهيم عليه السلام په خورابښكلي اندازكي ترتيب كړچي لومړی يې دبُتانو دعبادت په بطلان وپوهاوو، وروسته هغه استدلال ته راوبالواوله ړانده تقليدڅخه يې راوګرزاوو اوبيايې ورته يادونه وكړه چي عقلادشيطان طاعت ناروادی اوپه پای كي يې له ادب اونرمي سره جوخت وعيدورته ووايوچي ﴿إِنِّيٓ أَخَافُ ﴾داټول پدې دلالت كوي چي په ژوره توګه يې زړه دپلارپه مصالحوپسي تعلق لرل اودغه دپلاروالي حقوقوته دده پاملرنه وه(٢)﴿ قَالَ أَرَاغِبٌ أَنتَ عَنۡ ءَالِهَتِي يَٰٓإِبۡرَٰهِيمُۖ ﴾وويل: (آزرپلاردابراهيم ) آيامخ ګرزېدونكی يې ته له (عبادته د ) معبودانو زمای ابراهيمه! دغه استفهام اودتعجب معناپكي نغښتي ده چي دبُتانودعبادت له ځنګ كولوڅخه انكارافاده كوي يعني ددغو بُتانودعبادت ترک خودعقل خاوندان نه كوي بيضاوي وايې چي: دابراهيم (عليه السلام) پلارده دنرم اوله لطف نه ډک ارشادپه سختي اوتُندی سره ځواب وركړاوپه نامه يې ورته ناري كړې په هسي ډول يې متقابلايادنكړلكه چي هغه به ورته ويل ﴿ يَٰٓأَبَتِ ﴾په ځواب كي يې ورته ونه ويل چي: ( يابُنَيَّ) همدارنګه خبريې مقدم اوپه انكاري همزه يې پيل (مصدر)كړچي يوازی له مخ ګرزولو څخه انكاردی لكه چي دغه انكار هوښيارسړی ښځي نه كوي اوبيايي داسي تهديدكړچي : ﴿ لَئِن لَّمۡ تَنتَهِ لَأَرۡجُمَنَّكَۖ ﴾كه منع نه شوې ته (زمادخدايانوله عيب اوكنځلو ) نوخامخابه تاپه تيږو وولم ﴿ وَٱهۡجُرۡنِي مَلِيّٗا ﴾اوپرې مي ږده ډېروخت (له مانه لري شه چي ضررمي درته ونه رسېږي . سدي وايې چي: په همداسي ناپوهي سره (آزر) دسمي لاري بلنه ځواب كړه اوپدې ډول ناتراشه ځواب يې دادب اوتهذيب دوينامقابله وكړه پدې ډول دايمان اوكفرترمينځ هروخت ډغري وي همدارنګه دهغه زړه حال وي چي

(١) القرطبي ١١/ ١١١
(٢) تفسيركبير٢١/ ٢٢٢

ايمان پرېولی وي اوهغه زړه چي طغيان لړلی وي ﴿قَالَ سَلَٰمٌ عَلَيْكَ سَأَسْتَغْفِرُ لَكَ رَبِّيٓ﴾ وويل: (ابراهيم) سلام (دي وي زماله خوا زه به ځور ونه رسوم ) تاته ژربه تاته له خپله ربه مغفرت وغواړم (چي تاته هدايت وکړي اوګناهونه دروبښي ﴿إِنَّهُۥ كَانَ بِي حَفِيًّا﴾ بېشکه چي الله پرما ډېر مهربان دی (ماته خورازياته پاملرنه کوي ) ﴿وَأَعْتَزِلُكُمْ وَمَا تَدْعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ﴾ اوپه څنګ به شم له تاسي اوله هغه څه چي تاسي عبادت کوي (اوستاسوله هيوادنه به لاړشم) ﴿وَأَدْعُواْ رَبِّي عَسَىٰٓ أَلَّآ أَكُونَ بِدُعَآءِ رَبِّي شَقِيًّا﴾ اوعبادت به کوم (يوازي) درب خپل اُميدلرم ددې چي زه نشم په عبادت درب خپل کي بدبخته ، اوپدې کي ددوی دشقاوت لوري ته دبتانوپه عبادت کولوکي تعريض دی اوهمداډول ابراهيم خپل پلار اوتبرد بُتانوعبادت ته پرې ښوداوپخپله يې ورڅخه هجرت وکړاوالله جل جلاله هغه يوازي نه پرېښود بلکه ذوذات اونسل يې ورعطاکړاوغوره معاوضې يې ورکړې ﴿فَلَمَّا ٱعْتَزَلَهُمْ وَمَا يَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ وَهَبْنَا لَهُۥٓ إِسْحَٰقَ وَيَعْقُوبَ﴾ (کله چي په څنګ شو(ابراهيم) له دوی نه په هجرت سره اوله هغه څيزه (چي دوی يې ) پرته له الله عبادت کاوو نووبښل موږ ده ته (ځوی ) اسحاق او(لمسی ) يعقوب ) يعني کله چي ابراهيم عليه السلام دشام هيواد ته هجرت وکړاوله پلاره اوقوم څخه په څنګ شونوالله جل جلاله تردې ښه اوغوره ملګري ورکړل ترڅويې دپردېسي اوغُربت له ځورولوڅخه همدغه پاکيزه اولادونه چي اسحاق اودهغه زوی يعقوب دی وژغوري دوی دانبياووعليهم السلام دوې ونې (شجرې) وې چي له نسله يې دبني اسرائيلوانبياء راغلي دي. ابن کثيروايي: معنايې داده چي له ذوذاته دده څخه انبياء زېږېدلي اودده په ژوندېې د هغوی په نبوت سترګي يخي شوي دي څکه فرمايې: ﴿وَكُلًّا جَعَلْنَا نَبِيًّا﴾ اوهريو( له دوی دواړو ) موږنبي ګرزولی وو ﴿وَوَهَبْنَا لَهُم مِّن رَّحْمَتِنَا﴾ او ببښلی وو موږ دوی (ټولو ) ته له رحمته خپله (ټول دنيوي اواُخروي خيراو ښېګڼه، مال اولاد ، علم او عمل) ﴿وَجَعَلْنَا لَهُمْ لِسَانَ صِدْقٍ عَلِيًّا﴾ (اوګرزولي وه موږدوی ته ژبه دصدق ډېره پورته مشهوره) يعني ددوی لپاره موپه خلګوکي دښېکي يادګرزولی چي دټولو اديانواوملتونوخلګ يې ثناوايې څکه هغوی ډېر ښه ښايسته خويونه درلودل همداسبب دی چي ترقيامته پوري به په ابراهيم اوآل دده باندي درود وايه شي. طبري وايې: معناداچي دوی ته موږ که ثنا اوذکرجميل وربښلی دی[1] ﴿وَٱذْكُرْ فِي ٱلْكِتَٰبِ مُوسَىٰٓ﴾ اويادکړه (ای محمده خپل قوم ته په قرآن کي (قصه) دموسی ﴿إِنَّهُۥ كَانَ مُخْلَصًا وَكَانَ رَسُولًا نَّبِيًّا﴾ (بېشکه چي دی ووخالص کړی شوی (دالله له طرفه) او وودی رسول نبي) يعني الله هغه دځان لپاره چاڼ کړی وو اودګردوخلګوله مينځه يې دکلام لپاره غوره کړی ووله سترو پيغمبرانو اوله اوچتوانبياووڅخه وو لوی الله ده ته دوه صفتونه يوځای ورکړي وو اوڅرنګه چي د ﴿كَانَ﴾ لفظ يې مکررراوړی ترڅوددغه عظيم

---

[1] الطبري ١٢/ ٩٣

الشان نبي دقدر څرګندونه وکړي ﴿ وَنَٰدَيۡنَٰهُ مِن جَانِبِ ٱلطُّورِ ٱلۡأَيۡمَنِ ﴾ اوندا کړي وه موږ دغه (موسى) ته دله جانبه د(غره) طورچي (دموسى) ښي طرف ته وو(کله چي مو ور سره بلاواسطې خبري کولې) ﴿ وَقَرَّبۡنَٰهُ نَجِيّٗا ﴾ او رانژدې کړی وو موږ دی حال داچي له موږسره يې درازخبري کولې ؛ ابن عباس رضى الله عنه وايې چي موسى(عليه السلام) له ملکوت څخه دومره نږدې شوچي پردې پورته شوې آن تردې چي دغيبي اقلاموغږونه يې هم اورېدل(١) زمخشري وايې چي : له هغه چاسره يې تشبيه کړچي کوم غښتلی خلک يې ځان ته ورنژدې کړي چي ورسره درازخبري وکړي ځکه يې دپرښتې له واسطې پرته ورسره خبري وکړې ﴿ وَوَهَبۡنَا لَهُۥ مِن رَّحۡمَتِنَآ أَخَاهُ هَٰرُونَ نَبِيّٗا ﴾ اوبښلی وو موږ دغه (موسى) ته له خپله رحمته ورور دده هارون حال داچي نبي وو ، دده (موسى) دعاومنلې وه کله چي ويل يې : ﴿ وَٱجۡعَل لِّي وَزِيرٗا مِّنۡ أَهۡلِي ٢٩ هَٰرُونَ أَخِي ٣٠ ﴾ طه: ٢٩ - ٣٠ دده دملاتړلپاره مو ورسره مرستندوی اومټ کړزولی وو ﴿ وَٱذۡكُرۡ فِي ٱلۡكِتَٰبِ إِسۡمَٰعِيلَ ﴾ اويادکړه (ای محمده!) په قرآن کي (خپل جد) اسماعيل (دامت لپاره چي هغه دټولوعربوپلاردی ) ﴿ إِنَّهُۥ كَانَ صَادِقَ ٱلۡوَعۡدِ وَكَانَ رَسُولٗا نَّبِيّٗا ﴾ ببشکه چي دی وو رښتينی په وعده کي اورسول اونبي وو ) يعني کله چي به يې وعده وکړه اروموبه يې وربانديي وفاکوله . مفسرين کرام وايې چي دوعدې په رښتنولي يې وستايوکه څه هم دغه په نوروانبياوو کي هم وه دغه يې دتشريف اوتکريم له مخې توصيف دی بل داچي ده دوعدې ترسره کولوپه لاره کي دومره زيات تکاليف ګالل چي نورو نه وګاللي همدغه دده دصبرژمنه اووعده وه چي ځان يې دذبح کولولپاره تسليم کړځکه الله وربانديي ثناوويله ﴿ وَكَانَ رَسُولٗا نَّبِيّٗا ﴾ الله ده لره رسالت اونبوت يوځای ورکړي وو. ابن کثيروايې چي: په دې آيت شريف کي داسماعيل عليه السلام بزرګي په اسحاق عليه السلام چي ورور يې ده څرګندېږي ځکه هغه يوازي په نبوت سره ستايل شوی دی اوبل داچي د اسماعيل (عليه السلام) له نسله خاتم الانبياء محمدمصطفى صلى الله عليه وسلم راغلى دی ﴿ وَكَانَ يَأۡمُرُ أَهۡلَهُۥ بِٱلصَّلَوٰةِ وَٱلزَّكَوٰةِ ﴾ او وودی چي حکم به يې کاوواهل خپل ته په لمانځه (چي ددين ستني ده) اوپه زکات سره (چي دټولني نېکمرغي وربانديي تأمينېږي) ﴿ وَكَانَ عِندَ رَبِّهِۦ مَرۡضِيّٗا ﴾ او وودی په نژد درب خپل غوره کړی شوی. امام رازي وايې چي دغه دثناوروستنی پوړی ده ځکه څوک چي دالله په نزدپسندېده وي نوهغه په ټولو طاعاتوکي په لوړو درجاتوبريالی دی(٢) ﴿ وَٱذۡكُرۡ فِي ٱلۡكِتَٰبِ إِدۡرِيسَۚ إِنَّهُۥ كَانَ صِدِّيقٗا نَّبِيّٗا ﴾ او يادکړه (ای محمده خپل اُمت ته ) په قرآن کي (کيسه) دادريس بېشکه چي دی وو ډېر رښتونی نبي ( په ټولو احوالوکي. مفسرين کرام وايې چي : ادريس (عليه السلام) دنوح عليه السلام نيکه اوله آدم عليه السلام نه وروسته لومړنی پيغمبردی هغه لومړنی تن ووچي په قلم يې خط وليکل اوګنډلي جامې يې واغوستې ترده له مخه کسانوبه

(١) البحر ٦/ ١٩٩

(٢) الفخرالزازي ٢١ / ٢٣٢

پوستوکي اغوستل الله جل جلاله په ده باندي دېرش صحيفې رانازلي کړي دي﴿ وَرَفَعْنَٰهُ مَكَانًا عَلِيًّا ﴾اومونږ ده لره پورته کړی دی (یاداوقدرده ده ) دېراوچت ځای (نبوت ) ته (اودالله قرب ته ) ﴿ أُولَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ أَنْعَمَ ٱللَّهُ عَلَيْهِم مِّنَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ ﴾دغه (مخکښي مذکورانبياء چي لس تنه دي لومړی يې زکريا او وروستی يې ادريس دی) هغه کسان دي چي انعام کړی دی الله پردوی له انبياوو څخه ﴿ مِن ذُرِّيَّةِ ءَادَمَ وَمِمَّنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوحٍ ﴾له اولادې دآدم (لکه ادريس) اوله اولادې دهغوکسانوچي بارکړي وو مونږله نوح سره په بېړۍ کي (لکه ابراهيم چي دسام بن نوح زوی دی)﴿ وَمِن ذُرِّيَّةِ إِبْرَٰهِيمَ ﴾اوله اولادې دابراهيم (لکه اسماعيل، اسحاق او يعقوب)عليهم السلام﴿ وَإِسْرَٰٓءِيلَ ﴾اوله اولاده داسرائيل (يعقوب) لکه موسی، هارون، زکريا، يحيي اوعيسی عليهم السلام ﴿ وَمِمَّنْ هَدَيْنَا وَٱجْتَبَيْنَآ ﴾اوله هغه ځانه چي مونږ ورته لیار ښودلي وه (دايمان) اوغوره کړی مووولپاره دنبوت اووحی ﴿ إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ ءَايَٰتُ ٱلرَّحْمَٰنِ خَرُّوا۟ سُجَّدًا وَبُكِيًّا ﴾(هرکله چي پردوی به ولوستل شول آيتونه درحمان نولويدل به (په ځمکه) سجده کونکي او ژړېدونکي) يعني کله چي به يې دالله کلام واورېدونو به دالله له وېري په سجده پرېوتل اوژړل به يې ځکه دوی دېره لوړه مرتبه لرله الله ته خورا نژدې وو. قرطبي وايې چي په آيت کي داافاده شته چي دالله آيتونه په ژړونوکي اغيزه کوي ﴿ فَخَلَفَ مِنۢ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ أَضَاعُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَٱتَّبَعُوا۟ ٱلشَّهَوَٰتِ ﴾پس پيداشول له دوی نه ( داسي بد ) خليفه ګان چي دوی ضائع کړلمونځ اومتابعت يې وکړدشهواتو(نفسي خواهشاتو ) ﴿ فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا ﴾پس ژربه يوځای شي دوی له بدعاقبت خپل سره ؛ ابن عباس رضی الله عنه وايې چي (غيّ)په دوزخ کي يوه کنده ده اودجهنم ټولي کندي ددغي له اوره څخه پناه غواړي ﴿ إِلَّا مَن تَابَ وَءَامَنَ وَعَمِلَ صَٰلِحًا ﴾مګرهغه چي چاتوبه وايستله اوايمان يې راووړ اونېک عمل يې وکړ﴿ فَأُولَٰٓئِكَ يَدْخُلُونَ ٱلْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُونَ شَيْـًٔا ﴾پس دغه کسان به په جنت کي ننوزي اوپردوی به هيڅ قدرظلم ونکړی شي (چي داعمالوجزايې ورنکړی شي)﴿ جَنَّٰتِ عَدْنٍ ٱلَّتِى وَعَدَ ٱلرَّحْمَٰنُ عِبَادَهُۥ بِٱلْغَيْبِ ﴾جنتونه دتل اوسېدلو هغوته چي رحمن يې وعده کړي ده له خپلو بندګانو سره په غيب باندي (چي داجنتونه يې ندي ليدلي ) يعني داهغه دتل اوسېدلو جنتونه دي چي دوی ورباندي په غيبوايمان راوړی ليدلی يې نه دی خودالله په وعده يې باوردی ﴿ إِنَّهُۥ كَانَ وَعْدُهُۥ مَأْتِيًّا ﴾ببشکه شان دادی چي ده وعده دده (چي جنت دی) خامخا راځي به (خلاف په کي نشته) ﴿ لَّا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا إِلَّا سَلَٰمًا ﴾نه به اوري دغه (جنتيان) په دغه (جنت )کي چټي خبره مګر (اوري به) سلام (دپرښتوچي پردوی به يې د تعظيم اواحترام لپاره اچوي دلته استثناء منقطع ده )﴿ وَلَهُمْ رِزْقُهُمْ فِيهَا بُكْرَةً وَعَشِيًّا ﴾اوده دوی ته روزي ددوی په دغه (جنت) کي سباا و بېګاه ( له خوراکونو اوڅښاکونو څخه چي

هيڅ تکليف اوربړ به نه ګالي اونه به يې روزي انقطاع مومي ﴿ تِلْكَ ٱلْجَنَّةُ ٱلَّتِى نُورِثُ مِنْ عِبَادِنَا مَن كَانَ تَقِيًّا ﴾دغه (مذکور) هغه جنت دی چي په ميراث ورکوو موږله خپلو بندګانو هغه چاته چي پرهېزګاروي ﴿ وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ ﴾(اووويل (جبريل) نه نازلېږو (موږ پرښتې) مګرستادرب په حکم) داهغه خبره ده چي حضرت جبريل (عليه السلام) رسول الله صلى الله عليه وسلم ته هغه وخت وکړه چي څه وخت نه وو راغلی اومعناداچي موږ دنياته پرته دالله له حکم اواذن څخه نه راځو ﴿ لَهُۥ مَا بَيْنَ أَيْدِينَا وَمَا خَلْفَنَا وَمَا بَيْنَ ذَٰلِكَ ﴾خاص الله ته دی (علم د ) هرهغه څيزچي زموږ په مخکي دی ( له دنيانه ) اوهر هغه څيزچي له موږنه وروسته دی (لکه دآخرت ) اوهرهغه څيزچي په مينځ ددغه (ماضي او مستقبل) کي دی ﴿ وَمَا كَانَ رَبُّكَ نَسِيًّا ﴾ اونه دی رب ستاهېرونکی (له اعمالود بندګانو ) ﴿ رَّبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا فَٱعْبُدْهُ ﴾الله رب د آسمانونو اوځمکي دی اودهغوشيانودی چي ددوی په مينځ کي دي نودده عبادت کوه (يوازي) ﴿ وَٱصْطَبِرْ لِعِبَٰدَتِهِۦ ﴾اوصبرکوه په عبادت ددغه الله (کي په تکليفونوباندي ) ﴿ هَلْ تَعْلَمُ لَهُۥ سَمِيًّا ﴾آياته پېژنې ده ته کوم همنامی (ساری اوسيال) ؟ !.

### بلاغت:

پدې آيتونو کي چي دبلاغت ،بديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډون يې دادی:

١ – لطيفه کنايه لکه چي فرمايې: ﴿ وَجَعَلْنَا لَهُمْ لِسَانَ صِدْقٍ عَلِيًّا ﴾له جميل ذکراونېکي ثناڅخه يې په رښتوني ژبه سره تعبير وفرمايل ځکه ثناخوپه ژبه وي اودا داسي دی لکه چي له انعام څخه په لاس تعبيرکول کېږي.

٢ – استعاره چي فرمايې : ﴿ وَرَفَعْنَٰهُ مَكَانًا عَلِيًّا ﴾ستر مکانت اومرتبه يې له لوړمقام سره مشابه کړه اوداستعارې په ډول يې ښکاره کړ.

٣ – دمبالغې صنعت چي په ﴿ صِدِّيقًا نَّبِيًّا ﴾کي راغلی دی.

۴ – په بعيدسره اشاره کول چي دمرتبې لوړوالی افاده کړي لکه چي فرمايې : ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ أَنْعَمَ ٱللَّهُ عَلَيْهِم ﴾دلته چي کومه دليري والي معناپه دې کلام کي نغښتې هغه ددوی د فضيلت په هکله ددوی ليري والی ښيي.

۵ – کله چي الله تعالى فرمايې : ﴿ فَخَلَفَ مِنۢ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ ﴾دلته ناقص جناس اودشکل اوحرکاتوپه تغيير سره موندل کېږي.

٦ – دطباق صنعت لکه چي ﴿ لَهُۥ مَا بَيْنَ أَيْدِينَا وَمَا خَلْفَنَا ﴾اود ﴿ بُكْرَةً وَعَشِيًّا ﴾ترمينځ راغلی دی.

٧- ښايسته سجع لکه په : ﴿ عَلِيًّا ..... حَفِيًّا ..... نَبِيًّا ﴾ کي راغلي ده.

**نکته او فائده:**

دابراهيم عليه السلام په دې وينا کي چي (أبت) تلطف او استدعاء ده دلته (تا) دتکلم له ياءُ څخه عوض راغلي چي اصل (ياأبى) وو څکه نو له ياسره يو ځاى نشي راتلاى.

**تنبيه:**

امام سيوطي په تحبيرکي راوړي چي : ابراهيم عليه السلام يوسل او پنځه اوياکاله ژوندوکړ دده او آدم عليه السلام ترمينځ دوزره کاله او دده او نوح عليه السلام ترمينځ يوزرکاله وو او له دوى څخه دانبياوو ، ونه (شجره) غزېدلي ده.

***

الله تعالى فرمايي:

﴿ وَيَقُولُ ٱلْإِنسَٰنُ أَءِذَا مَا مِتُّ لَسَوْفَ أُخْرَجُ حَيًّا ﴿٦٦﴾ أَوَلَا يَذْكُرُ ٱلْإِنسَٰنُ أَنَّا خَلَقْنَٰهُ مِن قَبْلُ وَلَمْ يَكُ شَيْـًٔا ﴿٦٧﴾ فَوَرَبِّكَ لَنَحْشُرَنَّهُمْ وَٱلشَّيَٰطِينَ ثُمَّ لَنُحْضِرَنَّهُمْ حَوْلَ جَهَنَّمَ جِثِيًّا ﴿٦٨﴾ ثُمَّ لَنَنزِعَنَّ مِن كُلِّ شِيعَةٍ أَيُّهُمْ أَشَدُّ عَلَى ٱلرَّحْمَٰنِ عِتِيًّا ﴿٦٩﴾ ثُمَّ لَنَحْنُ أَعْلَمُ بِٱلَّذِينَ هُمْ أَوْلَىٰ بِهَا صِلِيًّا ﴿٧٠﴾ وَإِن مِّنكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا كَانَ عَلَىٰ رَبِّكَ حَتْمًا مَّقْضِيًّا ﴿٧١﴾ ثُمَّ نُنَجِّى ٱلَّذِينَ ٱتَّقَوا وَّنَذَرُ ٱلظَّٰلِمِينَ فِيهَا جِثِيًّا ﴿٧٢﴾ وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ ءَايَٰتُنَا بَيِّنَٰتٍ قَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا لِلَّذِينَ ءَامَنُوٓا أَىُّ ٱلْفَرِيقَيْنِ خَيْرٌ مَّقَامًا وَأَحْسَنُ نَدِيًّا ﴿٧٣﴾ وَكَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّن قَرْنٍ هُمْ أَحْسَنُ أَثَٰثًا وَرِءْيًا ﴿٧٤﴾ قُلْ مَن كَانَ فِى ٱلضَّلَٰلَةِ فَلْيَمْدُدْ لَهُ ٱلرَّحْمَٰنُ مَدًّا حَتَّىٰٓ إِذَا رَأَوْا مَا يُوعَدُونَ إِمَّا ٱلْعَذَابَ وَإِمَّا ٱلسَّاعَةَ فَسَيَعْلَمُونَ مَنْ هُوَ شَرٌّ مَّكَانًا وَأَضْعَفُ جُندًا ﴿٧٥﴾ وَيَزِيدُ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ٱهْتَدَوْا هُدًى وَٱلْبَٰقِيَٰتُ ٱلصَّٰلِحَٰتُ خَيْرٌ عِندَ رَبِّكَ ثَوَابًا وَخَيْرٌ مَّرَدًّا ﴿٧٦﴾ أَفَرَءَيْتَ ٱلَّذِى كَفَرَ بِـَٔايَٰتِنَا وَقَالَ لَأُوتَيَنَّ مَالًا وَوَلَدًا ﴿٧٧﴾ أَطَّلَعَ ٱلْغَيْبَ أَمِ ٱتَّخَذَ عِندَ ٱلرَّحْمَٰنِ عَهْدًا ﴿٧٨﴾ كَلَّا سَنَكْتُبُ مَا يَقُولُ وَنَمُدُّ لَهُ مِنَ ٱلْعَذَابِ مَدًّا ﴿٧٩﴾ وَنَرِثُهُ مَا يَقُولُ وَيَأْتِينَا فَرْدًا ﴿٨٠﴾ وَٱتَّخَذُوا مِن دُونِ ٱللَّهِ ءَالِهَةً لِّيَكُونُوا لَهُمْ عِزًّا ﴿٨١﴾ كَلَّا سَيَكْفُرُونَ بِعِبَادَتِهِمْ وَيَكُونُونَ عَلَيْهِمْ ضِدًّا ﴿٨٢﴾ أَلَمْ تَرَ أَنَّآ أَرْسَلْنَا ٱلشَّيَٰطِينَ عَلَى ٱلْكَٰفِرِينَ تَؤُزُّهُمْ أَزًّا ﴿٨٣﴾ فَلَا تَعْجَلْ عَلَيْهِمْ إِنَّمَا نَعُدُّ لَهُمْ عَدًّا ﴿٨٤﴾ يَوْمَ نَحْشُرُ ٱلْمُتَّقِينَ إِلَى ٱلرَّحْمَٰنِ وَفْدًا ﴿٨٥﴾ وَنَسُوقُ ٱلْمُجْرِمِينَ إِلَىٰ جَهَنَّمَ وِرْدًا ﴿٨٦﴾ لَّا يَمْلِكُونَ ٱلشَّفَٰعَةَ إِلَّا مَنِ ٱتَّخَذَ عِندَ ٱلرَّحْمَٰنِ عَهْدًا ﴿٨٧﴾ وَقَالُوا ٱتَّخَذَ ٱلرَّحْمَٰنُ وَلَدًا ﴿٨٨﴾ لَّقَدْ جِئْتُمْ شَيْـًٔا إِدًّا ﴿٨٩﴾ تَكَادُ ٱلسَّمَٰوَٰتُ يَتَفَطَّرْنَ مِنْهُ وَتَنشَقُّ ٱلْأَرْضُ وَتَخِرُّ ٱلْجِبَالُ هَدًّا ﴿٩٠﴾ أَن دَعَوْا لِلرَّحْمَٰنِ وَلَدًا ﴿٩١﴾ وَمَا يَنۢبَغِى لِلرَّحْمَٰنِ أَن يَتَّخِذَ وَلَدًا ﴿٩٢﴾ إِن كُلُّ مَن فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ إِلَّآ ءَاتِى ٱلرَّحْمَٰنِ عَبْدًا ﴿٩٣﴾ لَّقَدْ أَحْصَىٰهُمْ وَعَدَّهُمْ عَدًّا ﴿٩٤﴾ وَكُلُّهُمْ ءَاتِيهِ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ فَرْدًا ﴿٩٥﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا وَعَمِلُوا

ٱلصَّٰلِحَٰتِ سَيَجْعَلُ لَهُمُ ٱلرَّحْمَٰنُ وُدًّا ﴿٩٦﴾ فَإِنَّمَا يَسَّرْنَٰهُ بِلِسَانِكَ لِتُبَشِّرَ بِهِ ٱلْمُتَّقِينَ وَتُنذِرَ بِهِۦ قَوْمًا لُّدًّا ﴿٩٧﴾ وَكَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّن قَرْنٍ هَلْ تُحِسُّ مِنْهُم مِّنْ أَحَدٍ أَوْ تَسْمَعُ لَهُمْ رِكْزًۢا ﴿٩٨﴾ ﴾مریم: ۹۶ – ۹۸

## مناسبت اوتړاو:

کله چي الله جل جلاله دځينو انبياوو عليهم السلام کيسې دپنداوعبرت لپاره يادي کړې اوبنسټيز مقصدورڅخه پدې سورت کي دالله جل جلاله دقدرت ښرګندونه اوداچي احياء اوفناد الله په واک کي ده اودقيامت ورځ اروګرو راتلونکي ده نودلته الله تعالى دځينومکذبينوشکونه اوشبهې راوړي چي دوى دبعث اونشورپه هکله شکمن ووخوالله ددوى دغه ترديد په ښرګندو دلائلو اوکوټلي برهانونوسره ردوي اوپه پاى کي سورت دنېکمرغه اوبدمرغه خلګوعاقبت اوبرخه ليک بيانوي.

## لغتونه:

(جثيا) په ځنګنونو ناست ته وايې اودادهغه وېرېدونکي ناسته ده چي له سخت هول اوهيبت څخه خوار، ذليل اوترهېدلى ناست وي (عتيا) سرغړوني اوله حق څخه تمردته وايې (لدي) نادي اودقوم داجتماع اومشورې ځاى ته ويل کېږي. جوهري وايې چي (ندى) مجلس اودخبروځاى ته وايه شي کله چي خلک ورڅخه تيت اوپرک شي بيا(نادي) او(ندي) نه بلل کېږي ([1]) (أثاثا) دکورسامان (رئيا) ښکلي منظر(تؤزهم)( أز) تېرايستلواوپارولوته وايې دلغت پوهان وايې چي: أز، هز، اواستفزازدرې سره نژدې اومطلب يې په خپل ټول توان سره راپارول اوتهيج دى څکه نوډيلم خوځښت اوايشېدلوته (أزيز المرجل) وايې (وفدا) دوافدجمع اوهغه مېلمانه ته چي له عزت اومکرمت سره راځي وايې (وردا) پلي، تږي امام رازي وايې چي: (ورد) تږي ته وايې څکه څوک چي اوبوته راځي هغه تږى وي ([2]) (إدًّا) سخت بد جوهري وايې چي (اد) ځوراستراومهم له فضاعت څخه ډک امراوچاري ته وايې (دکزا) کرار اوآرام ته ويل کېږي.

## دنزول سبب يې:

خباب بن ارت رضى الله عنه وايې چي زه پښ (آهنګر) وم زماپه عاص بن وائل پورباندي ووده‌غه دغوښتلولپاره ورته راغلم راته ويل يې زمادي په الله سوګندوي که به يې درکړم ترڅوچي په محمد (صلى الله عليه وسلم) باندي کافرشوى نه يې ماورته وويل: زمادي په الله سوګندوي که به وړباندي کافرشم چي ته زماپه وړاندي مړ شې اوبياراژوندى شې (اوداخومحال دى) هغه راته وويل: که چېري زه مړشوم اوبيا راپاځېدلم اوماهمدغه مهال مال اودولت درلودبيابه يې درکړم نو الله جل جلاله دآيتونه نازل کړل ﴿أَفَرَءَيْتَ ٱلَّذِى كَفَرَ بِـَٔايَٰتِنَا وَقَالَ لَأُوتَيَنَّ مَالًا وَوَلَدًا﴾([3]).

---

([1]) الصحاح للجوهري
([2]) التفسير الکبير ۲۱ / ۲۵۲
([3]) بخاري اومسلم اسباب النزول وګورئ ص: ۱۷۳

تفسير:

﴿ وَيَقُولُ ٱلْإِنسَٰنُ أَءِذَا مَا مِتُّ لَسَوْفَ أُخْرَجُ حَيًّا ﴾ اووايي انسان (هغه كافرچي له بعثه منكروي) آيا كله چي زه مړشم نوخامخا ژربه راوايستلى شم (له ځمكي) ژوندى ؟ دغه داستبعاد اوانكارپه توګه وايي چي آياكله چي زه خاوري ايرې شم بيابه له قبره ژوندى راپاځم؟ ابن كثيروايي چي هغه تعجب كوي اوله مرګه وروسته راژوندى كېدل ليري اومستبعد بولي([1]) د(لسوف) په كلمه كي لام دانكارد مبالغې لپاره راغلى دى اوداهغه انكاردى چي منشاء يې دانسان له غفلت څخه ده هغه غفلت چي له لومړني پيدا ښت څخه يې لري چي څرنګه وو اوڅوك وو؟ اوكه په يادېې ولري نوبيابه وپوهېږي چي بيرته راپاڅېدل ترلومړني پيدا ښت خوراآسانه دى ﴿ أَوَلَا يَذْكُرُ ٱلْإِنسَٰنُ أَنَّا خَلَقْنَٰهُ مِن قَبْلُ وَلَمْ يَكُ شَيْـًٔا ﴾ آيانه يادوي (دغه منكر) انسان (داخبره) چي بېشكه موږدي پخوا له دي پيدا كړي وو اوهغه هيڅ شى نه وو(بلكه عدم وو)نوهغه ذات چي له عدم څخه په خلقت قادروي هغه به په اعاده ولي قادرنه وي ؟ ځيني علماوو ويلي دي كه ګرد خلګ دبعث په هكله ديو دليل په راوړلو سره راغونډ شي په داسي لنډګنډ ډول به يې رانه وړي لكه چي دلته راغلى څكه پدې كي خوشك نشته چي: دوهم ځل اعاده تر لومړي ځل ايجاد خوراآسانه ده([2])اوددي مثال دالله داقول هم دى چي: ﴿ فَوَرَبِّكَ لَنَحْشُرَنَّهُمْ وَٱلشَّيَٰطِينَ ﴾ پس ستاپه رب قسم دى(اى محمده ! )چي خامخاراجمع به كړو موږ هرومرو دوى اوشيطانان( هغه چي دوى بې ګمراه كړي وو) مفسرين كرام وايي چي: هركافربه له شيطان سره په ځنځېرترلى را حاضرولى شي ﴿ ثُمَّ لَنُحْضِرَنَّهُمْ حَوْلَ جَهَنَّمَ جِثِيًّا ﴾ بيابه خامخارا حاضركړوموږ هرومرو دوى چاپېرله دوزخه په ګونډوپراته ( له زياته هيبته او وېري ولاړېدلاى به نشي څكه سختي اودهشت به نيولي وي ﴿ ثُمَّ لَنَنزِعَنَّ مِن كُلِّ شِيعَةٍ أَيُّهُمْ أَشَدُّ عَلَى ٱلرَّحْمَٰنِ عِتِيًّا ﴾ بيابه خامخاوباسو له هري ډلي نه هغه ددوى چي ډېرسخت دى په رحمان ذات باندي له جهته دسركښي ؛ اومقصددادى چي له دغو مجرمينوڅخه به هغه مخكښ ددوى واړپه واړپه دوزخ كي غورځول كېږي كوم چي ډېر سرغړونكى وي هغه به لومړى اووروسې به بيابل بدمعاش اوزړه ور ددوى ور اچول كېږي ابن مسعودوايي چي هر څوك ډېرمجرم وي هغه به لومړى ورغورځول كېږي ﴿ ثُمَّ لَنَحْنُ أَعْلَمُ بِٱلَّذِينَ هُمْ أَوْلَىٰ بِهَا صِلِيًّا ﴾ بيا خامخا موږ ښه عالم يو پرهغو كسانوچي دوى ښه لائق دى له دغه دوزخ سره دغورزولو سوځولو، داخلولو (او هغوى چي د زيات عذاب وړ اومستحق دي نوبه پرهغوى پيل كوو ﴿ وَإِن مِّنكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا ﴾ اونشته هيڅوك له تاسي مګرچي دى وارد ېدونكى ننوتونكى دى دغه ته (مؤمن دتېرېدلو لپاره اوكافرېكي د لوېدلو لپاره) ﴿ كَانَ عَلَىٰ رَبِّكَ حَتْمًا مَّقْضِيًّا ﴾ دى دغه (عبور) ورود

---

([1]) المختصر٢/ ٤٦٠

([2]) الفخرالرازي٢١ / ٢٤١

(على النار) په رب ستا يقيني حکم پرې کړل شوی[1] (چې خلاف يې ممکن نه دی) ﴿ ثُمَّ نُنَجِّي الَّذِينَ اتَّقَوا ﴾ بيا به نجات ورکړو (له دوزخ څخه) هغو کسانوته چې پرهېزګاري يې کړې ده وروسته له تېرېدلو د تېولونه ﴿ وَنَذَرُ الظَّالِمِينَ فِيهَا جِثِيًّا ﴾ او پرې به ږدو ظالمان په دوزخ کې پرګونډو پرېوتلي. بيضاوي وايي چې: په آيت شريف کې دا دليل شته چې مقصد له ورود څخه خو اوښاددوزخ په ګونډو کېدل دي وروسته به بيا الله مؤمنانو ته نجات ورکړي او جنت ته به لاړشي او فجار به په خپل شکل هماغسې پاتې شي ﴿ وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ ﴾ او کله چې ولوستل شي پردوی آيتونه (د قرآن) زموږ په داسې حال کې چې ښکاره واضح وي (اعجاز او معاني د هغوی) ﴿ قَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلَّذِينَ آمَنُوا أَيُّ الْفَرِيقَيْنِ خَيْرٌ مَّقَامًا وَأَحْسَنُ نَدِيًّا ﴾ وايي: هغه کسان چې کافران شوي دي هغو کسانو ته چې ايمان يې راوړی دی چې کوم يو له دغو دواړو فرقو څخه بهتره غوره دي له جهته د مقامه او ډېر ښه دی له جهته د مجلسه) يعني کافران او سرغړونکي فاسقان به ببوزله مؤمنانو ته وايي چې له موږ او تاسو دواړو ډلو څخه موږ ښه او غوره يو که تاسي ؟ زموږ عيش او عشرت او قصرونه او ښکلې او دهستوګنځي او خبروځايونه خوتر تاسو ډېر ښه دي. بيضاوي وايي چې: کله به مشرکينو قرآني آيات واورېدل او له معارضې څخه به يې عاجز شول نو به يې په دنياوي ژوند او ښکلا وياړل او پدې به يې دليل نيول چې موږ به په آخرت کې هم تر تاسو غوره يو ځکه د دوی نظر کوتاه وو[2] الله تعالى وفرمايل ﴿ وَكَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّن قَرْنٍ هُمْ أَحْسَنُ أَثَاثًا وَرِئْيًا ﴾ او څومره (ډېر) هلاک کړي دي موږ پخوا له دوی نه له (اهل د) زمانې چې هغوی ښه وو له جهته د سامانونو او د ول سينګار او منظرې ؛ نو همداسې به هم دوی هلاک کړم دوی دې پخپلو نعمتونو او سامانونو نه تېروزي ﴿ قُلْ مَن كَانَ فِي الضَّلَالَةِ فَلْيَمْدُدْ لَهُ الرَّحْمَٰنُ مَدًّا ﴾ ( ووايه (ای محمده !دوی ته) هرڅوک چې په ګمراهۍ کې وي پس اوږدوي (زياتوي) ده ته رحمان په زياتولو (د مال او عمر) سره) يعني ای محمده دغو ګمان کونکو مشرکانو ته ووايه له موږ او تاسو نه څوک چې) په ګمراهۍ کې دی الله ورته د رازوالی او مهلت ورکوي او په همدغه نود تهديد او وعيد وروستی پراوددی ﴿ حَتَّىٰ إِذَا رَأَوْا مَا يُوعَدُونَ إِمَّا الْعَذَابَ وَإِمَّا السَّاعَةَ ﴾ تر هغه پورې چې وګوري دوی هر هغه شی چې وعده ورسره کړل شوې وي (د هغه) يا عذاب (په دنيا کې په قتل او بند) او يا قيامت چې د آخرت عذاب او کړاوونه او سختۍ دي ﴿ فَسَيَعْلَمُونَ مَنْ هُوَ شَرٌّ مَّكَانًا وَأَضْعَفُ جُندًا ﴾ نو ژر به پوه شي (دوی په هغه وخت کې چې) څوک دی هغه ډېر بد له جهته د ځای او ډېر ضعيف له جهته د پوځ (او ملګرو مرستندويانو

---

[1] علماء کرام دورود په معنا کې اختلاف لري عبدالله بن عباس رضی الله عنه وايي چې له ورود څخه مراد دخول دی ګواکې هيڅ بر او فاجر به پاتې نشي خو پدې دوزخ کې نه ننوزي نو بيا به په مؤمنانو سوړ او سلام شي لکه چې په ابراهيم (عليه السلام) شوی وو ابن مسعود او قتاده وايي چې مراد له ورود څخه تېرېدل دي چې په صراط د پاسه به تېرېږي ښايي چې دغه ترتولو سم تعبير دی. أجارنا الله من نار جهنم – الله مو دې د دوزخ له اوره وژغوري.

[2] البيضاوي ٢-١٩

آيا كافردي او كه مؤمنان؟ اوداددوی دهغې وينا په مقابله کې چې دوی به ويل ﴿ خَيْرٌ مَّقَامًا وَأَحْسَنُ نَدِيًّا ﴾ ﴿ وَيَزِيدُ اللَّهُ الَّذِينَ اهْتَدَوْا هُدًى ﴾ اوزياتوي الله (په دنيا کې) هغو کسانو ته چې سمه صافه لاره يې موندلې وي هدايت ، ثبات اويقين (ايمان) ﴿ وَالْبَاقِيَاتُ الصَّالِحَاتُ خَيْرٌ عِندَ رَبِّكَ ثَوَابًا ﴾ اوباقي (تلپاتې دجزاء په اعتبار) نېک عملونه غوره دي په نزد درب ستاله جهته د ثوابه ﴿ وَخَيْرٌ مَّرَدًّا ﴾ اوغوره بهتر دی له جهته دبيرته ورتللو ؛ ځکه ددنيانعمتونه زائل اودآخرت تلپاتې اودائم دي ﴿ أَفَرَأَيْتَ الَّذِي كَفَرَ بِآيَاتِنَا وَقَالَ لَأُوتَيَنَّ مَالًا وَوَلَدًا ﴾ آيا پس ليدلی دی تاهغه څوک چې کفريې غوره کړی دی په آيتونو زموږ اووايې خامخاراکول کېږي (په آخرت کې) ماته مال اواولاد ) دغه آيت د(عاص بن وائل) په هکله رانازل شوی (¹) استفهام دتعجب لپاره دی يعني تعجب وکړه ای محمده له حاله دهغه کافره چې زموږ په آياتوايمان نلري اوګمان کوي چې الله به په آخرت کې هم ورته مال اوزوی اولوربښي ﴿ أَطَّلَعَ الْغَيْبَ أَمِ اتَّخَذَ عِندَ الرَّحْمَٰنِ عَهْدًا ﴾ آيا خبرشوي دي دغه کافرپه غيب؟ يا اخيستي ده د رحمن په نزدوعده (چې په يقين اوباورسره خبره کوي ؟ ﴿ كَلَّا ۚ سَنَكْتُبُ مَا يَقُولُ ﴾ نه دی داسي (چې دی وايي ) موږ ليکوهغه چې دی وايي ﴿ كَلَّا ﴾ دردع توری دی اوزجر ورکاوه شي يعني دغه فاجردي له دغې ويناخوله ونيسي موږ دده وينا ليکو ﴿ وَنَمُدُّ لَهُ مِنَ الْعَذَابِ مَدًّا ﴾ (اووبه غځوو ده ته له عذابه په غځولو ) يعني ده ته به عذاب زيات اواوږد کړو اودابه دده د سرغړوني او استهزاء جزاء وي ده ته به پرځای دمال اواولاد عذاب ورزيات کړو ﴿ وَنَرِثُهُ مَا يَقُولُ وَيَأْتِينَا فَرْدًا ﴾ او په ميراث به اخلو(له ده په مرګ سره ) هغه (مال اولاد ) چې (دی يې دخان ) وايي او راځي موږته يواځې (چې نه به ورسره مال اودولت، نه اولادونه اونه هم مرستندوی اوسند وي ) ﴿ وَاتَّخَذُوا مِن دُونِ اللَّهِ آلِهَةً لِّيَكُونُوا لَهُمْ عِزًّا ﴾ اونيولي دي کفاروغيرله الله نه (باطل) معبودان ددې لپاره چې دوی ته د عزت سبب شي ﴿ كَلَّا ۚ سَيَكْفُرُونَ بِعِبَادَتِهِمْ وَيَكُونُونَ عَلَيْهِمْ ضِدًّا ﴾ نه ده داسي (لکه چې دوی يې ګڼي) بلکه ژربه منکرشي (دغه معبودان) په عبادت ددوی اوشي به دغه (معبودان) پردغو(عابدانو ) خپلو دښمنان (په قيامت کې) ﴿ أَلَمْ تَرَ أَنَّا أَرْسَلْنَا الشَّيَاطِينَ عَلَى الْكَافِرِينَ تَؤُزُّهُمْ أَزًّا ﴾ آيانه ګورې ، نه يې خبر(ای محمده !) بېشکه موږ لېږلي مسلط کړي مودي شيطانان پرکافرانوباندي چې اوچتوي تېزوي دوی په تېزولوباندي (په ګناه کولو ) امام رازي وايي: يعني په ګناه کولويې تېرباسي اوهڅوي يې وسوسې اوسوچونه وراچوي ترڅودګناه مرتکب شي (²) ﴿ فَلَا تَعْجَلْ

---

(¹) اسباب النزول وګورئ.
(²) التفسيرالکبير۲۱ / ۲۵۲

عَلَيْهِمْ إِنَّمَا نَعُدُّ لَهُمْ عَدًّا ﴾پس تلوارمه كوه پردوى ( په ژرهلاكت يې )بېشكه همداخبره ده چي شمېرو موړدوى ته ( ورځي دعمرد دوى ) په شمارولوسره يعني ددوى يوڅو ورځي اوانفاس پاتي دي بيابه سخت عذاب وروّوينو. عبدالله ابن عباس رضى الله عنه وايي چي ددوى ساګاني همداسي په دنياکي شمېرولکه چي کلونه يې شمېرو (١) ﴿يَوْمَ نَحْشُرُ الْمُتَّقِينَ إِلَى الرَّحْمَٰنِ وَفْدًا ﴾(يادکړه هغه ورځ چي جمع به کړو پرهېزګاران سواره مېلمانه بللي شوي ) يعني کله چي پرهېزګاران په اوښانوسپاره له عزت اومکرمت سره خپل پروردګارته لکه چي عزتمن مېلمانه پاچهانوته ورد‌رومي راشي اودکرم اوانعام سترګي په لاره وي ﴿ وَنَسُوقُ الْمُجْرِمِينَ إِلَىٰ جَهَنَّمَ وِرْدًا ﴾اوشړو(په سختي سره) مجرمان (طرف د ) دوزخ ته (دحيواناتوپه شان) پلي (پياده ) تږي (لکه اوښان) په حديث شريف کي راځي دآخرت په ورځ به خلګ په درې ډوله راپاڅېږي (راټولېږي) يوه ډله هغه چي وېرېدونکي،ې هيله من دي ، بله ډله هغه چي دوه به په يوه اوښ سپاره وي درې به په اوښ سپاره وي ، څلوربه په اوښ سپاره وي (آن چي) لس به په اوښ سپاره وي نورپاتي به اورته کشول کېږي چي قيلوله کوي هم به اور ورسره وي اوکه شپه تېروي هم به اور ورسره ملګرى وي (٢)﴿ لَّا يَمْلِكُونَ الشَّفَاعَةَ ﴾نه مالکان کېږي دشفاعت (دهيچا نه دوى دچا شفاعت کولاى شي اونه نورڅوک ددوى شفاعت کوي ﴿إِلَّا مَنِ اتَّخَذَ عِندَ الرَّحْمَٰنِ عَهْدًا ﴾مګرهغه څوک چي اخيستى يې دى په نزددرحمن وعده (په شفاعت مجازوي) دلته استثناء منقطع دى يعني هغه څوک چي مؤمن وي اودنېک عمل خاوندوي هغه د شفاعت مالک دى . ابن عباس رضى الله عنهما وايي چي دعهدمعنادشهادت کلمه ده چي : (أشهدان لااله الاالله) ﴿ وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمَٰنُ وَلَدًا ﴾اووايي (يهوداونصارااوهغه چي په ملائکودالله دلونوګمان کوي ) نيولى دى رحمن ولد(زوى لور) ﴿لَّقَدْ جِئْتُمْ شَيْئًا إِدًّا ﴾خامخاراتله کړي دي تاسي په يوشي لوى سره له حيثيته دګناه يعني اې مشرکانو دخوراشنيع ويناکونکي ياست چي ﴿ تَكَادُ السَّمَاوَاتُ يَتَفَطَّرْنَ مِنْهُ ﴾ نژدې دى چي آسمانونه وچوي له دې (نسبته) ﴿ وَتَنشَقُّ الْأَرْضُ وَتَخِرُّ الْجِبَالُ هَدًّا ﴾او (نژدې دى) چي ټوټې ټوټې شي ځمکه او ولوېږي غرونه ذرې ذرې ﴿ أَن دَعَوْا لِلرَّحْمَٰنِ وَلَدًا ﴾(له جهته د دې چي بولي دوى رحمان ته ولد(زوى او لور) ﴿ وَمَا يَنبَغِي لِلرَّحْمَٰنِ أَن يَتَّخِذَ وَلَدًا ﴾ او داولد(نيول له الله سره نه ښايي) ځکه ولدخوهمجنس والى غواړي اوداړتياله مخي وي اوالله پاک خوله سيال اومثال نه پاک اوله احتياج اواړتياڅخه منزه دى ﴿ إِن كُلُّ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ إِلَّا آتِي الرَّحْمَٰنِ عَبْدًا ﴾نه دي ټول هغه (ګرد شيان) چي پدې آسمانواوځمکه کي دي مګررحمان ته راتلونکي دي په دغه حال کي چي بنده وي هريوددوى .

---

(١) القرطبي ١١/ ١٥٠
(٢) أخرجه الشيخان.

﴿ لَّقَدْ أَحْصَىٰهُمْ وَعَدَّهُمْ عَدًّا ﴾خامخا په تحقيق احاطه كړي ده (الله) دوى لره (په علم خپل هيڅ چاره بې ورڅخه پټه نه ده) او شمېرلي دي الله دوى ټول (من حيث الاشخاص والانفاس والافعال) په شمېر لو سره ﴿ وَكُلُّهُمْ ءَاتِيهِ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ فَرْدًا ﴾او دا ټول چي دي راتلونكي دي دغه (الله) ته په ورځ دقيامت كي يوازي (بې له ماله او مرستندويه او ساتونكي څارندويه) ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ سَيَجْعَلُ لَهُمُ ٱلرَّحْمَٰنُ وُدًّا ﴾بېشكه هغه كسان چي ايمان بې راوړی دی او كړي بې دي ښه (عملونه) ژر به وګرزوي دوی ته رحمان دوستي) كله چي الله دمجرمينو حال ذكر كړ وروسته بې د مؤمنانو بيان وفرمايو چي الله به ددې صالحانو بندګانو په زړونو كي مينه او محبت وا چوي. ربيع وايي معنا دا چي الله به بې محبوب وګڼي او دنور و په زړونو كي به ې هم مينه ور واچوي ﴿ فَإِنَّمَا يَسَّرْنَٰهُ بِلِسَانِكَ لِتُبَشِّرَ بِهِ ٱلْمُتَّقِينَ وَتُنذِرَ بِهِۦ قَوْمًا لُّدًّا ﴾پس بېشكه همدا خبره ده چي آسان كړی دی موږ دغه (قرآن) ستا په ژبه (چي عربي دی) دپاره ددې چي زېرى وركړې په دې سره پرهېزګارانو (مؤمنانو) ته او چي وويروې پدې سره جګړه كونكي قوم (معاندين جګړه ماران) ﴿ وَكَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّن قَرْنٍ ﴾او څومره ډېر هلاك كړي دي موږ پخوا له دوى نه (اهل د) زمانې (چي دوى د خپلو انبياوو تكذيب كاوو (كم) دلته دتكثير لپاره راغلى دى ﴿ هَلْ تُحِسُّ مِنْهُم مِّنْ أَحَدٍ أَوْ تَسْمَعُ لَهُمْ رِكْزًا ﴾(آيا محسوسوې ته (مومې، وينې) له دوى نه يو تن يا اورې له دوى نه كوم نرم غږ هم) معنا دا چي دوى هسي يو مخ ايزه هلاك شول چي ټول پوپنا او دخمكي مخ څني خلاص شو نو لكه چي هغوى مو هلاك كړل همدا سي به دغه مشركان هم هلاك كړم.

بلاغت:

پدې آيتونو كي چي دبديع او بيان كومي ښكلاوي شته لنديزيې دادى:

١- ذكر دعام او اراده دخاص لكه چي فرمايي: ﴿ وَيَقُولُ ٱلْإِنسَٰنُ ﴾مراد له انسان څخه كافر دى څكه هغه له نشور او له بعث څخه منكر دى.

٢- دطباق صنعت چي د ﴿ مِتُّ .. حَيًّا ﴾او ﴿ لِتُبَشِّرَ .. وَتُنذِرَ ﴾ترمينځ دى.

٣- دتوبيخ او انكار لپاره استفهام لكه ﴿ أَوَلَا يَذْكُرُ ٱلْإِنسَٰنُ ﴾؟.

۴- لطيفه مقابله لكه دمتقينو او مجرمينو او ابرار و اشرار و ترمينځ چي فرمايي: ﴿ يَوْمَ نَحْشُرُ ٱلْمُتَّقِينَ إِلَى ٱلرَّحْمَٰنِ وَفْدًا ﴾ ﴿ وَنَسُوقُ ٱلْمُجْرِمِينَ إِلَىٰ جَهَنَّمَ وِرْدًا ﴾.

۵- غير تام جناس لكه: ﴿ وَفْدًا ... وِرْدًا ﴾چي دوهم توری بې توپير لري.

٦ – مرتب لف اونشرلکه پدې کلام کې چې ﴿ شَرٌّ مَّكَانًا وَأَضۡعَفُ جُندًا ﴾ چې لومړی یې ﴿ خَيۡرٌ مَّقَامًا ﴾ اودوهم یې ﴿ وَأَحۡسَنُ نَدِيًّا ﴾ ته راجع کړی دی اوهمداسې د ﴿ خَيۡرٌ شَرٌّ ﴾ ترمینځ طباق هم راغلی دی.

٧ – عقلي مجازچې فرمایې: ﴿ سَنَكۡتُبُ مَا يَقُولُ ﴾ یعني موږپرښتوته دلیکلوحکم ورکوو دلته دیوڅیزاسناد خپل سبب ته دی.

٨ – ښایسته سجع لکه په ﴿ عَبۡدًا.... عَدًّا.... فَرۡدًا.... وُدًّا ﴾ کې چې دغه بدیعي محسنات ګڼل کیږي.

فائده:

امام مسلم په خپل صحیح کې له ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت راوړی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: چې کله الله تعالی یوبنده محبوب وګڼي نوجبریل (علیه السلام) راوبولي ورته فرمایې چې ماته فلانی سړی محبوب دی ته هم ورسره مینه لره جبریل (علیه السلام) ته محبوب شي اوبیادآسمان په خلګو کې هسې غږ وکړي چې فلان سړی دالله محبوب دی تاسې هم ورسره محبت وکړئ نودآسمان مخلوق ټول ورسره محبت پیل کړي (دحدیث ترپایه) اوهم دغه دالله جل جلاله ددې قول مصداق دی چې فرمایې ﴿ سَيَجۡعَلُ لَهُمُ ٱلرَّحۡمَٰنُ وُدًّا ﴾.

لطیفه:

روایت کیږي چې مأمون یوه ورځ دغه آیت لوست چې: ﴿ فَلَا تَعۡجَلۡ عَلَيۡهِمۡۖ إِنَّمَا نَعُدُّ لَهُمۡ عَدًّا ﴾ اود ده په مجلس کې یوه ډله فقهاناست ووچې ابن سماک هم پکې وو نومأمون ورته اشاره وکړه چې نصیحت دې وکړي هغه وویل چې: کله ساه ګاني په شمارل وي اومرستندوی یې ناچاروي ژوندبه یې ژرتمام شي اودی به خواروي.

دالله جل جلاله په مرسته دمریم سورت بشپړشو.

***

## دطه سورت مکي دی اویوسل اوپنځه دېرش آیتونه لري

### دسورت په وړاندې:

دطه سورت دنورومکي سورتونوپه شان موخې اواهداف په ګوته کوي مقصدیې ددین دبنسټونو ټینګول دي چې توحید ،نبوت اوبعث نشوربیانوي.

* پدې سورت کې درسول الله صلی الله علیه وسلم دشخصیت دملاترڅرګندونه اودهغه دروح تقویت کیږي ترڅوپه هغه څه غمجن نشي چې له مشرکانوڅخه کړاوونه ، دوکې ، ملنډې اوډول ډول تورونه ورته رسیږي اوسورت پیغمبرخپلې اساسي دندې ته متوجه کوي کومه چې تبلیغ اوارشاددی ،یاهم دمشرکانوانذاراومؤمنانوته بشارت ورکول دي اودادده کارنه دی چې خلګ په جبري توګه په ایمان وپسولي (سینګارکړي).

* په سورت کې ځینې داسې دانبیاوو کیسې راځي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ډاډینه ورکړي او پاکیزه زړه یې مطمئن کړي نو د موسی علیه السلام او ورور یې هارون علیه السلام کیسه په تفصیلي توګه راوړي چې له یو جابر او سرغړونکي فرعون سره یې مقابله ده او نژدې ګرد سورت پدې هکله دی او په ځانګړې توګه د حضرت موسی مناجات چې له خپل پروردګار سره یې درلود یا هغه چې الله جل جلاله دی په پیغمبرۍ غوره کاوو او وایې له فرعون سره مقابله وه، یا هم داچې له کوډګرانو سره یې سیالي لرله نو ځکه ددې کیسې په ترڅ کې د الله جل جلاله مرسته او پاملرنه چې له خپل نبي او کلیم سره یې درلوده ځلیږي او همداسې د الله د دښمنانو د هلاکت او مجرمینو د تباهي یادونه کیږي

* په دې سورت کې په ځغلنده نظر د آدم علیه السلام کیسه هم راځي چې د الله تعالی رحمت د هغه علیه السلام په ګناه خپریږي او بیا د آدم د اولادونو د هدایت ذریعه د انبیاوو رااستول چې مبشرین او منذرین وي ښیي چې بنیاد مانو ته اختیار ورکول شوی چې یو لاره سمه د شر او یا خیر غوره کړي د سورت په ځینو اړخونو کې د قیامت ځینې مشاهد په داسې عباراتو سره راځي چې کائنات او زړونه لړزوي او په خلګو باندې حیرانتیا او ترهه راولي چې فرمایي: ﴿ وَخَشَعَتِ ٱلْأَصْوَاتُ لِلرَّحْمَٰنِ فَلَا تَسْمَعُ إِلَّا هَمْسًا ﴾.

* سورت د محشر د ورځې صحنه ستایې کله چې عادلانه حساب ترسره کیږي طاعت کونکي مؤمنان جنت ته رومي او سرغړونکي بیا دوزخ ته او دا د الله هغه ژمنه او وعده ده چې هیڅکله پکې خلاف نه راځي کومه چې فرمایلي یې دي: الله به مؤمنانو ته ثواب او مجرمانو ته عذاب ورکوي.

په پای کې سورت هغه الهي لارښووني د رسول الله لپاره بیانوي کومې چې الله خپل استازي ته د صبر، زغم ماربینه کوي ترڅو چې د الله مرسته راشي.

## تسمیه او نومول یې:

دغه سورت ته ځکه (طه) وایې چې دغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم له نومونو څخه یو نوم دی او د هغه د خوشامندي او تطیب القلب لپاره یې په دغه نامه سورت ونوماوو چې د زړه آرام او اطمینان بیاتر لاسه کړي ځکه له دښمنانو څخه یې زیات کړاوونه ګالل همدا سبب دی چې په لومړي پیل کې رسول الله ته په نرمي او پسته لهجه غږکوي فرمایي: ﴿ طه ۝١ مَآ أَنزَلْنَا عَلَيْكَ ٱلْقُرْءَانَ لِتَشْقَىٰٓ ﴾.

## الله تعالی فرمایي:

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ طه ۝١ مَآ أَنزَلْنَا عَلَيْكَ ٱلْقُرْءَانَ لِتَشْقَىٰٓ ۝٢ إِلَّا تَذْكِرَةً لِّمَن يَخْشَىٰ ۝٣ تَنزِيلًا مِّمَّنْ خَلَقَ ٱلْأَرْضَ وَٱلسَّمَٰوَٰتِ ٱلْعُلَى ۝٤ ٱلرَّحْمَٰنُ عَلَى ٱلْعَرْشِ ٱسْتَوَىٰ ۝٥ لَهُۥ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا وَمَا تَحْتَ ٱلثَّرَىٰ ۝٦ وَإِن تَجْهَرْ بِٱلْقَوْلِ فَإِنَّهُۥ يَعْلَمُ ٱلسِّرَّ وَأَخْفَى ۝٧ ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۖ لَهُ ٱلْأَسْمَآءُ ٱلْحُسْنَىٰ ۝٨ وَهَلْ أَتَىٰكَ حَدِيثُ مُوسَىٰٓ ۝٩ إِذْ رَءَا نَارًا فَقَالَ لِأَهْلِهِ ٱمْكُثُوٓا۟ إِنِّىٓ ءَانَسْتُ نَارًا لَّعَلِّىٓ ءَاتِيكُم مِّنْهَا بِقَبَسٍ أَوْ أَجِدُ عَلَى ٱلنَّارِ هُدًى ۝١٠ فَلَمَّآ أَتَىٰهَا نُودِىَ يَٰمُوسَىٰٓ ۝١١ إِنِّىٓ أَنَا۠ رَبُّكَ فَٱخْلَعْ نَعْلَيْكَ ۖ إِنَّكَ بِٱلْوَادِ ٱلْمُقَدَّسِ طُوًى ۝١٢ وَأَنَا ٱخْتَرْتُكَ فَٱسْتَمِعْ لِمَا يُوحَىٰٓ ۝١٣

إِنَّنِيٓ أَنَا ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّآ أَنَا۠ فَٱعۡبُدۡنِي وَأَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ لِذِكۡرِيٓ (١٤) إِنَّ ٱلسَّاعَةَ ءَاتِيَةٌ أَكَادُ أُخۡفِيهَا لِتُجۡزَىٰ كُلُّ نَفۡسِۭ بِمَا تَسۡعَىٰ (١٥) فَلَا يَصُدَّنَّكَ عَنۡهَا مَن لَّا يُؤۡمِنُ بِهَا وَٱتَّبَعَ هَوَىٰهُ فَتَرۡدَىٰ (١٦) وَمَا تِلۡكَ بِيَمِينِكَ يَٰمُوسَىٰ (١٧) قَالَ هِيَ عَصَايَ أَتَوَكَّؤُاْ عَلَيۡهَا وَأَهُشُّ بِهَا عَلَىٰ غَنَمِي وَلِيَ فِيهَا مَـَٔارِبُ أُخۡرَىٰ (١٨) قَالَ أَلۡقِهَا يَٰمُوسَىٰ (١٩) فَأَلۡقَىٰهَا فَإِذَا هِيَ حَيَّةٌ تَسۡعَىٰ (٢٠) قَالَ خُذۡهَا وَلَا تَخَفۡۖ سَنُعِيدُهَا سِيرَتَهَا ٱلۡأُولَىٰ (٢١) وَٱضۡمُمۡ يَدَكَ إِلَىٰ جَنَاحِكَ تَخۡرُجۡ بَيۡضَآءَ مِنۡ غَيۡرِ سُوٓءٍ ءَايَةً أُخۡرَىٰ (٢٢) لِنُرِيَكَ مِنۡ ءَايَٰتِنَا ٱلۡكُبۡرَى (٢٣) ٱذۡهَبۡ إِلَىٰ فِرۡعَوۡنَ إِنَّهُۥ طَغَىٰ (٢٤) قَالَ رَبِّ ٱشۡرَحۡ لِي صَدۡرِي (٢٥) وَيَسِّرۡ لِيٓ أَمۡرِي (٢٦) وَٱحۡلُلۡ عُقۡدَةً مِّن لِّسَانِي (٢٧) يَفۡقَهُواْ قَوۡلِي (٢٨) وَٱجۡعَل لِّي وَزِيرًا مِّنۡ أَهۡلِي (٢٩) هَٰرُونَ أَخِي (٣٠) ٱشۡدُدۡ بِهِۦٓ أَزۡرِي (٣١) وَأَشۡرِكۡهُ فِيٓ أَمۡرِي (٣٢) كَيۡ نُسَبِّحَكَ كَثِيرًا (٣٣) وَنَذۡكُرَكَ كَثِيرًا (٣٤) إِنَّكَ كُنتَ بِنَا بَصِيرًا (٣٥) قَالَ قَدۡ أُوتِيتَ سُؤۡلَكَ يَٰمُوسَىٰ (٣٦) وَلَقَدۡ مَنَنَّا عَلَيۡكَ مَرَّةً أُخۡرَىٰٓ (٣٧) إِذۡ أَوۡحَيۡنَآ إِلَىٰٓ أُمِّكَ مَا يُوحَىٰٓ (٣٨) أَنِ ٱقۡذِفِيهِ فِي ٱلتَّابُوتِ فَٱقۡذِفِيهِ فِي ٱلۡيَمِّ فَلۡيُلۡقِهِ ٱلۡيَمُّ بِٱلسَّاحِلِ يَأۡخُذۡهُ عَدُوّٞ لِّي وَعَدُوّٞ لَّهُۥۚ وَأَلۡقَيۡتُ عَلَيۡكَ مَحَبَّةٗ مِّنِّي وَلِتُصۡنَعَ عَلَىٰ عَيۡنِيٓ (٣٩) إِذۡ تَمۡشِيٓ أُخۡتُكَ فَتَقُولُ هَلۡ أَدُلُّكُمۡ عَلَىٰ مَن يَكۡفُلُهُۥۖ فَرَجَعۡنَٰكَ إِلَىٰٓ أُمِّكَ كَيۡ تَقَرَّ عَيۡنُهَا وَلَا تَحۡزَنَۚ وَقَتَلۡتَ نَفۡسٗا فَنَجَّيۡنَٰكَ مِنَ ٱلۡغَمِّ وَفَتَنَّٰكَ فُتُونٗاۚ فَلَبِثۡتَ سِنِينَ فِيٓ أَهۡلِ مَدۡيَنَ ثُمَّ جِئۡتَ عَلَىٰ قَدَرٖ يَٰمُوسَىٰ (٤٠) ﴾ طه: ١ - ٤٠

لغتونه:

(بقبس) قبس داور شغلي ته وايي (المقدس) پاک اومبارک (طوى) دکندي (خوړ) نوم دی (فتردى) وبه لوېږې هلاک به شې (أهش) راځندم دونوپاڼې (مآرب) حاجتونه (اړتياوي) (جناحک) وزرستا اړخونه اودانسان وزردانسان ځنګونه اومټي دي چي دمرغه له وزروسره مشابه دي (أزرى) قوت زمالکه چي دقرآن بل ځای آيت دی ﴿ فَـَٔازَرَهُۥ فَٱسۡتَغۡلَظَ ﴾ (اليم) بحر (تقرعينها) چي خوشحاله شي په وصال يې سترګي ددې

تفسير:

﴿ طه مَآ أَنزَلۡنَا عَلَيۡكَ ٱلۡقُرۡءَانَ لِتَشۡقَىٰٓ ﴾ (ندی نازل کړی موږپرتاباندي قرآن ددې دپاره چي پخپل ځان مشقت محنت بارکړې ) طه ، مقطعات حروف اوتوري دي چي دقرآنکريم اعجازته اشاره کوي[1] ابن عباس رضى الله عنه وايي چي: معنايي ده ياسړيه ! روايت کېږي چي کله په رسول الله صلى الله عليه وسلم باندي قرآنکريم نازل شو نوده اوملګروبه يې لمونځ کاووقيام به يې اوږدکړ چي قريشوبه ويل: دغه قرآن په محمدباندي ددې لپاره نازل شوی چي هغه په تکليف کړي نوپورتني آيت نازل شو[2] ﴿ إِلَّا تَذۡكِرَةٗ لِّمَن يَخۡشَىٰ ﴾ مګرپند لپاره دهغه چاچي وېرېږي (له الله) ؛ اوهغه مؤمن مسلمان دی چي دايمان په ځلامنور وي. ﴿ تَنزِيلٗا مِّمَّنۡ خَلَقَ ٱلۡأَرۡضَ وَٱلسَّمَٰوَٰتِ ٱلۡعُلَى ﴾ (نازل شويدى) (په نازلېدلوله طرفه د(هغه) الله چي

---

[1] دسورة البقرة پيل وګورئ! .
[2] دغه دضحاک وېناده اوزادالمسيروګوره ٥ / ٢٦٨

پيداكړي يې ده ځمكه اوآسمانونه لوړلوړ) په آيت شريف كي دالله له عظمت ، جبروت اوجلال ځخه اخبار راغلى دى يعني هغه دځمكي ، كائناتواولوړوآسمانونوپنځونكي اوخالق رانازل كړى دى په البحركي وايې چي دآسمانونو ستايل په لوړوالي دالله په سترقدرت اوعظمت دليل دى ځكه له الله پرته دبل هيچادداسي لوړوآسمانونوپيداكول په توان كي نه راځي (١)﴿ ٱلرَّحْمَٰنُ عَلَى ٱلْعَرْشِ ٱسْتَوَىٰ ﴾(دغه دځمكي اوآسمانونوخالق چي دجمال اوكمال په صفاتوموصوف رحمن دى) پرعرش باندي استواء فرمايلي ده؛ داسي استواء چي دالله له جلال سره ښايي بې له تجسيم ، تشبيه ،تعطيل اوتمثيل نه لكه چي دسلفومذهب دى (٢)﴿ لَهُۥ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا وَمَا تَحْتَ ٱلثَّرَىٰ ﴾خاص الله لره دي هغه شيان چي په آسمانونوكي دي اوهغه چي په ځمكه كي دي اوهغه شيان چي په مينځ ددوى كي دي اوهغه چي له لمدې ځمكي ځخه لاندي دي (له كانونواوخزانوځخه داټول دالله ملكيت اوده ترتصرف لاندي دي ) ﴿ وَإِن تَجْهَرْ بِٱلْقَوْلِ فَإِنَّهُۥ يَعْلَمُ ٱلسِّرَّ وَأَخْفَى ﴾اوكه جهركوې په وينا سره (اى محمده ! ) نوبېشكه دغه (الله) عالم دى په پټه خبره اوپه ډېرپټه ؛ يعني الله جل جلاله ته په زوره اوپټه وينا دواړه برابردي الله په پټه اوترپټه لاهاخواباندي هم لكه وسوسه ښه پوهېږي مقصدله دې آيت شريف ځخه درسول الله صلى الله عليه وسلم تسليت اوډاډينه ده چي الله جل جلاله له ده سره دى هرڅه اوري او له سره به يې يوازي نه پرېږدي نوكه يې په لوړآوازبولې اوكه ټيټ اواز الله ته خوكراراوتركرارهم زيات پټ كلام ښكاره دى اوكله چي زړه دالله جل جلاله په دومره نزدېكت خبرشي چي الله دبنده په ټولو پټورازونو خبردى نوتسليت اوآرامي ورته راځي اوويارې ﴿ ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۖ لَهُ ٱلْأَسْمَآءُ ٱلْحُسْنَىٰ ﴾(الله (چي دى) نشته بل معبودبرحق مگريوازي هم دى دى خاص هم ده لره ښته نومونه ښک(چي نهايته ښكلي دي. په حديث شريف كي راځي: دالله نه نوي نومونه دي څوک چي يې وګني (وشمېري) جنت ته به داخل شي (٣)﴿ وَهَلْ أَتَىٰكَ حَدِيثُ مُوسَىٰٓ ﴾اوآياراغلي ده تاته كيسه دموسى؟ استفهام دتقريرلپاره دى اوغرض تشويق دى يعني اى محمده ! آياتاته دموسى عليه السلام عجيبه كيسه رسېدلې ده؟ ﴿ إِذْ رَءَا نَارًا فَقَالَ لِأَهْلِهِ ٱمْكُثُوٓا۟ إِنِّىٓ ءَانَسْتُ نَارًا ﴾كله چي وليد (موسى) اورنوويې ويل: اهل خپل (مېرمني) ته واوسئ (تاسي دلته ) بېشكه ماوليديواور) ابن عباس رضى الله عنه وايې چي داهغه مهال ووچي دشعيب (عليه السلام) موده يې بشپړه كړه اوله مدين ځخه دمصرپه لور ولېږدېدونودژمي تكه توره شپه وه لاره يې وركه كړې وه ډېري يې سره وهلې اورځيني نه بلېدوپه همدې ترخ كي يې دلاري له ليري چپ (كيڼ ) لورته اور وليدگمان يې كاووچي دغه به اوروي هغه دالله جل شانه نور وو ﴿ لَّعَلِّىٓ ءَاتِيكُم مِّنْهَا بِقَبَسٍ أَوْ أَجِدُ عَلَى ٱلنَّارِ هُدًى ﴾ښايي مالره چي زه له هغه اوره راوړم تاسي ته كومه لګولي لمبه (چي تاوده شئ) يا پيدا كړم زه

---

(١) البحر٦ / ٢٣٢

(٢) دسلف صالحينوويناوي په الاعراف اوالرعد سورت كي ولوله.

(٣) أخرجه الترمذى .

په اورباندي لاربنونكى (چي لياره راوښيي) ﴿ فَلَمَّآ أَتَىٰهَا نُودِيَ يَٰمُوسَىٰٓ إِنِّيٓ أَنَا۠ رَبُّكَ فَٱخۡلَعۡ نَعۡلَيۡكَ ﴾ (پس كله چي راغى هغه (اورته) نوغږورته وكړاى شوچي اى موسى ![1] ) ببشكه زه چي يم ستا رب يم پس وباسه (له دواړوپښو) پڼې خپلي) يعني كله چي داورځاى ته راغى كه ګوري تک سپين اورپه زرغونه ونه كي بلېږي اوپروردګار يې موسى ته نارې كړې چي اى موسى زه ستاپروردګار درسره خبري كوم دادب له مخي پڼې دي له پښو وباسه اورامخ ته شه ﴿ إِنَّكَ بِٱلۡوَادِ ٱلۡمُقَدَّسِ طُوٗى ﴾ ببشكه ته چي يې دطوى په پاكه كنده كي يې ﴿ وَأَنَا ٱخۡتَرۡتُكَ فَٱسۡتَمِعۡ لِمَا يُوحَىٰٓ ﴾ اوما غوره كړى يې ته په رسالت پس غوږ كېږده ته هغه حكم ته چي وحى كېږي (تاته) يعني ماته دنبوت لپاره غوره كړى يې نوځه چي درته وحى كوم ورته غوږكېږده امام رازي وايي چي: پدې كي خورازيات هيبت اوجلال دى لكه چي ورته وايي: تاته خوراسترمهم كاراوچاره دركړل شوه پاخه اودهغه لپاره په بشپړعقل اوخاطر تيارشه[2] ﴿ إِنَّنِيٓ أَنَا ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّآ أَنَا۠ فَٱعۡبُدۡنِي ﴾ ببشكه زه چي يم هم دازه الله يم نشته لائق دعبادت بل هيڅوک مګرهم دازه يم پس زماعبادت كوه (يوازي) ﴿ وَأَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ لِذِكۡرِيٓ ﴾ اوسم دروه (اداكوه) لمونځ زمادياودوني لپاره. دمجاهدوينا ده وايي: كله چي لمونځ وكړي الله يې يادشي ځكه لمونځ په اذكارومشتمل دى[3] صاوي وايي چي لمونځ يې ځكه ځانګړى كړكه څه هم په نوروعباداتوكي ذكر راتو ځكه چي شان يې ستراوذكريكي شامل دى چي زړه ژبه اوګرد اندامونه په ذكر اخته وي اوله توحيد څخه وروسته دټولو اركانوافضل همدالمونځ دى[4] ﴿ إِنَّ ٱلسَّاعَةَ ءَاتِيَةٌ أَكَادُ أُخۡفِيهَا ﴾ (ببشكه قيامت راتلونكى دى زه اراده لرم چي پټ كړم دغه (وخت دراتلود قيامت) يعني قيامت خامخا راتلونكى دى زه غواړم چي هغه له ځانه هم پټ كړم نوتاسوبه ورباندي څرنګه خبركړم[5] مبردوايي چي: دغه دعربو له دودسره سم ويلى شوى دى چي به كله ديوځيزپه بېخي پټولواصراركاوونو به يې ويل چي: زه يې له ځانه هم پټوم يعني هيڅوک نه ورباندي خبروم ﴿ لِتُجۡزَىٰ كُلُّ نَفۡسِۭ بِمَا تَسۡعَىٰ ﴾ لپاره د دې چي جزاوركول شي هرنفس ته په هغوعملونوچي كوي يې (له خيراو شرڅخه) مفسرين كرام وايي چي: دقيامت اومرګ دپټولوحكمت دادى چي الله فيصله كړي چي دقيامت په راتلواودزنكندن په شېبوكي توبه نه منل كېږي نوكه خلګ

---

([1]) شهيد سيد قطب الله دي په خپل رحمت كي ونغاړي اوقاتلان دي الله له رحمته وشړي په دې خاى كي ليكي: كله چي دغه مشهد يوڅوک تصوركړي موسى عليه السلام په دښته بېدياكي چي هره خواتكه توره شپه خوره ده اوتاريكي ټول كائنات پټ كړي ووچوپه چوپتياده ، زړه چوي اوبدن لړزېږي موسى داورپه لټه كي دطورپه لوري درومي اوناڅاپه دده خواوشا ګرد موجودات اوخپل وجود ددغي علوي نداسره هم غږي كېږي چي فرمايي: ﴿ إِنِّيٓ أَنَا۠ رَبُّكَ فَٱخۡلَعۡ نَعۡلَيۡكَ إِنَّكَ بِٱلۡوَادِ ٱلۡمُقَدَّسِ طُوٗى ﴾ الظلال ۵ / ۲۷

([2]) الرازي ۲۲ / ۱۹

([3]) نفس المرجع .

([4]) حاشية الصاوي على الجلالين .

([5]) دغه دمجاهدوينا ده ابن عباس هم داسي وايي اوطبري غوره كړي ده اودا ارجح دى په دې خاى كي نورتفسيرونه هم راغلي چي ضعيف معلومېږي. البحر المحيط ۶ / ۲۳۲

دقيامت اومرګ راتګ وپېژني ګناهونه به کوي ترڅوبيا د قيامت . يامرګ تر راتلوڅو شېبې مخکې توبه وباسي نوبه له عذاب څخه ځانونه خلاص کړي خوالله دا پټ کړي دي چي خلک تل ترتله په وېره کې وي اوتيارسئ اوسي چي مرګ اوقيامت ورته راتلونکي دی بنايي نابېره راشي ﴿ فَلَا يَصُدَّنَّكَ عَنْهَا مَن لَّا يُؤْمِنُ بِهَا ﴾ پس نه دي بندوي نه دي منع کوي تاخامخا (ای موسی) له باورکولوپه دې) هغه څوک چي په هغه ايمان نلري ﴿ وَاتَّبَعَ هَوَىٰهُ فَتَرْدَىٰ ﴾ اومتابعت کوي دخواهشاتوخپلو( که منع راوړي) پس ته به هلاک شې ( ځکه له آخرت څخه غفلت دهلاکت مستلزم دی ﴿ وَمَا تِلْكَ بِيَمِينِكَ يَـٰمُوسَىٰ ﴾ اودغه په ښي لاس کې دي څه شی دی ای موسی(آيالکړه نه ده؟ مقصد له استفهام څخه تقريراو راوينبول بيدارول دي چي اوس به عجيبه يوڅه پېښېدونکي وي چي له وچي کلکي لکړي څخه به ښامارجوړېږي اودموسی لپاره به دالهي قدرت ښوونه اوڅرګند ه معجزه وي . ابن کثيروايي چي: دغه استفهام بې دتقريرپه ډول وفرمايوچي آيادغه په ښي لاس کې دي هغه لکړه نه ده چي ته يې ښه پېژنې نواوس به ژر وويني چي موږ څه شی ورڅخه جوړوو؟ (١)﴿ قَالَ هِىَ عَصَاىَ أَتَوَكَّؤُا عَلَيْهَا ﴾ نووويل موسی دازما(همساده چي پرې تکيه کوم (دتللوپه وخت کې)﴿ وَأَهُشُّ بِهَا عَلَىٰ غَنَمِى ﴾ اوځنډم په دې سره (پاڼې دونو) پرګډو پسوزما(چي وېې خوري ) ﴿ وَلِىَ فِيهَا مَـَٔارِبُ أُخْرَىٰ ﴾ اودي ماته په دغه همسا کې نورډېرمطالب اومنافع (له دې نه پرته هم. مفسرين کرام وايي: داکافي ووچي ويلي يې وای دغه زمالکړه ده خوکلام يې اوږدکړځکه دغه ځای داوږدولودخبرو ووچي له خپله پروردګارسره يې بلاواسطه خبري کولې نويې په ځواب کې وغوښتل زياتوالی راوړي ترڅودخطاب په زياتوالي خوند واخلي دحبيب خبري خوږې خوندوري اودستوماني ليري کونکي هوسايې راولي ﴿ قَالَ أَلْقِهَا يَـٰمُوسَىٰ ﴾ بياوفرمايل: (الله) چي ای موسی دغه (همسا ) وغورځوه !(چي ووينې څه ترې جوړېږي؟ ﴿ فَأَلْقَىٰهَا فَإِذَا هِىَ حَيَّةٌ تَسْعَىٰ ﴾ پس وغورځوله دا(همسا ) پس ناڅاپه دامار وو ژوندی چي منډې يې وهلې (خورا تېزې) ابن عباس رضی الله عنه وايي چي دغه همسانرښامار وګرزېده چي ډېري اووني يې خوړلې او کله چي موسی عليه السلام وليدله چي هرڅه ترستوني تېروي نوځني ووېرېدواوپه تېښته ځني روان شو(٢) مفسرين کرام وايي چي کله يې دغه هېښونکي پېښه وليدله نوهغه څه سره مخ شوچي د داسي ليدلوپه وخت کې بشر ورسره مخامخ کېږي اوووېرېږي په تېره بياچي داسي عجيب وېرونکي حيرانونکي چاره وي چي عقل يې دليدلوپه وخت کې کارپرېږدي اودا چي دمناجات په وخت کې يې داسي معجزه وروښودله ددې لپاره چي ورسره روږدی شي اوبيابه د فرعون په وړاندي دغورځولوپه وخت کې له دې څخه نه وېرېږي

﴿ قَالَ خُذْهَا وَلَا تَخَفْ ﴾ بياوفرمايل: ( الله موسی ته ) ونيسه دا (همسا ) اومه وېرېږه (ترې) !.

---

(١) المختصر ٢ / ٤٧٢

(٢) القرطبي ١١ / ١٩٠

﴿ سَنُعِيدُهَا سِيرَتَهَا ٱلْأُولَىٰ ﴾ژربه وګرزوو مونږ دغه همساهمغه ړومبني شکل خپل ته (چي لکړه وه نوبې ونيوله اولکړه شوه) ﴿ وَٱضْمُمْ يَدَكَ إِلَىٰ جَنَاحِكَ تَخْرُجْ بَيْضَآءَ مِنْ غَيْرِ سُوٓءٍ ﴾اوپيوست کړه لاس خپل تخرګ خپل ته حال داچي راوبه وزي تک سپين بې له عيبه يعني ښي لاس دي په تخرګ کي دننه کړه چي لکه دلمرغوندي روښانه راوزي بې له دې چي کوم عيب يابرګ والی ولري. ابن کثيروايې چي کله به يې لاس په ګرېوان کي دننه کړاوبيابه يې بهر راويوست لکه د سپوږمۍ ټوټه غوندي به ځلېدو نه به پکي کوم عيب اونه مشقت وو(١) ﴿ ءَايَةً أُخْرَىٰ ﴾ حال داچي دغه بله معجزه ده (پرته له لکړي دوهمه ده) ﴿ لِنُرِيَكَ مِنْ ءَايَٰتِنَا ٱلْكُبْرَى ﴾لپاره ددې چي وښيو تاته ځيني له هغومعجزاتوچي ډېري لويي دي؛ الله جل جلاله دوې معجزې ورونبودلې چي عصا او لاس وو اودغه ځيني دهغومعجزاتووې چي الله تعالی دده تائيدورباندي فرمايلی وواوبيايې دکفراوطغيان مخکښې فرعون ته دمخامخ کېدوامرورکړچي ﴿ ٱذْهَبْ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ إِنَّهُۥ طَغَىٰ ﴾لاړشه فرعون ته(سره له دغو معجزاتو ) بېشکه چي هغه باغي شوی دی (له حده يې تجاوزکړی اودالوهيت دعوی يې کړي ده ﴿ قَالَ رَبِّ ٱشْرَحْ لِى صَدْرِى وَيَسِّرْ لِىٓ أَمْرِى ﴾وويل (موسی) ای زماربه زماسينه پرانيزه ارته کړه (په نور دايمان اونبوت) مالره اوآسان کړه ماته دغه مهم امرزما(چي تبليغ دی اودعرت دی اوتا ور باندي ګمارلی يم ) ﴿ وَٱحْلُلْ عُقْدَةً مِّن لِّسَانِى يَفْقَهُوا۟ قَوْلِى ﴾اوپرانيزه غوټه زماله ژبي چي خلګ زماپه خبرو وپوهېږي ؛ مفسرين کرام وايې چي: موسی عليه السلام په ماشومتوب کي دفرعون په کورکي ژوند کاوو يوه ورځ فرعون هغه په خپله غېږکی کښېناوو نوموسی عليه السلام دفرعون ږېره په لاس کي ونيوله اوهغه يې راکش کړه فرعون قصد وکړ چي هغه ووژني خوآسيه (رضي الله عنها ) دده مېرمنې ورته ووېل: چي داوړوکی دی نه پوهېږي اوزه به ددې يوځای وړاندي کړو که چېري يې له سکروټوڅخه د ملغلرو غوراوی وکړنوبيا پوهېږي اوکه چېري يې سکروټوته لاس واچاوو نوبياوړوکی اوناپوه دی همداسي يې ده ته دوه سکروټي اودوه ملغلري وړاندي کړې هغه سکروټي ور واخيستلې اوپه خوله کي يې کښېښودې له دې کبله يې ژبه وسوځېده اوبيابه يې خبري سمي نشوای کولای (٢) ﴿ وَٱجْعَل لِّى وَزِيرًا مِّنْ أَهْلِى هَٰرُونَ أَخِى ٱشْدُدْ بِهِۦٓ أَزْرِى ﴾ او وګرزوه ماته يووزير (مرستندوی) له اهله زماهارون چي زما ورور دی قوي کړه په ده سره زماملا ﴿ وَأَشْرِكْهُ فِىٓ أَمْرِى ﴾اوګډ کړه دغه (هارون) (عليه السلام) له ماسره) په کارزماکي (چي نبوت او درسالت تبليغ دی) ﴿ كَىْ نُسَبِّحَكَ كَثِيرًا وَنَذْكُرَكَ كَثِيرًا ﴾(دپاره ددې چي تسبيح ووايو ستاډېره او يادووتاپه ذکرښاډېره) يعني ستاپه تنزيه له

---

(١) المختصر ٢ / ٣٧٣

(٢) طبری وګوره.

لایلیق څخه یو له بله مرسته کوواوتا په دعا او ثنا ډېر یاد کړو ﴿ إِنَّكَ كُنتَ بِنَا بَصِيرًا ﴾ (بېشکه ته چي یې په (احوالو) زموږ ښه خبردار لیدونکی یې ؛ موسی علیه السلام له پروردګاره وغوښتل چي دخپل ورور په ملګرتیایې ملا ورټینګه کړي ځکه هغه دژبي فصاحت اودزړه ثبات درلودا وموسی علیه السلام ته دفرعون جبر، تکبراوطغیان څرګندوو ﴿ قَالَ قَدْ أُوتِيتَ سُؤْلَكَ يَٰمُوسَىٰ ﴾ (الله )وویل په تحقیق درکړی شوي ده تاته غوښتنه ستا(ای موسی ؛ وروسته الله خپل ستر نعمتونه چي ده ته یې ورکړي بیانوي فرمایي: ﴿ وَلَقَدْ مَنَنَّا عَلَيْكَ مَرَّةً أُخْرَىٰٓ ﴾ اوخامخا په تحقیق موږ (احسان کړی وو پرتا یو بل کرت( پخوا له دې نه) دا ﴿ إِذْ أَوْحَيْنَآ إِلَىٰٓ أُمِّكَ مَا يُوحَىٰٓ ﴾ کله چي موږ ستامورته (الهامًا ) وحی کړي وه دغه چي اوس اور اوه شي (اوستادنجات سبب شو ) ﴿ أَنِ ٱقْذِفِيهِ فِى ٱلتَّابُوتِ فَٱقْذِفِيهِ فِى ٱلْيَمِّ ﴾ چي وغورځوه دغه (موسی) په تابوت (صندوق) کي (بیا ) وغورځوه دغه تابوت په (نیل) سیندکي (بیاڅه وشو؟ اودچالاس ته به ورځي ؟) ﴿ فَلْيُلْقِهِ ٱلْيَمُّ بِٱلسَّاحِلِ يَأْخُذْهُ عَدُوٌّ لِّى وَعَدُوٌّ لَّهُۥ ﴾ پس ودي غورځوي هغه صندوق لره سیند په غاړه خپله چي واخلي دغه (موسی) دښمن زما اودده (چي فرعون دی په البحرکي وایې چي ﴿ فَلْيُلْقِهِ ﴾ امراومعنایې خبردی دامرپه صیغه ځکه راغی چي مبالغه پکې ده ځکه امرتر ټولوافعالوپربکنده اولازم دی([1]) ﴿ وَأَلْقَيْتُ عَلَيْكَ مَحَبَّةً مِّنِّى ﴾ اواچولی مي ووپرتا مینه زماله لوري (چي نوربیاټول خلګ درسره مینه کوي (آن تردې چي فرعون هم درسره مینه کوله . ابن عباس رضی الله عنه وایې : الله خپل محبوب وګاڼه اوټولوخلګوته یې محبوب کړ ﴿ وَلِتُصْنَعَ عَلَىٰ عَيْنِىٓ ﴾ اولپاره ددې چي ستاروزنه زماپه لیدوسره وشي ﴿ إِذْ تَمْشِىٓ أُخْتُكَ فَتَقُولُ هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَىٰ مَن يَكْفُلُهُۥ ﴾ کله چي تله خورستا(دپلټني لپاره) پس وې ویل چي آیادلالت وکړم زه تاسي ته په هغه چاچي دده تربیت وکړي . مفسرین کرام وایې : کله چي دفرعون اهل هغه واخیست نوهغه دهیچاتی نه رودل ځکه الله مراضعې پردوی حرامي کړي وې اوموریې خوراپرېشانه پاتي وه اودموسی دلاري څارني لپاره یې خپله لوروګومارله اوکله چي دفرعون کره ورغله اوحالت یې همداسي ولیدنویې ورته وویل زه یوه امینه فاضله ښځه دروښیم چي ددغه ماشوم دتي رودلوضمانت په خپله غاړه واخلي؟ اودده تکفل وکړي نوهغوی ورته ویل : ورشه رایې وله اودموسی علیه السلام موریې راوستله اوکله چي یې تی ورته را بهرکړسمدستي یې په خوله کي ونیواودفرعون مېرمن خورازیاته خوشحاله شوه هغې ته یې وویل له موږ سره په قصرکي اوسه مګردموسی مور ونه منله ویل یې زه نشم کولای خپل کوراو اولادخوشی کړم خوزه به دغه راسره یوسم اوهروخت چي غواړئ تاسي ته به یې حاضروم نویې ورته وویل : ډېرښه دي وکړل اوپوره احسان یي وربانديي ولوراوو اودادالله هغه وېناده چي : ﴿ فَرَجَعْنَٰكَ إِلَىٰٓ أُمِّكَ كَىْ تَقَرَّ عَيْنُهَا وَلَا تَحْزَنَ ۚ ﴾ پس بیرته موږته راوستې خپلي مورته ددې لپاره چي یخي (رڼې) شي سترګي د دې اوخفه

---

[1]- البحر المحیط ۶-۲۴

نشي (ستا په فراق) ﴿ وَقَتَلْتَ نَفْسًا فَنَجَّيْنَٰكَ مِنَ ٱلْغَمِّ ﴾ او مړ کړی و وتا يو (قبطي) سړی پس تا ته مو نجات درکړ له غمه (دقتل او د فرعون له شرڅخه مووژغورلې په صحيح مسلم کي راځي چي (دغه قتل د ده په خطاو ﴿ وَفَتَنَّٰكَ فُتُونًا ﴾ او ومي ازمويلې ته په (ډول ډول) ازمويني سره ﴿ فَلَبِثْتَ سِنِينَ فِىٓ أَهْلِ مَدْيَنَ ﴾ پس واوسېدې ته څو کاله په اهل د مدين کي (له شعيب سره) ﴿ ثُمَّ جِئْتَ عَلَىٰ قَدَرٍ يَٰمُوسَىٰ ﴾ بيا راغلې ته په هغه مقدار (موعد او وخت) چي ما اندازه کړی وو يا موسی) لپاره د رسالت او نبوت).

بلاغت:

پدې آيتونو کي چي د بديع او بيان کومي ښکلاوي دي لنډيزيې دادی:

۱ - تشويق او دا ورېدلو لپاره هڅونه چي فرمايي: ﴿ وَهَلْ أَتَىٰكَ حَدِيثُ مُوسَىٰٓ ﴾.

۲ - د طباق صنعت کله چي راځي: ﴿ قَالَ هِىَ عَصَاىَ أَتَوَكَّؤُا۟ عَلَيْهَا وَأَهُشُّ بِهَا عَلَىٰ غَنَمِى ﴾ ځکه په ځواب کي خو يوازي همدا کافي وو چي ويلې يې وای ﴿ هِىَ عَصَاىَ ﴾ خو ځواب يې په خطاب باندي د تلذذ او خوند اخيستلو لپاره پراخ او وبږکړ.

۳ - پدې کلام کي چي فرمايي ﴿ وَٱضْمُمْ يَدَكَ إِلَىٰ جَنَاحِكَ ﴾ اصلا خو جناح د مرغه وزر ته وايي او بيايي د انسان د اړخ او تخرگ لپاره استعاره کړ ځکه اړخ د کوځرو او وزرو پرځای وي نو د واړه څنګونه يې د وه وزرونه د استعارې په ډول ونومول

۴ - د احتراس صنعت او دا هغه صنعت دی چي يو څيز په داسي توګه راوړل او بيان شي چي د غير مقصد توهم رفع کړي لکه د الله تعالى دا وينا چي: ﴿ بَيْضَآءَ مِنْ غَيْرِ سُوٓءٍ ﴾ که يوازي بيضاء يې فرمايلې وای نو به ددې توهم کېدو چي له (برص) او برګ والي څخه ښايې سپين وي ځکه يې په ﴿ مِنْ غَيْرِ سُوٓءٍ ﴾ باندي د هغه احتراس وفرمايو.

۵ - تمثيلي استعاره چي فرمايي: ﴿ وَلِتُصْنَعَ عَلَىٰ عَيْنِىٓ ﴾ دا يو هسي تمثيل دی چي نهايت زيات حفظ او ډېره پاملرنه پکي څرګندېږي ځکه د يو څيز ساتونکی او څارونکی د ډېري مودې لپاره هغه ته ګوري نو دغه مثال يې د هغه چاغوندي راوړ چي د سترګو په وړاندي يې يو شی جوړېږي

۶ - ښکلي سجع چي کلام ته جمال او ښکلا وربښي لکه د آيتونو پای چي: ﴿ لِتَشْقَىٰٓ .... يَخْشَىٰ .... وَأَخْفَى .... تَسْعَىٰ ﴾ او نور دي.

فائده:

وايي چي هيڅ ورور د بل ورور لپاره داسي ګټه نه ده رسولې لکه چي موسی د خپل ورور هارون لپاره ورسوله له الله څخه يې وغوښتل چي د ده وزيريې وټاکي او په رسالت يې ونازوي الله يې غوښتنه ومنله او مرسل نبي يې غوره کړ.

تنبيه:

الله تعالی په موسی علیه السلام د خپنو انعاماتو یادونه وکړه او شپږیې په ګوته کړل.

١ – دهغه مورته دا الهام چي صندوق جوړاوهغه پکي کېږدي ، نیل ته یې وغورځوي چي دفرعون په کورکي ورورزل شي ﴿إِذْ أَوْحَيْنَآ إِلَىٰٓ أُمِّكَ مَا يُوحَىٰٓ أَنِ ٱقْذِفِيهِ فِى ٱلتَّابُوتِ﴾.

٢ – دمحبت اومیني اچول په هغه چي هرڅوک یې ووینې مینه به یې ورسره پیداکېږي چي فرمایي: ﴿وَأَلْقَيْتُ عَلَيْكَ مَحَبَّةً مِّنِّى﴾.

٣ – دالله ساتنه اوپاملرنه په حفظ اورعایت سره چي: ﴿وَلِتُصْنَعَ عَلَىٰ عَيْنِىٓ﴾.

٤ – خپلي مورته بیرته راستنول سره له انعامونو اوعزتونو چي فرمایي: ﴿فَرَجَعْنَٰكَ إِلَىٰٓ أُمِّكَ كَىْ تَقَرَّ عَيْنُهَا﴾.

٥ – دموسی علیه السلام ژغورنه وروسته له هغه چي قبطي یې وواژه ﴿فَنَجَّيْنَٰكَ مِنَ ٱلْغَمِّ﴾.

٦ – دالله جل جلاله ورسره مخامخ خبري کله چي له مدین څخه راستون شو او په رسالت باندي یې ونازاوه چي الله فرمایي: ﴿ثُمَّ جِئْتَ عَلَىٰ قَدَرٍ يَٰمُوسَىٰ﴾.

***

الله تعالی فرمایي:

﴿وَٱصْطَنَعْتُكَ لِنَفْسِى ﴿٤١﴾ ٱذْهَبْ أَنتَ وَأَخُوكَ بِـَٔايَٰتِى وَلَا تَنِيَا فِى ذِكْرِى ﴿٤٢﴾ ٱذْهَبَآ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ إِنَّهُۥ طَغَىٰ ﴿٤٣﴾ فَقُولَا لَهُۥ قَوْلًا لَّيِّنًا لَّعَلَّهُۥ يَتَذَكَّرُ أَوْ يَخْشَىٰ ﴿٤٤﴾ قَالَا رَبَّنَآ إِنَّنَا نَخَافُ أَن يَفْرُطَ عَلَيْنَآ أَوْ أَن يَطْغَىٰ ﴿٤٥﴾ قَالَ لَا تَخَافَآ إِنَّنِى مَعَكُمَآ أَسْمَعُ وَأَرَىٰ ﴿٤٦﴾ فَأْتِيَاهُ فَقُولَآ إِنَّا رَسُولَا رَبِّكَ فَأَرْسِلْ مَعَنَا بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ وَلَا تُعَذِّبْهُمْ قَدْ جِئْنَٰكَ بِـَٔايَةٍ مِّن رَّبِّكَ وَٱلسَّلَٰمُ عَلَىٰ مَنِ ٱتَّبَعَ ٱلْهُدَىٰٓ ﴿٤٧﴾ إِنَّا قَدْ أُوحِىَ إِلَيْنَآ أَنَّ ٱلْعَذَابَ عَلَىٰ مَن كَذَّبَ وَتَوَلَّىٰ ﴿٤٨﴾ قَالَ فَمَن رَّبُّكُمَا يَٰمُوسَىٰ ﴿٤٩﴾ قَالَ رَبُّنَا ٱلَّذِىٓ أَعْطَىٰ كُلَّ شَىْءٍ خَلْقَهُۥ ثُمَّ هَدَىٰ ﴿٥٠﴾ قَالَ فَمَا بَالُ ٱلْقُرُونِ ٱلْأُولَىٰ ﴿٥١﴾ قَالَ عِلْمُهَا عِندَ رَبِّى فِى كِتَٰبٍ لَّا يَضِلُّ رَبِّى وَلَا يَنسَى ﴿٥٢﴾ ٱلَّذِى جَعَلَ لَكُمُ ٱلْأَرْضَ مَهْدًا وَسَلَكَ لَكُمْ فِيهَا سُبُلًا وَأَنزَلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً فَأَخْرَجْنَا بِهِۦٓ أَزْوَٰجًا مِّن نَّبَاتٍ شَتَّىٰ ﴿٥٣﴾ كُلُوا۟ وَٱرْعَوْا۟ أَنْعَٰمَكُمْ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَـَٔايَٰتٍ لِّأُو۟لِى ٱلنُّهَىٰ ﴿٥٤﴾ ۞ مِنْهَا خَلَقْنَٰكُمْ وَفِيهَا نُعِيدُكُمْ وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً أُخْرَىٰ ﴿٥٥﴾ وَلَقَدْ أَرَيْنَٰهُ ءَايَٰتِنَا كُلَّهَا فَكَذَّبَ وَأَبَىٰ ﴿٥٦﴾ قَالَ أَجِئْتَنَا لِتُخْرِجَنَا مِنْ أَرْضِنَا بِسِحْرِكَ يَٰمُوسَىٰ ﴿٥٧﴾ فَلَنَأْتِيَنَّكَ بِسِحْرٍ مِّثْلِهِۦ فَٱجْعَلْ بَيْنَنَا وَبَيْنَكَ مَوْعِدًا لَّا نُخْلِفُهُۥ نَحْنُ وَلَآ أَنتَ مَكَانًا سُوًى ﴿٥٨﴾ قَالَ مَوْعِدُكُمْ يَوْمُ ٱلزِّينَةِ وَأَن يُحْشَرَ ٱلنَّاسُ ضُحًى ﴿٥٩﴾ فَتَوَلَّىٰ فِرْعَوْنُ فَجَمَعَ كَيْدَهُۥ ثُمَّ أَتَىٰ ﴿٦٠﴾ قَالَ لَهُم مُّوسَىٰ وَيْلَكُمْ لَا تَفْتَرُوا۟ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًا فَيُسْحِتَكُم بِعَذَابٍ وَقَدْ خَابَ مَنِ ٱفْتَرَىٰ ﴿٦١﴾ فَتَنَٰزَعُوٓا۟ أَمْرَهُم بَيْنَهُمْ وَأَسَرُّوا۟

ٱلنَّجْوَىٰ ﴿٦٢﴾ قَالُوٓا۟ إِنْ هَٰذَٰنِ لَسَٰحِرَٰنِ يُرِيدَانِ أَن يُخْرِجَاكُم مِّنْ أَرْضِكُم بِسِحْرِهِمَا وَيَذْهَبَا بِطَرِيقَتِكُمُ ٱلْمُثْلَىٰ ﴿٦٣﴾ فَأَجْمِعُوا۟
كَيْدَكُمْ ثُمَّ ٱئْتُوا۟ صَفًّا ۚ وَقَدْ أَفْلَحَ ٱلْيَوْمَ مَنِ ٱسْتَعْلَىٰ ﴿٦٤﴾ قَالُوا۟ يَٰمُوسَىٰٓ إِمَّآ أَن تُلْقِىَ وَإِمَّآ أَن نَّكُونَ أَوَّلَ مَنْ أَلْقَىٰ ﴿٦٥﴾
قَالَ بَلْ أَلْقُوا۟ ۖ فَإِذَا حِبَالُهُمْ وَعِصِيُّهُمْ يُخَيَّلُ إِلَيْهِ مِن سِحْرِهِمْ أَنَّهَا تَسْعَىٰ ﴿٦٦﴾ فَأَوْجَسَ فِى نَفْسِهِۦ خِيفَةً مُّوسَىٰ ﴿٦٧﴾ قُلْنَا لَا تَخَفْ
إِنَّكَ أَنتَ ٱلْأَعْلَىٰ ﴿٦٨﴾ وَأَلْقِ مَا فِى يَمِينِكَ تَلْقَفْ مَا صَنَعُوٓا۟ ۖ إِنَّمَا صَنَعُوا۟ كَيْدُ سَٰحِرٍ ۖ وَلَا يُفْلِحُ ٱلسَّاحِرُ حَيْثُ أَتَىٰ ﴿٦٩﴾ فَأُلْقِىَ
ٱلسَّحَرَةُ سُجَّدًا قَالُوٓا۟ ءَامَنَّا بِرَبِّ هَٰرُونَ وَمُوسَىٰ ﴿٧٠﴾ قَالَ ءَامَنتُمْ لَهُۥ قَبْلَ أَنْ ءَاذَنَ لَكُمْ ۖ إِنَّهُۥ لَكَبِيرُكُمُ ٱلَّذِى عَلَّمَكُمُ ٱلسِّحْرَ ۖ
فَلَأُقَطِّعَنَّ أَيْدِيَكُمْ وَأَرْجُلَكُم مِّنْ خِلَٰفٍ وَلَأُصَلِّبَنَّكُمْ فِى جُذُوعِ ٱلنَّخْلِ وَلَتَعْلَمُنَّ أَيُّنَآ أَشَدُّ عَذَابًا وَأَبْقَىٰ ﴿٧١﴾ قَالُوا۟ لَن
نُّؤْثِرَكَ عَلَىٰ مَا جَآءَنَا مِنَ ٱلْبَيِّنَٰتِ وَٱلَّذِى فَطَرَنَا ۖ فَٱقْضِ مَآ أَنتَ قَاضٍ ۖ إِنَّمَا تَقْضِى هَٰذِهِ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَآ ﴿٧٢﴾ إِنَّآ ءَامَنَّا بِرَبِّنَا
لِيَغْفِرَ لَنَا خَطَٰيَٰنَا وَمَآ أَكْرَهْتَنَا عَلَيْهِ مِنَ ٱلسِّحْرِ ۗ وَٱللَّهُ خَيْرٌ وَأَبْقَىٰٓ ﴿٧٣﴾ إِنَّهُۥ مَن يَأْتِ رَبَّهُۥ مُجْرِمًا فَإِنَّ لَهُۥ جَهَنَّمَ لَا يَمُوتُ فِيهَا
وَلَا يَحْيَىٰ ﴿٧٤﴾ وَمَن يَأْتِهِۦ مُؤْمِنًا قَدْ عَمِلَ ٱلصَّٰلِحَٰتِ فَأُو۟لَٰٓئِكَ لَهُمُ ٱلدَّرَجَٰتُ ٱلْعُلَىٰ ﴿٧٥﴾ جَنَّٰتُ عَدْنٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ
خَٰلِدِينَ فِيهَا ۚ وَذَٰلِكَ جَزَآءُ مَن تَزَكَّىٰ ﴿٧٦﴾ ﴾ طه: ٤١ - ٧٦

## مناسبت او تړاو:

کله چې الله دخپل هغه نعمت یادونه وکړه چې دموسی علیه السلام دعاېې ومنله نودلته یې دهغه غوراوی اورسالت بیان کړ اوورته یې مارښینه وکړه چې له خپله وروره سره فرعون ته لاړشه اوالله ته یې راوبوله بیایې هغه ماجراء ذکرکړه چې ددوی ترمینځ وه اوپایله یې داچې کوډګرانوایمان راوړ اوالله ته سرپه سجده پرېوتل.

## لغتونه:

(اصطنعتک) غوره اوچاڼ مې کړې ته داصطناع اصلي معنایوچاته دخیررسول دي (تنیا) له (ونی) څخه اخیستل شوی کمزوري اوسُستیاته وایې (یفرط) تلواره کوې زموږعذاب ته اوله همدې کلمې څخه (فارط) اخیستل شوی چې هغه چاته وایې ترنوروړومبی اوبوته درومي (یسحتکم) له بېخه ایستلو او اصل یې دوېښتانوپه بېخ خرېیلوته ویل کېږي، بیاپه هلاکت اوله منځه تللوکې استعمال شواو(سحت) حرام مال ته څکه وایې چې انسان په هلاکت کې غورځوي (النجوی) پټې خبرې کول (اوجس) پټ په زړه کې وېرېدلوته وایې.

## تفسیر:

﴿ وَٱصْطَنَعْتُكَ لِنَفْسِى ٱذْهَبْ أَنتَ وَأَخُوكَ بِـَٔايَٰتِى ﴾ اوجوړکړی (غوره کړی) مې یې دخپل ځان لپاره (په رسالت اووحی) لاړشه ته (ای موسی) اوستا وروړپه معجزاتوزما؟. مفسرین کرام وایې چې مراد دلته له معجزوڅخه یدبیضااوعصادي چې الله موسی علیه السلام ته ورکړي وو ﴿ وَلَا تَنِيَا فِى ذِكْرِى ﴾ اوزماپه یادکې سستي مه کوئ. ابن کثیروایې: معناداچې دالله له یاداوتسبیح څخه مه سُستېږئ بلکه دفرعون سره دمخامخ کېدوپه وخت کې الله یادوئ چې ستاسولپاره مرسته اوقوت وي اود فرعون دماتې لپاره

وسله وي(١) ﴿ اذْهَبَا إِلَىٰ فِرْعَوْنَ إِنَّهُ طَغَىٰ ﴾لاړشئ (تاسي دواړه) فرعون ته بېشکه چي دی باغي شوی دی په دعوی دالوهيت سره (اودسرغړوني وروستي حدته رسېدلی دی) ﴿ فَقُولَا لَهُ قَوْلًا لَّيِّنًا لَّعَلَّهُ يَتَذَكَّرُ أَوْ يَخْشَىٰ ﴾پس ده ته ووایاست خبر پسته ښائېږي چي دی پندواخلي ، یاووېرېږي (د الله عظمت ورپه یادشي اوله عذابه يې ووېرېږي نوبه له طغیانه راوګرزي ﴿ قَالَا رَبَّنَا إِنَّنَا نَخَافُ أَن يَفْرُطَ عَلَيْنَا أَوْ أَن يَطْغَىٰ ﴾وويل (دواړو ورونو ) موسی اوهارون) ای زموږ ربه بېشکه موږ وېرېږو چي تلوار به وکړي زموږ په عقوبت سره اویابه لانافرمان شي له موږ اوله حدڅخه به (موږ ته په بدویلوکي) تجاوزوکړي ﴿ قَالَ لَا تَخَافَا إِنَّنِي مَعَكُمَا أَسْمَعُ وَأَرَىٰ ﴾وفرمايل (الله) مه وېرېږئ تاسي دواړه بېشکه زه له تاسي سره يم ( په مرسته اوملتيا ) آورم اووينم ( دده خواب چي تاسو ته يې کړي اوهغه چي پر تاسوڅه کوي ) ﴿ فَأْتِيَاهُ فَقُولَا إِنَّا رَسُولَا رَبِّكَ ﴾پس ورشئ (تاسي دواړه) ده ته اوورته ووایاست چي بېشکه موږ ستادرب استازي يو؛ دلته د ﴿ رَبِّكَ ﴾لفظ ځانګړتيا ددې لپاره ده چي ورته وښيي هغه (فرعون) بنده دی مملوک دی اوهغه خودالوهيت دعوی کړي وه ﴿ فَأَرْسِلْ مَعَنَا بَنِي إِسْرَائِيلَ وَلَا تُعَذِّبْهُمْ ﴾نوولېږه (ای فرعونه) له موږسره بني اسرائيل اودوی مه په عذابوه (په سختيوتکاليفوسره خوشي يې کړه چي له موږسره لاړشي ﴿ قَدْ جِئْنَاكَ بِآيَةٍ مِّن رَّبِّكَ ﴾په تحقيق موږ تاته سره له معجزې ستادرب له لوري راغلي يو(چي زموږپه رښتنولي دلالت کوي) ﴿ وَالسَّلَامُ عَلَىٰ مَنِ اتَّبَعَ الْهُدَىٰ ﴾اوسلامتي ده (له عذابه په هغه چاچي دسمي صافي لاري متابعت وکړي (په الله ايمان راوړي مفسرين کرام وايي چي په دغه سلام سره تحيه مرادنه وه ځکه دغه دخطاب پيل نه وو بلکه مقصد داللهله عذابه اوغضبه سلامتيا وه ﴿ إِنَّا قَدْ أُوحِيَ إِلَيْنَا أَنَّ الْعَذَابَ عَلَىٰ مَن كَذَّبَ وَتَوَلَّىٰ ﴾بېشکه موږچي يوپه تحقيق وحی کړی شوي ته موږته چي بېشکه عذاب په هغه چادی چي تکذيب کوي (دنبيانو ) اومخ اړوي(له ايمانه) ﴿ قَالَ فَمَن رَّبُّكُمَا يَا مُوسَىٰ ﴾نو ووېل ( فرعون) پس څوک دی رب ستاسوای موسی؟ ( زه يې نه پېژنم هسي يې ونه ويل چي زمارب څوک دی ؟ داهم دزيات طغيان اوجبروت له مخي بلکه موسی اوهارون ته يې درب نسبت وکړچي ﴿ رَبُّكُمَا ﴾يې وويل ﴿ قَالَ رَبُّنَا الَّذِي أَعْطَىٰ كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهُ ثُمَّ هَدَىٰ ﴾وويل(موسی) زموږ رب هغه ذات دی چي ورکړی يې دی هرشيزته (له مخلوقاتو صورت شکل دده ، بيايې لياره هم ورښودلي ده (لپاره دمنافعواومصلحتونو دده؛ داهسي ځواب دی چي نهايت ښکلی ډول بلاغت اوبيان پکي اداء شوی دی چي ډېرلنداوګردو موجوداتوته شامل دی اوپه تحقيق سره الله سترګي ته هسي هيئت ورکړی چي دهغې له ليدلوسره موافق دي غوږونوته هسي چي له اورېدلوسره برابردی او همداسي لاس، پښې ، پوزه . ژبه

---

(١) المختصر ٢ / ٤٨٢

اونورته ول غري. زمخشري وايي چي خيراوبركت پدې څواب كه څوك يې په سوچ اوغورانصاف سره وګوري څومره لنډاوبشپړاوړل شوى دى؟ ﴿ قَالَ فَمَا بَالُ ٱلْقُرُونِ ٱلْأُولَىٰ ﴾وويل: (فرعون) پس څه حال وود پخوانيو خلګو(چي هلاک شوي دي؟ ولي راونه پاڅېدل اوحساب ، كتاب ورسره ونشو؟ كه چېري ستاخبري حق وي ابن كثيروايي: چي كله موسى عليه السلام ورته وويل چي رب مي هغه څوک دى چي دى رااستولى هغه ذات دى چي پيداكونكى ، روزي رسان اوتقديرورسره دى نوفرعون په تېروأمتونو دليل نيول پيل كړل لكه چي وايي دهغوى څه حال وو كه ستاخبره وي؟ هغوى خوستادرب عبادت نه كاوودبل چاعبادت يې كاوو([1]) ﴿ قَالَ عِلْمُهَا عِندَ رَبِّي فِي كِتَٰبٍ لَّا يَضِلُّ رَبِّي وَلَا يَنسَى ﴾وويل: (موسى) چي علم دهغوى په نزد درب زمادى په كتاب(لوح محفوظ) كي چي نه يې ورک كوي زمارب اونه يې هېروي ؛ بياموسي عليه السلام دالله په وجودباندي ددلائلوتېرولواودقدرت آثاروبيانولوپيل كوي ﴿ ٱلَّذِي جَعَلَ لَكُمُ ٱلْأَرْضَ مَهْدًا ﴾هغه الله چي ګرزولي يې ده تاسي ته ځمكه فرش ( تاسوورباندي اوسى دغه يې ستر رحمت دى) ﴿ وَسَلَكَ لَكُمْ فِيهَا سُبُلًا ﴾اورواني كړي يې دي په دې كي لاري (چي تاسوورباندي دخپلواړتياوولپاره درومئ) ﴿ وَأَنزَلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً ﴾اونازلي كړي يې دي (له لوري ) دآسمانه اوبه (خوړې) ﴿ فَأَخْرَجْنَا بِهِۦٓ أَزْوَٰجًا مِّن نَّبَاتٍ شَتَّىٰ ﴾پس راباسو موږپدې اوبو سره هرهړول له ګياووڅخه رنګ په رنګ (مختلف خوندونه شكلونه. بويونه اونوريې دلته يې له غيبت څخه تكلم ته التفات فرمايلى دى چي دالله په عظمت تنبيه راشي ﴿ كُلُوا۟ وَٱرْعَوْا۟ أَنْعَٰمَكُمْ ﴾ وخورئ تاسي اوڅروئ پكي چارپايان خپل؛ امردرواوالي اواباحت لپاره دى اودانعام څرګندول يې مقصددي ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَءَايَٰتٍ لِّأُو۟لِي ٱلنُّهَىٰ ﴾بېشكه (پدې مذكور شيانو كي) خامخا(څرګنداوښكاره) دلائل دي دپاره دخاوندانودعقل (سليم په وجود اووحدانيت د الله باندي) ﴿ مِنْهَا خَلَقْنَٰكُمْ وَفِيهَا نُعِيدُكُمْ ﴾ خاص له دې (ځمكي) څخه موږتاسي پيداكړي يى (اى خلګو! ) اوپه همدې ځمكه كي تاسونته باسو( وروسته له مرګه ترڅوخاوري شى ﴿ وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً أُخْرَىٰ ﴾ اوله دې (ځمكي) څخه راباسو تاسي بل كرت (لپاره دحساب اوبعث وروسته الله دفرعون دسرغړوني يادونه هسي فرمايې ﴿ وَلَقَدْ أَرَيْنَٰهُ ءَايَٰتِنَا كُلَّهَا فَكَذَّبَ وَأَبَىٰ ﴾اوقسم دى په تحقيق وربنودلي دي موږدغه (فرعون) ته معجزې ټولي (چي دموسى په نبوت يې دلالت كاوولكه عصا، يد، طوفان، جراد اونوري ګردي) نوتكذيب يې وكړاومنع يې راوړه (له ايمانه) يعني سره له څرګندوالي دمعجزاتودوى هغه سحروګڼلي اوله ايمان راوړلويې منع وكړه څكه چي سرغړونه اواستكباريې درلود ﴿ قَالَ أَجِئْتَنَا لِتُخْرِجَنَا مِنْ أَرْضِنَا بِسِحْرِكَ يَٰمُوسَىٰ ﴾وويل: ( فرعون) آياته موږ ته راغلى يې ددې لپاره چي موږوباسې له ځمكي زموږ(مصرنه) پخپل سحرسره اى موسى؟ ﴿ فَلَنَأْتِيَنَّكَ

---

([1]) المختصر ٢ / ٤٨٣

﴿بِسِحْرٍ مِّثْلِهِۦ﴾ پس خامخا رابه وړو هرومروتاته سحرپه شان ددې (کوډو چي خلگوته معلومه شي ته پیغمبر نه بلکه کوډګر یې ﴿فَٱجْعَلْ بَيْنَنَا وَبَيْنَكَ مَوْعِدًا﴾ پس مقررکړه په مینځ زموږ او ستاکي یوه وعده (داجتماع) ﴿لَّا نُخْلِفُهُۥ نَحْنُ وَلَآ أَنتَ مَكَانًا سُوًى﴾ چي نه به کوو مخالفت له هغه موږاو نه ته (اووي به) په یوځای هوارکي یعني وي به په معین زمان، مکان کي)([1]) ﴿قَالَ مَوْعِدُكُمْ يَوْمُ ٱلزِّينَةِ وَأَن يُحْشَرَ ٱلنَّاسُ ضُحًى﴾ وويل: (موسی) وخت دوعدې دتاسي ورځ دجشن (دتاسو) ده اوداچي راټول به کړی شي خلګ په وخت دڅاښت کي) یعني داجتماع ورځ به ددوی داخترونودکوم اختر ورځ وي مفسرین کرام وايي چي: دغه ورځ یې دمبارزې لپاره ځکه وټاکله چي دګردوخلګوپه وړاندي حق پرباطل بری ومومي اودغه خبرپه ګوټ ګوټ کي خپورشي اوچي معجزه یې خلګ دسرپه سترګووويني ﴿فَتَوَلَّىٰ فِرْعَوْنُ فَجَمَعَ كَيْدَهُۥ ثُمَّ أَتَىٰ﴾ پس مخ وګرزاووفرعون (خپلو مشرانوته) پس را ټول یې کړل (اسباب آلات) دمکر، فریب خپل بیاراغی (سره له جادوګرانواوخپلو(اتباعوموعدته) چي دالله دنورشغله ووژني. ابن عباس رضی الله عنه وايي: دوه اویاتنه ساحران ورسره وو له هریوه سره رسۍ اولکړي وې ﴿قَالَ لَهُم مُّوسَىٰ وَيْلَكُمْ لَا تَفْتَرُوا۟ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًا فَيُسْحِتَكُم بِعَذَابٍ﴾ وويل: (موسی) دغو(ساحرانو) ته (نازل کړی دی الله) پرتاسي هلاکت په الله باندي دروغ مه تړئ پس الله به تاسي په عذاب هلاک کړي ﴿وَقَدْ خَابَ مَنِ ٱفْتَرَىٰ﴾ اوپه تحقیق ناامیده (خراب) شو هرهغه څوک چي دروغ یې وتړل په الله باندي دوی ته یې لومړی نصیحت اواخطار واورول چي ښایي دصواب لوري ته رامات اوهدایت یې په برخه شي اوکله چي ساحرانوداواوریدل نوددوی په زړونوکي دموسی علیه السلام هیبت پرېوت اوهک پک حیران شول ځکه یې دده په هکله اختلاف وکړچي الله فرمايي ﴿فَتَنَٰزَعُوٓا۟ أَمْرَهُم بَيْنَهُمْ وَأَسَرُّوا۟ ٱلنَّجْوَىٰ﴾ (پس یوله بله سره جګړه وکړه دغو(ساحرانو) په کارخپل په خپلومینځونوکي اوپټ یې وساتودغه راز) یعني دوی په خپلومینځونو کي سره په شخړه شوځینوویل چي دغه خبري خودساحر(کوډګر) نه دي خوله خلګوڅخه یې دغه راز پټ کړ اوکرارکرایې په ګوښه کي مناقشه کوله یوله بل سره یې حال وايو ﴿قَالُوٓا۟ إِنْ هَٰذَٰنِ لَسَٰحِرَٰنِ يُرِيدَانِ أَن يُخْرِجَاكُم مِّنْ أَرْضِكُم بِسِحْرِهِمَا﴾ (وویل: (جادوګرانو) دادواړه خامخاساحران دي اراده لري دوی دواړه چي وباسي تاسي له خپلي ځمکي په خپل سحرددوی دواړو) یعني دوی وروسته له مناظرو اوډېرو مشورو هم دغه غوټه کړه چي دوی غواړي دمصرپه ځمکه قبضه وکړي اوتاسي وباسي ﴿وَيَذْهَبَا بِطَرِيقَتِكُمُ ٱلْمُثْلَىٰ﴾ (اوبوزي (محوه کړي) دوی دواړه دغه (لاره) د(دین) دتاسي چي ډېره غوره) ده تړتولوادیانواومذهبونو؛ زمخشري وايي چي داسي برېښي دوی په پټه کي سره مشوره وکړه اوپدې

---

([1]) دغه ابن کثیرپه خپل تفسیرکي غوره کړي اوطبري وايي چي مرادهغه هوارمکان دی چي دواړه ډلوته یې واټن مسافه یوه وي.

يې سره اتفاق شوچي دغه دوه کوډګران دي ددې لپاره يې دغه چتيات او اپلتي وويلې چي مبادا موسی اوهارون بريالي نشي اوخلک ددوی متابعت ونکړي ﴿ فَأَجْمِعُوا۟ كَيْدَكُمْ ثُمَّ ٱئْتُوا۟ صَفًّا ﴾ پس راجمع کړئ تاسي (اسباب دسحراو) مکرخپل بياراشئ( دمعارضې ميدان ته) صف صف (ترڅودکتونکوپه سترګوکي موهيبت ولوېږي ﴿ وَقَدْ أَفْلَحَ ٱلْيَوْمَ مَنِ ٱسْتَعْلَىٰ ﴾ او په تحقيق بريالی شو نن هغه څوک چي بريالی شو؛ مفسرين کرام وايې چي دوی له بريالیتوب څخه هغه څه مقصد ووکوم چي فرعون ورسره دسترونعمتونو ژمنه کړي وه چي دوی به خان ته نژدې کوي او د عزت خاوندان به جوړېږي لکه چي الله جل جلاله فرمايې ﴿ فَلَمَّا جَآءَ ٱلسَّحَرَةُ قَالُوا۟ لِفِرْعَوْنَ أَئِنَّ لَنَا لَأَجْرًا إِن كُنَّا نَحْنُ ٱلْغَٰلِبِينَ قَالَ نَعَمْ وَإِنَّكُمْ إِذًا لَّمِنَ ٱلْمُقَرَّبِينَ ﴾ الشعرا۴۱۰۴۲ ﴿ قَالُوا۟ يَٰمُوسَىٰٓ إِمَّآ أَن تُلْقِىَ وَإِمَّآ أَن نَّكُونَ أَوَّلَ مَنْ أَلْقَىٰ ﴾ وويل: (کوډګرانو) ای موسی !يابه ته غورځوې (لومړی همساخپله) اويابه شو موږ اول دهغه چاچي غورځوي (همساخپله) ده ته يې اختياروركړځکه باوريې درلودهغه به بريالي کېږي اويقين يې لاره چي په دغه ډګرکي له هغه سره هيڅوک سيالي نشي کولای ﴿ قَالَ بَلْ أَلْقُوا۟ ﴾ وويل: ( موسی) بلکه وغورځوئ تاسي ړومبی؛ ابوالسعودوايې چي دغه مقابلتًاددوی دادب په وړاندي خوراښکلی ادب دی ځکه په قطعي توګه يې دوی ته وويل: تاسويې وغورځوئ بل داچي ددوی په کوډويې پروانه کوله ترڅودوی هغه اسباب ښکاره کړي چي له دوی سره شته اوټول توان په کاروا چوئ بيابه دالله جل جلاله سلطان او قدرت معلوم شي چي پرحق باندي باطل مغلوب اووهي (۱) ﴿ فَإِذَا حِبَالُهُمْ وَعِصِيُّهُمْ يُخَيَّلُ إِلَيْهِ مِن سِحْرِهِمْ أَنَّهَا تَسْعَىٰ ﴾ پس ناڅاپه (دغه وخت) هغه پړي اوهمساګاني ددوی ددوی په خيال کي راوستی کېدې دغه (موسی ته) له وجي (دسحره ددغو(کوډګرانو) داسي چي دغه بېشکه (ماران دي) چي منډي وهي (او ځغلي) دلته په کلام کي حذف راغلی چي معناور باندي دلالت کوي يعني ويې غورځولې هغه لکړي اورسۍ نوموسی عليه السلام ګمان کاووچي دغه ماران دي اوپه کېدوځغلي آن تردې چي خني وېرېدو اولالهاند شو ﴿ فَأَوْجَسَ فِى نَفْسِهِۦ خِيفَةً مُّوسَىٰ ﴾ بيا وموندله په نفس خپل کي وېره موسی؛ او دغه وېره دبشري طبيعت له مخي وه ځکه يوډېرهولناک منظريې وليد ﴿ قُلْنَا لَا تَخَفْ إِنَّكَ أَنتَ ٱلْأَعْلَىٰ ﴾ ومو ويل: ( موسی ته) مه وېرېږه! بېشکه ته چي يې همداته ډېر غالب يې (۲) ﴿ وَأَلْقِ مَا فِى يَمِينِكَ تَلْقَفْ مَا صَنَعُوٓا۟ ﴾ اوو غورځوه هغه شی چي په ښي لاس کي دي دی چي له حلق څخه ښکته تېرکړي هغه څه چي دوی جوړکړي دي ﴿ إِنَّمَا صَنَعُوا۟ كَيْدُ سَٰحِرٍ ﴾ بېشکه هغه شی چي دوی جوړکړی دی دساحرمکردی مداريتوب دی ﴿ وَلَا يُفْلِحُ ٱلسَّاحِرُ حَيْثُ أَتَىٰ ﴾ اوبری نه مومي کوډګر هرچېرته چي راشي (ځکه دروغجن اوګمراه کونکی

---

(۱) ابوالسعود۳ / ۳۱۳

(۲) الله پاک په همدغه سخته ګړی کي وحی وکړه په دې وېناسره.

تېرايستونكى دى) ﴿ فَأُلْقِيَ ٱلسَّحَرَةُ سُجَّدًا قَالُوٓاْ ءَامَنَّا بِرَبِّ هَٰرُونَ وَمُوسَىٰ ﴾ پس (نسكور) وغورځول شول كوډګران پداسي حال كي چي سجده كونكي وو (الله رب العلمين ته نو) ويې ويل: ايمان موراوړى دى په رب دهارون او(رب د) موسى؛ ابن كثيروايي چي: كله موسى عليه السلام لكړه وغورځوله هيڅ كوم څېزيې نه پرېښود چي خوړلى يې نه وي خلګوپه ډېروسترګوورته كتل اوچي كوډګرانودغه حالت وليدنوپه علم اليقين سره وپوهېدل چي دغه كوډي نه دي دغه حقيقت دى هيڅ شک اوشبه پكي نشته نوپدې وخت كي په سجده پرېوتل معجزه ښكاره شوه دليل څرګند شواو كوډي ماتي اوباطلي شوې ابن عباس رضى الله عنه وايي چي: دورځي په پيل كي كوډګران ووا وپه پاى كي يې ښكاره شهيدان (۱) ﴿ قَالَ ءَامَنتُمْ لَهُۥ قَبْلَ أَنْ ءَاذَنَ لَكُمْ ﴾ وويل: (فرعون) چي تاسودده تصديق وكړ پخواله هغه چي زه اجازه دركړم تاسو ته (دتصديق دده) ﴿ إِنَّهُۥ لَكَبِيرُكُمُ ٱلَّذِى عَلَّمَكُمُ ٱلسِّحْرَ ﴾ بېشكه چي دى خامخاستاسي مشردى هغه چي تاسي ته يې جادو در ښودلى دى؛ نوتاسي ورسره لاس يوكړى دى چي له مانه پاچهي واخلئ. قرطبي وايي: چي فرعون دغه وينادډې لپاره وكړه چي خلګ تېرباسي ترڅو يې متابعت ونكړي اوايمان رانه وړي لكه ددوى ايمان (۲)نو يې تهديد كړل ويې ويل: ﴿ فَلَأُقَطِّعَنَّ أَيْدِيَكُمْ وَأَرْجُلَكُم مِّنْ خِلَٰفٍ ﴾ نواوس به پرې كړم زه خامخا لاسونه دتاسي اوپښې دتاسي له خلافه (ښى لاس او كيڼه پښه (ياكيڼ لاس اوښى پښه) ﴿ وَلَأُصَلِّبَنَّكُمْ فِى جُذُوعِ ٱلنَّخْلِ ﴾ اوخامخابه ځوړند كړم تاسي په تنو دخرماووكي (اووبه مووژنم په سخته وژنه سره ﴿ وَلَتَعْلَمُنَّ أَيُّنَآ أَشَدُّ عَذَابًا وَأَبْقَىٰ ﴾ (اوخامخامعلوم به كړى تاسي هرومروچي كوم يوله موږنه ډېرسخت دى له جهته دعذابه اوبقاء دهغه (زه كه موسى؟) ﴿ قَالُواْ لَن نُّؤْثِرَكَ عَلَىٰ مَا جَآءَنَا مِنَ ٱلْبَيِّنَٰتِ ﴾ وويل: (كوډګرانو) له سره به تاغوره نكړو(په هدايت اوايمان راوړلو ) په هغه چي موږته راغلي دي له ښكاره معجزوڅخه(كه څه هم پدې لاره كي هلاک شو) ﴿ وَٱلَّذِى فَطَرَنَا ﴾ اوقسم په هغه ذات چي موږيې پيداكړي يو ﴿ فَٱقْضِ مَآ أَنتَ قَاضٍ ﴾ پس وكړه ته هغه كار چي ته يې كونكى يې ﴿ إِنَّمَا تَقْضِى هَٰذِهِ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَآ ﴾ بېشكه همداخبره چي حكم به وركړې ته پدې ژوندانه د دنياكي (ستاامريوازي دلته چلېږي اوموږتل ترتله نعمتونه غوره كړي دي عكرمة وايي چي: كله دوى الله تعالى ته سجده وكړه نوخپل هستوګنځى يې په جنت كي بياوليدل ځكه يې هغه څه وويل چي ويې ويل (۳) ﴿ إِنَّآ ءَامَنَّا بِرَبِّنَا لِيَغْفِرَ لَنَا خَطَٰيَٰنَا ﴾ بېشكه موږپخپل رب ايمان راوړى دى چي موږته زموږ ګناهونه وبښي (كوم چي كفراومعاصي دي ﴿ وَمَآ أَكْرَهْتَنَا عَلَيْهِ مِنَ ٱلسِّحْرِ ﴾ اوهغه چي تامجبوره كړي يو موږپه كولود(هغه

(۱) المختصر۲/ ۴۸۲
(۲) القرطبي۱۱/ ۲۲۴
(۳) القرطبي۱۱/ ۲۲۵

شي) له سحره (چي دالله دنورشغله مره کړو) ﴿ وَٱللَّهُ خَيْرٌ وَأَبْقَىٰٓ ﴾اوالله غوره دی (له جهته دثواب ورکولو) اوډېرباقي پاتي کېدونکی دی (عذاب دده دغه دهغې خبري ځواب دی چي ویلي يې وو ﴿ إِنَّهُۥ مَن يَأْتِ رَبَّهُۥ مُجْرِمًا فَإِنَّ لَهُۥ جَهَنَّمَ ﴾(بېشکه شان دادی هرڅوک چي راشي رب خپل ته کافرپس بېشکه شته د ده ته جهنم دوزخ) دغه دساحرانودوینا بشپړونکي (تتمه) ده چي فرعون ته يې دنصيحت په توګه ویل ﴿ لَا يَمُوتُ فِيهَا وَلَا يَحْيَىٰ ﴾چي نه به مري په دې دوزخ کي (چي هوساشي) اونه به ژوند کوي دژوندپه څېرژوندخوندور اوآرام ﴿ وَمَن يَأْتِهِۦ مُؤْمِنًا قَدْ عَمِلَ ٱلصَّٰلِحَٰتِ ﴾اوهرڅوک چي راشي دغه (الله) ته (په قيامت کي) پدې حال کي چي مؤمن وي چي په تحقيق کړي يې وي ښه عملونه (په دنيا کي اوله بدواعمالويې ځان ژغورلی وي) ﴿ فَأُوْلَٰٓئِكَ لَهُمُ ٱلدَّرَجَٰتُ ٱلْعُلَىٰ ﴾پس دغه مؤمنان چي دي شته دوی ته درجې ډېري اوچتي (په نزد دالله) ﴿ جَنَّٰتُ عَدْنٍ ﴾(چي هغه مرتبې) جنتونه دي د(تل) هستوګنې يعني دغه اوچتي درجې اوښغمه پاکيزه داوسېدلو ځايونه دتل هستوګني جنتونه دي ﴿ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَا ۚ ﴾چي بهېږي (له لاندي دمانيواو ونو) ددوی ويالې (څلورډوله چي دشرابو، شاتو، شيدو اواوبوبه وي) همېشه به وي په دغوجنتونو کي (هيڅکله به ځني ايستل کېږي نه) ﴿ وَذَٰلِكَ جَزَآءُ مَن تَزَكَّىٰ ﴾اودغه (درجې اوجنتونه ثوابونه) جزاء دهغه چادي چي ځان يې پاک کړی وي (له ګناهونو او کفرڅخه . په حديث شريف کي راغلي چي جنت سل درجې لري په مينځ دهردوو درجوکي لکه دآسمان او ځمکي غوندي مسافه ده فردوس ترټولو غوره دی کله چي تاسوله الله څخه د(جنت) غوښتنه کوئ نوفردوس ځني غواړئ(١)

بلاغت:

پدې آيتونوکي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته دادي

١-استعاره چي فرمايي ﴿ وَٱصْطَنَعْتُكَ لِنَفْسِى ﴾دلته يې هغه دنزدېکت اوغوراوي بخششونه دهغه چاله حال سره مشابه کړي څوک چي پاچايې دعزت اوکرامت ورکړني څخه په هغه کي همداسي ستايلي صفتونه خوښونه وي نوهله يې پاچادځان لپاره غوره کړي اوخپل ستراُموراوچاري وروسپاري د(اصطنع) کلمه يې ددې لپاره استعاره راوړه اوپدې کي تبعيه استعاره ده.

٢-لطيفه مقابله چي فرمايي: ﴿ مِنْهَا خَلَقْنَٰكُمْ وَفِيهَا نُعِيدُكُمْ ﴾چي دلته يې (منها) او(فيها) مقابله کړې همداسي يې (خلق) او(اعاده) هم مقابله ده اودغه له بديعي محسناتو څخه ګڼل کېږي.

---

(١) رواه احمد والترمذي

٣ - ایجاز بالحذف چي فرمايي: ﴿بَلْ أَلْقُوا فَإِذَا حِبَالُهُمْ﴾ دلته يې (فألقوا) حذف کړه ځکه معنا وربانديٖ دلالت کوي او همداسي ﴿فَأُلْقِيَ السَّحَرَةُ سُجَّدًا﴾ وروسته له هغه چي ويې فرمايل: ﴿وَأَلْقِ مَا فِي يَمِينِكَ﴾ چي دلته اوږد کلام حذف شوی چي هغه دادی: موسی علیه السلام لکړه وغورځوله نو دکوډګرانو هرڅه يې ترستوني تېر کړل نو بيا کوډګران په سجده پرېوتل او دلته يې چي حذف ښه اېسي وجه يې داده چي معنا ور باندي دلالت کوي او دغه ته ایجاز بالحذف وايي.

۴ - د طباق صنعت لکه ﴿يَمُوتُ...... يَحْيَىٰ﴾ او ﴿نُعِيدُكُمْ...... نُخْرِجُكُمْ﴾.

۵ - د مقابلي صنعت لکه د ﴿مَن يَأْتِ رَبَّهُ مُجْرِمًا﴾ او د ﴿وَمَن يَأْتِهِ مُؤْمِنًا قَدْ عَمِلَ الصَّالِحَاتِ﴾ ترمينځ او د مقابلې پېژند ګلوي داده چي دوې معناګاني او يا زياتي راوړل شي بيا يې په مقابله کي نوري راوړي دغه مقابله ګڼل کېږي.

۶ - ښکلي سجع چي له ځانه جوړه شي (متکلفه) نه وي لکه ﴿ضُحًى.... افْتَرَىٰ.... يَحْيَىٰ.... تَزَكَّىٰ﴾ او نور.

۷ - مؤکدات لکه چي الله تعالی فرمايي: ﴿إِنَّكَ أَنتَ الْأَعْلَىٰ﴾ دغه خبريې په څو تاکيداتو سره ټينګ کړی لکه ﴿إِنَّ﴾ چي تاکيد افاده کوي د ضمير تکرار چي ﴿أَنتَ﴾ او د خبر تعريف چي ﴿الْأَعْلَىٰ﴾ همدا راز د (علو) لفظ چي پر غلبه باندي دلالت کوي د تفضيل صيغه لکه د (الاعلی) د قرآنکريم ښکلاوي بې اندازې دي دا څومره بليغ او په زړه پوري بيان دی او دغه ګرد د علم معاني له خصائصو ګڼل کېږي

تنبيه:

په آيتونو کي د هغه څه يادونه نده شوي چي فرعون په ساحرانو باندي اجراء او ترسره هم کړل کوم چي تهديديې ورکړی وو خو مفسرين کرام وليکلي چي فرعون د دوی لاسونه او پښې غوڅي کړې او بيايې په دار کړل دوی په ايمان ووژل شول ځکه نو ابن عباس رضی الله عنه وايي چي هغوی د ورځي په پيل کي کوډګران او په پای کي بيانېکان ابرار شهيدان شول.

***

الله تعالی فرمايي:

﴿وَلَقَدْ أَوْحَيْنَا إِلَىٰ مُوسَىٰ أَنْ أَسْرِ بِعِبَادِي فَاضْرِبْ لَهُمْ طَرِيقًا فِي الْبَحْرِ يَبَسًا لَّا تَخَافُ دَرَكًا وَلَا تَخْشَىٰ (٧٧) فَأَتْبَعَهُمْ فِرْعَوْنُ بِجُنُودِهِ فَغَشِيَهُم مِّنَ الْيَمِّ مَا غَشِيَهُمْ (٧٨) وَأَضَلَّ فِرْعَوْنُ قَوْمَهُ وَمَا هَدَىٰ (٧٩) يَا بَنِي إِسْرَائِيلَ قَدْ أَنجَيْنَاكُم مِّنْ عَدُوِّكُمْ وَوَاعَدْنَاكُمْ جَانِبَ الطُّورِ الْأَيْمَنَ وَنَزَّلْنَا عَلَيْكُمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوَىٰ (٨٠) كُلُوا مِن طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ وَلَا تَطْغَوْا فِيهِ فَيَحِلَّ عَلَيْكُمْ غَضَبِي وَمَن يَحْلِلْ عَلَيْهِ غَضَبِي فَقَدْ هَوَىٰ (٨١) وَإِنِّي لَغَفَّارٌ لِّمَن تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا ثُمَّ اهْتَدَىٰ (٨٢) ۞ وَمَا أَعْجَلَكَ عَن قَوْمِكَ يَا مُوسَىٰ (٨٣) قَالَ هُمْ أُولَاءِ عَلَىٰ أَثَرِي وَعَجِلْتُ إِلَيْكَ رَبِّ لِتَرْضَىٰ (٨٤) قَالَ فَإِنَّا قَدْ فَتَنَّا قَوْمَكَ مِن بَعْدِكَ وَأَضَلَّهُمُ السَّامِرِيُّ (٨٥) فَرَجَعَ مُوسَىٰ إِلَىٰ قَوْمِهِ غَضْبَانَ أَسِفًا قَالَ يَا قَوْمِ أَلَمْ يَعِدْكُمْ رَبُّكُمْ وَعْدًا

حَسَنًا أَفَطَالَ عَلَيْكُمُ الْعَهْدُ أَمْ أَرَدتُّمْ أَن يَحِلَّ عَلَيْكُمْ غَضَبٌ مِّن رَّبِّكُمْ فَأَخْلَفْتُم مَّوْعِدِي ﴿٨٦﴾ قَالُوا مَا أَخْلَفْنَا مَوْعِدَكَ بِمَلْكِنَا وَلَٰكِنَّا حُمِّلْنَا أَوْزَارًا مِّن زِينَةِ الْقَوْمِ فَقَذَفْنَاهَا فَكَذَٰلِكَ أَلْقَى السَّامِرِيُّ ﴿٨٧﴾ فَأَخْرَجَ لَهُمْ عِجْلًا جَسَدًا لَّهُ خُوَارٌ فَقَالُوا هَٰذَا إِلَٰهُكُمْ وَإِلَٰهُ مُوسَىٰ فَنَسِيَ ﴿٨٨﴾ أَفَلَا يَرَوْنَ أَلَّا يَرْجِعُ إِلَيْهِمْ قَوْلًا وَلَا يَمْلِكُ لَهُمْ ضَرًّا وَلَا نَفْعًا ﴿٨٩﴾ وَلَقَدْ قَالَ لَهُمْ هَارُونُ مِن قَبْلُ يَا قَوْمِ إِنَّمَا فُتِنتُم بِهِ وَإِنَّ رَبَّكُمُ الرَّحْمَٰنُ فَاتَّبِعُونِي وَأَطِيعُوا أَمْرِي ﴿٩٠﴾ قَالُوا لَن نَّبْرَحَ عَلَيْهِ عَاكِفِينَ حَتَّىٰ يَرْجِعَ إِلَيْنَا مُوسَىٰ ﴿٩١﴾ قَالَ يَا هَارُونُ مَا مَنَعَكَ إِذْ رَأَيْتَهُمْ ضَلُّوا ﴿٩٢﴾ أَلَّا تَتَّبِعَنِ أَفَعَصَيْتَ أَمْرِي ﴿٩٣﴾ قَالَ يَبْنَؤُمَّ لَا تَأْخُذْ بِلِحْيَتِي وَلَا بِرَأْسِي إِنِّي خَشِيتُ أَن تَقُولَ فَرَّقْتَ بَيْنَ بَنِي إِسْرَائِيلَ وَلَمْ تَرْقُبْ قَوْلِي ﴿٩٤﴾ قَالَ فَمَا خَطْبُكَ يَا سَامِرِيُّ ﴿٩٥﴾ قَالَ بَصُرْتُ بِمَا لَمْ يَبْصُرُوا بِهِ فَقَبَضْتُ قَبْضَةً مِّنْ أَثَرِ الرَّسُولِ فَنَبَذْتُهَا وَكَذَٰلِكَ سَوَّلَتْ لِي نَفْسِي ﴿٩٦﴾ قَالَ فَاذْهَبْ فَإِنَّ لَكَ فِي الْحَيَاةِ أَن تَقُولَ لَا مِسَاسَ وَإِنَّ لَكَ مَوْعِدًا لَّن تُخْلَفَهُ وَانظُرْ إِلَىٰ إِلَٰهِكَ الَّذِي ظَلْتَ عَلَيْهِ عَاكِفًا لَّنُحَرِّقَنَّهُ ثُمَّ لَنَنسِفَنَّهُ فِي الْيَمِّ نَسْفًا ﴿٩٧﴾ إِنَّمَا إِلَٰهُكُمُ اللَّهُ الَّذِي لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ وَسِعَ كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا ﴿٩٨﴾ طه: ٧٧ - ٩٨

## مناسبت اوتړاو:

لاتراوسه آيتونه دموسى عليه السلام اوفرعون کيسه بيانوي اودلته آيتونه دې پلوته اشاره کوي چي څرنګه الله موسى عليه السلام اوقوم ته يې پاملرنه وکړه دوی يې وژغورل اودښمن يې هلاک کړدوی ته دخپلو سترواولويوغټوانعامونوذکرکول ورپه يادوي اوداچي دوی ته يې وصيت کړی چي دالله شکرپر ځای کړي اوله دې څخه يې ووېرول چي دالله دغضب څخه دي خپل ځان وژغوري کفردي نه کوي بيايې ددوی هغه انحطاط وښودکله چي يې د(خوسي) ګلګي عبادت پيل کړاودلته يې دتېروآيتونوتفصيلي خبري راونغښتلي.

## لغتونه:

(درکا) نژدې کېدل (تطغوا) طغيان اوله حدڅخه تجاوزته وايي (هوى) دجهنم کندي ته ولوېدوپه اصل کي (هوى) له لوړڅخه خوړته رالوېدلوته وايي اودلته مراددوزخ ښخ (هاوية) دی( بملکنا) زموږ په توان اوقدرت کي اومقصدځني هغه چاره چي موږيې له خپله لوري په واک کي لروله خپله لوري (أوزارًا) درانه ، ګناه ته ځکه (وزر) وايي چي کله په انسان بارشي نوهغه درنوي (خوار) دغوايي رمباړي (يابن أم) ای زمادموري زويه دغه لفظ دمقابل لوري مهرباني ته را اړول دي (سولت) ښايسته اوښکلي کړه.

## تفسير:

﴿وَلَقَدْ أَوْحَيْنَا إِلَىٰ مُوسَىٰ أَنْ أَسْرِ بِعِبَادِي﴾ اوخامخاپه تحقيق موږموسى ته داسي وحی کړي وه چي دشپې (له مصره) وباسه بندګان زما ) کله چي فرعون پخپل طغيان کي غوپه وو ﴿فَاضْرِبْ لَهُمْ طَرِيقًا فِي الْبَحْرِ يَبَسًا﴾ پس جوړکړه دوی ته ( په وهلودهمساخپلي ) وچه لاره په درياب کي (چي ورباندي درومی)

﴿ لَّا تَخَٰفُ دَرَكًا وَلَا تَخۡشَىٰ ﴾نه به وېرېږې ته په تعقيب (دنيولوله فرعون څخه) اونه به وېرېږې له ډوبېدلو(په بحركي) ﴿ فَأَتۡبَعَهُمۡ فِرۡعَوۡنُ بِجُنُودِهِۦ فَغَشِيَهُم مِّنَ ٱلۡيَمِّ مَا غَشِيَهُمۡ ﴾(پس راغی ورپسې فرعون سره له لښكروده پس لاندي كړل دوی له سيندڅخه هغه څېزچي لاندي يې كړل ) يعني فرعون سره له خپلولښكروپسي راورسېدواوهغه هيبت اودهشت ورباندي وغوړېدوچي له الله پرته بل چاته يې حقيقت څرګندنه وودغه تعبيرهمدا تهويل اوهيبت افاده كوي ﴿ وَأَضَلَّ فِرۡعَوۡنُ قَوۡمَهُۥ وَمَا هَدَىٰ ﴾اوفرعون خپل قوم ګمراه كړاو( ورته يې ) ونه ښووده سمه لاره (دنجات اونېكمرغي پدې كي په فرعون باندي تهكم دی چي هغه به ويل: ﴿ وَمَآ أَهۡدِيكُمۡ إِلَّا سَبِيلَ ٱلرَّشَادِ ﴾ غافر٢٩ ﴿ يَٰبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ قَدۡ أَنجَيۡنَٰكُم مِّنۡ عَدُوِّكُمۡ ﴾ (وفرمايل الله) چي ای بني اسرائيلو په تحقيق موږتاسي ته نجات دركړستاسي له دښمنه) دغه خطاب بني اسرائيلوته هغه وخت دی كله چي له سيندڅخه روغ رمټ رابهرشول اوفرعون سره له لښكروپكي ډوب شواومعنايې داچي ای بني اسرائيلوزماهغه سترنعمت درپه يادكړئ كله چي د فرعون اودهغه له سخت عذاب څخه مو نجات دركړ﴿ وَوَٰعَدۡنَٰكُمۡ جَانِبَ ٱلطُّورِ ٱلۡأَيۡمَنَ ﴾اوموږله تاسي سره وعده كړي ده ( په واسطه دموسی) جانب دطورچي ښی جانب دی (دمناجات له موسی سره اوورباندي تورات نازلول ؛ اوداچي وعده يې دوی ته نسبت وكړداپدې چي ګټه اومنفعت يې دوی ته راجع دی او دتورات په نزول كي ددوی دُنيوي اواُخروي نېكمرغي نغښتي ده﴿ وَنَزَّلۡنَا عَلَيۡكُمُ ٱلۡمَنَّ وَٱلسَّلۡوَىٰ ﴾او موږ پرتاسونازل كړل (ترنجبين) من اوسلوی ( وريت شوي مره څان) يعني كله چي تاسودتيه په دښته بيدياكي لالهاندوی موږدرباندي (من) چي لكه شات دغسي څېزدی نازل كړاوبل مو(سلوی) درته راواستاووچي ترګردومرغانويې خوږې غوښي درلودې اودغه زموږله لوري پرتاسواحسان ووپه دغه ترتيب كي ښځي زياته ښكلاترسترګوكېږي څكه لومړی يې دنجات اوژغورني نعمت وروښود ورپسې دېني نعمت اوبيا دنيوي نعمتونه ﴿ كُلُواْ مِن طَيِّبَٰتِ مَا رَزَقۡنَٰكُمۡ ﴾خورئ تاسي له پاكېزه شيانو چي موږتاسي ته روزي در كړي ده﴿ وَلَا تَطۡغَوۡاْ فِيهِ فَيَحِلَّ عَلَيۡكُمۡ غَضَبِيۖ ﴾اوتجاوزمه كوئ (په پراخي اوعافيت كي ) پس راكوز به شي پرتاسوزماغضب﴿ وَمَن يَحۡلِلۡ عَلَيۡهِ غَضَبِي فَقَدۡ هَوَىٰ ﴾اوهرڅوک چي لازم راكوزشي ورباندي زما غضب نوپه تحقيق سخت وغورځېدو(په هاويه كي هلاک اوبدمرغه شو ) ﴿ وَإِنِّي لَغَفَّارٞ لِّمَن تَابَ وَءَامَنَ وَعَمِلَ صَٰلِحٗا ثُمَّ ٱهۡتَدَىٰ ﴾اوخامخازه هرومرو ښه مغفرت كونكی يم هغه چاته چي توبه يې وايسته (له شركه) اوايمان يې راووړاونېک عملونه يې ترسره كړل بيا(مستقيم اوثابت) پاتي شوپه هدايت (او ايمان) په آيت كي دهغه چالپاره چي په عصيان كي لوېدلی وي د راوتلوترغيب دی اوداچي هغه دي ناهيلی نشي﴿ وَمَآ أَعۡجَلَكَ عَن قَوۡمِكَ يَٰمُوسَىٰ ﴾ اوڅه شي را ګړندی كړې ته ای موسی له قومه خپله؛ زمخشري وايي چي: موسی عليه السلام له نقيبانوسره وعده كړې وه چي كوه طورته به څي بيا هغه

رومبی دالله دکلام داورېدولو په شوق دطورغره ته ورسېدو (١) ﴿ قَالَ هُمْ أُولَآءِ عَلَىٰٓ أَثَرِى وَعَجِلْتُ إِلَيْكَ رَبِّ لِتَرْضَىٰ ﴾ وويل: (موسی) دوی دغه دي (راروان دي) راپسې له ماوروسته (ډېرنژدې) اوما جلتي وکړه تاته (په راتلوکي) ای زمارېه ددې لپاره چي ته راڅخه خوښ شې موسی علیه السلام لومړی معذرت وړاندي کړاوبیاېې سبب بیان کړچي هغه ترقوم دمخه ځکه راغی چي ستادمناجات اشتیاق یې درلود اوچي ته خني خوښ شې ﴿ قَالَ فَإِنَّا قَدْ فَتَنَّا قَوْمَكَ مِنۢ بَعْدِكَ ﴾ وفرمایل (الله) پس بېشکه موږچي یوپه تحقیق وموازموېوقوم ستا وروسته (له راتلو) ستایعنی هغوی مودخوسکي (کلګي) په عبادت کولوامتحان کړل ﴿ وَأَضَلَّهُمُ ٱلسَّامِرِيُّ ﴾ اوسامري دوي ګمراه کړل ، داسي چي سامري کوډګر یومنافق اودهغې ډلي خلګوڅخه وو چي دغوایانوعبادت یې کاوو ،دوی ته یې سخوندرکی جوړکړ. مفسرین کرام وایې چي موسی علیه السلام دالله مناجات ته راتونوېې هارون علیه السلام خپل ورور بني اسرائیلوته خلیفه وټاکو او دا ماربینه یې ورته وکړه چي دالله طاعت اوعبادت ته دي وهڅوي اودموسی علیه السلام دغیاب څخه په ګټه اخیستلوسامري زېورات (ګاڼې) راغونډي کړې اوخوسی یې خني جوړکړ دوی یې دهغه عبادت ته راوبلل اودوی هم دغسي وکړل اوداهغه ابتلاء وه چي دموسی له وتلو شل ورځي وروسته ورکړل شوه ﴿ فَرَجَعَ مُوسَىٰٓ إِلَىٰ قَوْمِهِۦ غَضْبَٰنَ أَسِفًا ﴾ (او پس راوګرزېدوموسی خپل قوم ته ډېرغضبناک خوراغمجن ) یعني موسی علیه السلام له طورڅخه وروسته له هغه چي څلوېښت ورځي یې بشپړي کړې او تورات راوړپه داسي حال کي چي سخت خواشیني اوغمجن پدې ووچي ولي یې قوم د(ګلګي) عبادت پیل کړی راستون شو ﴿ قَالَ يَٰقَوْمِ أَلَمْ يَعِدْكُمْ رَبُّكُمْ وَعْدًا حَسَنًا ﴾ وویل (موسی) ای زماقومه آیاوعده نه وه کړي له تاسي سره رب ستاسي وعده نېکه وعده (چي تورات درکوي هغه چي به پکي نوراوهدایت وي استفهام دتوبیخ لپاره دی ﴿ أَفَطَالَ عَلَيْكُمُ ٱلْعَهْدُ أَمْ أَرَدتُّمْ أَن يَحِلَّ عَلَيْكُمْ غَضَبٌ مِّن رَّبِّكُمْ فَأَخْلَفْتُم مَّوْعِدِى ﴾ آیاپس اوږده شوه پرتاسي زمانه (چي وعده موهېره کړه) اوکه اراده کړي وه تاسوچي لازم راکوزشي په تاسي غضب قهرله جانبه درب ستاسي پس خلافه کړه تاسي زماوعده؟ ابوحیان وایې چي دوی له موسی علیه السلام سره وعده کړي وه چي دالله ددین اودموسی دسنت پیروي به کوي اوهیڅکله به دالله دامرمخالفت نه کوي خوله دې څخه یې څرګندمخالفت دسخوندرپه عبادت کولوپیل کړ (٢) ﴿ قَالُوا۟ مَآ أَخْلَفْنَا مَوْعِدَكَ بِمَلْكِنَا ﴾ وویل (بني اسرائیلو) چي نه مودی کړی خلاف دوعدې ستاپخپل اختیار سره (بلکه موږدبل چاپه تحریک اولمسون داسي کړي دي (لېکن) موږبارکړی شوي یوپه پېټو له ګاڼو اوکالیودقوم د( قبطیانو ) پس وموغورځولي هغه ګاڼې (په اورکي (دسامري په حکم) مجاهد وایې چي داهغه ګاڼې وې چي دفرعون له

(١) الکشاف ٣ / ٨٩

(٢) البحر ٦ / ٣٢٨

آل څخه یې په خواست (استعاره) اخیستي وې ﴿ وَلَٰكِنَّا حُمِّلْنَآ أَوْزَارًا مِّن زِينَةِ ٱلْقَوْمِ فَقَذَفْنَٰهَا ﴾ ولیکن موږ بار کړی شوي یو په پېټوله ګانو او کالیو د قوم (د قبطیانو) پس وموغورځولې هغه ګانې (په اور کي د سامري په حکم) ﴿ فَكَذَٰلِكَ أَلْقَى ٱلسَّامِرِيُّ ﴾ او همداسې وغورځولې ګانې (په اور کي) سامري چي کومي له ده سره د قوم ګانې وې. مفسرین کرام وایي چي بني اسرائیلو له قبطیانو څخه په استعاره ګانې غوښتي وې پخوا له دې چي له مصر څخه ووزي بیا کله چي موسی علیه السلام په په راستنېدلو کي وځنډېدو نو سامري دوی ته وویل: چي موسی له دې کبله وځنډېدو چي له تاسو سره ګانې دي نو دوی راغونډې کړې او سامري ته یې وسپارلې هغه په اور کي وغورځولې او ګلګی (سخوندر) یې څني ورته جوړ کړ او بیا یې د جبریل (علیه السلام) د آس د پښو یو موټی خاوره ورباندي وغورځوله نو هغه به رمباړي وهلې(١) او همدغه د الله وېناده چي فرمایي: ﴿ فَأَخْرَجَ لَهُمْ عِجْلًا جَسَدًا لَّهُۥ خُوَارٌ ﴾ نو راوایوست دوی ته له دغه خندق (څخه سامري) یو خسی چي جسد وو چي ووده ته غږ د خسي(٢) (سا پکي نه وه) ﴿ فَقَالُوا۟ هَٰذَآ إِلَٰهُكُمْ وَإِلَٰهُ مُوسَىٰ فَنَسِىَ ﴾ نو وویل: (سامري او تابعانو یې) دغه د تاسي خدای دی او د موسی خدای دی پس هېر کړی دی ده (خپل خدای د لته او طور ته یې په لټه پسې تللی دی. قتاده وایي: معنا یې داده چي موسی خپل خدای همد لته له تاسو سره هېر کړی نو دوی یې عبادت پیل کړی الله جل جلاله د دوی د دغه سخیف عقل تردید هسي کوي فرمایي: ﴿ أَفَلَا يَرَوْنَ أَلَّا يَرْجِعُ إِلَيْهِمْ قَوْلًا وَلَا يَمْلِكُ لَهُمْ ضَرًّا وَلَا نَفْعًا ﴾ آیا نه ګوري دوی بېشکه شان دادی چي بیرته نه ګرزوي دوی ته خبره او نه دوی ته مالک دی د ضرر دفع کولو یا ګټي راوړلو استفهام د لته د توبیخ او ترټني لپاره دی ﴿ وَلَقَدْ قَالَ لَهُمْ هَٰرُونُ مِن قَبْلُ يَٰقَوْمِ إِنَّمَا فُتِنتُم بِهِۦ ﴾ او خامخا په تحقیق وویل: دوی ته هارون پخوا (له راتلو د موسی نه د نصیحت په توګه) ای زما قومه بېشکه همدا خبره ده چي ازمویلي شوي یاست تاسي په (عبادت د) خوسي ﴿ وَإِنَّ رَبَّكُمُ ٱلرَّحْمَٰنُ فَٱتَّبِعُونِى وَأَطِيعُوٓا۟ أَمْرِى ﴾ او بېشکه رب ستاسي هم دارحمن دی نه (بل څوک) نو متابعت وکړئ څما او اطاعت وکړئ زما د حکم (چي د ګلګي عبادت مه کوئ) ﴿ قَالُوا۟ لَن نَّبْرَحَ عَلَيْهِ عَٰكِفِينَ حَتَّىٰ يَرْجِعَ إِلَيْنَا مُوسَىٰ ﴾ وویل: (بني اسرائیلو) چي همېشه به او سو په (عبادت د) خسي محکم ولاړ تر هغه پوري چي موسی موږ ته بیرته راشي (له کوه طوره بیابه وګورو)(٣) ﴿ قَالَ يَٰهَٰرُونُ مَا مَنَعَكَ إِذْ رَأَيْتَهُمْ ضَلُّوٓا۟ أَلَّا تَتَّبِعَنِ ﴾ وویل: موسی (پس له

---

(١) دغه د ابن عباس، قتاده او مجاهد وېناده کذافی الطبري ١٦/٢٠٠

(٢) امام رازي وایي چي څیني خلګ وایي هغه ژوندی وو او غږیې کاوو او څابیا ویلي چي ژوندی خونه وو مګر داسې سوری یې پکي جوړ کړی وو چي د باد او هوا په چلېدو به یې غږ کاوو.

(٣) سید قطب رحمه الله وایي چي: بني اسرائیلو د سرو زرو سخوندر ته کتل او هغه پروردګار یې هېر کړ کوم چي دوی یې له ذلت او خواری څخه ژغورلي وو دوی په سرو زرو باندي په بې فکري او ناپوهي راټول شول او ویل یې ﴿ هَٰذَآ إِلَٰهُكُمْ وَإِلَٰهُ مُوسَىٰ فَنَسِىَ ﴾ دغه ستاسو او د موسی اله دی هغه یې په غره کي لټوي د الله د موندلو لاره یې ورکه کړې ده او داهسي خبره ده چي دوی خپل پیغمبر په ناپوهي تورن کړ چي نه دی لاره موندلای شي او نه الله لاره ورته ښیي او دغه سخوندر ژوندی نه وو چي د دوی

راتګه د طور د غره نه) ای هارونه څه شي منع کړی وې ته کله چې تا ولیدل چې دوی ګمراهان شول له دې چې زما متابعت دې ونکړ (په جهاد سره) په کلام کې حذف راغلی هغه دا چې کله موسی علیه السلام د طور له غره نه راستون شو دوی یې ولیدل چې د سخوندر عبادت کوي نو له سخته قهره او غصې یې هارون علیه السلام د سر د وېښتو څخه ونیوا و ځان ته یې راکاږل ورته یې داسې ویل چې: ای هارونه! کله چې دې ولیدل دوی کافران شول نو څرنګه دې زما متابعت ونکړ چې دوی ته زجرور کړې او د غه ګمراهي ته بدو وایې ﴿ أَفَعَصَيْتَ أَمْرِى ﴾ آیا پس نافرماني وکړه تا زما له حکمه؟ زما وصیت او امر دې پرېښود؟

مفسرین کرام وایې چې دده امر هغه وصیت وو چې الله ترې حکایت کوي چې ﴿ وَقَالَ مُوسَىٰ لِأَخِيهِ هَـٰرُونَ ٱخْلُفْنِى فِى قَوْمِى وَأَصْلِحْ وَلَا تَتَّبِعْ سَبِيلَ ٱلْمُفْسِدِينَ ﴾ ﴿ قَالَ يَبْنَؤُمَّ لَا تَأْخُذْ بِلِحْيَتِى وَلَا بِرَأْسِىٓ ﴾ وویل: (هارون) ای زما د مور زویه مه نیسه ږیره زما او نه (وېښتان د) سر زما؛ ابن عباس رضی الله عنه وایې چې د هارون (علیه السلام) د سر وېښتان یې په ښي لاس او ږیره یې په کیڼ لاس له ډېرې خواشینی او قهر څخه نیولي وو او دا هغه غضب او قهر وو چې د الله جل جلاله په باب یې هغه په سرا خیستی وو ﴿ إِنِّى خَشِيتُ أَن تَقُولَ فَرَّقْتَ بَيْنَ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ﴾ (بېشکه زه ووېرېدم له دې نه چې و به وایې ته (راته) چې بېلتون دې وا چاوه په مینځ د بني اسرائیلو کې) یعني زه پدې وېرېدلم که چېرې دوی په زور او جبر سره رامنع کړم نو ته به وایې د دوی تر مینځ د جګړې اور تا بل کړی دی ﴿ وَلَمْ تَرْقُبْ قَوْلِى ﴾ او ودې نه کتل زما خبرې ته) یعني زما تر راتګه دې انتظار ونکړ څکه ما وګڼله چې ستا تر راتلو څه ونکړم او ته پخپله یې چاره وکړې. ابن عباس رضی الله عنه وایې چې هارون علیه السلام د موسی علیه السلام منونکی وو ﴿ قَالَ فَمَا خَطْبُكَ يَـٰسَـٰمِرِىُّ ﴾ وویل: (موسی) پس څه وو ستا کار ای سامري؟ (یعني څه شېز داسې کولو ته وهڅولې؟) ﴿ قَالَ بَصُرْتُ بِمَا لَمْ يَبْصُرُوا۟ بِهِۦ ﴾ (وویل (سامري) چې نظر غور څولی وو ما په هغه شي باندې چې نظر نه وو غور څولی دوی په هغه شي باندې) یعني ما ولید چې جبریل (علیه السلام) تا ته د حیات (ژوند) په آس سپور راغی زما په زړه کې راو ګرځېدو چې د دغه آس د پښو یو موټی خاوره واخلم بیا چې مې په هر شي وا چوله هغه به ژوندی شي ﴿ فَقَبَضْتُ قَبْضَةً مِّنْ أَثَرِ ٱلرَّسُولِ فَنَبَذْتُهَا ﴾ پس واخیستله ما یو موټی (خاوره) له قدمه (د آس د) رسول (جبریل) پس ومې غورځوله (دا خاوره) په (خولې د دې) خسي کې (او هغه په غرېدو شو) ﴿ وَكَذَٰلِكَ سَوَّلَتْ لِى نَفْسِى ﴾ او همداسې ښایسته کړی ما ته (دا کار نفس زما) ﴿ قَالَ فَٱذْهَبْ فَإِنَّ لَكَ فِى ٱلْحَيَوٰةِ أَن تَقُولَ لَا مِسَاسَ ﴾ وویل: (موسی) پس څه (له مورلیرې شه) پس بېشکه شته تا ته په دغه ژوندون کې دا (جزاء) چې و به وایې (هر چا ته چې وېې ویني) چې مه لګېږه (په ما) یعني ستا عقوبت په دنیا کې دا دی چې نه به بل څوک لاس

---

غږ وا وري بلکه ترحیوانیت لا هم په ښکته پوړه کې وو هارون علیه السلام خو ورته نصیحت وکړ مګر دوی لکه غوږ، لوښی نصیحت ور باندې اثر نه کاوو، غاړه یې ترې غړوله

درورې اونه به ته چاته لاس وروړې او په آخرت کې ﴿ وَإِنَّ لَكَ مَوْعِدًا لَّن تُخْلَفَهُۥ ﴾ اوبېشکه شته تاته (په آخرت کې) وعده (دعذاب) چې له سره به خلاف ونکړی شي له تاسره له هغې وعدې څخه ﴿ وَٱنظُرْ إِلَىٰٓ إِلَٰهِكَ ٱلَّذِى ظَلْتَ عَلَيْهِ عَاكِفًا ﴾ وګوره خپل معبودته دې هغه چې وې ته په عبادت دهغه کې محکم ولاړ (چې خسی) دی ﴿ لَّنُحَرِّقَنَّهُۥ ثُمَّ لَنَنسِفَنَّهُۥ فِى ٱلْيَمِّ نَسْفًا ﴾ خامخا سوځوومونږ هرو مروهغه بیابه یې بادوو تارپه تارکوو په سیندکې په تارپه تار کولوسره (چې هیڅ اثریې لاپاتې نشي) ﴿ إِنَّمَآ إِلَٰهُكُمُ ٱللَّهُ ٱلَّذِى لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ﴾ بېشکه همدا خبره ده چې معبود (برحق) ستاسې الله دی چې نشته بل معبود دعبادت ورمګرهمدی دی ﴿ وَسِعَ كُلَّ شَىْءٍ عِلْمًا ﴾ محیط دی په هرڅیزله جهته د علم ،هیڅ څیزپه ځمکه اوآسمان کې له الله جل جلاله څخه پټ اوالونیانه دی.

بلاغت:

پدې آیتونوکې چې دبدیع اوبیان کومې ښکلاوې شته لنډیزېې دادی:

۱- تهویل لکه: ﴿ فَغَشِيَهُم مِّنَ ٱلْيَمِّ مَا غَشِيَهُمْ ﴾ .

۲- طباق لکه: ﴿ وَأَضَلَّ ...وَمَا هَدَىٰ ﴾ .

۳- استعاره لکه چې فرمایې: ﴿ فَقَدْ هَوَىٰ ﴾ چې دلته یې د(هوی) لفظ چې معنایې ده له لوړځخه ښکته راغورځېدل دهلاکت لپاره استعاره کړې ده.

۴- طباق لکه: ﴿ ضَرًّا وَلَا نَفْعًا ﴾ .

۵- دمبالغې صیغه لکه چې فرمایې: ﴿ وَإِنِّى لَغَفَّارٌ ﴾ یعنې ډېر بښونکی دګناهونو.

۶- ایجازبالحذف لکه چې په ډېروځایونوکې راغلی اوتفسیرشېړلی دی.

۷- سجع چې متکلفه نه بلکه خوندوره اوخوږه وې لکه چې ﴿ أَمْرِى ...قَوْلِى... نَفْسِى ﴾ اویاداچې ﴿ نَفْعًا...عِلْمًا...نَسْفًا ﴾ ترپایه پورې

تنبیه:

بني اسرائیلوچې دګلګې (سخوندرکې) عبادت دسامرې په هڅونه پیل کړځکه چې ددوی په زړونوکې پخوالادبُت پرستې ریښې غزېدلې وې اوکله چې الله جل جلاله دوی دفرعون له طغیانه وژغورل نوله موسی علیه السلام څخه یې وغوښتل چې دوی ته دې یوبُت جوړکړي چې دوی یې عبادت وکړي الله دغه پېښه هسې بیانوي: ﴿ وَجَٰوَزْنَا بِبَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ٱلْبَحْرَ فَأَتَوْا۟ عَلَىٰ قَوْمٍ يَعْكُفُونَ عَلَىٰٓ أَصْنَامٍ لَّهُمْ ۚ قَالُوا۟ يَٰمُوسَى ٱجْعَل لَّنَآ إِلَٰهًا كَمَا لَهُمْ ءَالِهَةٌ ۚ قَالَ إِنَّكُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُونَ ﴾ (الاعراف۱۳۸) نوپه دې کې تعجب کول نه دي پکارچې دوی دې دسروزروسخوندرچې غږکوي په عبادت کولو راتول شي !!

اللہ تعالی فرمایے:

كذلك نقص عليك من أنباء ما قد سبق وقد ءاتينك من لدنا ذكرا ﴿٩٩﴾ من أعرض عنه فإنه يحمل يوم القيمة وزرا ﴿١٠٠﴾ خلدين فيه وساء لهم يوم القيمة حملا ﴿١٠١﴾ يوم ينفخ في الصور ونحشر المجرمين يومئذ زرقا ﴿١٠٢﴾ يتخفتون بينهم إن لبثتم إلا عشرا ﴿١٠٣﴾ نحن أعلم بما يقولون إذ يقول أمثلهم طريقة إن لبثتم إلا يوما ﴿١٠٤﴾ ويسئلونك عن الجبال فقل ينسفها ربي نسفا ﴿١٠٥﴾ فيذرها قاعا صفصفا ﴿١٠٦﴾ لا ترى فيها عوجا ولا أمتا ﴿١٠٧﴾ يومئذ يتبعون الداعي لا عوج له وخشعت الأصوات للرحمن فلا تسمع إلا همسا ﴿١٠٨﴾ يومئذ لا تنفع الشفعة إلا من أذن له الرحمن ورضي له قولا ﴿١٠٩﴾ يعلم ما بين أيديهم وما خلفهم ولا يحيطون به علما ﴿١١٠﴾ ۞ وعنت الوجوه للحي القيوم وقد خاب من حمل ظلما ﴿١١١﴾ ومن يعمل من الصلحت وهو مؤمن فلا يخاف ظلما ولا هضما ﴿١١٢﴾ وكذلك أنزلنه قرءانا عربيا وصرفنا فيه من الوعيد لعلهم يتقون أو يحدث لهم ذكرا ﴿١١٣﴾ فتعلى الله الملك الحق ولا تعجل بالقرءان من قبل أن يقضى إليك وحيه وقل رب زدني علما ﴿١١٤﴾ ولقد عهدنا إلى ءادم من قبل فنسي ولم نجد له عزما ﴿١١٥﴾ وإذ قلنا للملئكة اسجدوا لءادم فسجدوا إلا إبليس أبى ﴿١١٦﴾ فقلنا يـٰـءادم إن هذا عدو لك ولزوجك فلا يخرجنكما من الجنة فتشقى ﴿١١٧﴾ إن لك ألا تجوع فيها ولا تعرى ﴿١١٨﴾ وأنك لا تظمؤا فيها ولا تضحى ﴿١١٩﴾ فوسوس إليه الشيطن قال يـٰـءادم هل أدلك على شجرة الخلد وملك لا يبلى ﴿١٢٠﴾ فأكلا منها فبدت لهما سوءتهما وطفقا يخصفان عليهما من ورق الجنة وعصى ءادم ربه فغوى ﴿١٢١﴾ ثم اجتبه ربه فتاب عليه وهدى ﴿١٢٢﴾ قال اهبطا منها جميعا بعضكم لبعض عدو فإما يأتينكم مني هدى فمن اتبع هداي فلا يضل ولا يشقى ﴿١٢٣﴾ ومن أعرض عن ذكري فإن له معيشة ضنكا ونحشره يوم القيمة أعمى ﴿١٢٤﴾ قال رب لم حشرتني أعمى وقد كنت بصيرا ﴿١٢٥﴾ قال كذلك أتتك ءايتنا فنسيتها وكذلك اليوم تنسى ﴿١٢٦﴾ وكذلك نجزي من أسرف ولم يؤمن بـٔايت ربه ولعذاب الأخرة أشد وأبقى ﴿١٢٧﴾ أفلم يهد لهم كم أهلكنا قبلهم من القرون يمشون في مسكنهم إن في ذلك لأيت لأولي النهى ﴿١٢٨﴾ ولولا كلمة سبقت من ربك لكان لزاما وأجل مسمى ﴿١٢٩﴾ فاصبر على ما يقولون وسبح بحمد ربك قبل طلوع الشمس وقبل غروبها ومن ءاناي الليل فسبح وأطراف النهار لعلك ترضى ﴿١٣٠﴾ ولا تمدن عينيك إلى ما متعنا به أزوجا منهم زهرة الحيوة الدنيا لنفتنهم فيه ورزق ربك خير وأبقى ﴿١٣١﴾ وأمر أهلك بالصلوة واصطبر عليها لا نسـٔلك رزقا نحن نرزقك والعقبة للتقوى ﴿١٣٢﴾ وقالوا لولا يأتينا بـٔاية من ربه أولم تأتهم بينة ما في الصحف الأولى ﴿١٣٣﴾ ولو أنا أهلكنهم بعذاب من قبله لقالوا ربنا لولا أرسلت

إِلَيْنَا رَسُولًا فَنَتَّبِعَ ءَايَٰتِكَ مِن قَبْلِ أَن نَّذِلَّ وَنَخْزَىٰ ﴿١٣٤﴾ قُلْ كُلٌّ مُّتَرَبِّصٌ فَتَرَبَّصُوا۟ ۖ فَسَتَعْلَمُونَ مَنْ أَصْحَٰبُ ٱلصِّرَٰطِ ٱلسَّوِيِّ وَمَنِ ٱهْتَدَىٰ ﴿١٣٥﴾ ﴾ طه: ۹۹ ـ ۱۳۵

### مناسبت اوتړاو:

کله چي الله تعالی دموسی علیه السلام کیسه په تفصیل سره ذکرکړه ورپسې يې زياته کړه چي دغه کيسې الهي وحی دي او که چېري الله ورته وحی کړي نه وای محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم ته ددغو عجيبه اخبارواوپېښو معلومات نه وو نو دغه درسول الله درسالت په رښتنولي لوی دليل اوبرهان دی.

### لغتونه:

(قاعا) هغه ښوی ځمکه چي پکي نباتات اوودانۍ نه وي (صفصفا) برابره ځمکه لکه چي په برابري کي يوصف وي (امتا) (امت) هغه لوړځای ته لکه غونډۍ اويالوړه تپه وايي (همسا) کراراوآرام غږ(عنت) ذليل خاضع شول اوايل وګرزېدل؛ أمية وايي: ( لعزته تعنوالوجوه وتسجد ) يعني دالله دعزت په وړاندي مخونه اېل اوتابع ګرزي اوسجده کوي (هضما) نقص ته ويل کېږي ويل کېږي چي حق يې هضم کړيعني ناقص يې ورته وسپاروظلم اوهضم ترمينځ توپيردادی چي ظلم ببخي نه ورکولواوهضم يوڅه نه ورکولوته وايي(١) (تضحی) لمرته پداسي توګه چي تودوخه يې احساس اوګرمي يې وشي پاتي کېدلو ته وايي (ضنکا) تنګسيااوشدت ته وايي (سوآتهما) عورات ددوی دواړو (فتربصوا) انتظار وکړئ (الصراط السوی) برابره غوره لاره.

### تفسير:

﴿كَذَٰلِكَ نَقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ أَنۢبَآءِ مَا قَدْ سَبَقَ ﴾ (همداسي (لکه دموسی کيسه ) کيسې کووپرتا(تاته) له اخبارودهغواموروچي په تحقيق په خواتېرشوي دي) يعني لکه دغه دموسی عليه السلام کيسه له فرعون سره چي پکي غريب اوعجيب توکي دي تاته دپخوانيوأمتونوکيسې کوو. ﴿ وَقَدْ ءَاتَيْنَٰكَ مِن لَّدُنَّا ذِكْرًا ﴾ (اوپه تحقيق موږتاته ذکردرکړی دی خاص له جانبه خپله) يعني موږتاته قرآنکريم درکړی چي تلاوت کېږي اوپه څرګندومعجزاتو مشتمل دی. په البحرالمحيط کي وايي چي الله پاک دهغه احسان يادونه کوي چي ده ته يې هسي پندورکړی چي په کيسواواخبارومشتمل اودعليه السلام په معجزاتودلالت کونکی دی(٢)﴿ مَّنْ أَعْرَضَ عَنْهُ فَإِنَّهُۥ يَحْمِلُ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ وِزْرًا ﴾ هرڅوک چي مخ وګرزوي له دغه (قرآنه وروباندي ايمان نه راوړي ) پس بېشکه دی به بارکړي (په ځان خپل) په ورځ دقيامت کي لوی بار(درنه ګناه چي په دوزخ کي به يې وغورځوي) ﴿ خَٰلِدِينَ فِيهِ ۖ وَسَآءَ لَهُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ حِمْلًا ﴾ چي تل به وي په دغه (عذاب دلوی بار) کي اوبددی دوی ته په ورځ دقيامت کي له جهته دبارولو؛ ګناه يې له بارسره

---

(١) القرطبي ١١/ ٢٤٩

(٢) البحرالمحيط ٢/ ٢٧

مشابه کړه څکه چي دروندوالی لري ﴿ يَوْمَ يُنفَخُ فِي ٱلصُّورِ وَنَحْشُرُ ٱلْمُجْرِمِينَ يَوْمَئِذٍ زُرْقًا ﴾ په هغه ورځ کي چي وپوکل شي (دوهم ځلي) په صورشپېلۍ) کي اوراجمع به کړو مجرمان (کافران) په دغه ورځ شين سترګي (تورمخونه) قرطبي وايي ددوی خلقت به هغه ورځ واوښتی(مشوه) شي اوتکي شنې سترګي، تورمخونه به يې وګرزي(١) ﴿ يَتَخَـٰفَتُونَ بَيْنَهُمْ إِن لَّبِثْتُمْ إِلَّا عَشْرًا ﴾ چي ورو وروپټي خبري به کوي پخپل مېنځ کي (داسي به يوبل ته وايي چي) درنګ نه دی کړی تاسي مګرلس ورځي (په دنياکي). ابوالسعودوايي چي دوی به دشدت په ليدلوددنيادژوندموده خورا لږوګڼي(٢) ﴿ نَّحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَقُولُونَ إِذْ يَقُولُ أَمْثَلُهُمْ طَرِيقَةً إِن لَّبِثْتُمْ إِلَّا يَوْمًا ﴾ موږښه عالمان يو په هغو اقوالوچي دوی يې وايي کله چي ووايې هغه دېرکامل ځيرک له حيثه دروش (فکر اوعمل)چي څنډنه دی کړی تاسي (په دنياکي) مګريوه ورځ ﴿ وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلْجِبَالِ فَقُلْ يَنسِفُهَا رَبِّى نَسْفًا ﴾ اوپوښتنه کوي له تانه له (احواله د) غرونو(چي ددوی به دقيامت په ورځ څه حال وي ؟) پس ووايه دوی ته چي تارپه تاراوتيت پرک به يې کړي دغه غرونه (دغبار په شان) رب زما(اولکه شګي بادبه يې په هرلوري الوزوي) ﴿ فَيَذَرُهَا قَاعًا صَفْصَفًا ﴾ پس پرېږ به يې دي داځمکه هوارډاګ ﴿ لَّا تَرَىٰ فِيهَا عِوَجًا وَلَآ أَمْتًا ﴾ چي نه به وينې ته پدغه (ځمکه) کي ښکته والی اونه اوچت والی ﴿ يَوْمَئِذٍ يَتَّبِعُونَ ٱلدَّاعِىَ لَا عِوَجَ لَهُۥ ﴾ په دغه ورځ (دقيامت) کي به متابعت وکړي (دامخلوق دبلني) دبلونکي نه به وي کوږوالی (انحراف) له دغي (بلني دبلونکي څخه چي دمحشرډګرته به يې بيايي) ﴿ وَخَشَعَتِ ٱلْأَصْوَاتُ لِلرَّحْمَـٰنِ فَلَا تَسْمَعُ إِلَّا هَمْسًا ﴾ اوچُپ به شي غږونه (له ډېره هيبته) دپاره درحمن (جل وعلی) پس نه به اورې ته مګرکښهار دقدمونو(چي دمحشرځمکي ته به خلګ درومي) دغه معنادابن عباس رضی الله عنه څخه روايت شويده (٣) ﴿ يَوْمَئِذٍ لَّا تَنفَعُ ٱلشَّفَـٰعَةُ إِلَّا مَنْ أَذِنَ لَهُ ٱلرَّحْمَـٰنُ وَرَضِىَ لَهُۥ قَوْلًا ﴾ پدغه ورځ (دقيامت کي نه رسوي فائده شفاعت (هيچاته) مګرهغه چاته چي رحمن دهغه په حق کي اذن کړی دی اوراضي دی الله له دغه (مشفوع) څخه له حيثيته د وينا(چي دتوحيد کلمه ده) دغه هم دابن عباس رضی الله عنه تفسير دی ﴿ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلَا يُحِيطُونَ بِهِۦ عِلْمًا ﴾ پوهېږي الله په هغوڅېزونو چي ددوی په وړاندي دي اوپه هرهغه څېزچي پسي شاددوی دي (يعني دنيوي اواُخروي اُمور) اونه به شي احاطه کولای دوی (په معلوماتو) ددغه (الله) له جهته دپوهي(٤) ﴿ وَعَنَتِ ٱلْوُجُوهُ لِلْحَىِّ ٱلْقَيُّومِ ﴾ اوذليل شول مخونه (دخلګو) هغه تل ژوندي قائم تدبيروالادعالموته (هغه واحد، قهار،

(١) القرطبي ١١/ ٢٤٤

(٢) ابوالسعود ٣/ ٣٢٤

(٣) الطبري ١٢/ ٢١٤

(٤) اوچابيااويلي چي احاطه نشي کولای دوی په معرفت دذات دالله تعالی شانه څکه دالله حقيقت پرته له الله بل چاته معلوم نه دی اوهمدغه يي په التسهيل کي غوره شوي خبره ګڼلې ده.

جبارالسماوات والارض الذي لايموت ذات ته زمخشري وايي چي: مرادله مخونوڅخه د ګنهګارانو مخونه دي کله چي دقيامت ورځ ويني اوخپله بدمرغي او محروميت وګوري نومخونه به يې ذليل شي داسي لکه چي دبنديانو مخونه وي لکه چي الله فرمايي ﴿ فَلَمَّا رَأَوْهُ زُلْفَةً سِيٓـَٔتْ وُجُوهُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ وَقِيلَ هَٰذَا ٱلَّذِى كُنتُم بِهِۦ تَدَّعُونَ ﴾ (الملک٢٧ ) ﴿ وَقَدْ خَابَ مَنْ حَمَلَ ظُلْمًا ﴾ اوپه تحقيق ناامیده شو هرهغه څوک چي باردظلم يې پورته کړ يعني هغه څوک چي مشرک شوهغه په خسران کي دی اوپه مراد ونه رسېدومطلوب يې ونه موندہ ﴿ وَمَن يَعْمَلْ مِنَ ٱلصَّٰلِحَٰتِ وَهُوَ مُؤْمِنٌ ﴾ اوهرڅوک چي وکړي له ښو عملونو حال داچي دی مؤمن وي ﴿ فَلَا يَخَافُ ظُلْمًا وَلَا هَضْمًا ﴾ پس نه وېرېږي دی (په آخرت کي ) له ظلم اوله نقصانه (په حسناتو دده کي) ﴿ وَكَذَٰلِكَ أَنزَلْنَٰهُ قُرْءَانًا عَرَبِيًّا ﴾ او همداسي (لکه په کيسو مشتمل آيتونه) نازل کړی دی موږدغه قرآن په عربي ژبه (پرتااي محمده! ترڅودوی وپوهېږي چي دغه په فصاحت اوبلاغت کي دبشرله توان څخه بهردی ﴿ وَصَرَّفْنَا فِيهِ مِنَ ٱلْوَعِيدِ ﴾ اوبيا بياراوړي دي موږپه دې قرآن کي له آيتونودوعيد(مکرر) ﴿ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ أَوْ يُحْدِثُ لَهُمْ ذِكْرًا ﴾ لپاره ددې چي دوی پرهېز وکړي يا پيداکړي دغه قرآن دوی ته پند(په زړونوکي چي داوامرو امتثال بې وکړي اوله نواهيوڅخه يې اجتناب وکړي ) ﴿ فَتَعَٰلَى ٱللَّهُ ٱلْمَلِكُ ٱلْحَقُّ ﴾ (نولوی اوچت دی الله چي حق پادشاه (دپاچهانو ) دی) يعني لوړدی ددې برحق ذات سلطان په هرجبارباندي کوم چي مشرکان يې دده له مخلوق څخه درباندي ستايې ﴿ وَلَا تَعْجَلْ بِٱلْقُرْءَانِ مِن قَبْلِ أَن يُقْضَىٰٓ إِلَيْكَ وَحْيُهُۥ ﴾ (اوتلوارمه کوه (ای محمده! په (لوستلود ) قرآن پخواله هغه چي پوره کړه شي تاته وحی دده ) يعني کله چي جبريل تاته قرآن لولي ته له هغه سره په لوستلوکي تلوارمه کړه بلکه صبروکړه اوله هغه څخه يې واوره ترڅوهغه يې له تلاوت څخه فارغ شي بيايې ته لوله. ابن عباس رضی الله عنه وايي چي: رسول الله صلی الله عليه وسلم به ددې لپاره چي دقرآن په يادولوکي يې خوراحرص درلودنوپه چټکي سره به يې پخواتردې چي جبريل (عليه السلام) يې له لوستلوفارغ شي قرآن لوست چي ترې هېرنشي نوالله ځنې منع کړ. قرطبي وايي چي داالکه داالله جل جلاله هغه وينا چي فرمايي: ﴿ لَا تُحَرِّكْ بِهِۦ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِۦٓ ﴾ [1] ﴿ وَقُل رَّبِّ زِدْنِى عِلْمًا ﴾ اووايه (ای محمده!) ای زماربه زيات کړه ماله جهته دعلمه ) يعني له الله څخه دګټور علم دزياتوالي غوښتنه وکړه طبري وايي ورته يې امروکړ چي دعلمي فوائدوڅخه چي په کومونه پوهېږي دهغوی غوښتنه وکړئ [2] ﴿ وَلَقَدْ عَهِدْنَآ إِلَىٰٓ ءَادَمَ مِن قَبْلُ ﴾ اوخامخاپه تحقيق حکم کړی وو موږآدم ته پخواله دې نه (چي له درختي دي خوراک نه کوي) ﴿ فَنَسِىَ وَلَمْ نَجِدْ لَهُۥ عَزْمًا ﴾ پس هغه (حکم يې) هېرکړاوومونه موندہ ده ته استقامت (صبرله

---

(1) القرطبي ١١/ ٢٥٠ سورة القيامة.

(2) الطبري ١٢/ ٢٢٠

هغه ممنوع عنه څخه) ﴿ وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلَٰٓئِكَةِ ٱسْجُدُوا۟ لِـَٔادَمَ فَسَجَدُوٓا۟ إِلَّآ إِبْلِيسَ أَبَىٰ ﴾ او یاد کړه هغه وخت چي موږ پرښتو ته وویل چي( تعظیما ) سجده وکړئ آدم ته پس سجده وکړه (ټولو) مګر(سجده ونکړه) ابلیس منع یې راوړه ( له امره دالله تعالی. صاوي وایي چي دغه کیسه یې دقرآنکریم په اوو (۷) سورتونوکي مکرر راوړي ده چي بندګانو ته دالهي اوامرودامتثال روزنه ورکړي اوله نواهیوڅخه داجتناب زده کړه ورته وښیي همداسي دابلیس دښمني چي ددوی له پلارآدم سره یې درلوده ورپه ګوته کړي([1]) ﴿ فَقُلْنَا يَٰٓـَٔادَمُ إِنَّ هَٰذَا عَدُوٌّ لَّكَ وَلِزَوْجِكَ ﴾ پس وویل موږ ای آدمه بېشکه دا (ابلیس) دښمن ستااو(دښمن) دښځي ستا دی) یعني موږ هغه وپوهاوو چي داستا او دحواء لپاره سخت زبردست دښمن دی ﴿ فَلَا يُخْرِجَنَّكُمَا مِنَ ٱلْجَنَّةِ فَتَشْقَىٰٓ ﴾ (پس (خبردار) ودي نه باسي خامخا تاسي له جنته پس په مشقت کي به پرېوزی) یعني تاسي دهغه مه منئ که نه هغه به ستاسي دایستلو سبب شي اوچي دلته یې یوازي دآدم (علیه السلام) مشقت وښودد دغه دفواصلودمراعات لپاره بل داچي دده شقاپه عین حال کي دحواء شقا(بدمرغی) هم ده. ابن کثیر وایي: معناداچي پام کوه چي له جنته دي دوتلوزیارونکړي بیا به په مشقت کي ولوېږې دروزي په لاسته راوړلوبه ستړی ستومان شې دلته په جنت کي خوپه بې تکلیفه اوبې کړاوه پراخ عیش اوعشرت کي اوسې ([2]) ﴿ إِنَّ لَكَ أَلَّا تَجُوعَ فِيهَا وَلَا تَعْرَىٰ ﴾ بېشکه مقرر دی تاته چي نه به وږي کېږئ په دې (جنت) کي اونه به بربنډ کېږی ﴿ وَأَنَّكَ لَا تَظْمَؤُا۟ فِيهَا وَلَا تَضْحَىٰ ﴾ اوبېشکه ته به نه تږی کېږې په دغه جنت کي اونه به دي ګرمي کېږي (ځکه جنت دارالسرور دی ستړیا، ستوماني اوتکلیف یخني، ګرمي، تنده او لوږه نلري ﴿ فَوَسْوَسَ إِلَيْهِ ٱلشَّيْطَٰنُ ﴾ پس وسوسه واچوله دغه (آدم) ته شیطان (داسي چي) ﴿ قَالَ يَٰٓـَٔادَمُ هَلْ أَدُلُّكَ عَلَىٰ شَجَرَةِ ٱلْخُلْدِ وَمُلْكٍ لَّا يَبْلَىٰ ﴾ ورته ویې ویل: ای آدمه آیا(دروښیم) دلالت وکړم تاته په ونه دتل ژوندي پاتي کېدلو اوپه نه زائل کېدونکي پاچهي باندي؟ دایوهسي فریب اوچل ووچي په ظاهره یې دنصیحت بڼه لرله اولعین بیاچېري دنصیحت په غم کي وو؟)

﴿ فَأَكَلَا مِنْهَا فَبَدَتْ لَهُمَا سَوْءَٰتُهُمَا ﴾ پس وخوړله دوی دواړوله (مېوې د) دغي وني (منهي عنها) څخه پس دوی ته ښکاره شول عورات ددوی؛ ابن عباس رضی الله عنه وایي چي: الله جل جلاله هغه نور ورڅخه واخیست په کوم سره چي ددوی عورات پټ وو نویې شرمګاوي ښکاره شوې ﴿ وَطَفِقَا يَخْصِفَانِ عَلَيْهِمَا مِن وَرَقِ ٱلْجَنَّةِ ﴾ اوشروع وکړه دواړوچي ښښلولې پوري کولې یې پرځانونو پوري له پاڼو(دوني د) جنت (لپاره د عورت پټولو) ﴿ وَعَصَىٰٓ ءَادَمُ رَبَّهُۥ فَغَوَىٰ ﴾ اونافرماني وکړه آدم (له حکم) درب خپل (په خوراک له وني څخه) پس چپ شو(له مطلوبه دخلوده په جنت کي) ځکه چي دددښمن په وینا تېروتل شو. ابوالسعودوایي چي: تعبیرپه عصیان اوغوایت باندي سره له وړوکوالي دزلت دتعظیم ښنه او د اولاد

---

([1]) حاشية الصاوي على الجلالين ۳ / ۶۲

([2]) المختصر ۲ / ۴۹۶

لپاره يې دزيات زجرځرګندونه ده (١) ﴿ ثُمَّ ٱجْتَبَـٰهُ رَبُّهُۥ فَتَابَ عَلَيْهِ وَهَدَىٰ ﴾ بياغوره کړ دغه (آدم) لره رب ده پس رجوع وکړه الله په آدم په قبول دتوبې سره اوهدايت يې ورته وکړ (دتوبې ،ثبات اودطاعت په اسبابو دمنګولو لګولو) ﴿ قَالَ ٱهْبِطَا مِنْهَا جَمِيعًۢا ۖ بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ ۖ ﴾ (وويل: (الله) چې کوزشئ دواړه له دغه جنته ټول ځيني دتاسي دځينونورو دښمنان يې) يعني له جنته ځمکي ته کوزشئ چې ځيني او لاده ستاسي دځينونورو سره دمعاش په کسب يا دطبيعتونو داختلاف اورغبتونو دبېل والي په سبب يودبل دښمنان دي. زمخشري وايي: څرنګه چې آدم اوحوآء دبشراصل اوموراوپلاردي نولکه چې دوی پخپله ټول بشريت وي ځکه ورته خطاب وکړی شو (٢) ﴿ فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُم مِّنِّى هُدًى ﴾ پس که راغی زماله لوري تاسي ته هدايت (چې کتابونه اورسولان دي) ﴿ فَمَنِ ٱتَّبَعَ هُدَاىَ فَلَا يَضِلُّ وَلَا يَشْقَىٰ ﴾ پس هغه چاچي زمادهدايت متابعت وکړپس هغه به نه ګمراه کېږي (په دنياکي) اونه به بدبخت شي (په عقباکي) ابن عباس رضی الله عنه وايي چې: الله جل جلاله دهغه چاضمانت کړي څوک چې قرآن لولی اوپه حکمونويې عمل کوي ددې چې هغه به په دنياکي ګمراه نشي اوپه آخرت کي به له بدمرغي وژغورل شي اوبيايې داآيت تلاوت کړ (٣) ﴿ وَمَنْ أَعْرَضَ عَن ذِكْرِى فَإِنَّ لَهُۥ مَعِيشَةً ضَنكًا ﴾ اوهرچا چې زماله ذکره (پنده) مخ وګرزاوه وو پس بېشکه ده ته تنګ معېشت دی په دنياکي (که څه هم په ظاهري توګه په نعمت کي وي) ﴿ وَنَحْشُرُهُۥ يَوْمَ ٱلْقِيَـٰمَةِ أَعْمَىٰ ﴾ اوپورته به کړو دی (په آخرت) په ورځي د قيامت کي ړوند؛ ابن کثيروايي: چې که څوک دالله له حکمته ځنګ وکړي اوهغه په شعوري توګه هېر کړي نودهغه ژوند په دنياکي تريخ وي آرام نلري سينه يې تنګه وي ګمراهي وړباندي خپره وي که څه هم له ظاهري پلوه په ناز اونعمت کي لوبېږي چې غواړي هغه خوري اوچې زړه يې غواړي هغه اغوندي اوچېرې يې چې زړه وي هلته اوسي خوزړه يې په اضطراب کي لالهانداو ترهوره وي اوچابياويلي چې معناداچې قبربه وړباندي داسي تنګ شي چې پښتی به يې له پښتيو سره تېري اوبېري کړي (٤) ﴿ قَالَ رَبِّ لِمَ حَشَرْتَنِىٓ أَعْمَىٰ وَقَدْ كُنتُ بَصِيرًا ﴾ وبه وايي دغه (ړوند کافر) ای زمارب ولي دي زه ړوند راپاڅولم حال داچې په تحقيق زه په دنياکي بېناوم ﴿ قَالَ كَذَٰلِكَ أَتَتْكَ ءَايَـٰتُنَا فَنَسِيتَهَا ۖ وَكَذَٰلِكَ ٱلْيَوْمَ تُنسَىٰ ﴾ وفرمايل: (الله) همداسي وولکه (چې ته وايي) خو راغلي ووتاته زموږآيتونه پس تاهغه هېرکړل اوپه مثل دهغو( هېرولوستا ) نن ورځ به هېرکړل شې ته (په عذاب کي) ﴿ وَكَذَٰلِكَ نَجْزِى مَنْ أَسْرَفَ وَلَمْ يُؤْمِنۢ بِـَٔايَـٰتِ رَبِّهِۦ ۚ ﴾ اوپه مثل دهمدې جزاورکولو (زموږ کفارو ته) جزاورکوو موږ هغه ته چې له حده ووت (په شهوتونو کي ډوب شو) اوايمان

(١) ابوالسعود ٣ / ٣٢٧

(٢) الکشاف ٣ / ٩٣

(٣) القرطبي ١١ / ٢٥٨

(٤) المختصر ٢ / ٤٩٧

يې رانه وړ په آيتونو درب خپل ﴿ وَلَعَذَابُ ٱلْآخِرَةِ أَشَدُّ وَأَبْقَىٰٓ ﴾ او خامخا عذاب دآخرت ډېر سخت دى او ډېر تلپاتي دى (هيڅ تېرېده نلري) ﴿ أَفَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ كَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّنَ ٱلْقُرُونِ ﴾ آيا پس ندى ښكاره شوى (دغو كفارو دمكې ته) چې موږ ډېر هلاک كړي دي په خواله دوى نه اهل دزمانو (پخوانيو چې دخپلو پيغمبرانو تكذيب يې كاوو ﴿ يَمْشُونَ فِى مَسَٰكِنِهِمْ ﴾ چې دا تېرېږي دوى په (تشو) كليو خايونو ددوى (لكه دعاد اوثمود هستوګنځي چې دهغوى دهلاكت نښې ويني آيا ولي عبرت اوپند ترې نه اخلي؟ ﴿ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَٰتٍ لِّأُو۟لِى ٱلنُّهَىٰ ﴾ بېشكه په دغه (اهلاک دمنكرينو) كي خامخا ډېر دلائل (دعبرت دي) خاوندانو دعقلونو ته ﴿ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِن رَّبِّكَ لَكَانَ لِزَامًا وَأَجَلٌ مُّسَمًّى ﴾ او كه چېرې هغه وينا نه واى چې پخواويلي شوي ده (له طرفه) درب ستا (په تأخير دعذاب) نو خامخا وو به دغه (هلاک) لازم (له دوى سره) او كه نه واى نېټه معلومه دعمر ددوى (نو به په دنيا كې معذب كېدل) فرأء وايې چې: په آيت كي روستى ړومبى راغلى هغه دا چې كه چېرې وينا او نېټا كلي موده نه واى نو به ارومرو عذاب پردوى لازم وو (په دنيا كې) او دتقديم تاخير سبب يې دا چې دآيتونو پيل يوشاني وي ﴿ فَٱصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ ﴾ پس صبر كوه (اى محمده) په هغو خبرو چې دوى يې وايې (يعني دغه ستا دتېر مكذبين چې څه وايې په هغو صبر كوه) ﴿ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوعِ ٱلشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوبِهَا ﴾ او تسبيح وايه سره له حمد، ثنا درب خپل (لمونځ كوه) پخوا دلمرله ختلو (دسهار لمونځ) او ترې پخواله ډوبېدلو دلمر (دما سپښين اونماز ديګر لمونځ) ﴿ وَمِنْ ءَانَآئِ ٱلَّيْلِ فَسَبِّحْ وَأَطْرَافَ ٱلنَّهَارِ ﴾ او په ځينو اوقاتو له ساعتونو دشپې پس تسبيح وايه (لمونځ كوه د، ماښام اوماسخوتن) او په دواړو څنګو دورځي كي) يعني لمونځ كوه په ساعتونو دشپې او پيل دورځي كي ﴿ لَعَلَّكَ تَرْضَىٰ ﴾ ښايې چې ته به راضي شې (يعني الله به هغه څه دركړي چې ته به وربانديې خوښ شې. قرطبي وايې چې اكثره مفسرين وايې چې دغه پنځو لمنځونو ته اشاره كوي چې ﴿ قَبْلَ طُلُوعِ ٱلشَّمْسِ ﴾ دسهار لمونځ ﴿ وَقَبْلَ غُرُوبِهَا ﴾ د ماز ديګر لمونځ ﴿ وَمِنْ ءَانَآئِ ٱلَّيْلِ ﴾ دماخوستن لمونځ ﴿ وَأَطْرَافَ ٱلنَّهَارِ ﴾ دماښام اوماسپښين لمونځ ځكه ظهر په آخر لومړى څنګ دورځي كي او پرېوتل دلمر په آخر څنګ دوروستى برخي دورځي دي(١) ﴿ وَلَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ إِلَىٰ مَا مَتَّعْنَا بِهِۦٓ أَزْوَٰجًا مِّنْهُمْ ﴾ او مه اوږدوه (نظرد) سترګو خپلو (مه يې اړوه) هغه څيزته چې نفع وركړي ده موږ په هغه سره چې قسما قسم دي دغو (كفارو) ته ﴿ زَهْرَةَ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ﴾ ښايست دژوندانه ددنيا ﴿ لِنَفْتِنَهُمْ فِيهِ ﴾ ددې لپاره چې وازمايو په دې (نعمتونو) كي (ترڅو دخپل كفر له امله دعذاب وړ شي) ﴿ وَرِزْقُ رَبِّكَ خَيْرٌ وَأَبْقَىٰ ﴾ او رزق روزي درب دتا ډېر غوره او تلپاتي دي (له دغو فاني نعمتونو څخه) مفسرين كرام وايې چې خطاب

(١) القرطبي ١١ / ٢٦١

رسول الله صلى الله عليه وسلم ته دى اومراد ځني أمت دى ځكه رسول الله صلى الله عليه وسلم ترټولوزاهدترين ذات ووچي ددنياپه هكله يې هيڅ رغبت نه درلود اوټوله توجه يې دهغه څه په لوروه چي له الله سره دي ﴿ وَأْمُرْ أَهْلَكَ بِٱلصَّلَوٰةِ وَٱصْطَبِرْ عَلَيْهَا ﴾ اوامر(حكم) كوه په اهل (بيت) خپل (امت خپل) په كولودلمانځه (سره له خشوع اوادابو) اوته هم پرې كلك ولاړاوسه ﴿ لَا نَسْـَٔلُكَ رِزْقًا نَّحْنُ نَرْزُقُكَ ﴾ (موږله تاڅخه روزي نه غواړو(بلكه) موږ روزي دركوو تاته) يعني ته پدې مكلف نه يې چي دځان اواهل لپاره روزي وګټې بلكه موږستا اواهل لپاره دروزي تكفل كوو﴿ وَٱلْعَٰقِبَةُ لِلتَّقْوَىٰ ﴾ اوښه خاتمه دعاقبت د پرهېزګاري خاوندانولره ده. ابن كثيروايې چي: محمودعاقبت چي جنت دى هغه چالره دى چي پرهېزګاران (متقيان ) وي(١)﴿ وَقَالُوا۟ لَوْلَا يَأْتِينَا بِـَٔايَةٍ مِّن رَّبِّهِۦٓ ﴾اووايې (كفارمشركان) ولي نه راوړي(محمد ) موږته يوه معجزه (له طرفه ) درب خپل؟(چي دده په رښتنولي دلالت وكړي) ﴿ أَوَلَمْ تَأْتِهِم بَيِّنَةُ مَا فِى ٱلصُّحُفِ ٱلْأُولَىٰ ﴾ (آيادوى ته ندى راغلى مصدق دليل برهان دهغه شي چي په پخوانيوكتابونوكي وو؟) يعني آيادوى درسول الله صلى الله عليه وسلم په معجز قرآن باندي بسنه (كفايت) نه كوي هغه چي د پخوانيوامتونوپه خبرونومشتمل دى؟استفهام دتوبيخ اوتقريع لپاره دى په البحركي وايې چي: مشركانووړانديزكاووچي ددوى د خوښې معجزې ورته راوړل شي اودغه ددوى دسرغړوني شاهدوونو ورته داسي ځواب وويل شوچي آيادغه قرآن چي په پخوانيوكتابونوكي دده په هكله بشارت اوزېرى وركړل شوى وودمعجزې په توګه كافي نه دى ؟ چي داترټولومعجزاتوغوراستره اوتلپاتي معجزه ده ځكه دقيامت ترورځي به پاتي وي(٢)﴿ وَلَوْ أَنَّآ أَهْلَكْنَٰهُم بِعَذَابٍ مِّن قَبْلِهِۦ ﴾ (اوكه چېري موږدوى پخواپه عذاب سره هلاک كړي واى) يعني كه چېري دغه دمكې كفارپخوادقرآن له نزوله اودمحمدصلى الله عليه وسلم تربعثته موږهلاک كړي واى نو﴿ لَقَالُوا۟ رَبَّنَا لَوْلَآ أَرْسَلْتَ إِلَيْنَا رَسُولًا ﴾ خامخابه دوى ويلي وو: اى زموږ ربه ! ولي دي موږته پيغمبرنه راولېږو(چي موږورباندي ايمان راوړى واى متابعت موكړى واى) ﴿ فَنَتَّبِعَ ءَايَٰتِكَ مِن قَبْلِ أَن نَّذِلَّ وَنَخْزَىٰ ﴾ نوچي متابعت كړى واى موږستادآيتونوپخواله هغه چي موږذليل شرمنده شوي واى (دخلګو په وړاندي. مفسرين كرام وايې چي داالله جل جلاله مقصدداوى چي وروسته دانبياوو تر راتلو اودكتابونوترنازلېدووهيچاته حجت اوعذرنه دى پاتي ﴿ قُلْ كُلٌّ مُّتَرَبِّصٌ ﴾. ووايه اى محمده دوى ته) چي هريو(له موږاوتاسو) انتظاركونكى دى (چي مرسته به چاته وي اوځوک به له كړاوونو سره لاس اوګرېوان شي) ﴿ فَتَرَبَّصُوا۟ ﴾ پس تاسي انتظاركوئ د(عاقبت اوپايلي) ﴿ فَسَتَعْلَمُونَ مَنْ أَصْحَٰبُ ٱلصِّرَٰطِ ٱلسَّوِىِّ وَمَنِ ٱهْتَدَىٰ ﴾ پس ژربه

---

(١) المختصر٢/٥٠٠

(٢) البحرالمحيط٦/٢٩٢

پوه شی تاسي چي څوک دي خاوندان دسمي لاري ؟ (آيامونږ يو ، كه تاسو؟) اوكوم يودى چي په سمه صافه لاره درومي ( اوڅوک په ګمراهي كي لوېږي) مونږكه تاسي؟ ). قرطبي وايې چي : پدې كي دوېروني اوتهديدولو ډول نغښتی دی هغه چي دامبارک سورت وربانديې پای ته رسېدلی دی[1]

بلاغت:

پدې مباركوآيتونوكي چي دفصاحت په هكله دبديع اوبيان كومي ښكلاوي شته دادي.

١- دتشبيه صنعت چي فرمايې ﴿كَذَٰلِكَ نَقُصُّ عَلَيْكَ﴾ دغه مرسله مجمله تشبيه ده.

٢- استعاره چي پدې كلام كي ده ﴿وَسَآءَ لَهُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ حِمْلًا﴾ دلته يې ګناه له درانه پېټي سره دتصريحي استعارې په توګه تشبيه كړي ده.

٣- كنايه چي فرمايې: ﴿يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ﴾ چي دغه له دنيوي اواخروي چاروڅخه عبارت دي.

٤- دطباق صنعت لكه ﴿أَعْمَىٰ.... بَصِيرًا﴾ .

٥- تمثيلي تشبيه لكه: ﴿زَهْرَةَ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا﴾ ددنيادنعمتونومثال يې په ګل راوړ هغه چي ښكلى اغلى منظر لري خوبيامړاوى شي او ورژېږي همداسي ددنيانعمتونه دي.

٦- وعيداوتهديدلكه: ﴿فَتَرَبَّصُوٓا۟﴾ .

٧- اشتقاقي جناس چي وايې: ﴿أَرْسَلْتَ إِلَيْنَا رَسُولًا﴾ .

٨- لطيفه سجع چي تكلف ورته لاره نلري لكه: ﴿ظُلْمًا... هَضْمًا... عِلْمًا﴾ او ﴿فَتَشْقَىٰٓ... تَعْرَىٰ ...تَرْضَىٰ﴾ ترپايه پوري.

لطيفه:

ناصروايې چي په آيت شريف كي يو ښايسته رازپروت دى چي هغه ته (قطع النظيرعن النظير) وايې اودا پدې چي تنده يې له لوږي څخه وشلوله او(ضحو) يې له (كسوة) څخه ګوښه كړه پداسي حال كي چي ددوی ترمينځ تناسب شته اومقصدله دې څخه دډغونعمتونو دشمېرګنل اوراټولول دي اوكه هريويې له خپله هم شكله سره يوځاى راوړي واى نوبه داسي انګېرل كېدل چي داټول يونعمت دى اوبل رازپه آيت كي داهم دى چي دفواصلوتناسب خوندي پاتي شوى كه چېري يې تنده له لوږي سره يوځاى راوړي واى دآيتونوپيل به تيت اوپرک شوى وو.

فائده اوګټه:

دهغه چاپه حكايت كي وايې چي ﴿عَشْرًا﴾او﴿يَوْمًا﴾ او ﴿سَاعَةً﴾ ددوى حقيقي اختلاف مرادنه دى چي دوى څومره درنګ كړى دى اونه هم دوى دهغه دتعيين په هكله كوم شک اوترديدلري

---

([1]) القرطبي ١١ / ٢٦

بلکه مقصد دادی چي دغه ژوند خوراګړندی تېرېږي نوځکه يې په دغه يادي شوو موډوباندي يادونه وکړه نو په حکايت کي تفنن او په هرځای کي يې له هغه سره ورکلمه راوړي ده.[1]

دالله جل جلاله په مرسته دسورت طه تفسيربشپړشو.

## د(الأنبياء) سورت مکي او يوسل اودوولس آيتونه لري

دسورت په وړاندي: دغه سورت مکي اود اسلامي عقيدي موضوع پخپلو پراخو ډګرونو کي چي رسالت، وحدانيت، بعث اوجزاء دي څېړي، دقيامت دورځي له کړاونوغربېږي اودانبياوو عليهم السلام کيسې بيانوي

* په پيل کي سورت دخلګو غفلت اوناپامي چي دآخرت اوحساب جزاء په هکله يې لري يادوي چي سره له دې چي قيامت له ورايه بربښي خوبياهم دوی ددغي سختي ورځي څخه غافل دي دوی دژوندانه تېروتنو دهغه حساب، کتاب له ورځي څخه بې فکره کړي دي

* بيادروغ ګڼونکو(مکذبينو) څخه خبري کوي هغه چي دتېرواُمتونو هلاکتونه يې ليدلي اوربدلي هم دي خودوی کوم پند ترې نه دی اخيستی ترڅوچي په نابېره (ناڅاپه) دوی ته عذاب راشي نوبيادوی په عجزلاس اوچتوي خوافسوس چي داوخت زاري جګي ګټه نلري.

* په سورت کي دقدرت هغه نښي نښانې چي په أنفس اوآفاقوکي ترسترګوکېږي راوړي هغه چي دتدبيراوحکمت دخاوند په عظمت دلالت کوي اودکائناتووحدت دالله په وحدت پوري تړي

* وروسته له هغه چي دربّ العلمين په وحدت باندي شاهدان دلائل راوړي نودمشرکانوحال بيانوي چي کله دوی په رسول الله صلی الله عليه وسلم باندي مسخرې کوي دهغه تکذيب ته يې ملاوي تړلي دي نوبيادالله جل جلاله سنت چي سرغړونکي مجرمين دتاريخ په اوږدوکي هلاکوي رااخلي.

* بياسورت دځينوانبياوو عليهم السلام کيسې راوړي اودابراهيم عليه السلام هغه کيسه چي له بت پرست قوم سره يې درلوده په خوندورو أسلوبو، ښايسته بيان اوغښتلي حجت اوبرهان سره بيانوي چي په جبري توګه دښمن غاړه اېښودلو ته اړباسي اوپدې کي خورازيات پندونه اوعبرتونه شته.

* په سورت کي همداسي پرله پسې له انبياوو څخه يادونه کېږي اوداسحاق، يعقوب، لوط، نوح، داؤد، سليمان، ايوب، اسماعيل، ادريس، ذوالکفل، ذوالنون، زکرياوعيسی عليهم السلام خبرونه په ځغلنده نظراوايجازسره له هغومشکلاتواوکړاوونوچي دوی ګاللي رااخلي اوپه پای کي يې دخاتم الأنبياء سيدالمرسلين محمدبن عبدالله رحمة للعلمين په رسالت سره پای ته رسوي.

تسميه اونوموليې:

دغه سورت ځکه سورت الانبيآء وايي چي الله تعالی پکي ديوي ډلی انبياوو عليهم السلام يادوني ته لنډه کتنه کړي چي کله څه اوږده اوکله بيالنډون مومي اوددوی جهاد، صبراودالله په لاره کي قرباني اوځان تېرېدنه چي دبشريت دنېکمرغي لپاره يې ددعوت اوتبليغ په چاروکي ترسره کړي ښيي.

---

[1] حاشية الشهاب علی البيضاوی

## الله تعالی فرمايي:

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ اقْتَرَبَ لِلنَّاسِ حِسَابُهُمْ وَهُمْ فِي غَفْلَةٍ مُعْرِضُونَ (۱) مَا يَأْتِيهِمْ مِنْ ذِكْرٍ مِنْ رَبِّهِمْ مُحْدَثٍ إِلَّا اسْتَمَعُوهُ وَهُمْ يَلْعَبُونَ (۲) لَاهِيَةً قُلُوبُهُمْ وَأَسَرُّوا النَّجْوَى الَّذِينَ ظَلَمُوا هَلْ هَٰذَا إِلَّا بَشَرٌ مِثْلُكُمْ أَفَتَأْتُونَ السِّحْرَ وَأَنْتُمْ تُبْصِرُونَ (۳) قَالَ رَبِّي يَعْلَمُ الْقَوْلَ فِي السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ (٤) بَلْ قَالُوا أَضْغَاثُ أَحْلَامٍ بَلِ افْتَرَاهُ بَلْ هُوَ شَاعِرٌ فَلْيَأْتِنَا بِآيَةٍ كَمَا أُرْسِلَ الْأَوَّلُونَ (٥) مَا آمَنَتْ قَبْلَهُمْ مِنْ قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَاهَا أَفَهُمْ يُؤْمِنُونَ (٦) وَمَا أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ إِلَّا رِجَالًا نُوحِي إِلَيْهِمْ فَاسْأَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ إِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ (۷) وَمَا جَعَلْنَاهُمْ جَسَدًا لَا يَأْكُلُونَ الطَّعَامَ وَمَا كَانُوا خَالِدِينَ (۸) ثُمَّ صَدَقْنَاهُمُ الْوَعْدَ فَأَنْجَيْنَاهُمْ وَمَنْ نَشَاءُ وَأَهْلَكْنَا الْمُسْرِفِينَ (۹) لَقَدْ أَنْزَلْنَا إِلَيْكُمْ كِتَابًا فِيهِ ذِكْرُكُمْ أَفَلَا تَعْقِلُونَ (۱۰) وَكَمْ قَصَمْنَا مِنْ قَرْيَةٍ كَانَتْ ظَالِمَةً وَأَنْشَأْنَا بَعْدَهَا قَوْمًا آخَرِينَ (۱۱) فَلَمَّا أَحَسُّوا بَأْسَنَا إِذَا هُمْ مِنْهَا يَرْكُضُونَ (۱۲) لَا تَرْكُضُوا وَارْجِعُوا إِلَىٰ مَا أُتْرِفْتُمْ فِيهِ وَمَسَاكِنِكُمْ لَعَلَّكُمْ تُسْأَلُونَ (۱۳) قَالُوا يَا وَيْلَنَا إِنَّا كُنَّا ظَالِمِينَ (۱٤) فَمَا زَالَتْ تِلْكَ دَعْوَاهُمْ حَتَّىٰ جَعَلْنَاهُمْ حَصِيدًا خَامِدِينَ (۱٥) وَمَا خَلَقْنَا السَّمَاءَ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا لَاعِبِينَ (۱٦) لَوْ أَرَدْنَا أَنْ نَتَّخِذَ لَهْوًا لَاتَّخَذْنَاهُ مِنْ لَدُنَّا إِنْ كُنَّا فَاعِلِينَ (۱۷) بَلْ نَقْذِفُ بِالْحَقِّ عَلَى الْبَاطِلِ فَيَدْمَغُهُ فَإِذَا هُوَ زَاهِقٌ وَلَكُمُ الْوَيْلُ مِمَّا تَصِفُونَ (۱۸) وَلَهُ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَنْ عِنْدَهُ لَا يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِهِ وَلَا يَسْتَحْسِرُونَ (۱۹) يُسَبِّحُونَ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ لَا يَفْتُرُونَ (۲۰) أَمِ اتَّخَذُوا آلِهَةً مِنَ الْأَرْضِ هُمْ يُنْشِرُونَ (۲۱) لَوْ كَانَ فِيهِمَا آلِهَةٌ إِلَّا اللَّهُ لَفَسَدَتَا فَسُبْحَانَ اللَّهِ رَبِّ الْعَرْشِ عَمَّا يَصِفُونَ (۲۲) لَا يُسْأَلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْأَلُونَ (۲۳) أَمِ اتَّخَذُوا مِنْ دُونِهِ آلِهَةً قُلْ هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ هَٰذَا ذِكْرُ مَنْ مَعِيَ وَذِكْرُ مَنْ قَبْلِي بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ الْحَقَّ فَهُمْ مُعْرِضُونَ (۲٤) ﴾

الأنبياء: ۱ - ۲٤

### لغتونه:

(أضغاث) اخلاط او هغه ګډوډ شيان چې سړی يې په خوب کېويني (قصمنا) دسخت او کرېږشي ماتولو ته (قصم) وايې لکه وايې: (قَصَمتُ ظَهرَهُ) يعني ملا مې ورماته کړه (يركضون) (ركض) په ځغاسته او منډه تللو ته وايې او کله چې څوک (سورلي بوده تېزوي) ورته ويل کېږي (ركض الدابة) هلته چې سړی يې په لغته ووهي (خامدين) خمود او رمړه کېدلو ته وايې او دغه له مرګ څخه تشبيه ده (فيدمغه) ددې معنا دا چې دماغ يې ولګېد ولکه چې (كبده) او (رأسه) يعني ځيګر او سر يې ولګېدو (يستحسرون) له (حسر) څخه اخيستل شوی او هغه له ستوماني او ستړيا څخه وروسته پاتې شوي او بس ته وايې.

تفسیر:

﴿ اَقْتَرَبَ لِلنَّاسِ حِسَابُهُمْ وَهُمْ فِي غَفْلَةٍ مُّعْرِضُونَ ﴾ نژدې شو خلگو ته (وخت د) حساب (اوجزاء) ددوی حال داچي دوی په غفلت کي دي(له دې حساب اوجزاء خپلي) مخ گرځونکي دي(له ایمانه راوړلو څخه یعني دوی ته ددوی په کړوړو دحساب وخت رانژدې شوی خودوی په شهوتونوکي غرق اوډوب دي ددې هیبتناکي ورځي څخه غافل او د آخرت لپاره تیاری نه کوي اوداچي آخرت یې نژدې وباله ځکه چي راتلونکی دی اوهرڅه چي راتلونکي وي نژدې وي ﴿ مَا يَأْتِيهِم مِّن ذِكْرٍ مِّن رَّبِّهِم مُّحْدَثٍ إِلَّا اسْتَمَعُوهُ وَهُمْ يَلْعَبُونَ ﴾ اونه راځي دوی ته هیڅ نصیحت( وحی اوقرآن) له (طرفه د) رب ددوی نه نوی (په نزول کي مگرخواوري دوی هغه (قرآن) حال داچي دوی لوبي (مسخرې) پرې کوي حسن رحمه الله وایې چي هرکله چي دوی ته نوی پنداونصیحت راشي نودوی په جهل باندي ټینگار کوي(۱)﴿ لَاهِيَةً قُلُوبُهُمْ ﴾ پداسي حال کي چي بوخت وي زړونه ددوی (په نوروچارو ) یعني دوی له کلام الله څخه غافل اوزړونه یې په دنیوي چاروکي مشغول وي ﴿ وَأَسَرُّوا النَّجْوَى الَّذِينَ ظَلَمُوا ﴾ (اوښه پټوي رازخپل هغه کسان چي ظلم یې کړی دی ) یعني مشرکان پخپل مینځ کی پټ یوله بله دزړه خواله کوي وایې ﴿ هَلْ هَٰذَا إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ ﴾ (ندی دا(محمد ) مگرخویوانسان ستاسي په شان) یعني دوی به پخپل مینځ کي سره پټ ویل چي آیادغه محمدصلی الله علیه وسلم درسالت دعوی لري لکه تاسي غوندي یوبشرنه دی چي خواړه خوري اوپه کوڅوکي گرزي؟ ﴿ أَفَتَأْتُونَ السِّحْرَ وَأَنتُمْ تُبْصِرُونَ ﴾ (یاپس تاسي جادوته راځی( منی یې ) حال داچي تاسي گورئ(چي دغه کوډي دي) ؟ یعني آیاتاسو کوډي منی حال داچي پوهېږی هم چي دغه کوډی دي؟ آلوسي رحمه الله وایې چي دغه څه چي محمدعلیه السلام راوړي دغه جادودی اودایې چي ددوی په ذهن کي کوم شي تقررنیولی ووهغه دا چي رسول به بشرنه بلکه پرښته وي اوداهرڅه معجزې چي ده راوړي دغه سحراو قرآن کریم یې هم سحرگڼل(۲)﴿ قَالَ رَبِّي يَعْلَمُ الْقَوْلَ فِي السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ ﴾ وویل: ( محمد ﷺ ) دوی ته رب زما عالم دی په وینا(دهرهغه چاچي وي ) په آسمان کي اوپه ځمکه کي ﴿ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴾ اوهم دی ښه اورېدونکی (ستاسودخبرو ) ښه پوه عالم دی (ستاسوپه احوالو )او پدې کي ددوی لپاره تهدید او وعیددی ﴿ بَلْ قَالُوا أَضْغَاثُ أَحْلَامٍ ﴾ (بلکه وایې (دغه کفارچي دغه قرآن ) گډوډ خوبونه دي) بل د الله له لوري اضراب دی چي له یوې ویناڅخه بلي خورابدي ویناته انتقال دی هغه چي دوی به ویل چي دغه قرآن دگډوډوخوبونوزېږنده دی ﴿ بَلِ افْتَرَاهُ بَلْ هُوَ شَاعِرٌ ﴾ (بلکه له خپل ځانه یې جوړکړی بلکه دی شاعر

---

(۱) القرطبي ۱۱ / ۲۶۸

(۲) الالوسي ۱۷ / ۹

دی) یعني بلکه دوی وايي چي محمدله خپله ځانه داقرآن جوړ کړی بلکه محمد شاعردی اودغه بې شعرویلی دی اوربړونکوته په خیال کي وروليي چي دغه بنايسته کلام دی ؛ په التسهيل کي وايي چي له دوی څخه دغه ټول ګرداقوال راوړل شول چي ددوی په هکله اضطراب اولالهاندتوب وښيي اوداچي دوی په یوه وینا سره متفق نه دي بلکه پخپل حکم کي حيران دی چي په یوه ځېزباندي استقرارنلري[1].

﴿ فَلۡيَأۡتِنَا بِـَٔايَةٖ كَمَآ أُرۡسِلَ ٱلۡأَوَّلُونَ ﴾ پس باید راوړي موږته کومه لويه معجزه لکه هغه (معجزه) چي پخواني (انبياء په هغوسره) لیږلي شوي وو. یعني محمددي موږته یوه خارق العاده معجزه چي دده په ربښتنولي دلالت وکړي راوړي چي هغه لکه دموسی علیه السلام لکړه اویادصالح علیه السلام اوښه وي ﴿ مَآ ءَامَنَتۡ قَبۡلَهُم مِّن قَرۡيَةٍ أَهۡلَكۡنَٰهَآۖ أَفَهُمۡ يُؤۡمِنُونَ ﴾ (وویل الله) ایمان نه وو راوړی (په معجزو) پخواله دوی نه هيڅ (اهل د) کلي چي هلاک کړي دي موږ(اهل د) هغه (په سبب د تکذيب ددوی) آیادغه کفاربه ایمان راوړي ؟) یعني دمکې له مشرکانو پخوا خلګوهم انبیاووته دمعجزاتو دراوړلو وړاندیزکاووبلکه دهغوی یې تکذيب وکړنو الله هلاک کړل آیادغه مشرکان چي معجزې ویني نوبه ایمان راوړي؟ هيڅکله ایمان نه راوړي؛ ابوحیان وايي چي دغه استبعاداوانکار دی یعني دغه کفارترهغوچي له خپلوانبیاوڅخه يې معجزې غوښتلې ډېرسرغړونکي دي نوکه دوی ته ددوی له وړاندیزسره سمه معجزه راوستل شي نوترپخوانیودوی لازيات ګمراهان دي دوی به يومخه ایزه دله بېخه ایستلوعذاب وړاومستحق شي لکن الله تعالی فیصله کړې چي دوی پرېږدي ځکه الله تعالی ته معلومه ده چي ددوی له نسله به مؤمنان پیداکېږي[2]. ﴿ وَمَآ أَرۡسَلۡنَا قَبۡلَكَ إِلَّا رِجَالٗا نُّوحِيٓ إِلَيۡهِمۡۖ ﴾ اونه وولېږلی موږپخواله تا(ای محمده!) مګرخوسړي (نه پرښتې) چي موږبه دوی ته وحی کوله ؛ نوځرنګه دغه مشرکان ستاله رسالت څخه منکرېږي ؟اووايي چي دغه نه دی مګرستاسو په شان بشردی ﴿ فَسۡـَٔلُوٓاْ أَهۡلَ ٱلذِّكۡرِ إِن كُنتُمۡ لَا تَعۡلَمُونَ ﴾ پس پوښتنه وکړئ له خاوندانود ذکره (ای د مکې خلګوله اهل کتابو څخه وپوښتئ چي آیادوی ته راغلی انبياء بشروواوکه پرښتې؟) که يې تاسي چي نه پوهېږی ﴿ وَمَا جَعَلۡنَٰهُمۡ جَسَدٗا لَّا يَأۡكُلُونَ ٱلطَّعَامَ وَمَا كَانُواْ خَٰلِدِينَ ﴾ اونه وو ګرزولي موږ دغه (پخواني رسولان) داسي جسدونه چي خواړه يې نه خوړل اونه وودوی تلپاتي کېدونکي (چي نه مره کېدل) یعني موږ هغوی دداسي اجسادوخاوندان نه وو ګرزولي چي خوراک،څښاک يې لکه پرښتې نه کول بلکه خواړه يې خوړل اوڅښناک يې کاوو، خوب يې درلود، ویدېدل اومره کېدل به﴿ ثُمَّ صَدَقۡنَٰهُمُ ٱلۡوَعۡدَ فَأَنجَيۡنَٰهُمۡ وَمَن نَّشَآءُ ﴾ بیاربښتیاکړه موږ هغوی سره وعده (دنجات ددوی) پس نجات ورکړ موږ هغوی ته اوهغوته چي زموږ(ددوی دنجات) اراده وه (ددوی له اتباعو مؤمنانو څخه) ﴿ وَأَهۡلَكۡنَا ٱلۡمُسۡرِفِينَ ﴾ اوهلاک کړل موږله حده تېرېدونکي کافران ګمراهان چي دانبیاوو علیهم السلام به يې تکذيب کاووپدې کي داهل

---

(۱) التسهیل ۳ / ۲۳

(۲) البحر ۶ / ۲۹۸

مکې لپاره وېرونه ده ﴿ لَقَدْ أَنزَلْنَآ إِلَيْكُمْ كِتَٰبًا فِيهِ ذِكْرُكُمْ ﴾ (خامخا) په تحقيق نازل کړی دی موږ تاسي ته يو کتاب چي په هغه کي ستاسي ذکر دی) يعني والله قسم دی ای د عربو ټبره چي موږ يو ستر کتاب تاسو ته نازل کړی چي مثل نلري او ستاسي په هغه کي شرف او عزت دی ځکه ستاسو په ژبه راغلی دی ﴿ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴾ آيا پس تاسي عقل نلرئ ؟ (چي دغه نعمت دی او ايمان پرې راوړئ کوم چي محمد (ﷺ) تاسي ته راوړی دی ). ﴿ وَكَمْ قَصَمْنَا مِن قَرْيَةٍ كَانَتْ ظَالِمَةً ﴾ او ډېر ټوټې ټوټې کړي دي موږ (په هلاکت سره) له اهل کتابو د کليو چي هغوی ظالمان وو (د الله آيتونه يې نه منل او د پيغمبرانو تکذيب يې کاوو ﴿ وَأَنشَأْنَا بَعْدَهَا قَوْمًا ءَاخَرِينَ ﴾ او پيدا کړل موږ وروسته له هغو څخه قومونه نور ﴿ فَلَمَّآ أَحَسُّوا۟ بَأْسَنَآ إِذَا هُم مِّنْهَا يَرْكُضُونَ ﴾ پس هر کله چي وبه ليدل دوی زموږ عذاب (په سترګو) ناڅاپه دوی به له دغه (عذابه څخه په بېړه) تښتېدل. ابو حيان وايي چي: کله به د عذاب نښي او ښيلامې ورڅرګندې شوې نو پخپلو سورليو به سپاره شول په تېښته به يې تړپول (¹) ﴿ لَا تَرْكُضُوا۟ وَٱرْجِعُوٓا۟ إِلَىٰ مَآ أُتْرِفْتُمْ فِيهِ ﴾ (نو پرښتو په استهزاء سره ورته ويل) مه تښتئ او بېرته لاړ شئ هغه ځای ته چي ښه ژوند درکړی شوی وو تاسي ته په هغه کي (د عيش او عشرت) خوښي او هوسايي ) ﴿ وَمَسَٰكِنِكُمْ ﴾ او کورونو خپلو ته (چي ښايسته وو) ﴿ لَعَلَّكُمْ تُسْـَٔلُونَ ﴾ ښايي چي له تاسي پوښتنه وکړه شي (چي څه درپېښ شوي دغه تول به د استهزاء په ډول توبيخاً ورته ويل کېږي ﴿ قَالُوا۟ يَٰوَيْلَنَآ إِنَّا كُنَّا ظَٰلِمِينَ ﴾ و به وايي ای زموږ هلاکته بېشکه موږ ظالمان وو (چي له الله سره مو شريک نيول او د پيغمبرانو تکذيب مو کاوو چي پښېماني ورته ګټه نه رسوي ﴿ فَمَا زَالَت تِّلْكَ دَعْوَىٰهُمْ ﴾ پس تل به وي دغه د دوی بلنه (هلاکت ته ) يعني دغه خبره به وار په وار تکراروي) ﴿ حَتَّىٰ جَعَلْنَٰهُمْ حَصِيدًا خَٰمِدِينَ ﴾ تر هغو پوري چي وبه ګرزوو موږ دوی رېبل شوي مړه يخ پراته ﴿ وَمَا خَلَقْنَا ٱلسَّمَآءَ وَٱلْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا لَٰعِبِينَ ﴾ (او نه دي پيدا کړي موږ آسمان او نه ځمکه او نه هر هغه څه چي د دوی په مينځ کي دي په داسي حال کي چي موږ لوبي کونکي وو ) يعني دغه موعبث ندي پنځولي (پيدا کړي) بلکي د دې لپاره چي زموږ په قدرت او وحدانيت دلالت وکړي ، خلګ پند ترې واخلي او د حکيم او مدبر خالق ذات په وجود وربانديې دليل ونيسي ﴿ لَوْ أَرَدْنَآ أَن نَّتَّخِذَ لَهْوًا لَّٱتَّخَذْنَٰهُ مِن لَّدُنَّآ ﴾ او که اراده کړي وای موږ چي ونيسو لهو (ښځه ،ولد ) نو خامخا نيولي به وو هغه لهو له خپله لوري ؛ ابن عباس رضى الله عنه وايي چي دغه په هغو کسانو باندي وارکول دي چي دوی به ويل: الله زوی نيولی دی او معناداشوه چي که چېري موغوښتلای چي د لهوی شغل اسباب غوره کړو لکه ښځه او زوی نو موږ به هغه له خپله لوري چي پرښتې يا حور العين دي نيولي وو ﴿ إِن كُنَّا

(¹) البحر ٦ / ٣٠٢

فَٰعِلِينَ ﴾ که موږ ددې کارکونکي وای؛ نو به مو هسې کړې ووخو دغه له حکمت سره منافي دی نو مونږ کړل ﴿ بَلۡ نَقۡذِفُ بِٱلۡحَقِّ عَلَى ٱلۡبَٰطِلِ فَيَدۡمَغُهُۥ ﴾ بلکه موږ ویشتل کوو په حق سره په باطل باندې بیا دغه (حق) دباطل سرماتوي (اوله مینځه یې وړي ﴿ فَإِذَا هُوَ زَاهِقٞۚ ﴾ پس ناڅاپه داباطل هلاک اوورک کېږي ﴿ وَلَكُمُ ٱلۡوَيۡلُ مِمَّا تَصِفُونَ ﴾ اوتاسي ته عذاب، افسوس دی (ای کافرانو) له هغه څه نه چې تاسي یې ثابتوی (الله ته له مېرمني اوزوی څخه ) ﴿ وَلَهُۥ مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِۚ ﴾ اوخاص ده لره دي هرهغه څوک چې په آسمانونوکي دي اوپه ځمکه کي (خلقًا، ملکًااوتصرفًا نوڅرنګه به ورسره دده خپل مخلوق اوبندګان شریکان کړی شي ؟) ﴿ وَمَنۡ عِندَهُۥ لَا يَسۡتَكۡبِرُونَ عَنۡ عِبَادَتِهِۦ وَلَا يَسۡتَحۡسِرُونَ ﴾ (اوهغه (پرښتې) چې دده په نزد دي کبرنه کوي له عبادته د الله اونه ستومانه کېږي ) یعني هغه پرښتې چې تاسویې پرته له الله څخه عبادت کوی دوی د خپل مولا له عبادته سرکښي نه کوي اونه ستړي کېږي اوخفه کېږي ﴿ يُسَبِّحُونَ ٱلَّيۡلَ وَٱلنَّهَارَ لَا يَفۡتُرُونَ ﴾ تسبیح وایې (هم) په شپه او( هم) په ورځ کي نه سستېږي (له ذکر، عبادت اوتنزیه ویلونه) ﴿ أَمِ ٱتَّخَذُوٓاْ ءَالِهَةٗ مِّنَ ٱلۡأَرۡضِ هُمۡ يُنشِرُونَ ﴾ آیانیولي دي دوی نورمعبودان له ځمکي څخه چې دوی به هم مړي ژوندي کوي؟ کله چې الله تعالی پخپل وحدانیت دلائل ذکرکړل اودایې وفرمایل چې: ټول عُلوي اوسفلي موجودات دالله ملک دي اومقربي پرښتې دالله په طاعت اوخدمت کي لګیادي نوبیرته دمشرکانو توبیخ ته راوګرزېدوچې ددوی تسفیه اوبدي وفرمایې (أم) منقطعه چې د(بل) په معنادي اوداستفهام همزه دتعجب اوانکارپه معناده یعني دوی خوداسي معبودان نه دي نیولي چې دمړو په ژوندي کولو قادروي بلکه جمادات دي په هیڅ څېزتوان نلري حقیقي الله خوهغه ذات دی چې په احیاء اوامانت باندي قدرت لري ﴿ لَوۡ كَانَ فِيهِمَآ ءَالِهَةٌ إِلَّا ٱللَّهُ لَفَسَدَتَاۚ ﴾ که چېرې وای په دغه (آسمان اوځمکه ) کي نورمعبودان بې له الله څخه نوخامخابه دواړه وران شوي وای (ددوی داختلاف په سبب) دغه دالله په وحدانیت باندي برهان دی یعني که له الله پرته بل څوک هم واکمن وای نوبه دکائناتونظام وران شوی ووچې ددوی ترمینځ به اختلاف اوشخړې وې (۱) آیاته نه ګورې چې دوه پاچهان په یوه ښارکي اودوه رئیسان په یوه اداره کي سره اوسېدلای نشي ؟

﴿ فَسُبۡحَٰنَ ٱللَّهِ رَبِّ ٱلۡعَرۡشِ عَمَّا يَصِفُونَ ﴾ نو پاک دی الله چې رب دعرش دی له هغو(شیانو ) چې دوی یې ورته منسوبوي (له شریک، مېرمني اوزوی څخه) ﴿ لَا يُسۡـَٔلُ عَمَّا يَفۡعَلُ وَهُمۡ يُسۡـَٔلُونَ ﴾ (نه پوښتېدل کېږي (الله) له هغو شیانوچې کوي یې اودوی پوښتل کېږي) ځکه چې الله مالک دی اومالک پخپلومملوکاتوکي هرڅه کوي اوهغه دحکمت خاوند ذات دی ټول کارونه یې په حکمت جاري دي

(۱) مفسرین کرام وایې چې: په آیت کي په تمانع باندي دلیل دی هغه چې اصولیونوراوړی اووایې کله چې موږ دوه خدایان فرض کړو یوبه دیوڅېزغوښتنه کوي اوبل به یې دنقیض نوکه ددواړوغوښتنه تنفیذشي دغه محال دی ځکه چې د نقیضینواجتماع راځي اوکه دیوه غوښتنه ترسره شي دبل نه نوبیاالومړی اله اودوهم اله نه دی ځکه چې عاجزاوناتوان دی

اودوی بندګان دي له دوی څخه پوښتنه کېدونکي ده ﴿ أَمِ ٱتَّخَذُواْ مِن دُونِهِۦٓ ءَالِهَةًۖ ﴾ (آیانیولي دي دغو(مشرکانو ) بې له دغه (الله) څخه نورآلهة (معبودان) دغه بې مکرر راوړچي په توبیخ کي مبالغه اودشرک دګناه سترتوب وښيي یعني آیادوی له الله نه پرته نور معبودان نیولي چي ورسره عبادت اوتعظیم ښايي ؟ ﴿ قُلْ هَاتُواْ بُرْهَٰنَكُمْۖ ﴾ ووایه (ای محمده دوی ته) چي راوړي خپل سند(په هغه څه چي تاسي شریک نیولی ) ﴿ هَٰذَا ذِكْرُ مَن مَّعِيَ وَذِكْرُ مَن قَبْلِيۗ ﴾ دغه (قرآن) بیان دی دهغه چاچي له ماسره دی(له محمدي امت نه) اوبیان دهغه چادی چي پخواله ماتېرشوي دي) یعني دغه کتاب چي له ماسره دی اوهغه چي له ماپخواتېرشوي لکه تورات اوانجیل په دې کي داسي څه نشته چي دشرک غوښتنه کوي نوداپه کوم کتاب کي راغلي ؟ په قرآن کي اوکه په تېرو کتابونوکي چي په نوروانبیاوونازل شوي دي ؟ نودغه چي تاسو ګمان کوی چي خدایان دېردي هیڅ سندنلری نه هم عقلي اونه نقلي بلکه پخواني کتابونه دالله جل جلاله له شرک څخه په پاکي(تنزیه) شاهدان دي ﴿ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ٱلْحَقَّۖ فَهُم مُّعْرِضُونَ ﴾ بلکه زیاتره ددوی په حقه خبره نه پوهېږي (چي توحیددی) پس دوی مخ ګرزونکي دي (له سوچ کولودایمان په دلائلوکي.

بلاغت:

پدې آیتونوکي چي دبدیع اوبیان کومي ښکلاوي شته لنډېزیې دادی:

۱- تنکیردغفلت په کلمه کي دتعظیم اوتفخیم لپاره لکه چي فرمايي: ﴿ وَهُمْ فِي غَفْلَةٍ ﴾ .

۲- دمبالغې صیغه لکه چي فرمايې: ﴿ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ ﴾ .

۳- اضراب دترقي لپاره چي فرمايې: ﴿ بَلْ قَالُوٓاْ أَضْغَٰثُ أَحْلَٰمٍۭ بَلِ ٱفْتَرَىٰهُ بَلْ هُوَ شَاعِرٌ ﴾ دغه ددوی اضطراب په قرآني اوصافوکي په حیرانتیااولالهاندتوب دلالت کوي چي دوی دروښانه حق قول لپاره څرنګه تزویرکاوودوهمه وینایې ترلومړۍ ناروااودریمه یې تردویمه فاسده اوناروا ده.

۴- توبېخي انکارچي فرمايې ﴿ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴾ .

۵- بلیغه تشبیه چي الله فرمايې: ﴿ حَصِيدًا خَٰمِدِينَ ﴾ یعني لکه رېبلی کښت اومړاورغوندي موهلاک کړي دي.

۶- تمثیلي استعاره لکه چي پدې آیت شریف کي راغي: ﴿ بَلْ نَقْذِفُ بِٱلْحَقِّ عَلَى ٱلْبَٰطِلِ فَيَدْمَغُهُۥ ﴾ حق یې له کرېږ(کلک ) شي سره تشبیه کړی اوباطل یې له نرم اوبیايې دویشتلواوسرماتولوالفاظ دغلبې لپاره په باطل باندي دتمثیل په توګه راوړي لکه چي په کلک شي باندي دباطل دماغ ویشتلی کېږي اوځړل کېږي اوپه دې تعبیرکي خوراښکلي مبالغه ده چي باطل څرنګه له مینځه وړل کېږي ؟

۷- دسلب طباق چي کله فرمايې ﴿ لَا يُسْـَٔلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْـَٔلُونَ ﴾ .

۸ - پدې کلام کې چې الله تعالی فرمايي ﴿قُلْ هَاتُوا۟ بُرْهَـٰنَكُمْ﴾ د تبکيت يعني چوپولو صنعت دی ګواکي د دښمن خولې ته د بره ورغور څول دي.

فائده:

له کعب (غالبًا کعب الاحبار) څخه وپوښتل شول چې پرښتې څرنګه شپه او ورځ تسبيح وايي آيا په کوم بل کارکي د مشغولا په سبب هيڅکله هم څنې نه قضا کېږي؟ کوم بل څه ته يې کله هم اړتيا نه پېښېږي؟ نوهغه پوښتونکي ته وويل: چې اى وراره دوی ته تسبيح داسي ګرزول شوي لکه چې تاسو ته دساه اخيستل دي آيا ته څه خوراک او څښاک نه کوې؟ نه ولاړېږي او نه کښېنې؟ نه څې او نه راځې خو پدې ټولو حالاتو کي بيا هم تاسي ساه اخلی همداسي د دوی تسبيح ګرزول شوي دي.

***

الله تعالی فرمايي:

﴿وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ مِن رَّسُولٍ إِلَّا نُوحِىٓ إِلَيْهِ أَنَّهُۥ لَآ إِلَـٰهَ إِلَّآ أَنَا۠ فَٱعْبُدُونِ ﴿٢٥﴾ وَقَالُوا۟ ٱتَّخَذَ ٱلرَّحْمَـٰنُ وَلَدًا ۗ سُبْحَـٰنَهُۥ ۚ بَلْ عِبَادٌ مُّكْرَمُونَ ﴿٢٦﴾ لَا يَسْبِقُونَهُۥ بِٱلْقَوْلِ وَهُم بِأَمْرِهِۦ يَعْمَلُونَ ﴿٢٧﴾ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلَا يَشْفَعُونَ إِلَّا لِمَنِ ٱرْتَضَىٰ وَهُم مِّنْ خَشْيَتِهِۦ مُشْفِقُونَ ﴿٢٨﴾ ۞ وَمَن يَقُلْ مِنْهُمْ إِنِّىٓ إِلَـٰهٌ مِّن دُونِهِۦ فَذَٰلِكَ نَجْزِيهِ جَهَنَّمَ ۚ كَذَٰلِكَ نَجْزِى ٱلظَّـٰلِمِينَ ﴿٢٩﴾ أَوَلَمْ يَرَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ أَنَّ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ كَانَتَا رَتْقًا فَفَتَقْنَـٰهُمَا ۖ وَجَعَلْنَا مِنَ ٱلْمَآءِ كُلَّ شَىْءٍ حَىٍّ ۖ أَفَلَا يُؤْمِنُونَ ﴿٣٠﴾ وَجَعَلْنَا فِى ٱلْأَرْضِ رَوَٰسِىَ أَن تَمِيدَ بِهِمْ وَجَعَلْنَا فِيهَا فِجَاجًا سُبُلًا لَّعَلَّهُمْ يَهْتَدُونَ ﴿٣١﴾ وَجَعَلْنَا ٱلسَّمَآءَ سَقْفًا مَّحْفُوظًا ۖ وَهُمْ عَنْ ءَايَـٰتِهَا مُعْرِضُونَ ﴿٣٢﴾ وَهُوَ ٱلَّذِى خَلَقَ ٱلَّيْلَ وَٱلنَّهَارَ وَٱلشَّمْسَ وَٱلْقَمَرَ ۖ كُلٌّ فِى فَلَكٍ يَسْبَحُونَ ﴿٣٣﴾ وَمَا جَعَلْنَا لِبَشَرٍ مِّن قَبْلِكَ ٱلْخُلْدَ ۖ أَفَإِي۟ن مِّتَّ فَهُمُ ٱلْخَـٰلِدُونَ ﴿٣٤﴾ كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ ٱلْمَوْتِ ۗ وَنَبْلُوكُم بِٱلشَّرِّ وَٱلْخَيْرِ فِتْنَةً ۖ وَإِلَيْنَا تُرْجَعُونَ ﴿٣٥﴾ وَإِذَا رَءَاكَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ إِن يَتَّخِذُونَكَ إِلَّا هُزُوًا أَهَـٰذَا ٱلَّذِى يَذْكُرُ ءَالِهَتَكُمْ وَهُم بِذِكْرِ ٱلرَّحْمَـٰنِ هُمْ كَـٰفِرُونَ ﴿٣٦﴾ خُلِقَ ٱلْإِنسَـٰنُ مِنْ عَجَلٍ ۚ سَأُو۟رِيكُمْ ءَايَـٰتِى فَلَا تَسْتَعْجِلُونِ ﴿٣٧﴾ وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَـٰذَا ٱلْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَـٰدِقِينَ ﴿٣٨﴾ لَوْ يَعْلَمُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ حِينَ لَا يَكُفُّونَ عَن وُجُوهِهِمُ ٱلنَّارَ وَلَا عَن ظُهُورِهِمْ وَلَا هُمْ يُنصَرُونَ ﴿٣٩﴾ بَلْ تَأْتِيهِم بَغْتَةً فَتَبْهَتُهُمْ فَلَا يَسْتَطِيعُونَ رَدَّهَا وَلَا هُمْ يُنظَرُونَ ﴿٤٠﴾ وَلَقَدِ ٱسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّن قَبْلِكَ فَحَاقَ بِٱلَّذِينَ سَخِرُوا۟ مِنْهُم مَّا كَانُوا۟ بِهِۦ يَسْتَهْزِءُونَ ﴿٤١﴾ قُلْ مَن يَكْلَؤُكُم بِٱلَّيْلِ وَٱلنَّهَارِ مِنَ ٱلرَّحْمَـٰنِ ۗ بَلْ هُمْ عَن ذِكْرِ رَبِّهِم مُّعْرِضُونَ ﴿٤٢﴾ أَمْ لَهُمْ ءَالِهَةٌ تَمْنَعُهُم مِّن دُونِنَا ۚ لَا يَسْتَطِيعُونَ نَصْرَ أَنفُسِهِمْ وَلَا هُم مِّنَّا يُصْحَبُونَ ﴿٤٣﴾ بَلْ مَتَّعْنَا هَـٰٓؤُلَآءِ وَءَابَآءَهُمْ حَتَّىٰ طَالَ عَلَيْهِمُ ٱلْعُمُرُ ۗ أَفَلَا يَرَوْنَ أَنَّا نَأْتِى

﴿ٱلْأَرْضَ نَنقُصُهَا مِنْ أَطْرَافِهَآ أَفَهُمُ ٱلْغَـٰلِبُونَ ﴿٤٤﴾ قُلْ إِنَّمَآ أُنذِرُكُم بِٱلْوَحْىِ وَلَا يَسْمَعُ ٱلصُّمُّ ٱلدُّعَآءَ إِذَا مَا يُنذَرُونَ ﴿٤٥﴾ وَلَئِن مَّسَّتْهُمْ نَفْحَةٌ مِّنْ عَذَابِ رَبِّكَ لَيَقُولُنَّ يَـٰوَيْلَنَآ إِنَّا كُنَّا ظَـٰلِمِينَ ﴿٤٦﴾ وَنَضَعُ ٱلْمَوَٰزِينَ ٱلْقِسْطَ لِيَوْمِ ٱلْقِيَـٰمَةِ فَلَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْـًٔا ۖ وَإِن كَانَ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ أَتَيْنَا بِهَا ۗ وَكَفَىٰ بِنَا حَـٰسِبِينَ ﴿٤٧﴾ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَىٰ وَهَـٰرُونَ ٱلْفُرْقَانَ وَضِيَآءً وَذِكْرًا لِّلْمُتَّقِينَ ﴿٤٨﴾ ٱلَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُم بِٱلْغَيْبِ وَهُم مِّنَ ٱلسَّاعَةِ مُشْفِقُونَ ﴿٤٩﴾ وَهَـٰذَا ذِكْرٌ مُّبَارَكٌ أَنزَلْنَـٰهُ ۚ أَفَأَنتُمْ لَهُۥ مُنكِرُونَ ﴿٥٠﴾﴾ الأنبياء: ۲۵ ـ ۵۰

مناسبت او تړاو:

کله چي الله تعالی د مشرکانو حالات بیان کړل او د خپل وحدانیت په هکله یې دلائل راوړل د دوی د متعدد و معبودانو نظریه یې باطله کړه نو د دلته په ډاګه کوي چي د ګردو انبیاوو بلنه او دعوت د توحید لپاره وه او وبیادې کائناتو په شتون سره د وحدانیت او قدرت نور دلائل ښیي

لغتونه:

(رتقا) پیوستون او د (فتق) ضد دی چي هغه پرانستون ته وایي (تمید) خوځښت او اضطراب ته وایي (فجاجا) د فج جمع او هغه بیا پراخي لیاري ته ویل کېږي (یسبحون) په چټکتیا سره تللو ته وایي او لکه چي لامبو وهونکی په اوبو کي ګړندی روان وي (فتبهتهم) (بهت) حیرانتیا او دهشت. جوهري وایي (بهته بهتا) یعني نابېره نیولو ته ویل کېږي او فرآء بیا وایي (بهته) معنا دا چي یو داسي څېز ورسره مخامخ شي چي حیران لا لهاندي یې کړي[1] (یکلاکم) ستاسو ساتنه کوي (کلاءة) حفظ او ساتني ته ویل کېږي.

د نزول سبب یې:

یوه ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم په لاره تېرېدو ابو سفیان او ابو جهل یې ولیدل چي یو له بله سره غږېدل او چي ابو جهل رسول الله ولیدنو په مسکا شو او ابو سفیان ته یې وویل چي دغه د بني عبدمناف نبي دی او ابو سفیان ته غصه ورغله ورته ویل یې آیا تاته دا خوندنه درکوي چي له بني عبدمناف څخه دي پیغمبر غوره شوی وي؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم دوی ته راستون شو او ابو جهل ته یې ویل: ترهغو پوري خوله نه درنیسې څو تاته هم هغه څه ورسېږي کوم چي ستا تره ولید بن مغیرة ته ورسېدل نو دا آیت شریف نازل شو: ﴿وَإِذَا رَءَاكَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓاْ إِن يَتَّخِذُونَكَ إِلَّا هُزُوًا﴾ [2]

تفسیر:

﴿وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ مِن رَّسُولٍ﴾ او نه وو لېږلي مونږ پخوا له تا څخه (ای محمده) هیڅ رسول ﴿إِلَّا نُوحِىٓ إِلَيْهِ أَنَّهُۥ لَآ إِلَـٰهَ إِلَّآ أَنَا۠﴾ مګر چي مونږ به هغه ته (داسي) وحی کوله چي بېشکه شان دا دی نشته برحق معبود مګر زه (الله) یم ﴿فَٱعْبُدُونِ﴾ نو تاسي زما بندګي کوئ (په یوازي توګه او له ما سره هیڅ

[1] القرطبي ۱۱/۲۹۰
[2] روح المعاني

شريک مه نيسئ) ﴿ وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمَنُ وَلَدًا ﴾ (اوواېي دغه (مشرکان) الله ولدنيولی دی) يعني مشرکان وايي چي الله پرښتې اولادنيولي دي. مفسرين کرام وايي چي دغه (دخزاعه) دتبريو کلی ورچي عقيده يې لرله پرښتې دالله تعالی لوڼي دي ﴿ سُبْحَانَهُ ﴾ پاک دی دغه (الله له هغه څخه چي مشرکان وايي) ﴿ بَلْ عِبَادٌ مُكْرَمُونَ ﴾ بلکه دوی عزتمن بندګان دي دالله په نزدلوړي مرتبې لري اودالله منونکي دي) ﴿ لَا يَسْبِقُونَهُ بِالْقَوْلِ وَهُم بِأَمْرِهِ يَعْمَلُونَ ﴾ (چي نشي ړومبی کېدی دوی له دغه الله څخه په خبره سره اودوی خاص په حکم دالله عمل کوي) يعني چي الله څه ورته وايي دوی بيا څه نه وايي دوی دهغوبندګانو شان لري کوم چي مؤدب اومنونکي وي دالله له هيڅ حکم څخه غاړه نه غړوي ﴿ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ ﴾ الله ته معلوم دي هغه څه چي ددوی دوړاندي دي اوهغه څه چي ددوی دوروسته دي (يعني دالله علم پردوی محيط دی ددوی هيڅ کارپه الله باندي پټ اوخفي نه دی) ﴿ وَلَا يَشْفَعُونَ إِلَّا لِمَنِ ارْتَضَى ﴾ اونکوي شفاعت دوی (نه يې شي کولای دهيچا) مګردهغه چاچي (الله ترې) راضي وي (اودغه اهل ايمان خلګ دي لکه چي ابن عباس رضی الله عنه وايي دوی هغه کسان دي چي شاهدي وايي: لااله الاالله ﴿ وَهُم مِّنْ خَشْيَتِهِ مُشْفِقُونَ ﴾ اودوی له هيبته دالله څخه وېرېدونکي دي (څکه چي دوی ته دالله عظمت معلوم دی. حسن رضی الله عنه وايي دوی دالله له وېري رپېږي ﴿ وَمَن يَقُلْ مِنْهُمْ إِنِّي إِلَٰهٌ مِّن دُونِهِ ﴾ اوهرڅوک چي ووايي له دغو(پرښتو) چي بېشکه زه معبوديم بې له الله څخه ﴿ فَذَٰلِكَ نَجْزِيهِ جَهَنَّمَ ﴾ پس دغه (ويونکي ته) جزابه ورکوومورډه ته دوزخ. مفسرين کرام وايي چي دغه دتهديد په ډول اوبالفرض والتقديردی څکه دغه شرط دی او دشرط واقع کېدل لازم نه دي اوپرښتي له ګناه نه پاک اومعصوم دي ﴿ كَذَٰلِكَ نَجْزِي الظَّالِمِينَ ﴾ داسي (سخته) سزاورکوو ظالمانو ته (څوک چي دالله له حدودوڅخه وتل اوتجاوزکوي) ﴿ أَوَلَمْ يَرَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنَّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ كَانَتَا رَتْقًا فَفَتَقْنَاهُمَا ﴾ (آياندي ليدلی (نه دي خبر) هغه کسان چي کافران شوي دي چي بېشکه آسمانونه اوځمکي وو دواړه سره نښتي (په اول کي) پس بېل کړل موږ دوی دواړه) يعني آياهغه څوک چي له الله سره بتان په عبادت کي شريک ګڼي آيادغه منکران پدې نه دي خبرچي ځمکي اوآسمانونه دواړه سره موښتی يوشی ووبياالله سره بېل کړل آسمان يې پورته ودراوو اوځمکه يې لکه چي اوس ده هواره کړه حسن اوقتاده وايي چي آسمانونه اوځمکي سره پيوسته وې بياالله دهواپه سبب سره بېل کړې [(۱)] عبدالله ابن عباس رضی الله عنهما وايي چي: آسمان سره نښتی اوباران به څني نه اورېدواوځمکه بيابنده اوسره نښتي وه چي هيڅ بوټی ورڅخه نه زرغونېدو نوآسمان يې په اورښت او باران سره

(۱) القرطبي ۱۱/ ۲۸۳

پرانستل اودخمکي مسامونه خلاص شول شينکي کښتونه او ترکودي بوټي يې زرغونه کړل (۱)﴿ وَجَعَلْنَا مِنَ الْمَاءِ كُلَّ شَيْءٍ حَيٍّ ﴾ (اوموږهرژوندی شی له اوبو څخه پيداکړی دی) يعني اوبه مو د ژوندانه سبب جوړکړی له اوبوپرته دانسان ، حيوان اونبات ژوند ممکن نه دی ﴿ أَفَلَا يُؤْمِنُونَ ﴾ نوآيادوی ايمان نه راوړي (په قدرت دالله) ﴿ وَجَعَلْنَا فِي الْأَرْضِ رَوَاسِيَ أَنْ تَمِيدَ بِهِمْ ﴾ اوموږپرځمکه باندي درانه محکم غرونه ولاړپيداکړي دي چي داځمکه په دوی ونه خوځېږي (بيابه دوی درباندي قرارنه مومي) ﴿ وَجَعَلْنَا فِيهَا فِجَاجًا سُبُلًا لَعَلَّهُمْ يَهْتَدُونَ ﴾ اوګرزولی دی موږپه دغه (ځمکه او غرونو) کي ارتي لارې (ترڅوچي دسفرونوپه وخت کي ورته آساني وي ابن کثيروايې چي معناداچي په غرونو کي داسي لاښونه شته چي له يولوري څخه يې بل ته درباندي پوري وتل ممکن وي له يواقليم څخه بل ته تلل آسانه وي لکه چي په ځمکه کي ليدل شوي يو غرددوهيوادونوترمينځ حائل وي خوالله دانسانانودتګ راتګ لپاره پکي لارې اوسوري پرانستلي وي (۲)﴿ وَجَعَلْنَا السَّمَاءَ سَقْفًا مَحْفُوظًا ﴾ اوګرزولي دی موږ آسمان چت ساتل شوی ( له پرېوتلو او ابن عباس رضی الله عنه وايې معناداچي په ستوروسره دشيطانانوله ورتلوژغورل شوی دی ﴿ وَهُمْ عَنْ آيَاتِهَا مُعْرِضُونَ ﴾ (اودغه کفارله علامو دآسمانونو څخه مخ ګرزونکي دي) يعني کفارله هغونښو نښانوچي دصانع په قدرت دلالت کوي لکه لمر، سپوږمۍ ، ستوري اونورد پنداوعبرت شيانوڅخه مخ اړونکي دي پدې کي سوچ او فکرنه کوي چي څرنګه دقدرت لاس داسي عجيب اوغريب خلقت اوپيدايښت په داسي نادر او فريدنظم اوپښيلوسره پيداکړی چي داپه سترحکمت اورسېدلي توان اوقدرت باندي دلالت کوي. قرطبي وايې چي الله دلته دابښودلي ده چي مشرکان دآسمانونوپه هکله له نظرکولوڅخه غافل دي پدې کي سوچ نه کوي چي شپه ، ورځ ، لمر، سپوږمۍ ، افلاک اوبادونه څومره دسترقدرت نښې او علامي دي؟ څکه که چېري يې نظرکولای اوپندېې څني اخيستلای نوبه اروموپوهېدلي وای چي دغه دقادر، صانع ، واحدلاشريک ذات پنځول اوخلقت دی محال دی چي له هغه سره دې بل شريک وي(۳)﴿ وَهُوَ الَّذِي خَلَقَ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ﴾ (اودغه (الله) هغه (مطلق قادردی چي پخپل بالغه حکمت ) يې پيداکړي ده شپه (دآرامتياﻟپاره) اوورځ (دکارلپاره) اولمر(درڼالپاره) اوسپوږمۍ (دروښنايې لپاره) يعني الله تعالی هغه واکمن ذات دی چي پخپل قدرت يې ژوندانه ته شپه او ورځ وربښلي ده دغه په تياره اوآرامي کي اودابله په رڼا اومېني محبت کي کله دالوئېږي اوکله بياهغه بله همداسي اولمر اوسپوږمۍ يې دوه څرګندي نښانې پخپل وحدانيت باندي پيداکړي دي ﴿ كُلٌّ فِي فَلَكٍ يَسْبَحُونَ ﴾ دغه هريوله دغو(لمر، قمر اوستورو څخه په شپه اوورځ کي )پخپل فلک کي حرکت کوي (په تلواردرومي لکه لامبوزن په

(۱) زادالمسير ۵ / ۳۴۸

(۲) المختصر ۲ / ۵۰۷

(۳) القرطبي ۱۱ / ۲۸۵

لامبو وهلوكي) ﴿ وَمَا جَعَلْنَا لِبَشَرٍ مِّن قَبْلِكَ الْخُلْدَ ﴾ اوندى ګرزولى موږهيڅ يوانسان ته پخوا له تانه (اى محمده!) تل ژوندى پاتي كېدل (په دنياكي) ﴿ أَفَإِين مِّتَّ فَهُمُ الْخَالِدُونَ ﴾ آيا پس كه ته مړشې (اى محمده!) پس دوى به تل پاتي كېدونكي وي په دنياكي؟ (نه هيڅكله داسي نه شي كېداى ټول دفنا په لوري درومي. مفسرين كرام وايي چي دغه دمشركانو دهغي وينا په ترديد كي الله فرمايلي چي دوى به ويل: ﴿ أَمْ يَقُولُونَ شَاعِرٌ نَّتَرَبَّصُ بِهِ رَيْبَ الْمَنُونِ ﴾ (الطور ۳۰) نو الله جل جلاله هغه وپوهاووچي ترده له مخه انبياء ګردمړه شوي اوالله دخپل دين ساتنه كړي ده همداسي به دده دشريعت اودين دخوندي ساتلو بندوبست كوي ﴿ كُلُّ نَفْسٍ ذَائِقَةُ الْمَوْتِ ﴾ هريونفس دمرګ څكونكى دى يعني مري به ) يوازي حئ قيوم ذات به تل وي ﴿ وَنَبْلُوكُم بِالشَّرِّ وَالْخَيْرِ فِتْنَةً ﴾ (او ازمايو موږتاسي (په دنيا كي) په شر، بدي اوخير، نېكي سره ازموينه) يعني موږتاسو په دنياكي په مصيبتونو اونعمتونو ازمويو ترڅوشاكرا ومنكر صبر كونكى اوقانط ښكاره شي. ابن عباس رضى الله عنه وايي: معناداچي تاسو په سختي اوهوسايي، روغتيااورنځوري ،بډايي اونېستي، حلال اوحرام ، طاعت او معصيت ، هدايت اوګمراهي سره ازمويو[1] اوابن زيد وايي: معنايي داچي: موږتاسوپرهغه څه ازمويوچي تاسويې خوښوى ترڅوستاسوشكرمعلوم كړواوپه هغه څه موازمويو چي تاسو ورڅخه كركه اونفرت كوى ترڅوچي ستاسي صبرمعلوم كړو[2] ﴿ وَإِلَيْنَا تُرْجَعُونَ ﴾ اوخاص موږته به تاسي راوستلى شى (ترڅو دخپلواعمالوجزاووينى) ﴿ وَإِذَا رَآكَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِن يَتَّخِذُونَكَ إِلَّا هُزُوًا ﴾ (اوكله چي تا ووينى هغه كسان چي كافران شوي دى نونه نيسي تاګرمسخره كړى شوى) يعني اى محمده! كله چي تاقريشي كفارلكه ابوجهل اودده ملګري ووينى نوپه تاملنډي وهي اووايي: ﴿ أَهَٰذَا الَّذِي يَذْكُرُ آلِهَتَكُمْ ﴾ ؟ آياداهمغه څوک دى چي يادوي (په بدى اوسپكه ) معبودان ستاسي؟ (په استفهام كي انكاراوتعجب دى يعني همدغه ستاسومعبودان ښكنځي اوتاسوسپكوي؟ ﴿ وَهُم بِذِكْرِ الرَّحْمَٰنِ هُمْ كَافِرُونَ ﴾ (حال داچي دغه (كافران) په يادولودرحمان (په وحدانيت سره) هم دوى كافران دي) يعني حال دا چي دغه كفارپه الله ايمان نلري اوبياهم په رسول الله استهزآء كوي. قرطبي وايي چي مشركانوبه دهغه چابدي ويله چي چابه ددوى دباطلوخدايانوالوهيت نه مانوحال داچي دوى پخپله درحمان الله له الهيت څخه منكروو اودغه دجهل اوناپوهي وروستى سرحددى ﴿ خُلِقَ الْإِنسَانُ مِنْ عَجَلٍ ﴾ (انسان له تلواري پيداكړى شوى دى) يعني دانسان په طبيعت اوخاوره كي بې صبري شته هرڅه په تلواره غواړي كه څه هم دده لپاره تاوان وي. ابن كثيروايي چي دانسان دتعجيل اوتلواري ديادوني حكمت دلته دادى چي كله يې دمستهزئينوذكر وفرمايونوپه زړونوكي له دوى څخه ژرانتقام اخيستل

---

([1]) المختصر ۲ / ۵۰۸

([2]) ابن الجوزي ۵ / ۳۵۰

راګرزېدل اودوی ددې غوښتنه په تلوارکوله ځکه یې بیاوفرمایل: ﴿ سَأُوْرِيكُمْ ءَايَـٰتِي فَلَا تَسْتَعْجِلُونِ ﴾ ژربه وښیم تاسي ته خپل آیات (موعودعذاب) دهغه چالپاره چي سرغړونه کوي ) پس تاسي تلوارمکوئ مخ کي له راتلوڅخه یې ) ﴿ وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَـٰذَا ٱلْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَـٰدِقِينَ ﴾ (اووایي دا(کفار)کله به وي دغه وعده (دراتلودعذاب یاقیامت که چېري یاست تاسي رښتیني ) یعني مشرکان دمسخرواوملنډوپه توګه وایې ای مؤمنانوکه چېري تاسوپه دغه خبرکي رښتوني یاست؟ کله به دغه عذاب وي کوم چي محمد موږورباندي وېروي ؟ الله جل جلاله فرمایي ﴿ لَوْ يَعْلَمُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ حِينَ لَا يَكُفُّونَ عَن وُجُوهِهِمُ ٱلنَّارَ وَلَا عَن ظُهُورِهِمْ ﴾ که پوهېدلي وای هغه کسان چي کافران شوي دي هغه وخت چي نه به شي منع کولای له مخونوخپلو اور(ددوزخ) او نه له شاګانوخپلو (ځکه چي اوربه ترې چاپېروي له ټولو خواوونه پدې چي دوی په تلواره عذاب غوښتو. په البحرالمحیط کي وایي چي خواب د(لو) محذوف دی چي داپه وېرونه سره خورازیات دلالت کوي . زمخشري وایې چي څرنګه چي دوی دکفر، استهزآء اواستعجال ګردصفتونه لرل دغه عذاب به ورکول کېږي خوددوی جهل هغه ددوی لپاره آسانه ګڼلی دی ([1]) ﴿ وَلَا هُمْ يُنصَرُونَ ﴾ اونه به له دوی سره مرسته وکړل شي (چي دالله له عذابه یې وژغوري ) ﴿ بَلْ تَأْتِيهِم بَغْتَةً فَتَبْهَتُهُمْ ﴾ بلکه رابه شي دوی ته دغه (قیامت ناڅاپه پس دوی به حیران کړي ﴿ فَلَا يَسْتَطِيعُونَ رَدَّهَا وَلَا هُمْ يُنظَرُونَ ﴾ پس دوی توان نه لري دهغه دلیري کولواونه به دوی ته (دتوبې اوعذر) مهلت ورکاوه شي ﴿ وَلَقَدِ ٱسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّن قَبْلِكَ ﴾ (اوخامخاپه تحقیق مسخرې شوي دي په رسولانوپخواله تا ) پدې کي درسول الله صلی الله علیه وسلم لپاره ډاډینه ده چي کله به دمشرکانوله خواهغه ته استهزآء ګاني اومسخرې کېدلې یعني ترتاپخوادستروډېرو پیغمبرانوسره هم داسي چلند شویدی چي قومونو به یې ورباندي استهزاګاني اومسخرې کولې ﴿ فَحَاقَ بِٱلَّذِينَ سَخِرُوا۟ مِنْهُم مَّا كَانُوا۟ بِهِۦ يَسْتَهْزِءُونَ ﴾ پس نازل شوپه هغوکسانوچي مسخرې یې کولې له پخوانیوأمتونونه (جزاء) دهغه شي چي وودوی چي په هغه سره به یې مسخرې کولې) ابوحیان وایې چي رسول الله ته الله تسلي ورکړه چي پخوانیو انبیاوُوته هم له خپلوأمتونوڅخه استهزاوي ورکول شوي اوبیادوی دخپلي استهزآء ثمره هلاک اوعذاب په دنیااو آخرت کي ځکلي دي نوهمداسي ددغواستهزاء کونکوحال هم وګڼه ([2]) ﴿ قُلْ مَن يَكْلَؤُكُم بِٱلَّيْلِ وَٱلنَّهَارِ مِنَ ٱلرَّحْمَـٰنِ ﴾ ووایه(ای محمده ! دوی ته) څوک ساتي تاسي دشپې او دورځي له عذاب درحمن څخه؟ دغه دتقریع په ډول پوښتنه ده ترڅوچي دوی په ورکړل شوو نعمتونوتېرنه ایستل شي او غرور ونکري یعني هیڅوک نشته ﴿ بَلْ هُمْ عَن ذِكْرِ رَبِّهِم مُّعْرِضُونَ ﴾ بلکه دوی له یاده درب (له کلامه پنده دهغه ) څخه مخ ګرزونکي دي (نه پکي سوچ کوي

---

([1]) البحر ۶ / ۳۱۳
([2])- ۳۱۴ / البحر.

اونه ترې پنداخلي ﴿ أَمْ لَهُمْ ءَالِهَةٌ تَمْنَعُهُم مِّن دُونِنَا ﴾ آیاشته ددوی لپاره نورمعبودان چي دوی ساتي (له عذاب څخه) غیرله موږنه؟ ﴿ لَا يَسْتَطِيعُونَ نَصْرَ أَنفُسِهِمْ وَلَا هُم مِّنَّا يُصْحَبُونَ ﴾ (طاقت نلري (دغه معبودان) دمرستي د خپلوځانونواونه دوی زموږ له عذاب څخه ساتل کېږي) يعني دوی خپل ځان نشي ژغورلای نو عابدان به څنګه وژغوري. ابن عباس رضی الله عنه ددې ﴿ يُصْحَبُونَ ﴾ کلمې معنا دابنيي چي نه څوک دوی ته له موږ څخه پناه ورکولای شي څکه پناه ورکونکی د پناه غوښتونکي ملګری وي (١) ﴿ بَلْ مَتَّعْنَا هَٰؤُلَاءِ وَءَابَاءَهُمْ حَتَّىٰ طَالَ عَلَيْهِمُ الْعُمُرُ ﴾ بلکه نفع رسولي ده موږدغو (کفارو) ته او پلرونو د دوی ته( دژوندانه په ارزاقواو اسبابوسره) ترهغه پوري چي اوږده شوه پردوی باندي (موده د ) عمر (په نعمتونواوسوکاليوکي او دوی پدې غره شول اووايې انګېرله چي ګواکي دابه تل وي) ﴿ أَفَلَا يَرَوْنَ أَنَّا نَأْتِي الْأَرْضَ نَنقُصُهَا مِنْ أَطْرَافِهَا ﴾ آيانهويني (کفار) چي بېشکه موږ راتګ (اوقصد) کوو ځمکي (دکفارو) ته پداسي حال چي کموو هغه له څنډوددغي (ځمکي نه له فتوحاتووروسته چي مؤمنان او پيغمبروربانديمسلط کوو ) ﴿ أَفَهُمُ الْغَالِبُونَ ﴾ آياکفارغالب دي (په مؤمنانو؟ بلکه د اسلام په وړاندي تل مغلوب دي استفهام دتقريع اوانکارپه معنا دی ﴿ قُلْ إِنَّمَا أُنذِرُكُم بِالْوَحْيِ ﴾ ووايه (ای محمده ! دوی ته )بېشکه هم داخبره ده چي زه تاسي په وحی سره وېروم؛ دغه زماله خپله لوري نه ده بلکه زه دالله له لوري تاسي ته وېرونکی مبلغ يم چي تاسودالله له عذاب اوهلاکت څخه وېروم ﴿ وَلَا يَسْمَعُ الصُّمُّ الدُّعَاءَ إِذَا مَا يُنذَرُونَ ﴾ اونه اوري کوڼ بلنه کله چي ووېرولی شي (نوتاسي هم دکاڼه په شان خبره نه اوری اونه پنداخلی ) ﴿ وَلَئِن مَّسَّتْهُمْ نَفْحَةٌ مِّنْ عَذَابِ رَبِّكَ ﴾ اوکه چېري ورسېږي دوی ته لږڅه تپ له عذاب درب ستا(که څه هم ډېرسپک اولږوي) ﴿ لَيَقُولُنَّ يَا وَيْلَنَا إِنَّا كُنَّا ظَالِمِينَ ﴾ نوخامخا(کفار) وايې هرومرو ای هلاکه زموږ(راحاضرشه دغه دي وخت دی ) بېشکه چي موږ وو (پخواله دغه عذاب څخه ) ظالمان (په کفرسره چي دانبياوو تکذيب موکاوو) ﴿ وَنَضَعُ الْمَوَازِينَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيَامَةِ ﴾ او موږ کېږدوو تلي دانصاف لپاره د(اهل دورځي دقيامت ) ﴿ فَلَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا ﴾ پس ظلم به ونکړی شي په هيڅ نفس دهيڅ شي يعني دمحسن له احسانه به کم نشي اودمسئ په ګناه به ورزيات نشي ﴿ وَإِن كَانَ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ أَتَيْنَا بِهَا ﴾ اوکه وي دغه (عمل) په قدرديوې دانې سپلني ( اوري)نورابه وړودغه دانه (راحاضربه يې کړو) ابوالسعودوايې معناداچي که څه هم نهايته لږ وي څکه چي دسپلني دانه دلږشي لپاره مثال راوړل کېږي (٢) ﴿ وَكَفَىٰ بِنَا

(١) زادالمسير ٥ / ٣٥٣
(٢) ابوالسعود ٣ / ١٢٤

حَـٰسِبِينَ ﴾ اوپس يو موږ حساب كونكي (دبندګانود اعمالواوجزا وركونكي دوى ته) خازن وايې چې: مقصدله دې څخه تحذيردى څكه كله چې محاسب داسي باريک بين وي چې هيڅ شى ورڅخه پټ نه پاتي كېږي اودومره توانمن وي چې هيڅوک يې مغلوبولاى نشي نوهوښيارسړي ته پكارده چې ورڅخه خوراپه وېره او خوف كي اوسي (١)﴿ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَىٰ وَهَـٰرُونَ ٱلْفُرْقَانَ وَضِيَآءً وَذِكْرًا لِّلْمُتَّقِينَ ﴾ اوهرومروپه تحقيق موږ وركړى وو موسى اوهارون ته فرقان (دحق اوباطل بېلونكى كتاب) اورڼا (چې حق له باطل څخه ور باندي ليدل كېږي) اونصيحت دپرهېزګارانولپاره (چې مؤمنان وي) ﴿ ٱلَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُم بِٱلْغَيْبِ ﴾ (متقيان) هغه كسان دي چې وېرېږي له رب خپله څخه په غيب سره؛ (دوى هغه نه دى ليدلى مګرپه نظراواستدلال سره ورته معلومه ده چې دى سترقادرپروردګارچې په عملونوجزاوركوي نو څني وېرېږي كه څه هم يې ليدلى نه دى ﴿ وَهُم مِّنَ ٱلسَّاعَةِ مُشْفِقُونَ ﴾ اودوى (تل) له قيامته وېرېدونكي دي ﴿ وَهَـٰذَا ذِكْرٌ مُّبَارَكٌ أَنزَلْنَـٰهُ أَفَأَنتُمْ لَهُۥ مُنكِرُونَ ﴾ اودا (قرآن) مبارک نصيحت (پند) دى چې موږهغه نازل كړى دى (په محمدصلى الله عليه وسلم) ستاسي په ژبه) آياپس تاسي له دې نه (چې خوراڅرګنداوروښان دى؟) انكار كونكي يئ؟ (اى عربي ټولني !) كرخي رحمه الله وايې چې استفهام دتوبيخ لپاره اوخطاب دمكې خلګوته دى څكه دوى اهل لسان اودكلام مزاياوي پېژني په لطائفو باريكيو اوبلاغت يې دومره زيات پوهېږي چې بل څوک پرې نه پوهېږي بل داچې دوى ته دغه شرافت هم ورپه برخه دى كه بل څوک انكارترې وكړي بعيده نه ده څكه چې هغوى به يې پردى والى اودښمني پالي (٢)

**بلاغت:**

پدې آيتونوكي دبيان اوبديع لاندنى ښكلاوي شته:

١- اشتقاقي جناس لكه ﴿ أَرْسَلْنَا ....رَّسُولٍ ﴾ .

٢- هغه استفهام چې معنايې تعجيب اوانكاروي لكه چې فرمايې: ﴿ أَوَلَمْ يَرَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓاْ ﴾ .

٣- درتق اوفتق ترمينځ دطباق صنعت چې وايې: ﴿ كَانَتَا رَتْقًا فَفَتَقْنَـٰهُمَا ﴾ .

۴- تنكيردتعميم لپاره چې ﴿ وَجَعَلْنَا مِنَ ٱلْمَآءِ كُلَّ شَىْءٍ حَىٍّ ﴾ اوداچې ﴿ وَمَا جَعَلْنَا لِبَشَرٍ ﴾ .

۵ - التفات له متكلم څخه غائب ته چې فرمايې: ﴿ وَهُوَ ٱلَّذِى خَلَقَ ٱلَّيْلَ وَٱلنَّهَارَ ﴾ وروسته له دې قوله چې ﴿ وَجَعَلْنَا مِنَ ٱلْمَآءِ ﴾ اودادې لپاره چې ددغوسترونعمتونوپه هكله زياته پاملرنه وشي.

٦- دطباق صنعت دخيراوشرترمينځ چې ﴿ وَنَبْلُوكُم بِٱلشَّرِّ وَٱلْخَيْرِ ﴾ .

---

(١) حاشية الجمل ٣ / ١٣١
(٢) البحرالمحيط ۶ / ٣١٢

۷- مبالغه کله چي فرمايي: ﴿ خُلِقَ ٱلْإِنسَٰنُ مِنْ عَجَلٍ ﴾ ..

۸- استعاره چي فرمايي: ﴿ وَلَا يَسْمَعُ ٱلصُّمُّ ٱلدُّعَآءَ ﴾ دلته يې کونوالی دکفارولپاره استعاره کړلکه چي څلوربول بوده ګان نه بلنه اوري اونه پرې پوهېږي.

۹- کنايه چي فرمايي: ﴿ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ ﴾ دغه له عمل څخه کنايه ده که څه هم ډېرلږ وي.

۱۰- سجع لکه چي الله جل جلاله فرمايي: ﴿ يَهْتَدُونَ ..... يُنصَرُونَ ..... يَسْبَحُونَ ﴾ ترپايه.

تنبيه:

له ابن عباس رضی الله عنهما څخه وپوښتل شول چي آيا شپه مخکي اوکه ورځ وه ؟ نوهغه په ځواب کي ورته وويل: چي آيا تاسو خبرياست چي ځمکه اوآسمانونه سره نښتي ووآياددوی ترمينځ له تاريکي پرته نورڅه وو؟ داددې لپاره چي وپوهېږي شپه تروړځي دمخه ده([1])

لطيفه:

وايې چي يو چاله عبدالله ابن عمررضی الله عنهما څخه ددې آيت پوښتنه وکړه چي: هغه ورته وويل: هغه شيخ ( ابن عباس) ته ورشه اوځني وپوښته بيا ماته راشه سړی هم ابن عباس ته راغی اوځني يې وپوښتل هغه ورته وويل: چي آسمان سره نښتی وواوبه يې نه اورولې اوځمکه نښتې وه چي وابنه يې نه زرغونول اوکله چي الله دځمکي مخلوقات وپنځول نوآسمان په ورښت اوځمکه په ټوکيدلواو زرغونولوپرانستل شول سړی ابن عمرته راغی اوځواب يې ورته واورول هغه وويل: مابه پخوا په تفسيرکي دابن عباس زړورتيا انګېرله خواوس وپوهېدم چي هغه ته قرآني علم وربښل شوی دی([2])

***

الله تعالی فرمايي:

﴿ ۞ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَآ إِبْرَٰهِيمَ رُشْدَهُۥ مِن قَبْلُ وَكُنَّا بِهِۦ عَٰلِمِينَ ﴿٥١﴾ إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ وَقَوْمِهِۦ مَا هَٰذِهِ ٱلتَّمَاثِيلُ ٱلَّتِىٓ أَنتُمْ لَهَا عَٰكِفُونَ ﴿٥٢﴾ قَالُوا۟ وَجَدْنَآ ءَابَآءَنَا لَهَا عَٰبِدِينَ ﴿٥٣﴾ قَالَ لَقَدْ كُنتُمْ أَنتُمْ وَءَابَآؤُكُمْ فِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴿٥٤﴾ قَالُوٓا۟ أَجِئْتَنَا بِٱلْحَقِّ أَمْ أَنتَ مِنَ ٱللَّٰعِبِينَ ﴿٥٥﴾ قَالَ بَل رَّبُّكُمْ رَبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ٱلَّذِى فَطَرَهُنَّ وَأَنَا۠ عَلَىٰ ذَٰلِكُم مِّنَ ٱلشَّٰهِدِينَ ﴿٥٦﴾ وَتَٱللَّهِ لَأَكِيدَنَّ أَصْنَٰمَكُم بَعْدَ أَن تُوَلُّوا۟ مُدْبِرِينَ ﴿٥٧﴾ فَجَعَلَهُمْ جُذَٰذًا إِلَّا كَبِيرًا لَّهُمْ لَعَلَّهُمْ إِلَيْهِ يَرْجِعُونَ ﴿٥٨﴾ قَالُوا۟ مَن فَعَلَ هَٰذَا بِـَٔالِهَتِنَآ إِنَّهُۥ لَمِنَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٥٩﴾ قَالُوا۟ سَمِعْنَا فَتًى يَذْكُرُهُمْ يُقَالُ لَهُۥٓ إِبْرَٰهِيمُ ﴿٦٠﴾ قَالُوا۟ فَأْتُوا۟ بِهِۦ عَلَىٰٓ أَعْيُنِ ٱلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَشْهَدُونَ ﴿٦١﴾ قَالُوٓا۟ ءَأَنتَ فَعَلْتَ هَٰذَا بِـَٔالِهَتِنَا يَٰٓإِبْرَٰهِيمُ ﴿٦٢﴾ قَالَ بَلْ فَعَلَهُۥ كَبِيرُهُمْ هَٰذَا فَسْـَٔلُوهُمْ إِن كَانُوا۟ يَنطِقُونَ ﴿٦٣﴾ فَرَجَعُوٓا۟ إِلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ فَقَالُوٓا۟ إِنَّكُمْ أَنتُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ﴿٦٤﴾ ثُمَّ نُكِسُوا۟ عَلَىٰ رُءُوسِهِمْ لَقَدْ عَلِمْتَ مَا هَٰٓؤُلَآءِ يَنطِقُونَ ﴿٦٥﴾ قَالَ أَفَتَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَا لَا

---

([1]) مختصرابن کثير۳ / ۵۰۶

([2]) نفس المرجع

يَنفَعُكُمْ شَيْئًا وَلَا يَضُرُّكُمْ ﴿٦٦﴾ أُفٍّ لَّكُمْ وَلِمَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿٦٧﴾ قَالُوا حَرِّقُوهُ وَانصُرُوا آلِهَتَكُمْ إِن كُنتُمْ فَاعِلِينَ ﴿٦٨﴾ قُلْنَا يَا نَارُ كُونِي بَرْدًا وَسَلَامًا عَلَىٰ إِبْرَاهِيمَ ﴿٦٩﴾ وَأَرَادُوا بِهِ كَيْدًا فَجَعَلْنَاهُمُ الْأَخْسَرِينَ ﴿٧٠﴾ وَنَجَّيْنَاهُ وَلُوطًا إِلَى الْأَرْضِ الَّتِي بَارَكْنَا فِيهَا لِلْعَالَمِينَ ﴿٧١﴾ وَوَهَبْنَا لَهُ إِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ نَافِلَةً ۖ وَكُلًّا جَعَلْنَا صَالِحِينَ ﴿٧٢﴾ وَجَعَلْنَاهُمْ أَئِمَّةً يَهْدُونَ بِأَمْرِنَا وَأَوْحَيْنَا إِلَيْهِمْ فِعْلَ الْخَيْرَاتِ وَإِقَامَ الصَّلَاةِ وَإِيتَاءَ الزَّكَاةِ ۖ وَكَانُوا لَنَا عَابِدِينَ ﴿٧٣﴾ وَلُوطًا آتَيْنَاهُ حُكْمًا وَعِلْمًا وَنَجَّيْنَاهُ مِنَ الْقَرْيَةِ الَّتِي كَانَت تَّعْمَلُ الْخَبَائِثَ ۗ إِنَّهُمْ كَانُوا قَوْمَ سَوْءٍ فَاسِقِينَ ﴿٧٤﴾ وَأَدْخَلْنَاهُ فِي رَحْمَتِنَا ۖ إِنَّهُ مِنَ الصَّالِحِينَ ﴿٧٥﴾ وَنُوحًا إِذْ نَادَىٰ مِن قَبْلُ فَاسْتَجَبْنَا لَهُ فَنَجَّيْنَاهُ وَأَهْلَهُ مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيمِ ﴿٧٦﴾ وَنَصَرْنَاهُ مِنَ الْقَوْمِ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا ۚ إِنَّهُمْ كَانُوا قَوْمَ سَوْءٍ فَأَغْرَقْنَاهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٧٧﴾ وَدَاوُودَ وَسُلَيْمَانَ إِذْ يَحْكُمَانِ فِي الْحَرْثِ إِذْ نَفَشَتْ فِيهِ غَنَمُ الْقَوْمِ وَكُنَّا لِحُكْمِهِمْ شَاهِدِينَ ﴿٧٨﴾ فَفَهَّمْنَاهَا سُلَيْمَانَ ۚ وَكُلًّا آتَيْنَا حُكْمًا وَعِلْمًا ۚ وَسَخَّرْنَا مَعَ دَاوُودَ الْجِبَالَ يُسَبِّحْنَ وَالطَّيْرَ ۚ وَكُنَّا فَاعِلِينَ ﴿٧٩﴾ وَعَلَّمْنَاهُ صَنْعَةَ لَبُوسٍ لَّكُمْ لِتُحْصِنَكُم مِّن بَأْسِكُمْ ۖ فَهَلْ أَنتُمْ شَاكِرُونَ ﴿٨٠﴾ وَلِسُلَيْمَانَ الرِّيحَ عَاصِفَةً تَجْرِي بِأَمْرِهِ إِلَى الْأَرْضِ الَّتِي بَارَكْنَا فِيهَا ۚ وَكُنَّا بِكُلِّ شَيْءٍ عَالِمِينَ ﴿٨١﴾ وَمِنَ الشَّيَاطِينِ مَن يَغُوصُونَ لَهُ وَيَعْمَلُونَ عَمَلًا دُونَ ذَٰلِكَ ۖ وَكُنَّا لَهُمْ حَافِظِينَ ﴿٨٢﴾ الأنبياء: ٥١ – ٨٢

## مناسبت او تړاو:

كله چي الله تعالى په توحيد ،نبوت اومعادباندي دلائل راوړل وروسته يې دانبياووعليهم السلام كيسې پيل كړې اوهغه ازمويښتونه چي دوى ته وركول شوي دي بيان كړل ترڅودرسول الله صلى الله عليه وسلم لپاره تسليت اوډاډينه وي اوپه نوموړو انبياووپسې اقتداوكړي ددوى په شان صبراوزغم خپل كړي اودمشركانوشخړواودښمنيوته دتيارسئ په حال كي وي.

## لغتونه:

(رشده) لارښوونه اوهدايت يې (التماثيل) دتمثال جمع اوهغه بُت ته وايې چي دالله له كوم مخلوق سره مشابهت ولري (جذاذا) ټوټه ټوټه (نكسوا) نكس يوشى اپوټه كولوته وايې چي سريې ښكته اوبيخ يې پورته شي (نافلة) زيات اوله همدې كلمې څخه نفل لمونځ ته هم وايه شي چي په فرضوزيات وي (الكرب) سخت غم ته وايې (نفشت) په شپه كي څرېدونكي څاروي چي شپون ورسره نه وي وايې چي(نُفشت بالليل وهُملت بالنهار ) كله چي بې خاونده اوشپانه رمې ګلې دشپې او ورځي څري.

تفسير:

﴿ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَآ إِبْرَٰهِيمَ رُشْدَهُۥ ﴾ (قسم دی) چي خامخا په تحقیق موږ ورکړي وه ابراهیم ته ښکه حقه لاره (دهدایت اوښکو اعمالو په دنیااوآخرت کي) ﴿ مِن قَبْلُ ﴾ پخوا (په کوچنیوالي کي چي دالله دوحدانیت په څکله مونظر استدلال وربښلی وو) ﴿ وَكُنَّا بِهِۦ عَٰلِمِينَ ﴾ اوموږ په ده باندي پوه وو(چي دی دفضل اونبوت له خاوندانوڅخه دی ﴿ إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ وَقَوْمِهِۦ مَا هَٰذِهِ ٱلتَّمَاثِيلُ ٱلَّتِىٓ أَنتُمْ لَهَا عَٰكِفُونَ ﴾ (کله چي وويل: ابراهيم خپل پلاراوخپل قوم ته چي څه دي دغه (بتان) هغه چي تاسي دوی ته په عبادت ولاړياست ؟) دغه دهغه رشدبيان دی کوم چي ابراهيم ته ورکول شوی وو له کوچنيوالي څخه اوداچي ويې ويل ﴿ مَا هَٰذِهِ ٱلتَّمَاثِيلُ ﴾ دغه يې دهغوی دسپکاوي لپاره ذکرکړل که څه هم ده ته معلومه وه چي دوی يې خوراتعظيم کوي خوده تجاهل وکړ ﴿ قَالُوا۟ وَجَدْنَآ ءَابَآءَنَا لَهَا عَٰبِدِينَ ﴾ وويل دوی چي موندلي دي موږپلرونه خپل دغو(بتانو) ته عبادت کونکي ؛ ابن کثيروايې چي: دوی پرته د پلرونوله گمراهي څخه بل دليل نه درلود. ﴿ قَالَ لَقَدْ كُنتُمْ أَنتُمْ وَءَابَآؤُكُمْ فِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴾ وويل: (ابراهيم) خامخا په تحقيق ياست تاسي اوپلرونه ستاسي (چي دبتانوعبادت کوي) په گمراهي ښکاره کي (ځکه چي دوی جمادات دي نه گټه رسوي اونه تاوان دفع کوي نه هم اوري) ﴿ قَالُوٓا۟ أَجِئْتَنَا بِٱلْحَقِّ أَمْ أَنتَ مِنَ ٱللَّٰعِبِينَ ﴾ (نووويل دوی (ابراهيم ته) آياراغلی يې ته موږته برحقه اوکه يې ته له لوبونکوڅخه) يعني داچي ته رښتياوجدي خبره کوې اوکه محض ټوکي ټکالی کوې دوی دغه انکارستروګڼل اوداېې زړه ته نه لوېدله چي دوی به گمراهان وي نوځکه يې داسي فکرکاووچي ښايې ابراهيم به ټوکي ټکالي کوي نو ابراهيم عليه السلام ورته په ټينګه وويل: ﴿ قَالَ بَل رَّبُّكُمْ رَبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ٱلَّذِى فَطَرَهُنَّ ﴾ وويل: (ابراهيم بلکه رب ستاسي رب دآسمانونواورب دځمکي دي هغه الله چي پيداکړي يې دي آسمانونه ځمکي اومافيهاهغه دعبادت لپاره وړاومستحق دی نه دغه ګماني بُتان ﴿ وَأَنَا۠ عَلَىٰ ذَٰلِكُم مِّنَ ٱلشَّٰهِدِينَ ﴾ (اوزه په دغو(چي ومي ويل له توحيدڅخه) له شاهدانوڅخه يم) يعني زه دالله دوحدانيت په براهينو اوڅرګندودلائلوشاهديم هغه شاهدچي دعواګاني ورباندي فيصله کولی شي ﴿ وَتَٱللَّهِ لَأَكِيدَنَّ أَصْنَٰمَكُم بَعْدَ أَن تُوَلُّوا۟ مُدْبِرِينَ ﴾ اوپه الله قسم دی خامخاځه تدبير اوعلاج به وکړم هرومرو(چي مات کړم) بتان ستاسي پس له هغه چي وګرزی تاسي شاکونکي (بتانوته په وخت دمېلې کولوکي) مفسرين کرام وايې چي: دوی به هرکال جشن لمانځو اوبېديا ته به وتل آزرابراهيم ته وويل: که له موږسره جشن ته ولاړشې زموږ دين به دي خوراخوښ شي هغه هم ورسره رابهرشومګرپه لاره کي يې ځان ځمکي ته وغورځاوو اوويې ويل: زه ناروغ يم پښه مي خوږېږي نودوی هم پرېښودا وځني ولاړل اوله شابې په وروستي سړي پسي غږ کړ چي ﴿ وَتَٱللَّهِ لَأَكِيدَنَّ أَصْنَٰمَكُم ﴾ نويوتن ځني واورېدل او په يادېې وساتل

(١)﴿ فَجَعَلَهُمْ جُذَاذًا ﴾ پس وېې گرزول دابتان ټوټې ﴿ إِلَّا كَبِيرًا لَّهُمْ ﴾ مګر لوی ددې بتانو (چې مات مات يې نکړ. مجاهدوايې چې سترېُت يې پرېښود اوتبرېې دهغه په اوږه ورو وروځړاوو ترڅوچې بياورباندې دليل ونيسي (٢)﴿ لَعَلَّهُمْ إِلَيْهِ يَرْجِعُونَ ﴾ دپاره ددې چې دوی هغه ته بيرته راشي اوځني وپوښتي چې بتان چامات کړل نوبه دبُت عجز ورته څرګندشي اوپردوی به دليل ودرېږي ﴿ قَالُوا مَن فَعَلَ هَٰذَا بِآلِهَتِنَا إِنَّهُ لَمِنَ الظَّالِمِينَ ﴾ وويل: دوی چاداکارکړی په معبودانوزموږ بېشکه چې دی خامخاله ظالمانودی ؛ په کلام کي حذف شته هغه داچي کله دوی له مېلې راستانه شول اوکونډي کېږبُتان يې ولېدل نويې دپلټني اوترټني په هکله داسي وويل: چي چاداکارکړی هغه خورا ظالم اودستري ګناه مرتکب دی ځکه چي دهغوخدايانو (معبودانو) سره يې دبې ادبي حرکت کړی کوم چې دتعظيم اودرناوي وړدي ﴿ قَالُوا سَمِعْنَا فَتًى يَذْكُرُهُمْ يُقَالُ لَهُ إِبْرَاهِيمُ ﴾ وويل (ځينوکفارو) چي موږله يوه زلمي اورېدلي ووچي يادول به يې دابُتان (په بدې سره) چي ده ته ابراهيم ويلی شي؛ داهغه چاوويل چاچي دابراهيم (عليه السلام) خبره اورېدلي وه چي ويل يې: ﴿ وَتَاللَّهِ لَأَكِيدَنَّ أَصْنَامَكُم ﴾ نوده وويل: ښايي هم ده به دغه کارکړی وي ﴿ قَالُوا فَأْتُوا بِهِ عَلَىٰ أَعْيُنِ النَّاسِ ﴾ وويل: (نمرود اومشرانويې) رابې ولئ هغه ابراهيم په مخکي دسترګودخلګو (چي وېې ويني اومقصدداچي دده محاکمه دخلګوپه وړاندي ترسره شي اوخلګ يې له برخه ليک څخه عبرت واخلي ﴿ لَعَلَّهُمْ يَشْهَدُونَ ﴾ ښايي چي دوی ووينې (هغه څه اوعذاب يې چي څه ورباندي کول کېږي) ﴿ قَالُوا أَأَنتَ فَعَلْتَ هَٰذَا بِآلِهَتِنَا يَا إِبْرَاهِيمُ ﴾ وويل (دوی) آياتاکړی داکارپه معبودانوزموږ ای ابراهيمه ؟! ﴿ قَالَ بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ هَٰذَا ﴾ وويل (ابراهيم) بلکه کړی داکار مشرددوی چي دادی (غُصه ورغلي چي ولي له ده سره د وړوبُتانوعبادت کوئ؟ مقصدددوی چوپول اوتعجيزدی ځکه يې وويل: ﴿ فَاسْأَلُوهُمْ إِن كَانُوا يَنطِقُونَ ﴾ نوپوښتنه وکړئ تاسي له دوی که وي دوی چي خبري کوي (چي چا ټوټې ټوټې کړي يی؟! قرطبي وايې چي: کلام دتعريض اوالزام په ډول دی ځکه دوی هغه په الوهيت سره نيولي ووا وله الله پرته به يې ددوی عبادت کاوولکه چي ابراهيم (عليه السلام) خپل پلارته وويل: ﴿ لِمَ تَعْبُدُ مَا لَا يَسْمَعُ وَلَا يُبْصِرُ وَلَا يُغْنِي عَنكَ شَيْئًا ﴾ مريم: ٤٢ نوابراهيم عليه السلام ) ورته وويل: چي ﴿ بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ هَٰذَا ﴾ ترڅوچي دوی ووايې چي دوی خوخبري نکوي اونه ګټه رسوي ، نه تاوان دفع کوي نوبه ورته ووايې چي بياولي يې عبادت کوئ ؟ پردوی به دليل راوړل شي لکه چي روا دی له خصم سره په مباحثه کي د باطل فرض وکړی شي ترڅوهغه خپل ځان ته متوجه کړي (٣)﴿ فَرَجَعُوا إِلَىٰ أَنفُسِهِمْ ﴾ پس رجوع وکړه (دغو کفاروپه فکرکولوسره )

---

(١) الخازن ٣ / ٢٤١
(٢) القرطبي ١١ / ٢٩٨
(٣) القرطبي ١١ / ٣٠٠

خانونوخپلوته ﴿ فَقَالُوٓاْ إِنَّكُمْ أَنتُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ﴾ نوو ویل: ( خینو خینو نورو ته ) بیشکه تاسو ظالمان یاست (په عبادت کولو دداسي چاچي خبري نشي کولای ) ﴿ ثُمَّ نُكِسُواْ عَلَىٰ رُءُوسِهِمْ ﴾ بیانسکور کړل شول دوی په سرونوخپلو (یعني وشرمېدل اوله دې سره سره یې طغیان اوسرغړوني ته ملاوتړله اوابراهیم علیه السلام ته یې وویل: ﴿ لَقَدْ عَلِمْتَ مَا هَٰٓؤُلَآءِ يَنطِقُونَ ﴾ چي خامخاپه تحقیق ته پوه یې چي دابتان نه غږیږي اونه دسوال ځواب ورکوي نوڅرنگه موږ ته وایې چي له دوی څخه وپوښتی ؟ اودغه ددوی اقراردی چي همدابُتان عاجزدي اوپدې وخت کي ابراهیم علیه السلام ته دلیل پیداشودوی ته یې په ترټنه اوتوبیخ کي داسي وویل: ﴿ قَالَ أَفَتَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَا لَا يَنفَعُكُمْ شَيْـًٔا وَلَا يَضُرُّكُمْ ﴾ نوو ویل: (ابراهیم علیه السلام) نوآیا پس تاسي عبادت کوی بې له الله څخه دهغه شي چي نه گټه رسوي تاسي ته اونه تاوان رسولی شي تاسي ته ( دوی جمادات دي ) ﴿ أُفٍّ لَّكُمْ وَلِمَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ نوافسوس (هلاک) دی تاسي ته اوهغه (بُتانو) ته چي تاسي یې پرته له الله عبادت کوی ﴿ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴾ آیاتاسي دومره عقل هم نلری ؟ !(چي څومره بد کارکوی؟) ﴿ قَالُواْ حَرِّقُوهُ وَٱنصُرُوٓاْ ءَالِهَتَكُمْ إِن كُنتُمْ فَٰعِلِينَ ﴾ (کله چي دلیل ورباندي ودرېدونو) وویل دوی وسوځوئ دغه (ابراهیم) اومرسته وکړئ دمعبودانو خپلو که، یی تاسي ( مدد ) کونکي (د بُتانوخپلو سره په رښتیا ) ﴿ قُلْنَا يَٰنَارُ كُونِى بَرْدًا وَسَلَٰمًا عَلَىٰٓ إِبْرَٰهِيمَ ﴾ وویل موږ ای اوره شه یخ او خاوند دسلامتیاپه ابراهیم باندي تعبیرهمداسي دمبالغې لپاره راغی. مفسرین کرام وایي کله چي دوی د ابراهیم (علیه السلام) سوځول وغوښتل نویوه میاشت موده یې د اورلپاره دسُون مواد (محروقات) راټولول آن تردې چي کومه مېرمن به ناروغه شوه په ځان به یې نذر کنښېنود کله چي له ناروغي څخه روغه شي د ابراهیم(علیه السلام) دسوځولولپاره به ازوغه راټولوي اوبیایې دېر لوی لمبې وهونکی اورپه تیټ ځای کي تیار کړداسي ویل کیږي چي کله به مرغان ددغه اوردپاسه الوتل نوبه له ډېري تودوخي اوگرمي څخه سوځېدل وروسته یې ابراهیم (علیه السلام) وتاړه اوپه منجنیق کي یې اورته وغورځاووپدغه ترځ کي حضرت جبریل (علیه السلام) ورته راغی اوځني ویې پوښتل آیاځه اړتیالرې؟ نو ابراهیم ورته وویل چي: تاته زه اړتیانلرم نوجبریل (علیه السلام) ورته وویل: چي الله تعالی ته سوال وکړه ! نوابراهیم علیه السلام ورته وویل: ( حسبي عن سؤالي علمه بحالي) یعني زماله سواله داکافي ده چي الله پرماعلم لري نوالله وفرمایل: ﴿ يَٰنَارُ كُونِى بَرْدًا وَسَلَٰمًا عَلَىٰٓ إِبْرَٰهِيمَ ﴾ (۱) اودابراهیم (علیه السلام) له کمربند څخه پرته هیڅ شی ونه سوځېدو ابن عباس رضی الله عنه وایي که الله تعالی اورته ﴿ وَسَلَٰمًا ﴾ نه وای ویلي هغه به یې له یخني په تکلیف شوی وو(۲)

---

(۱) القرطبي ۳۰۳/۱۱

(۲) المختصر ۵۱۴/۲

﴿ وَأَرَادُوا بِهِۦ كَيْدًا فَجَعَلْنَٰهُمُ ٱلْأَخْسَرِينَ ﴾ اوغوښتل نمرودیانوپه ابراهیم مکر(دسوځولو) نو وګرزول موږدوی سخت زیانکاران (ځکه دوی دالله نبي ته دسوځولوچل جوړکړی ووخوموږهغه ددوی دځپلي غاړي طوق وګرزاوو) ﴿ وَنَجَّيْنَٰهُ وَلُوطًا إِلَى ٱلْأَرْضِ ٱلَّتِى بَٰرَكْنَا فِيهَا لِلْعَٰلَمِينَ ﴾ (اونجات مو ورکړدغه (ابراهیم) اولوط ته (او بوموتلل) هغې ځمکې ته چې موږپکې برکت اچولی وو دپاره د خلګو) یعني موږابراهیم اودده وراره لوط (علیه السلام) وژغورل له عراق ځخه موشام ته مهاجرکړل هغه چې خورامبارکه ځمکه ده ډېرانبیاء پکې رااستول شوي ډېر رودونه ، ویالې اووني،کښتونه لري . ابن الجوزي وایې : ځکه دبرکت ځای دی چې ډېرانبیاء اوزیاتره کښت ، کروندې، رواني ویالې اونهرونه لري(۱) ﴿ وَوَهَبْنَا لَهُۥٓ إِسْحَٰقَ وَيَعْقُوبَ نَافِلَةً ﴾ او وموبښل دغه (ابراهیم ته) (زوی ) اسحاق او(لمسی) یعقوب زیات (سربېره دزوی په غوښتني دانعام په ډول مفسرین کرام وایې چې: ابراهیم علیه السلام له الله جل جلاله ځخه دزوی دپیداکېدلوغوښتنه وکړه نوالله تعالی اسحاق زوی ورکړ اوبیایې هغه ته یعقوب ورکړچې دغه یې لمسی اوګواکې لمسی هم زوی غوندې وي ﴿ وَكُلًّا جَعَلْنَا صَٰلِحِينَ ﴾او دغه ټول ګرزولي دي موږنېکان (دخیرښېګني خلګ چې خلګوته یې لارښوونه کوله) ﴿ وَجَعَلْنَٰهُمْ أَئِمَّةً يَهْدُونَ بِأَمْرِنَا ﴾ اوګرزولي وو موږدوی (داسې) امامان چې سمه صافه لاره یې (ددین )ښودله زموږپه حکم (خلګوته) ﴿ وَأَوْحَيْنَآ إِلَيْهِمْ فِعْلَ ٱلْخَيْرَٰتِ ﴾ اووحی کړې وو موږدوی ته کول دښکو کارونو (چې علم اوعمل دواړه یوځای کړي) ﴿ وَإِقَامَ ٱلصَّلَوٰةِ وَإِيتَآءَ ٱلزَّكَوٰةِ ﴾ اودسم ادا کولو د لمانځه او ورکولودزکات دادواړه یې ځکه ځانګړي یادکړل چې لمونځ دبدني عباداتوافضل اوزکات د مالي عباداتوغوره عبادت دی ﴿ وَكَانُوا لَنَا عَٰبِدِينَ ﴾اووودوی خاص موږته عبادت کونکي (مخلصان) ﴿ وَلُوطًا ءَاتَيْنَٰهُ حُكْمًا وَعِلْمًا ﴾ (اولوط ته ورکړی وو موږده ته حکم (نبوت) او پوهه ابن کثیروایې چې: لوط علیه السلام په ابراهیم علیه السلام ایمان راووړ، دهغه متابعت یې وکړاوله هغه سره یې دهجرت بهیرونیولکه چې الله تعالی فرمایې: ﴿ فَـَٔامَنَ لَهُۥ لُوطٌ ۘ وَقَالَ إِنِّى مُهَاجِرٌ إِلَىٰ رَبِّىٓ ﴾ العنکبوت: ۲۶ نوالله ورته نبوت ، علم او وحی ورکړه هغه یې په استازیتوب وټاکه او(سدوم) ته یې ولېږو هغوی دده تکذیب وکړاوالله تعالی دوی هلاک کړل لکه چې دکتاب عزیز په ځوځایونوکې یې کیسه راغلي ده(۲) ﴿ وَنَجَّيْنَٰهُ مِنَ ٱلْقَرْيَةِ ٱلَّتِى كَانَت تَّعْمَلُ ٱلْخَبَٰٓئِثَ ﴾ اونجات ورکړی وو موږدغه لوط ته له (خلګو ) د(هغه) کلي چې دوی به خبیث (پلیت ) عملونه کول (لکه لواطت ، لاري شوکول اونور..) ﴿ إِنَّهُمْ كَانُوا قَوْمَ سَوْءٍ فَٰسِقِينَ ﴾ بیشکه چې هغوی ووقوم دبدي نافرمان (اشراراودالله ځخه سرغړونکي متجاوزین ) ﴿ وَأَدْخَلْنَٰهُ فِى

(۱) زادالمسیر ۵ / ۳۶۸
(۲) المختصر ۲ / ۵۱۵

رَحْمَتِنَآ إِنَّهُۥ مِنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ﴾ او داخل کړی وو موږ دی پخپل رحمت کي بېشکه دی له نېکانو څخه دی
﴿ وَنُوحًا إِذْ نَادَىٰ مِن قَبْلُ ﴾ او ( یاد کړه ای محمده کیسه د نوح ) کله چي غږ یې وکړ (په ښېرا د قوم خپل)
پخوا ( له دغو مذکوره وو نبیانو ) کله چي یې قوم تکذیب وکړ نو هغه داسي وویل ﴿ وَقَالَ نُوحٌ رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَى
ٱلْأَرْضِ مِنَ ٱلْكَٰفِرِينَ دَيَّارًا ﴾ (نوح ۲۲ ) . ﴿ فَٱسْتَجَبْنَا لَهُۥ فَنَجَّيْنَٰهُ وَأَهْلَهُۥ مِنَ ٱلْكَرْبِ ٱلْعَظِيمِ ﴾ پس
قبوله کړه موږ ده ته دعا دده او نجات موورکړ ده ته او کورنی ته له لویه غمه (چي طوفان او غرقېدل
وو داهسي لوی غم وو چي نژدې وو د سړی سا وکاږي ﴿ وَنَصَرْنَٰهُ مِنَ ٱلْقَوْمِ ٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَآ ﴾ او مرسته
موو کړه له ده سره (چي وموژغورل له دوی او دوی مو هلاک کړل په انتقام اخیستلو دده ) له هغه قومه چي
د دروغو نسبت یې کړی وو زموږ آیتونو ته ﴿ إِنَّهُمْ كَانُوا۟ قَوْمَ سَوْءٍ فَأَغْرَقْنَٰهُمْ أَجْمَعِينَ ﴾ بېشکه دوی
بد قوم وو نو موږ دوی ټول غرق کړل (هیڅوک مو ورڅخه نه پرېښود ل ) ﴿ وَدَاوُۥدَ وَسُلَيْمَٰنَ إِذْ يَحْكُمَانِ فِى
ٱلْحَرْثِ ﴾ او یاد کړه (ای محمده کیسه د ) داؤد او سلیمان کله چي حکم کاوه هغوی دواړو په (دعوی د
کښت کي ﴿ إِذْ نَفَشَتْ فِيهِ غَنَمُ ٱلْقَوْمِ ﴾ کله چي د شپې ګډه شوي وه (بې شپانه ) رمه په هغه (کښت) کي
د قوم (او هغه یې تباه کړی وو ) ﴿ وَكُنَّا لِحُكْمِهِمْ شَٰهِدِينَ ﴾ او وو موږ د دوی حکم ته حاضر ( یعني
ورباندي خبر او پوه وو ) ﴿ فَفَهَّمْنَٰهَا سُلَيْمَٰنَ ﴾ او ومو پوهاوو په هغه فیصله سلیمان ﴿ وَكُلًّا ءَاتَيْنَا
حُكْمًا وَعِلْمًا ﴾ او هر یوه د دوی دواړو (سلیمان او داؤد ته ) ورکړی وو موږ نبوت او پوهه؛ مفسرین کرام
وایي : حضرت داؤد علیه السلام ته دوه تنه راغلل چي د شپې له مخي د یوه رمه د بل په کښت ګډه شوي
او هغه یې تباه کړی وو هیڅ یې نه وو پرې ایښي نو داؤد (علیه السلام) فیصله وکړه چي د کښت خاوند دي
رمه بوزي دواړه متخاصمان له داؤد (علیه السلام) څخه راووتل او په دروازه کي له سلیمان (علیه
السلام) سره مخامخ شول او فیصله یې ورته واوروله سلیمان (علیه السلام) داؤد (علیه السلام) ته
راغی او ورته وېې ویل چي: ای د الله پیغمبره که دي داسي فیصله کړي وای چي د ګردو لپاره بهتره او
ګټه وره وای هغه څني وپوښتل چي څنګه فیصله ؟ نو سلیمان علیه السلام وویل: چي د رمې خاوند دي
ځمکه واخلي او کرونده دي ورباندي وکري ترڅو چي هغه حالت ته ورسېږي لکه چي پخوا وه او د کښت
خاوند دي رمه واخلي او د مېږو په وړیو او شیدو او نسل دي ګټه واخلي ترڅو چي کښت خپل پخوانی
حالت ترلاسه کوي نو بیا دي رمه خپل خاوند ته او کښت خپل خاوند ته وسپارل شي نو داؤد علیه السلام
ورته وویل: په رښتیا چي دا سمه فیصله ده او پدې باندي فیصله صادره شوه او دغه د الله تعالی وینا ده
چي فرمایي : ﴿ فَفَهَّمْنَٰهَا سُلَيْمَٰنَ ﴾ یعني هغه ته مو د قضیې حکم ور وښود ﴿ وَسَخَّرْنَا مَعَ دَاوُۥدَ ٱلْجِبَالَ
يُسَبِّحْنَ وَٱلطَّيْرَ ﴾ او تابع کړي وو موږ له داؤد سره غرونه چي تسبیح به یې ویلې او (همداسي ) مرغان هم
(چي ورسره به یې تسبیح ویله ) ابن کثیر وایې چي دغه دده د خوش آوازي له کبله وچي کله به یې د زبور

تلاوت کاوونومرغان به په هوا ودرېدل اوهمداسي غرونو به ورسره تلاوت غبرگ پيل کړ(۱) او دا چي غرونه يې ترمرغانودمخه يادکړل سبب يې دادی چي د غرونوابل کېدل اوتسبيح لوستل ترمرغانو ډېر عجيب اونادردی اودغه په اعجازاواغېزمن کېدلوکي ډېرزور دی ځکه چي جمادات دی ﴿ وَكُنَّا فَٰعِلِينَ ﴾ او وومونږکونکي (ددې کار) ﴿ وَعَلَّمْنَٰهُ صَنْعَةَ لَبُوسٍ لَّكُمْ ﴾ (اوښوولی موږ وو دغه (داؤدته ) جوړول دزغري تاسي ته) يعني موږ داؤد عليه السلام ته داوسپني دنرم والي په وجه د زغرو جوړول ورزده کړي وو قتاده وايې چي لومړنی هغه څوک چي زغري اوبدل يې پيل کړل داؤد عليه السلام وواوتردې له مخه به داوسپني تختې استعمالېدلې نود زغري اوبدلواو کړيو جوړولومخترع يې داؤد عليه السلام دی(۲)﴿ لِتُحْصِنَكُم مِّنۢ بَأْسِكُمْ ﴾ دپاره ددې چي وساتي تاسي (په جگړه کي له دښمنانوڅخه ﴿ فَهَلْ أَنتُمْ شَٰكِرُونَ ﴾ پس آيايی تاسي شکرکونکي ؟ دغه استفهام اومقصدورڅخه امر دی يعني دالله دنعمتونو شکراداکړئ ؛ اوڅرنگه چي الله تعالی هغه څه يادکړل کوم چي پيغمبر داؤد عليه السلام يې ورباندي نازولی وو وروسته يې دسليمان عليه السلام ذکروفرمايو﴿ وَلِسُلَيْمَٰنَ ٱلرِّيحَ عَاصِفَةً ﴾ او(تابع کړی وو موږ) سليمان ته تُندباد ﴿ تَجْرِى بِأَمْرِهِۦٓ إِلَى ٱلْأَرْضِ ٱلَّتِى بَٰرَكْنَا فِيهَا ﴾ چي روانېدو په حکم دده ځمکي د(شام ته) هغي (ځمکي ته) چي موږپکي برکت ايښی وو (په زياتو ونو، مېوو، اوويالوباندي هغه دده دارالسلطنت اودپاچهي پلازمېنه وه ﴿ وَكُنَّا بِكُلِّ شَىْءٍ عَٰلِمِينَ ﴾ اويو موږ په هرشي عالمان ؛ نودوی ته مودغه ستره مرتبه پدې ورکړي وه چي پکي موحکمت نغښتی وو ﴿ وَمِنَ ٱلشَّيَٰطِينِ مَن يَغُوصُونَ لَهُۥ ﴾ (اوتابع کړي وو موږ ده ته) ځيني له شيطانانوڅخه چي غوټې به يې وهلې (په سيندکي) دده لپاره (چي ملغلري او جواهرورته راوباسي ﴿ وَيَعْمَلُونَ عَمَلًا دُونَ ذَٰلِكَ ﴾اوکول به يې (نور (ډېر) کارونه بې له دې نه (لکه دښارونو اوسترو وسترو قصرونو بناگاني چي بشرځني ناتوانه وي﴿ وَكُنَّا لَهُمْ حَٰفِظِينَ ﴾ او وو موږدوی لره ساتونکي (له سرغړوني اوفسادڅخه) .

**بلاغت:**

دلته دفصاحت اوبلاغت اوعلم بديع داصنعتونه شته چي لنډيزيې ليکو:

۱-لطيفه استعاره چي فرمايې: ﴿ ثُمَّ نُكِسُوا۟ عَلَىٰ رُءُوسِهِمْ ﴾ دلته يې ددوی له حق څخه رجوع له هغه چاسره مشابه کړه چي سرپه ځمکه ولاړوي اودغه استعاره گڼلی شي.

۲-دطباق صنعت لکه: ﴿ يَنفَعُكُمْ .... يَضُرُّكُمْ ﴾.

۳-مبالغه چي فرمايې ﴿ كُونِى بَرْدًا ﴾ دلته مصدرذکرشوی اومقصدورڅخه اسم فاعل دی يعني

(۱) المختصر ۲/ ۵۱۲

(۲) القرطبي ۱۱/ ۳۲۰

(باردة اوذات بردة) شه!

۴- عطف دخاص پرعام باندي لکه: ﴿ فِعْلَ ٱلْخَيْرَٰتِ وَإِقَامَ ٱلصَّلَوٰةِ وَإِيتَآءَ ٱلزَّكَوٰةِ ﴾ ځکه چې لمونځ اوزکات هم په فعل الخيرات کي شته خو په ځانګړي توګه ددوی یادول یې په سترشان او فضیلت باندي دلالت کوي.

۵- داحتراس صنعت لکه چې فرمايي: ﴿ وَكُلًّا ءَاتَيْنَا حُكْمًا وَعِلْمًا ﴾ دغه ددې توهم ددفع کولو لپاره چي څوک ونه انګېري دداؤد علیه السلام مقام اورتبه ټیټه ده.

۶- مرسل مجازچي الله تعالی فرمايي ﴿ وَأَدْخَلْنَٰهُ فِى رَحْمَتِنَآ ﴾ یعني هغه موداخل کړپخپل جنت کي ځکه هغه د رحمت ځای دی نوعلاقه یې ظرفیت بنودلای شو.

۷- بې تکلفه سجع چي راځي لکه: ﴿ عَٰبِدِينَ .... صَٰلِحِينَ ﴾.

تنبيه:

الله پاک دلته بادپه (عاصفة) سره موصوف یادکړاوبل ځای یې بیا(رخآء)وفرمايو، عاصفه تند اورخاء نرم ته وایې اوددواړو صفتونوترمينځ تضادنشته ځکه بادپخپل ذات کي خوږ نرم وي اوکله چي د تللوپه حال کي وي نوتُنداوتېزوي ددواړوخواووااوصاف پکي راونغښتل شول ته پکي سوچ وکړه.

***

الله تعالی فرمايي:

﴿ ۞ وَأَيُّوبَ إِذْ نَادَىٰ رَبَّهُۥٓ أَنِّى مَسَّنِىَ ٱلضُّرُّ وَأَنتَ أَرْحَمُ ٱلرَّٰحِمِينَ ﴿٨٣﴾ فَٱسْتَجَبْنَا لَهُۥ فَكَشَفْنَا مَا بِهِۦ مِن ضُرٍّ ۖ وَءَاتَيْنَٰهُ أَهْلَهُۥ وَمِثْلَهُم مَّعَهُمْ رَحْمَةً مِّنْ عِندِنَا وَذِكْرَىٰ لِلْعَٰبِدِينَ ﴿٨٤﴾ وَإِسْمَٰعِيلَ وَإِدْرِيسَ وَذَا ٱلْكِفْلِ ۖ كُلٌّ مِّنَ ٱلصَّٰبِرِينَ ﴿٨٥﴾ وَأَدْخَلْنَٰهُمْ فِى رَحْمَتِنَآ ۖ إِنَّهُم مِّنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ﴿٨٦﴾ وَذَا ٱلنُّونِ إِذ ذَّهَبَ مُغَٰضِبًا فَظَنَّ أَن لَّن نَّقْدِرَ عَلَيْهِ فَنَادَىٰ فِى ٱلظُّلُمَٰتِ أَن لَّآ إِلَٰهَ إِلَّآ أَنتَ سُبْحَٰنَكَ إِنِّى كُنتُ مِنَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٨٧﴾ فَٱسْتَجَبْنَا لَهُۥ وَنَجَّيْنَٰهُ مِنَ ٱلْغَمِّ ۚ وَكَذَٰلِكَ نُـۨجِى ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴿٨٨﴾ وَزَكَرِيَّآ إِذْ نَادَىٰ رَبَّهُۥ رَبِّ لَا تَذَرْنِى فَرْدًا وَأَنتَ خَيْرُ ٱلْوَٰرِثِينَ ﴿٨٩﴾ فَٱسْتَجَبْنَا لَهُۥ وَوَهَبْنَا لَهُۥ يَحْيَىٰ وَأَصْلَحْنَا لَهُۥ زَوْجَهُۥٓ ۚ إِنَّهُمْ كَانُوا۟ يُسَٰرِعُونَ فِى ٱلْخَيْرَٰتِ وَيَدْعُونَنَا رَغَبًا وَرَهَبًا ۖ وَكَانُوا۟ لَنَا خَٰشِعِينَ ﴿٩٠﴾ وَٱلَّتِىٓ أَحْصَنَتْ فَرْجَهَا فَنَفَخْنَا فِيهَا مِن رُّوحِنَا وَجَعَلْنَٰهَا وَٱبْنَهَآ ءَايَةً لِّلْعَٰلَمِينَ ﴿٩١﴾ إِنَّ هَٰذِهِۦٓ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَٰحِدَةً وَأَنَا۠ رَبُّكُمْ فَٱعْبُدُونِ ﴿٩٢﴾ وَتَقَطَّعُوٓا۟ أَمْرَهُم بَيْنَهُمْ ۖ كُلٌّ إِلَيْنَا رَٰجِعُونَ ﴿٩٣﴾ فَمَن يَعْمَلْ مِنَ ٱلصَّٰلِحَٰتِ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَا كُفْرَانَ لِسَعْيِهِۦ وَإِنَّا لَهُۥ كَٰتِبُونَ ﴿٩٤﴾ وَحَرَٰمٌ عَلَىٰ قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَٰهَآ أَنَّهُمْ لَا

يَرْجِعُونَ ﴿٩٥﴾ حَتَّىٰٓ إِذَا فُتِحَتْ يَأْجُوجُ وَمَأْجُوجُ وَهُم مِّن كُلِّ حَدَبٍ يَنسِلُونَ ﴿٩٦﴾ وَٱقْتَرَبَ ٱلْوَعْدُ
ٱلْحَقُّ فَإِذَا هِىَ شَٰخِصَةٌ أَبْصَٰرُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ يَٰوَيْلَنَا قَدْ كُنَّا فِى غَفْلَةٍ مِّنْ هَٰذَا بَلْ كُنَّا ظَٰلِمِينَ ﴿٩٧﴾
إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ أَنتُمْ لَهَا وَٰرِدُونَ ﴿٩٨﴾ لَوْ كَانَ هَٰٓؤُلَآءِ ءَالِهَةً مَّا
وَرَدُوهَا ۖ وَكُلٌّ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴿٩٩﴾ لَهُمْ فِيهَا زَفِيرٌ وَهُمْ فِيهَا لَا يَسْمَعُونَ ﴿١٠٠﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ سَبَقَتْ لَهُم مِّنَّا
ٱلْحُسْنَىٰٓ أُو۟لَٰٓئِكَ عَنْهَا مُبْعَدُونَ ﴿١٠١﴾ لَا يَسْمَعُونَ حَسِيسَهَا ۖ وَهُمْ فِى مَا ٱشْتَهَتْ أَنفُسُهُمْ خَٰلِدُونَ ﴿١٠٢﴾ لَا
يَحْزُنُهُمُ ٱلْفَزَعُ ٱلْأَكْبَرُ وَتَتَلَقَّىٰهُمُ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ هَٰذَا يَوْمُكُمُ ٱلَّذِى كُنتُمْ تُوعَدُونَ ﴿١٠٣﴾ يَوْمَ نَطْوِى
ٱلسَّمَآءَ كَطَىِّ ٱلسِّجِلِّ لِلْكُتُبِ ۚ كَمَا بَدَأْنَآ أَوَّلَ خَلْقٍ نُّعِيدُهُۥ ۚ وَعْدًا عَلَيْنَآ ۚ إِنَّا كُنَّا فَٰعِلِينَ ﴿١٠٤﴾ وَلَقَدْ
كَتَبْنَا فِى ٱلزَّبُورِ مِنۢ بَعْدِ ٱلذِّكْرِ أَنَّ ٱلْأَرْضَ يَرِثُهَا عِبَادِىَ ٱلصَّٰلِحُونَ ﴿١٠٥﴾ إِنَّ فِى هَٰذَا لَبَلَٰغًا لِّقَوْمٍ
عَٰبِدِينَ ﴿١٠٦﴾ وَمَآ أَرْسَلْنَٰكَ إِلَّا رَحْمَةً لِّلْعَٰلَمِينَ ﴿١٠٧﴾ قُلْ إِنَّمَا يُوحَىٰٓ إِلَىَّ أَنَّمَآ إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَٰحِدٌ ۖ
فَهَلْ أَنتُم مُّسْلِمُونَ ﴿١٠٨﴾ فَإِن تَوَلَّوْا۟ فَقُلْ ءَاذَنتُكُمْ عَلَىٰ سَوَآءٍ ۖ وَإِنْ أَدْرِىٓ أَقَرِيبٌ أَم بَعِيدٌ مَّا تُوعَدُونَ ﴿١٠٩﴾
إِنَّهُۥ يَعْلَمُ ٱلْجَهْرَ مِنَ ٱلْقَوْلِ وَيَعْلَمُ مَا تَكْتُمُونَ ﴿١١٠﴾ وَإِنْ أَدْرِى لَعَلَّهُۥ فِتْنَةٌ لَّكُمْ وَمَتَٰعٌ إِلَىٰ حِينٍ ﴿١١١﴾ قَٰلَ
رَبِّ ٱحْكُم بِٱلْحَقِّ ۗ وَرَبُّنَا ٱلرَّحْمَٰنُ ٱلْمُسْتَعَانُ عَلَىٰ مَا تَصِفُونَ ﴿١١٢﴾ ﴾ الأنبياء: ٨٣ - ١١٢

## مناسبت او تړاو:

کله چې الله تعالی يو ه تولی نبيان لکه: ابراهيم، نوح، لوط، داؤد او سليمان عليهم السلام ياد کړل اوددوی د هغوی ډېروته ازمويښتونه ورکړل شوی وونودلته يې دايوب عليه السلام کيسه چې په ډول ډول محنتونو اوکړاوونو ډکه وه ياده کړه ورپسې يې ديونس، زکريا او عيسی عليهم السلام دتکليفونو زحمتونو يادونه وکړه او دا ټول درسول الله صلی الله عليه وسلم د ډاډ ينې او تسليت لپاره ترڅو په هغوی پسې اقتداء وکړي.

## لغتونه:

(ذاالنون) ديونس عليه السلام لقب دی او(نون) ماهي ته وای ځکه چې هغه عليه السلام ماهي تېر کړی وو (احصنت) احصان (عفت) او پاک لمنی ته وايي (رغباورهبا) هيله او وېره (کفران) انکار او جحود ته وايي اصل يې له کفرڅخه اخيستل شوی چې پټولو ته وايي او کافرهم دالله نعمتونه پټوي او ورڅخه انکار کوي (حدب) لوړي ځمکي ته ويل کېږي له (حدبة الظهر) يعني ختلي ملا څخه يې اخيستی (ينسلون) په منډه تلونکی ويل کېږي (نسل الذئب) کله چې چسپانده روان وي (حصب) داور ازوغه (زفير) چيغې او سخت اسوېلی (حسيسها) ورکوټی غږ، احساس او خوځښت (السجل) پاڼه ځکه په هغې مطلوب ليکل کېږي

دنزول سبب:

عبدالله ابن عباس رضی الله عنهما وایي چي کله دالله جل جلاله داقول نازل شوچي ﴿ إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ ﴾ نودغه په قریشي کفارو ډېره سخته تمامه شوه اوویې ویل چي زموږبُتان یې وښکنځل نو(ابن الزبعري) ته راغلل داکیسه یې ورته تېره کړه هغه ویل: که زه وای مابه ځواب ورکړی وو دوی ځني وپوښتل تابه څه ورته ویل؟! هغه ویل: مابه ورته ویلي وای همدغه مسیح دی چي نصارا یې عبادت کوي اوهمداعُزَیردی چي یهودیې عبادت کوي نوآیادوی دواړه به هم داورشومه وي؟ قریشوته دغي خبري خوند ورکړ اوداسي یې وانګېرله چي ګواکي دمحمدځواب وشونوالله دغه آیت نازل کړ: ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ سَبَقَتْ لَهُم مِّنَّا ٱلْحُسْنَىٰٓ أُوْلَٰٓئِكَ عَنْهَا مُبْعَدُونَ ﴾ (۱)

تفسیر:

﴿ وَأَيُّوبَ إِذْ نَادَىٰ رَبَّهُۥٓ أَنِّي مَسَّنِيَ ٱلضُّرُّ ﴾ او(یادکړه ای محمده کیسه د ) ایوب کله چي خپل رب ته یې غږکړ(په عاجزي اوخشوع سره) چي بېشکه ماته رنځ رسېدلی دی؛ مفسرین کرام وایي: حضرت ایوب علیه السلام په روم کي پیغمبروو هغه ډېرمالونه اولادونه درلودل نومال یې له مینځه لاړهغه صبروکړبیایې اولادونه هلاک شول همده صبر وکړ بیایې رنځ اوبلاپه بدن مسلط شول هغه صبروکړنو دده دقوم یوتولی په ده باندي راغلل ویل یې: ده ته دغه کړاوونه دکومي ستري ګناه په کولوسره ورکول شوي دي نوپدې وخت کي الله ته په ژړااو زاري شوځوبې الله کړاوونه تېرکړل ﴿ وَأَنتَ أَرْحَمُ ٱلرَّٰحِمِينَ ﴾ اوته ډېرمهربان یې له ټولومهربانانوڅخه (په ماورحم‌وکړه ! هغه صراحتًادعاوي ونه فرمایلې لکن خپل ځان یې په عجزاوکمزوري سره وستایواودالله یې په بې ساري رحمت اومهرباني صفت وکړاوپدې کي خوراتلطف شته کوم چي په صراحتًا دعاکي نه ترسترګوکېږي ﴿ فَٱسْتَجَبْنَا لَهُۥ فَكَشَفْنَا مَا بِهِۦ مِن ضُرٍّ ﴾ پس قبوله کړه موږ دعادده پس لیري کړه موږهغه چي ووپه ده باندي له (بدني اومالي) ضرره (اوابتلاء) ﴿ وَءَاتَيْنَٰهُ أَهْلَهُۥ وَمِثْلَهُم مَّعَهُمْ ﴾ (او ورکړوموږدغه (ایوب) ته اهل دده اوپه مثل دهغوی له هغوی سره) ابن مسعودرضی الله عنه وایي چي دهغه اولادونه چي اوه زامن او اوه لوڼي وې ټول مړه شول اوکله چي هغه بیرته روغ شونوهغه ګردراژوندي شول اوهمداسي اوه زامن اوه لوڼي یې نوري له مېرمني څخه وزېږېدل (۲) ﴿ رَحْمَةً مِّنْ عِندِنَا ﴾ (په رحمت سره زموږله نزده) یعني له جهته زموږدرحمته پرده باندي ﴿ وَذِكْرَىٰ لِلْعَٰبِدِينَ ﴾ اونصیحت لپاره دعبادت کونکو(ترڅوچي صبروکړي لکه چي ایوب (علیه السلام) صبرکړی وو؛ قرطبي وایي: معناداچي یادونه اوتذکیردی لپاره دبندګانوڅخه کله چي دوی

---

(۱) القرطبي ۱۱ / ۳۲۷

(۲) دغه اثرچي له ابن مسعودنه راغلی پکي سوال پیدا کېږي څکه چي له دنیانه دلېږدېدلوڅخه وروسته بیا کله هم څوک بیرته نه راژوندی کېږي پرته دحضرت عیسی (علیه السلام) له معجزاتونه اوصحیح سمه خبره داده چي الله یې له مېرمني څخه همدومره چي مړه شوي وونور اولادونه ورکړل.

دایوب (علیه السلام) ازموینبت اوصبر وربه یادکړي نوبه په مصیبتونواوکړاوونوباندي لکه حضرت ایوب صبرکوي هغه دخپلي زمانې ترټولو غوره او بهتر شخصیت وو(۱) روایت کېږي چي حضرت ایوب (علیه السلام) په ازموینبت کي اتلس کاله تېرکړل نویوه ورځ یې مېرمنې ورته وویل: کاشکي دي الله ته دروغتیادُعاکړي وای نوده په څواب کي ورته وویل: چي موږڅوکاله روغ رمټ هوساژوندکړی دی؟ هغې ورته وویل: اتیاکاله نوده ورته زیاته کړه چي زه له الله څخه شرمېږم چي دُعااوزاري ورته وکړم څکه ازموینبت مې هغې مودې ته لانه دی رسېدلی کوم چي په سوکالي اوروغتیاکي مي تېره کړي ده(۲) ﴿ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِدْرِيسَ وَذَا الْكِفْلِ كُلٌّ مِّنَ الصَّابِرِينَ ﴾ او(یادکړه ای محمده اکیسه د) اسماعیل اسماعیل اوادریس اوذاالکفل دغه ټول دي له صبر کونکوڅخه (محسنین دي له کړاوونواومصیبتونو سره یې جهادکړی اوصبریې خپل کړی دی) ﴿ وَأَدْخَلْنَاهُمْ فِي رَحْمَتِنَا ﴾ اوداخل کړي وموږ دی په خپل رحمت (جنت) کي په سبب دصبراو صلاحیت ددوی چي درحمت اونعمت کورجنت مو ورکړ﴿ إِنَّهُم مِّنَ الصَّالِحِينَ ﴾ببشکه چي دوی له صالحانو (فاضلانو) څخه وو ﴿ وَذَا النُّونِ إِذ ذَّهَبَ مُغَاضِبًا ﴾ او(یادکړه ای محمده(کیسه د ) خاوند دماهي کله چي ولاړ حال داچي په قهروو (په خپل قوم چي هغوی ایمان نه راووړ اوحضرت یونس علیه السلام خفه شواو څني ووت څکه الله بل ځای فرمایې: ﴿ وَلَا تَكُن كَصَاحِبِ الْحُوتِ ﴾ اودغه ویناسمه نه ده چي څوک وایې: هغه په خپل پروردګار باندي په قهر وو ابوحیان وایې چي : څوک وایې هغه خپل پروردګارته په قهروو دغه ویناباید ونه منل شي څکه چي دنبوت له منصب سره نه ښایي (۳) امام رازي وایې چي: داروا نه ده چي قهردالله لوري ته راجع شي څکه دادهغه چاصفت دی چي په دې نه پوهېږي چي الله تعالی دامر اونهی مالک اوخاونددی اوهغه چي همداسي جاهل وي مؤمن نشي کېدای څه خوداچي نبي جوړشي اودده قهرپه خپل قوم باندي دالله جل جلاله لپاره ووڅکه چي دوی دالله دین نه مانواوحضرت یونس (علیه السلام) دوی ته په کفرباندي په قهروو(۴) ﴿ فَظَنَّ أَن لَّن نَّقْدِرَ عَلَيْهِ ﴾ پس ګمان یې وکړچي موږله سره به تنګي نه راولوپه ده باندي دعذاب؛ لکه چي بل ځای هم راغلي ﴿ وَمَن قُدِرَ عَلَيْهِ رِزْقُهُ ﴾ یعني پرچاچي تنګسیاراوستل شي دروزي دده دغه له قدرڅخه اخیستل شوي کلمه ده له قدرت څخه نه ده اخیستل شوي . امام رازي وایې څوک چي دالله دعجز ګمان کوي هغه کافرکېږي اوپدې کي شک نشته چي داسي نسبت کول هیڅ مؤمن ته نه ښایي اونه هم روادی نوڅرنګه به یې انبیاووعلیهم السلام ته نسبت کول رواشي؟ روایت کېږي چي عبدالله بن عباس یو وخت معاویه رضی الله عنه ته راغی هغه ورته ویل چي زه برایي (ببګاه) دقرآنکریم څپواخیستی وم او داسي یې ډوب کړم چي دڅغورلولاره مي نشوای موندلای تاته مي انتظارکاووچي

---

(۱) القرطبي ۱۱ / ۳۲۷
(۲) النسفي ۳ / ۸۷
(۳) البحر ۶ / ۳۳۵
(۴) الفخرالرازي ۲۲ / ۲۱۵

ومي ژغورې ابن عباس رضی الله عنه ورته ويل: هغه څه دي ؟ معاويه رضی الله عنه ورته وويل چي دالله پيمغبريونس عليه السلام داسي گمان کوی چي الله وربانديي قادرنه دی ؟ نوابن عباس رضی الله عنه په خواب کي ورته وويل: چي دغه کلمه له قدرڅخه ده اوله قدرت څخه نه ده مشتق شوي (١) ﴿ فَنَادَىٰ فِي ٱلظُّلُمَٰتِ ﴾ پس غږ يې وکړ په تياروکي) يعني الله ته يې نارې کړې دشپې په تياره کي کله چي دماهي په گېډه کي وو. ابن عباس رضی الله عنه وايي دا درې تاريکې وې يوه دشپې ،بله دسمندراوبله دماهي دگېډي ﴿ أَن لَّآ إِلَٰهَ إِلَّآ أَنتَ سُبۡحَٰنَكَ إِنِّي كُنتُ مِنَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ (داسي) چي نشته بل برحق معبودمگرته يې (يوازي) پاکي ده تالره ( له عيبونو) ببشکه زه وم له ظلم کونکوڅخه (په نفس خپل اواوس زه له توبه گارانوڅخه اوپه خپلو کړو پښېمانه يم له ماڅخه دغه محنت ليري کړه ! په حديث شريف کي راځي چي هرڅوک چي په کوم مشکل اخته وي په دې دُعاکولوسره به يې الله بلنه ومني (٢) ﴿ فَٱسۡتَجَبۡنَا لَهُۥ وَنَجَّيۡنَٰهُ مِنَ ٱلۡغَمِّۚ ﴾ پس قبوله کړه موږدعاددغه (يونس) اونجات موورکړدغه (يونس) ته له غمه (تکليف اومحنت دماهي دگېډي اوسيند څخه) ﴿ وَكَذَٰلِكَ نُـۨجِي ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴾ اوهم داسي (لکه يونس ته) نجات ورکوو مؤمنانو ته کله چي موږته استغاثه وکړي دکړاوونواومصيبتونوپه وخت کي ﴿ وَزَكَرِيَّآ إِذۡ نَادَىٰ رَبَّهُۥ رَبِّ لَا تَذَرۡنِي فَرۡدٗا وَأَنتَ خَيۡرُ ٱلۡوَٰرِثِينَ ﴾ او(يادکړه ای محمده کيسه د ) زکرياکله چي يې غږوکړرب خپل ته (داسي چي) ای زماربه مايوازي مه پرېږده (بې اولاده) اوته له گرده وارثانوڅخه غوره يې. ابن عباس رضی الله عنه وايي چي دده عمرداوخت سل کاله وواودمېرمني عمريې نه نوي کاله وو. الوسي وايي چي په دې جمله کي چي ﴿ وَأَنتَ خَيۡرُ ٱلۡوَٰرِثِينَ ﴾ ده دالله تعالی مدح په بقاسره شوي ده اوداچي له الله نه پرته نورگردمخلوقات فنا موندونکي دي نودالله درحمت دباران يې غوښتنه کړي(٣) ﴿ فَٱسۡتَجَبۡنَا لَهُۥ وَوَهَبۡنَا لَهُۥ يَحۡيَىٰ ﴾ پس قبوله کړه موږدعاددغه (زکريا) اووموبانښه دغه (زکريا) ته يحيی (په سپين ږېرتوب کي) ﴿ وَأَصۡلَحۡنَا لَهُۥ زَوۡجَهُۥٓۚ ﴾ اوصالحه موکړه ده ته ښځه دده (چي داولادراوړلو قابل شوه اوپخواشنډه وه) ابن عباس رضی الله عنه وايي چي بدخويه اودتېرې ژبي خاونده وه اوبياالله نېکخويه وگرزوله (٤) ﴿ إِنَّهُمۡ كَانُواْ يُسَٰرِعُونَ فِي ٱلۡخَيۡرَٰتِ ﴾ ببشکه دغه مذکور(انبياء) وودوی چي تلواربه يې کاوو(په طلب) دنېکواعمالو(اوطلب) دخيراتونو ﴿ وَيَدۡعُونَنَا رَغَبٗا وَرَهَبٗاۖ ﴾ اوبللوبه يې موږله جهته دميني (دثواب) اووېري (دعذاب) ﴿ وَكَانُواْ لَنَا خَٰشِعِينَ ﴾ اووو دوی خاص موږته متواضع (وېرېدونکي

(١) ٢١٧ نفس المرجع تفسيركبير.
(٢) دحديث اصل په سنن ابوداؤدکي دی.
(٣) روح المعاني.
(٤) لومړی قول دقتاده ، سعيدابن جبيراوزياتره مفسرينودی القرطبي ۱۱/ ۳۳۶

په پټه اوښکاره) ﴿ وَٱلَّتِىٓ أَحۡصَنَتۡ فَرۡجَهَا ﴾ او (یادکړه ای محمده کیسه دهغي نجلۍ مریمي) چي پاک ساتلی وواندام خپل (له زنااوحلال حرام څخه ) لکه چي حکایت یي الله فرمايې ﴿ وَلَمۡ يَمۡسَسۡنِى بَشَرٌ وَلَمۡ أَكُ بَغِيًّا ﴾ (مریم ٢٠) ابن کثیروایې چي د حضرت مریمي اودهغې دزوی عیسی(علیه السلام) کیسه يې دزکریا(علیه السلام) اودهغه دزوی یحیی (علیه السلام) له کیسې سره نژدې څکه راوړه چي هلته دیوماشوم زېږېدل له بوډاپلاراوسپین سري بوډۍ مېرمني څخه هغه چي په ځواني کي هم داولاد زېږېدلوجوګه نه وه کیسه وه اوترهغه لازیاته عجیبه داچي له دوی نه وروسته راوړه[1] ﴿ فَنَفَخۡنَا فِيهَا مِن رُّوحِنَا ﴾ پس پوکړ موږ په ګرېوان (کمیس د ) هغې کي له روحه خپله (نوېې دحضرت عیسی امیدومونددروح نسبت الله تعالی ته دتشریف اوتعظیم له مخي دی) ﴿ وَجَعَلۡنَٰهَا وَٱبۡنَهَآ ءَايَةً لِّلۡعَٰلَمِينَ ﴾ او وموګرزوله دغه (مریمه) اوزوی ددې (عیسی) دلیل د (کامل قدرت خپل) لپاره دخلګو(چي ورڅخه عبرت واخلي) ﴿ إِنَّ هَٰذِهِۦٓ أُمَّتُكُمۡ أُمَّةً وَٰحِدَةً ﴾ (په تحقیق داملت (د توحیدملت اوداسلام دین)ستاسي یوملت دی) اوټول انبیاء دتوحیدپه رسالت باندي راغلي دي .[2] ﴿ وَأَنَا۠ رَبُّكُمۡ فَٱعۡبُدُونِ ﴾ اوزه رب ستاسي یم پس زماعبادت کوئ (خاص نه دبل چا ) ﴿ وَتَقَطَّعُوٓاْ أَمۡرَهُم بَيۡنَهُمۡۖ ﴾ اوټوټې ټوټې کړ (دغوپخوانیوامتونو )کارد(دین) دوی پخپل مینځ کي (ځیني موحدین ځیني یهودیان، ځیني مجوس اوځیني نصرانیان شول) ﴿ كُلٌّ إِلَيۡنَا رَٰجِعُونَ ﴾ ټولي فرقې موږته راتلونکي دي (او موږبه حساب ورسره کوو . امام رازي رحمه الله وایې چي: ددې معناداچي دوی دخپل دین چاره پخپل مینځ کي ټوټې ټوټې کړه لکه چي یوڅوک کوم شی دوېشلو او وندې کولولپاره جلاجلاکړي دغه ددوی ددیني اختلافاتوتمثیل دی چي په مختلفو ګوندونووېشل شوي دي[3] ﴿ فَمَن يَعۡمَلۡ مِنَ ٱلصَّٰلِحَٰتِ وَهُوَ مُؤۡمِنٌ ﴾ پس هرڅوک چي له نېکو (کارونو ) څخه عمل وکړي حال داچي دی مؤمن وي ﴿ فَلَا كُفۡرَانَ لِسَعۡيِهِۦ ﴾ نونشته بې قدري د کوښښ دده (یعني دعمل ثواب یې نه ضائع کېږي) ﴿ وَإِنَّا لَهُۥ كَٰتِبُونَ ﴾ اوبېشکه موږ دغه (دده کوښښ لره) لیکونکي یو؛ یعني دده په اعمالنامه کي يې لیکواومقصدپرښتوته امرکول دي چي دخلګواعمال ولیکي ﴿ وَحَرَٰمٌ عَلَىٰ قَرۡيَةٍ أَهۡلَكۡنَٰهَآ أَنَّهُمۡ لَا يَرۡجِعُونَ ﴾ اوحرام دی پراهل دهرکلي چي موږدوی لره هلاک کړي دي (داکار)چي بېشکه دوی به نه راځي بېرته (دوهم ځلي) دابن عباس رضی الله عنه په بل روایت کي راځي چي

---

[1] المختصر ٢ / ٥٢٠

[2] پخوانی مرجع .

[3] تفسیرالرازي ٢٢ / ٢١٩

معناداچي دوی به دتوبې لپاره بيانه راځي لومړی يې دابن کثيرپه وينا غوره کړی شوی دی او په البحرکي وايې چي: معنايې داده حرام اومنع کړی شوی په هغه قوم چي موږبې دهلاکت حکم کړی چي دوی به په دنياکي ايمان ته رجوع وکړي ترڅو چي قيامت راځي او کله چي قيامت راشي بيابه رجوع کوي([1]) ﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا فُتِحَتۡ يَأۡجُوجُ وَمَأۡجُوجُ ﴾ ترهغه پوري چي کله پرانستلی شي (دېوال د) ياجوج اوماجوج ﴿ وَهُم مِّن كُلِّ حَدَبٖ يَنسِلُونَ ﴾ (اودوی به له هري لوړي (اوچتي) څخه ګړندي را کوزېږي) اومقصد داچي دوی به دډېروالي له کبله له هرلوري اولاري څخه په ځمکه کي دفساد خپرولولپاره رادرومي ﴿ وَٱقۡتَرَبَ ٱلۡوَعۡدُ ٱلۡحَقُّ ﴾ اونژدې شوه وعده حقه (قيامت) راتلل له ياجوج او ماجوج راتلو وروسته داسي مثال ولري لکه هغه حامله چي دزېږېدلو وخت يې نژدې شوی وي اوخپلوان يې انتظارکوي چي کومه شېبه به يې اولاد زېږي په شپه او که په ورځ کي([2]) ﴿ فَإِذَا هِيَ شَٰخِصَةٌ أَبۡصَٰرُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ﴾ پس ناڅاپه کيسه داده چي تيغي به وتلي پاتي وي سترګي دهغو کسانو چي کافران شوي دي (له هيبته ددغي ورځي له حيرانتيابه يوبل لوري ته نه ګرزي) ﴿ يَٰوَيۡلَنَا قَدۡ كُنَّا فِي غَفۡلَةٖ مِّنۡ هَٰذَا ﴾ (اووايي به) ای زموږهلاکه (راحاضرشه دادي وخت دی) په تحقيق موږپه غفلت کي وو له دغي ورځي (اودغه نيمه خوابرخه ليک څخه) ﴿ بَلۡ كُنَّا ظَٰلِمِينَ ﴾ بلکه وو موږ ظالمان (پخپل ځان په کفرکولوسره) دلته دوی له لومړي وينا څخه انتقال وکړاوپه دغه ترڅه حقيقت يې اعتراف وکړچي موږپخپله ظالمان ووانبياووموږ وېرولوخوموږايمان نه راووړ ﴿ إِنَّكُمۡ وَمَا تَعۡبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ بېشکه تاسي (ای مشرکانو) اوهغه (بُتان، شيطانان) چي تاسي ددوی بې له الله عبادت کوی ﴿ حَصَبُ جَهَنَّمَ ﴾ خس، خاشاک ددوزخ ياست. ابوحيان وايي: حصب هغه څه ته ويل کېږي چي اورته وراچول کېږي اوتراچولودمخه حصب نه ورته وايي مګرپه مجازي توګه ورته وويل شي. ﴿ أَنتُمۡ لَهَا وَٰرِدُونَ ﴾ تاسي له دې معبودانوسره دې دوزخ ته ننوتونکي ياست) اوداچي الله تعالیٰ کفارد دوی له باطلومعبودانوسره يوځای په اورکي واچول ترڅوددوی غم اوحسرت يوپه دوه شي ځکه دوی به خپل معبودان هم په دوزخ کي ويني ﴿ لَوۡ كَانَ هَٰٓؤُلَآءِ ءَالِهَةٗ مَّا وَرَدُوهَاۖ ﴾ که چېري دغه (بُتان په رښتيا سره) معبودان وای نو به نه ووداخل شوي په دې دوزخ کي ﴿ وَكُلّٞ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴾ اوداټول به پدې دوزخ کي تل پراته وي (يعني دغه عابدين اومعبودين به ټول په دوزخ کي وي) ﴿ لَهُمۡ فِيهَا زَفِيرٞ وَهُمۡ فِيهَا لَا يَسۡمَعُونَ ﴾ (وي به دغو (عابدانو) ته په (دوزخ) کي چيغي سورې اودوی به په دې (دوزخ) کي

---

([1]) البحر ۶/ ۳۳۸

([2]) زادالمسير ۵/ ۳۸۹

نه اوري) يعني (دغه كفارو به په دوزخ كي داسي زګېروي وي لکه چي د غمجن او پرهار ژلي وي او هلته به دوی هيڅ هم نه اوري څکه چي کانه به راپاڅي لکه چي الله فرمايي ﴿ وَنَحْشُرُهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَىٰ وُجُوهِهِمْ عُمْيًا وَبُكْمًا وَصُمًّا ﴾ قرطبي وايي چي دغږونو په اورېدلو کي څه روح او الفت وي الله پاک دوزخيان له دغه څخه محروم کړي دي(۱) ابن مسعود رضی الله عنه وايي کله چي تل ترتله پاتي کېدونکي دوزخيان په اور کي پاتي شي نو الله جل جلاله يې داور په تابوتونو کي بند کړي چي داور مېخونه وربانديي وهل شوي وي او هلته هيڅ هم نه اوري او نه هيڅوک ويني چي له ده پرته به هغه ته هم عذاب ورکولی شي بيايي دغه ته آيت تلاوت کړ(۲) ﴿ إِنَّ الَّذِينَ سَبَقَتْ لَهُم مِّنَّا الْحُسْنَىٰ ﴾ بېشکه هغه کسان چي ړومبی شوي ده دوی ته له (جانبه) زموږ نېکه مرتبه (نېکمرغي) ﴿ أُولَٰئِكَ عَنْهَا مُبْعَدُونَ ﴾ (دغه کسان به له دې دوزخ څخه ليري کړی شوي وي) نه به يې داور ګرمي سوځوي او نه به معذب کېږي . ابن عباس رضی الله عنه وايي چي: دغه اولياء الله دي چي په پل صراط به تر برېښنا لاګړندي تېرېږي او کفار به پرمخي په دوزخ كي لوېږي (۳) ﴿ لَا يَسْمَعُونَ حَسِيسَهَا ﴾ نه به اوري دغه (جنتيان) غږ د (لمبود) دوزخ (او حرکت يې) ﴿ وَهُمْ فِي مَا اشْتَهَتْ أَنفُسُهُمْ خَالِدُونَ ﴾ او دوی به تل په هغو نعمتونو کي وي چي د دوی نفسونه يې غواړي (او سترګي يې وربانديي خوند اخلي) ﴿ لَا يَحْزُنُهُمُ الْفَزَعُ الْأَكْبَرُ ﴾ نه به غمجن کوي دوی وېره لويه (د قيامت دورځي هيبت او بيرته راپاڅېدل څکه چي دوی به څني بېغمه وي) ﴿ وَتَتَلَقَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ ﴾ او ملاقات به کوي له دوی سره پرښتې (د جنت په دروازو کي ورته به مبارکي ورکوي او وايي به) ﴿ هَٰذَا يَوْمُكُمُ الَّذِي كُنتُمْ تُوعَدُونَ ﴾ دا ورځ د (ثواب د) ستاسي ده هغه چي وی تاسي چي وعده در سره کړی شوي وه (په دنياکي نو خوښ خوشحاله اوسئ) ﴿ يَوْمَ نَطْوِي السَّمَاءَ كَطَيِّ السِّجِلِّ لِلْكُتُبِ ﴾ ياد کړه (ای محمده!) هغه ورځ چي راونغاړو آسمان لکه نغښتل د سند لپاره د ليکل شويو (کاغذونو) ابن عباس رضی الله عنه وايي: معنا داکه څرنګه چي پاڼه په مافيها باندي رانغښتل شوي وي (لام) د (في) په معنا دی ﴿ كَمَا بَدَأْنَا أَوَّلَ خَلْقٍ نُّعِيدُهُ ﴾ لکه چي ابتداء کړی وو موږ اول پيدا ښت بيايي اعاده کوو. په حديث شريف کي راځي چي: تاسو به الله ته لوڅ، لغړ ابيلي پښې او غيرمختون (ناسنته) راپاڅېږی ﴿ كَمَا بَدَأْنَا أَوَّلَ خَلْقٍ نُّعِيدُهُ ﴾ او لومړنی څوک چي هغه به په جامو پوښل کېږي حضرت ابراهيم عليه السلام به وي(۴) ﴿ وَعْدًا عَلَيْنَا ﴾ (وعده ده په موږ) يعني ټينګه وعده ده چي

---

(۱) القرطبي ۱۱/۳۴۵

(۲) نفس المرجع .

(۳) مختصر ... ۲/ ۵۱۰

(۴) رواه مسلم عن ابن عباس

مخالفت اوتبديل پکي نشته په موږ باندي يې ترسره کول اووفالازم ده ﴿إِنَّا كُنَّا فَـٰعِلِينَ﴾ بېشکه موږ کونکي يو(يعني ورباندي قادريودغه دبعث اوپاخولوتاکيددی ﴿وَلَقَدْ كَتَبْنَا فِى ٱلزَّبُورِ مِنۢ بَعْدِ ٱلذِّكْرِ﴾اوخامخاپه تحقيق ليکلي دی موږپه زبورکي وروسته له نصيحته (هغه چي په لوح محفوظ کي مو ازلي کښلي وو) ﴿أَنَّ ٱلْأَرْضَ يَرِثُهَا عِبَادِىَ ٱلصَّـٰلِحُونَ﴾ داچي بېشکه ددې ځمکي به زما نېکان بندګان مالکان کېږي (اوپه ميراث به يې وړي يعني جنت به صالحانو مؤمنانو ته رسېږي ابن کثيروايي چي الله تعالى په تورات، زبوراوپخواني علم سره چي د آسمانونو اوځمکي تر پيدايښت لا پخواواخبارکړي چي محمدي أمت ته به ځمکه په ميراث رسېږي اوالله به يې جنت ته داخلوي په داسي حال کي چي دوی به نېکان وي(١) اوقرطبي وايې چي تر ټولو غوره وينا پدې هکله داشوي چي له ځمکي څخه دجنت ځمکه واخيستل شي ځکه په دنياکي ځمکه صالحانواو طالحانودواړوته رسېدلي وي اودغه ويناداابن عباس اومجاهددی اودالله داقول هم ورباندي دلالت کوي چي: ﴿وَقَالُوا۟ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ ٱلَّذِى صَدَقَنَا وَعْدَهُۥ وَأَوْرَثَنَا ٱلْأَرْضَ﴾ (الزمر ٧٤) او اکثر مفسرين کرام په دي هکله وايې چي مرادله صالح بندګانوڅخه محمدي أمت دی (٢) مجاهدوايې چي مراد له زبورڅخه نازل شوي کتابونه دي اومرادله ذکرنه أم الکتاب په نزددالله دی (٣) ﴿إِنَّ فِى هَـٰذَا لَبَلَـٰغًا لِّقَوْمٍ عَـٰبِدِينَ﴾ (بېشکه پدې (تېربيان) کي خامخا (سبب د) وصول دمطلب دي لپاره د قوم عبادت کونکو) يعنى پدې سورت کي چي کوم اخبار، وعداووعيداونصيحتونه تېرشوي دغه د هغه خشوع کونکي غاړه ايښودونکي قوم لپاره کافي دي اودالله جل جلاله دطاعت لپاره دشيطان تر طاعت ښه اغيزمن دی) ﴿وَمَآ أَرْسَلْنَـٰكَ إِلَّا رَحْمَةً لِّلْعَـٰلَمِينَ﴾ اوموږته نه يې لېږلی (ای محمده!) مګر رحمت دپاره د(ټولو) عالميانو په حديث شريف کي راځي: (انماأنارحمة مهداة فمن قبل هذه الرحمة وشکرهذه النعمة سعد فی الدنياوالآخرة (٤) بېشکه همداخبره ده چي زه دالله له لوري پېرزو شوی رحمت يم چاچي دغه رحمت ومانواوددغه نعمت شکريې پرځای کړپه په دنيا اوآخرت کي نېکمرغه شو ﴿قُلْ إِنَّمَا يُوحَىٰٓ إِلَىَّ أَنَّمَآ إِلَـٰهُكُمْ إِلَـٰهٌ وَٰحِدٌ﴾ ووايه (ای محمده! کفاروته ) بېشکه خبره همداده چي ماته وحی کولی شي داسي چي بېشکه داخبره ده چي

(١) مختصرابن کثير ٢ / ٥٢٤

(٢) القرطبي ١١ / ٣٤٩

(٣) ابن جريراوطبري همداسي ويلي .

(٤) الله جل جلاله هسي ندي فرمايلي چي ﴿وَرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِينَ﴾ بلکه (ورحمة للعلمين ) يې فرمايلي ځکه الله په ټولو بندګانو باندي دمحمد (ص) په رالېږلو درحمت پېرزوينه کړي ده چي ټول بشريت ته يې نېکمرغي راوړي له ستري بدمرغي څخه يې ژغورلي اودده په لاس يې دنياوي اواخروي نعمتونه ليدلي دي هغوی يې له جهالته وروسته پوهولي له ګمراهي څخه يې سمي لاري ته رااړولی آن تردې چي دکافرانولپاره هم رحمت ووچي ددوی عذاب يې ځنډولی اويومخه ايزه يې هلاک کړي نه دي چي مسخ شي اويايې ځمکه نتي باسي اويابه سيند کي ډوب شي.

ستاسي الله يو دی (فرد اوصمد دی) ﴿ فَهَلْ أَنتُم مُّسْلِمُونَ ﴾ آیا پس یی تاسي اسلام راوړونکي؛ دغه استفهام اومعنايې امردی يعني اسلام راوړئ اودالله حکم ته غاړه کښېږدئ ﴿ فَإِن تَوَلَّوْا ﴾ پس که وګرزېدل دوی (له اسلامه) ﴿ فَقُلْ ءَاذَنتُكُمْ عَلَىٰ سَوَآءٍ ﴾ نووو ايه (ای محمده!) چي زه تاسي خبروم په (ماموربه) په برابري سره (دیوبل توپیرنکوم چي يو خبروم بل نه خبروم ﴿ وَإِنْ أَدْرِىٓ أَقَرِيبٌ أَم بَعِيدٌ مَّا تُوعَدُونَ ﴾ اوزه نه پوهېږم چي آیانژدې دي ، که ليري دي هغه څه چي تاسي سره وعده شوي ده (دعذاب اويا دقیامت خوخامخا راتلونکی دی) ﴿ إِنَّهُۥ يَعْلَمُ ٱلْجَهْرَ مِنَ ٱلْقَوْلِ وَيَعْلَمُ مَا تَكْتُمُونَ ﴾ (بېشکه چي دغه (الله) ته معلوم دی ښکاره له خبرواومعلوم دی (الله ته) هغه چي تاسي يې پټوی) يعني الله جل جلاله په ظواهرواوضمائروخبردی اوهرڅاته به پخپلو کړو وړوبدله ورکوي ﴿ وَإِنْ أَدْرِى لَعَلَّهُۥ فِتْنَةٌ لَّكُمْ ﴾ اوزه نه پوهېږم ښايې چي دغه دعذاب تاخیر تاسي لره ازموينه وي (ترڅو وګوری چي تاسي څه کوی) ﴿ وَمَتَٰعٌ إِلَىٰ حِينٍ ﴾ اونفع وي تريوه وخته (تاکلي) پوري بيا تاسو ته دردناک عذاب راځي ﴿ قَٰلَ رَبِّ ٱحْكُم بِٱلْحَقِّ ﴾ (وويل (رسول) ای زماربه حکم وکړه زموږ په مينځ کي په حقه سره) يعني زمااودې مکذبينو ترمينځ په حق فيصله صادره کړه ﴿ وَرَبُّنَا ٱلرَّحْمَٰنُ ٱلْمُسْتَعَانُ عَلَىٰ مَا تَصِفُونَ ﴾ اوزموږ رب ډېر مهربان دی مرسته ترې غوښتل شوي ده په هغوخبروچي تاسي يې بيانوی (له کفراوتکذيب څخه ,په پای دسورت کي رسول الله صلى الله عليه وسلم ) ته امرشوی چي خپلي چاري الله ته وسپاري اودهغه له لوري دخلاصون اومرستي ستر ګي په لاراوسي هغه نعم الناصراونعم المعين دی

بلاغت:

پدې آيتونوکي کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډيزيې دادی:

١ - دتلطف په توګه درحمت غوښتل چي ﴿ وَأَنتَ أَرْحَمُ ٱلرَّٰحِمِينَ ﴾ اوهسي يې ونه ويل چي(ارحمني).

٢-اشتقاقي جناس لکه ﴿ أَرْحَمُ ٱلرَّٰحِمِينَ ﴾.

٣ ناقص جناس ﴿ ٱلصَّٰبِرِينَ.... ٱلصَّٰلِحِينَ ﴾ ..

٤-دطباق صنعت د ﴿ رَغَبًا وَرَهَبًا ﴾ او ﴿ بَدَأْنَآ ....نُّعِيدُهُۥ ﴾ او ﴿ أَقَرِيبٌ أَم بَعِيدٌ ﴾ ترمينځ.

٥ - تشريف لکه ﴿ فَنَفَخْنَا فِيهَا مِن رُّوحِنَا ﴾ دروح نسبت الله ته دتشريف لپاره دی لکه ﴿ نَاقَةَ ٱللَّهِ ﴾

۶ - تمثيلي استعاره چي فرمايي ﴿ وَتَقَطَّعُوٓاْ أَمۡرَهُم بَيۡنَهُمۡ ﴾ ددوی ديني اختلاف او ځانځاني يې له ګونډونو سره چي وېش کوي چي داددغي پارچې او داددغي پارچې لپاره دی مثال راوړاو دغه لطيفه استعاره ده.

۷ - ايجاز بالحذف لکه چي وايي: ﴿ يَٰوَيۡلَنَا ﴾ يعني اودوی به ويل: ياويلنا اوهم داسي دغه قول چي ﴿ وَتَتَلَقَّىٰهُمُ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ هَٰذَا يَوۡمُكُمُ ﴾ يعني او وايي پرښتې ورته چي دغه ستاسي هغه ورځ ده چي درسره ژمنه شوي وه

۸ - مرسله مفصله تشبيه لکه چي فرمايي ﴿ نَطۡوِي ٱلسَّمَآءَ كَطَيِّ ٱلسِّجِلِّ لِلۡكُتُبِۚ ﴾ يعني داسي نغښتل لکه چي پاڼه په هغو ليکلو باندي رانغښتل کېږي ۹ - هغه استفهام چي مقصد ورڅخه امروي لکه ﴿ فَهَلۡ أَنتُم مُّسۡلِمُونَ ﴾ يعني ايمان او اسلام راوړئ.

۱۰ - دسجع صنعت لکه ﴿ فَٱعۡبُدُونِ .....رَٰجِعُونَ..... كَٰتِبُونَ ﴾ اوداهم له بديعي محسناتو څخه ګڼل کېږي.

دالله جل جلاله په مرسته دسورة الأنبيا تفسير بشپړ شو

***

## د(الحج) سورت مدني او اته اويا آيتونه لري.

دسورت په وړاندي:

دالحج سورت مدني اودتشريع په هکله لکه نورمدني سورتونه چي دشريعت دچارو په باب لاربښوونه کوي دده موخه هم دغسي ده که څه هم چي سورت مدني دی خودمکې سورتونو تراغيزلاندي دی څکه چي دايمان اوتوحيد موضوع وېرونه اوانذار، بعث اوجزا اودقيامت دورځي هيبتونه اوکتني هغه څرګندتوکي دي چي په دې سورت کي رادبره کېږي آن تردې چي لوستونکي پدې خيال کي راولي چي دابه هم له مکي سورتونوڅخه يووي اوورسره ورسره تشريعي موضوع ګاني لکه دقتال اذن دحج اوقرباني احکام اودفی سبيل الله جهادپه هکله امراوداسي نوري چي دمدني سورتونوله ځانګړتياوو څخه ګڼل کېږي هم پکي راغلي دي ځيني علمای کرامو دغه سورت دمکي اومدني مشترکوسورتونو څخه شمېرلی دی.

* سورت په لومړي پيل کي له يو وېروونکي صحنې څخه چي زړونه يې له ليدلوريږدي عقلونه حيرانېږي اوهغه دقيامت دراتلوسره دزلزلې راتلل دي پرده پورته کوي اودهيبت اودهشت په څپوکي دانسان په خيال کي داسي انځوروي چي دغه داسي زلزله ده چي نه يوازي ماڼۍ اوودانۍ نړوي بلکه هيبت يې تی ورکونواوأميندواره مېرمنوته هم رسېږي چي لومړنۍ له خپل ماشومه څخه غافلي اودوهمي يې دماشوم په زيانولوباندي مجبوروي اوخلګ داسي هېښ مېښ اوبې سده کوي لکه چي

شراب بې خوړلي وي نه بېخوده او بې سده وي او نه بې شراب څښلي وي بلکه دغه دهغه هیبتناک حالت له کبله دي چې زړونه خوځوي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱتَّقُواْ رَبَّكُمْۚ إِنَّ زَلْزَلَةَ ٱلسَّاعَةِ شَيْءٌ عَظِيمٞ ﴾ د آیتونو تر پایه.

* دقیامت دورځې له هیبتونو څخه نیولي دبعث او بیا ژوندون تر دلائلو پورې په سورت کې یادونه شوې او بیا دجزا ورځ هلته چې هرچا ته خپل عمل ورسپېږي که نېکي بې کړې وه نېکي به مومي او که بدي بې کړې وی بدي به بیامومي وروسته دقیامت ځیني مشاهد راوړي چې نېکان خلګ به په جنت کې او بدکردار فُجار به په دوزخ کې وي له دې په هیسته هغه حکمت نبيي چې دکفارو سره په جنګ کولو اجازه ورکول شوي او بیا دهغو ورانو کنډرو کلیو باندې څخه غږېږي کوم چې داوسېدونکو دظلم او سرغړوني له کبله ویجاړ شوي وو او دغه ددعوتونو او بلنو یو الهي سنت دی ترڅو چې مؤمنانو ته دلاسا ینه ورکړي چې وروستی بری دصبرکونکو دی.

* په پای کې سورت دمشرکانو دعبادت هغه چې خپلو بتانو ته بې کوي مثال راوړي چې دغه معبودان ددې توان نلري چې مچ پیدا کړي څه خو دا چې اورېدونکي لیدونکی انسان وپنځوي او دوی دحضرت خلیل ملت ته هغه چې دایمان پناه ځای او دتوحید رکن وو رابولي.

تسمیه او نومول یې:

دغه سورت ته ځکه سورت الحج وایې چې دحضرت ابراهیم علیه السلام هغه بلنه او دعوت چې دکعبې له جوړولو فارغ شو تلپاتې وساتي چې خلګو ته یې دبیت الله الحرام دحج کولو غږوکړ او غږونه یې شول غږ بې دځمکې ګوټ ګوټ ته ورسېدو او خلګو هغه دمیندو په سینو او دپلرونو په ملاوو کې واورېده او دنداء یې اجابت وکړچې: لبیک اللهم لبیک لاشریک لک.

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱتَّقُواْ رَبَّكُمْۚ إِنَّ زَلْزَلَةَ ٱلسَّاعَةِ شَيْءٌ عَظِيمٞ ١ يَوْمَ تَرَوْنَهَا تَذْهَلُ كُلُّ مُرْضِعَةٍ عَمَّآ أَرْضَعَتْ وَتَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمْلٍ حَمْلَهَا وَتَرَى ٱلنَّاسَ سُكَٰرَىٰ وَمَا هُم بِسُكَٰرَىٰ وَلَٰكِنَّ عَذَابَ ٱللَّهِ شَدِيدٞ ٢ وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يُجَٰدِلُ فِي ٱللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٖ وَيَتَّبِعُ كُلَّ شَيْطَٰنٖ مَّرِيدٖ ٣ كُتِبَ عَلَيْهِ أَنَّهُۥ مَن تَوَلَّاهُ فَأَنَّهُۥ يُضِلُّهُۥ وَيَهْدِيهِ إِلَىٰ عَذَابِ ٱلسَّعِيرِ ٤ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِن كُنتُمْ فِي رَيْبٖ مِّنَ ٱلْبَعْثِ فَإِنَّا خَلَقْنَٰكُم مِّن تُرَابٖ ثُمَّ مِن نُّطْفَةٖ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٖ ثُمَّ مِن مُّضْغَةٖ مُّخَلَّقَةٖ وَغَيْرِ مُخَلَّقَةٖ لِّنُبَيِّنَ لَكُمْۚ وَنُقِرُّ فِي ٱلْأَرْحَامِ مَا نَشَآءُ إِلَىٰٓ أَجَلٖ مُّسَمّٗى ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ طِفْلٗا ثُمَّ لِتَبْلُغُوٓاْ أَشُدَّكُمْۖ وَمِنكُم مَّن يُتَوَفَّىٰ وَمِنكُم مَّن يُرَدُّ إِلَىٰٓ أَرْذَلِ ٱلْعُمُرِ لِكَيْلَا يَعْلَمَ مِنۢ بَعْدِ عِلْمٖ شَيْـٔٗاۚ وَتَرَى ٱلْأَرْضَ هَامِدَةٗ فَإِذَآ أَنزَلْنَا عَلَيْهَا ٱلْمَآءَ ٱهْتَزَّتْ وَرَبَتْ وَأَنۢبَتَتْ مِن كُلِّ زَوْجِۭ بَهِيجٖ ٥ ذَٰلِكَ بِأَنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلْحَقُّ وَأَنَّهُۥ يُحْيِ ٱلْمَوْتَىٰ وَأَنَّهُۥ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٖ قَدِيرٞ ٦ وَأَنَّ ٱلسَّاعَةَ ءَاتِيَةٞ لَّا رَيْبَ فِيهَا وَأَنَّ ٱللَّهَ يَبْعَثُ مَن فِي ٱلْقُبُورِ ٧ وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يُجَٰدِلُ فِي ٱللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٖ وَلَا هُدٗى وَلَا

كِتَٰبٍ مُّنِيرٍ ﴿٨﴾ ثَانِيَ عِطْفِهِۦ لِيُضِلَّ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ ۖ لَهُۥ فِى ٱلدُّنْيَا خِزْىٌ ۖ وَنُذِيقُهُۥ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ عَذَابَ ٱلْحَرِيقِ ﴿٩﴾ ذَٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ يَدَاكَ وَأَنَّ ٱللَّهَ لَيْسَ بِظَلَّٰمٍ لِّلْعَبِيدِ ﴿١٠﴾ وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَعْبُدُ ٱللَّهَ عَلَىٰ حَرْفٍ ۖ فَإِنْ أَصَابَهُۥ خَيْرٌ ٱطْمَأَنَّ بِهِۦ ۖ وَإِنْ أَصَابَتْهُ فِتْنَةٌ ٱنقَلَبَ عَلَىٰ وَجْهِهِۦ خَسِرَ ٱلدُّنْيَا وَٱلْءَاخِرَةَ ۚ ذَٰلِكَ هُوَ ٱلْخُسْرَانُ ٱلْمُبِينُ ﴿١١﴾ يَدْعُوا۟ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَا لَا يَضُرُّهُۥ وَمَا لَا يَنفَعُهُۥ ۚ ذَٰلِكَ هُوَ ٱلضَّلَٰلُ ٱلْبَعِيدُ ﴿١٢﴾ يَدْعُوا۟ لَمَن ضَرُّهُۥٓ أَقْرَبُ مِن نَّفْعِهِۦ ۚ لَبِئْسَ ٱلْمَوْلَىٰ وَلَبِئْسَ ٱلْعَشِيرُ ﴿١٣﴾ إِنَّ ٱللَّهَ يُدْخِلُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ جَنَّٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيدُ ﴿١٤﴾ مَن كَانَ يَظُنُّ أَن لَّن يَنصُرَهُ ٱللَّهُ فِى ٱلدُّنْيَا وَٱلْءَاخِرَةِ فَلْيَمْدُدْ بِسَبَبٍ إِلَى ٱلسَّمَآءِ ثُمَّ لْيَقْطَعْ فَلْيَنظُرْ هَلْ يُذْهِبَنَّ كَيْدُهُۥ مَا يَغِيظُ ﴿١٥﴾ وَكَذَٰلِكَ أَنزَلْنَٰهُ ءَايَٰتٍۭ بَيِّنَٰتٍ وَأَنَّ ٱللَّهَ يَهْدِى مَن يُرِيدُ ﴿١٦﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَٱلَّذِينَ هَادُوا۟ وَٱلصَّٰبِـِٔينَ وَٱلنَّصَٰرَىٰ وَٱلْمَجُوسَ وَٱلَّذِينَ أَشْرَكُوٓا۟ إِنَّ ٱللَّهَ يَفْصِلُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ شَهِيدٌ ﴿١٧﴾ أَلَمْ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ يَسْجُدُ لَهُۥ مَن فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَن فِى ٱلْأَرْضِ وَٱلشَّمْسُ وَٱلْقَمَرُ وَٱلنُّجُومُ وَٱلْجِبَالُ وَٱلشَّجَرُ وَٱلدَّوَآبُّ وَكَثِيرٌ مِّنَ ٱلنَّاسِ ۖ وَكَثِيرٌ حَقَّ عَلَيْهِ ٱلْعَذَابُ ۗ وَمَن يُهِنِ ٱللَّهُ فَمَا لَهُۥ مِن مُّكْرِمٍ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ يَفْعَلُ مَا يَشَآءُ ۩ ﴿١٨﴾ الحج: ۱ - ۱۸

لغتونه:

(زلزلة) سخت خوځښت اصل یې له (زل) څخه اخیستل شوی او هغه له ځایه زائل کېدو او خوځېدو ته وایې او داچې وایې (زل الله قدمه) الله یې پښه وښویوله دغه لفظ اخیستل شوي او دیوشي په هیبت کې استعمالېږي (تذهل) مشغولېدل په کاربوختېدل (مضغة) هغه دغوښې کوچنۍ ټوټه لکه ژوونکي (مخلقة) بشپړ خلقته (هیج) ښایسته خوښحالونکی منظر (عطفه) جانب دده اوله دې سببه څادر او کوټ ته عطاف او معطف وایې چې په طرفونو اوږد اغوستل کېږي (العشیر) ملګری او دوست.

تفسیر:

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱتَّقُوا۟ رَبَّكُمْ﴾ ای خلکو وویرېږی له (عذابه د) رب خپل خطاب ټول بشرته دی یعني دالله له عذابه وویرېږئ او دالله اطاعت وکړئ او امرېې ومنئ او له نواهیو څخه یې ځان وژغورئ دتقوی په هکله ترټولو ښه او بشپړه پېژندګلوي داده چې دالله او امر منل او له نواهیو څخه یې ځان ژغورل دي ځکه نوځینو علماء کرامو ویلي دي چې تقوی یعني داچې هلته دې ونه وینې چې له هغه یې منع کړی یې او چېرته یې درته امر کړی وي هلته غیر حاضر نشې ﴿إِنَّ زَلْزَلَةَ ٱلسَّاعَةِ شَىْءٌ عَظِيمٌ﴾ بېشکه چې زلزه (دقیامت په مخکې) یو ډېرلوی شی دی (چې دهیبت له وجهې یې عقل تصور نشوای کولای) ﴿يَوْمَ تَرَوْنَهَا﴾ په هغه ورځ چې ووینی تاسې (دغه زلزله) او هیبت ناکه پېښېدل یې ) ﴿تَذْهَلُ كُلُّ

﴿مُرْضِعَةٍ عَمَّآ أَرْضَعَتْ﴾ چي غافله به شي هره تی ورکونکي (ددې ورځي له هيبت او وېرې چي تی به د ماشوم له خولې کاږي هغه چي ددې خوږ وړوکي دی)چي هغه تی ورکوي ﴿وَتَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمْلٍ حَمْلَهَا﴾ اوو به غورځوي هره حامله مېرمن حمل خپل ﴿وَتَرَى ٱلنَّاسَ سُكَٰرَىٰ وَمَا هُم بِسُكَٰرَىٰ وَلَٰكِنَّ عَذَابَ ٱللَّهِ شَدِيدٌ﴾ اوو به وينې ته خلک بېهوښه (له ډېرې وېرې او هيبت نه) حال دا چي نه به وي دوی په واقع کي بې هوښه ولکن دالله عذاب ډېر سخت دی ؛ دغه وروستنی جمله د پخوانی لپاره استدراک دی يعني دوی بې هوښه نه دي خود قيامت کړاوونو او سختيو يې عقلونه له مينځه وړي او دوی دالله له عذاب څخه وېرېږي او بېهوښه وي ﴿وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يُجَٰدِلُ فِى ٱللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ﴾ او ځيني له خلکو څخه هغه دي چي جګړه کوي په (قدرت او صفاتو د) الله کي بې له پوهي (او دليله او داسي څه وايې چي په هغه کي هيڅ خير نه وي ټول اباطيل او چټيات وي. مفسرين کرام وايې دغه آيت د نضربن حارث په هکله راغلی چي ده به ويل ملائک دالله لوڼې دي او قرآن پخوانی کيسې دي. له مرګه وروسته ژوندون نشته ابو السعود وايې چي آيت شريف دده او نورو سرغړونکو مکذبينو لپاره عام دی[1]) ﴿وَيَتَّبِعُ كُلَّ شَيْطَٰنٍ مَّرِيدٍ﴾ او متابعت کوي د هر شيطان سرکښ (لکه د کفر مخکښان هغه چي د حق له لارې خلک را ګرزوي) ﴿كُتِبَ عَلَيْهِ أَنَّهُۥ مَن تَوَلَّاهُ فَأَنَّهُۥ﴾ ليکل (حکم) شوی دی په (حق او قسمت د) دغه شيطان کي دا چي بېشکه شان دادی چي هر څوک چي دوستي وکړي د شيطان ﴿يُضِلُّهُۥ وَيَهْدِيهِ إِلَىٰ عَذَابِ ٱلسَّعِيرِ﴾ پس بېشکه دا (شيطان) ګمراه کوي دغه (تابع خپل) او لاره ښيي ده ته (بيا يي بې) د دوزخ عذاب ته ؛ دلته چي بې دلارښووني کلمه راوړه دغه د تهکم لپاره ده کله چي الله پاک دده په دقدرت کي د جګړه کونکو د ريز بيان کړ او دا چي دوی له بعث او نشور څخه منکران دي نو دلته يي دوه څرګند دليلونه د بعث دامکان په هکله وفرمايل چي يو يې په انسان او بل په نبات کي نوبې ويل ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِن كُنتُمْ فِى رَيْبٍ مِّنَ ٱلْبَعْثِ فَإِنَّا خَلَقْنَٰكُم مِّن تُرَابٍ﴾ ای (له بعثته منکرو) خلکو که تاسي په شک يې له بعث څخه (چي څرنګه خلک له قبرونو ژوندي پورته کېږي لومړی خپل حال ته وګورئ) پس بېشکه چي موږ پيدا کړی دی موږ (نيکه د) تاسي له خاوري (او څوک چي ستاسي په لومړني پيدايښت قادر وي هغه پدې هم ځواکمن دی چي دوهم ځلي موږ را پاڅوي او هغه ذات چي نباتات له ځمکي راټوکوي هغه په دې قادر دی چي خلک له ځمکي را وباسي ﴿ثُمَّ مِن نُّطْفَةٍ﴾ (بيا مو (پيدا کړه) اولاده د آدم ) له يوه څاڅکي (مني ) څخه) قرطبي وايې چي (نطف) څاڅکي ته وايې او ځکه يې نطفه بولي چي لږ وي[2]) ﴿ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ﴾ بيا له (يوې ټوټې) کلکيويني څخه (چي دهغې علقې په شان وي کومه چي د تالابونو او او بو په

(۱) ارشاد العقل السليم ۴ / ۳

(۲) ارشاد العقل السليم ۴ / ۳

خواوشاكي اوسي ﴿ ثُمَّ مِن مُّضْغَةٍ مُّخَلَّقَةٍ وَغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ ﴾ بیا له یوې بوټی. غوښې (تام الخلقة اوغیرتام الخلقة) ابن زیدوایي چي (مخلقة) یعني داچي الله لاس ، سراو پښې پکې پیداکړي اودغیر مخلقة) بیا هغه ده چي پوره شکل یې پیداشوی نه وي ﴿ لِّنُبَيِّنَ لَكُمْ ﴾ ددې دپاره چي موږتاسي ته بیان کړو (دخپل قدرت اوحکمت رازونه) . زمخشري وایي : معنا داچي موږ په دغه تدریجي ډول خپل قدرت دروښیو چي هغه ذات چي په لمړي ځل دبشرپه پیدا یښت له خاوروڅخه قادروي اوبیاداچي دغه نطفه تو ته غوښه کړي چي ترمینځ یې لیري والی دی اوبیاهغه علقه په مضغه تبدیل کړي اوهغې ته هډوکي ورکړي نوهمدغه ذات دهغه څه چي لومړی ځل یې پیداکړي په بیاراژوندي کولوخورا ښه قادردی اودغه بعث ترلومړني پنځولوډېرآسانه دی (١) ﴿ وَنُقِرُّ فِي الْأَرْحَامِ مَا نَشَاءُ ﴾ اوثابت پرېږدوموږ په ارحاموکي هغه شي چي اراده وکړو(دهغه داثبات چي خلقت یې بشپړ شي) ﴿ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى ﴾ ترټاکلي مودې پوري (چي دزېږېدلووخت دی) ﴿ ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ﴾ بیارا وباسوموږ له ګېډودمیندوستاسي حال داچي طفل (وي) ضعیف په بدن، سترګو، غوږونو اونوربدن باندي اوبیاکـرار کـرار ورته قوت ښـو ﴿ ثُمَّ لِتَبْلُغُوا أَشُدَّكُمْ ﴾ بیا(پالوتاسي) ترهغه پوري چي ورسېږی تاسي کمال اوخپل قوت (اوعقل) ته ﴿ وَمِنكُم مَّن يُتَوَفَّىٰ ﴾ اوځیني له تاسي څخه هغه دي چي وفات کولی شي(دځواني په شپوورځوکي) ﴿ وَمِنكُم مَّن يُرَدُّ إِلَىٰ أَرْذَلِ الْعُمُرِ ﴾ اوځیني له تاسي څخه هغه دي چي رسېږي ناکاره عمرته (چي د کمزوري اوبوډاتوب وخت دی ) ﴿ لِكَيْلَا يَعْلَمَ مِن بَعْدِ عِلْمٍ شَيْئًا ﴾ لپاره ددې چي نه پوهېږي وروسته له پوهي په هیڅ شي؛ یعني داچي هغه دوړکتوب دوران ته بیرته ګرزي چي تن یې کمزوری ، عقل یې خام اوفهم یې لږ وي نوهغه چي زده یې ووځني هرشي اوپه څه چي یې توان درلودناتوانه شي لکه چي الله تعالی بل ځای فرمایي: ﴿ وَمَن نُّعَمِّرْهُ نُنَكِّسْهُ فِي الْخَلْقِ ﴾ یس (٦٨) ﴿ وَتَرَى الْأَرْضَ هَامِدَةً ﴾ اوینې به ته ځمکه وچه شاړه؛ دغه دبعث په هکله دوهم دلیل دی یعني ای مخاطبه ته به ځمکه وچه کلکه مړه وینې چي هیڅ زرغون بوټی به ورباندي نه وي ﴿ فَإِذَا أَنزَلْنَا عَلَيْهَا الْمَاءَ اهْتَزَّتْ وَرَبَتْ ﴾ کله چي موږنازلي کړو(په دغي وچي شاړي ځمکي) اوبه نووخوځېږي اوډډه شي (له مرګه وروسته ژوندۍ شي) ﴿ وَأَنبَتَتْ مِن كُلِّ زَوْجٍ بَهِيجٍ ﴾ اوزرغونه کړي له هرډول نباتاتوڅخه ښایسته تاندتنکي تبغ (دوښوپه شنه کېدلوسره) ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ هُوَ الْحَقُّ ﴾ دغه (راز رازپیدا کول اوژوندي کول) په سبب ددې دی چي بېشکه الله هم دی دی حق (اوداچي په کائناتوکي څه دي ګرددهغه دقدرت آثاراوپدې ګواهان دي چي الله حق دی ﴿ وَأَنَّهُ يُحْيِي الْمَوْتَىٰ ﴾ (اوبېشکه دی ژوندي کوي مړي)

---

(١) الکشاف ٣/ ١٤٢

يعني دی دمړوپه بیاراژوندي کولو قادردی لکه چي د ځمکي په زرغونولويې توان رسېږي ﴿ وَأَنَّهُۥ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴾ اوبېشکه الله په هر شي ښه قادردی (چي اراده وکړي) ﴿ وَأَنَّ ٱلسَّاعَةَ ءَاتِيَةٌ لَّا رَيْبَ فِيهَا ﴾ اوبېشکه قیامت راتلونکی دی چي هیڅ شک پکي نشته ﴿ وَأَنَّ ٱللَّهَ يَبْعَثُ مَن فِي ٱلْقُبُورِ ﴾ اوبېشکه چي الله راپاڅوي هرهغه چي په قبرونو کي دي (لپاره دحساب) ﴿ وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يُجَٰدِلُ فِي ٱللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَلَا هُدًى وَلَا كِتَٰبٍ مُّنِيرٍ ﴾ اوځیني له خلکوچي جګړه کوي په(شان د ) الله کي له ښا پوهي اوبې له دليله ،سمي لاری اوبې له روښانه کتابه (پخپله خوښه اوخواهش) ابن عطیه وايي ددې لپاره يې مکرر راووړچي توبیخ څرګند کړي اولکه چي ووايې دغه دېر روښانه دلائل دي اوځیني له خلکوله دې سره سره دالله په شان کي بې له برهان اودليله جګړه کوي[1]﴿ ثَانِيَ عِطْفِهِۦ ﴾ پداسي حال کي چي خپل څنګ اړوي (له حقه اوکافر کېږي ؛ ابن عباس رضی الله عنه وايې معناداچي له حق څخه کله چي ورته وبلل شي تکبر کونکی وي . زمخشري وايې څنګ کول کبراوخیال کولوته وايې لکه (تصعیرالخد )[2] ﴿ لِيُضِلَّ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾ لپاره ددی چي ګمراه کړي (خلک ) دالله له لاري (اوشريعت نه ) ﴿ لَهُۥ فِي ٱلدُّنْيَا خِزْيٌ وَنُذِيقُهُۥ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ عَذَابَ ٱلْحَرِيقِ ﴾ شته ده لره په دنیاکي رسوايې (سپکتیا ) اووبه څکوده لره په قیامت کي عذاب (داور) سوځونکي ﴿ ذَٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ يَدَاكَ ﴾ داعذاب په سبب دهغوعملونودی چي پخوا لېږلي دي دواړو لاسونوستا(له کفراو ضلالت څخه ) ﴿ وَأَنَّ ٱللَّهَ لَيْسَ بِظَلَّٰمٍ لِّلْعَبِيدِ ﴾ اوبېشکه الله نه دی(هیڅ) ظلم کونکی پربندګانو ﴿ وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَعْبُدُ ٱللَّهَ عَلَىٰ حَرْفٍ ﴾ اوځیني له خلکوهغه څوک دي چي دالله عبادت کوي په څنګ باندي (دغه دمذبذبينولپاره مثال دی چي شک اوشبه په دين کي پيداکوي دالله پاک عبادت په باوري توګه نه کوي بلکه مضطرب اولالهاندوي لکه يوڅوک چي دلښکرپه څنګ کي اوسې کله چي ورته معلومه شي بری اوغنیمت دی نوپښې ټینګي کړي اوکه چېري بيادديې برخلاف وونومنډي کړي حسن رحمه الله وايې چي دغه منافق دی چي يوازي په خوله دالله عبادت کوي ، په زړه يې نکوي ابن عباس رضی الله عنه وايې چي کله به يوڅوک مدينې منورې ته راغی نوکه به يې مېرمني نارينه ماشوم وزېږاوواواسپه به يې بلاربه شوه نوبه يې ويل دغه سم دين دی اوکه به يې مېرمني اواسپي نه بلاربېدې ويل به يې دغه ناکاره دين دی[3]﴿ فَإِنْ أَصَابَهُۥ خَيْرٌ ٱطْمَأَنَّ بِهِۦ ﴾ پس که ورسېږي ده ته کوم خير(له روغتيااوبډايې) نو قائم پاتي شي په دغه (عبادت اودين ) ﴿ وَإِنْ أَصَابَتْهُ فِتْنَةٌ ٱنقَلَبَ عَلَىٰ وَجْهِهِۦ ﴾ اوکه ورته ورسېږي کوم مصيبت نوبيرته وګرزي په مخ خپل(هغه کفرته چي پخوايې درلود ) ﴿ خَسِرَ ٱلدُّنْيَا

---

(1) البحر ۶ / ۳۵۴

(2) الکشاف ۳ / ۱۴۴

(3) القرطبي ۱۲ / ۱۷

﴿وَالْآخِرَةَ﴾ زيانكار شو په دنيا او آخرت كي ﴿ذَٰلِكَ هُوَ الْخُسْرَانُ الْمُبِينُ﴾ دغه همدغه ښكاره زيان دی (چي تري پورته بل زيان نشته) ﴿يَدْعُوا مِن دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَضُرُّهُ وَمَا لَا يَنفَعُهُ﴾ بولي دی (عبادت كوي مشرک) پرته له الله دهغه څه چي نه ضرر ورته رسولی شي اونه نفع ) يعني دبتانو عبادت كوي ) ﴿ذَٰلِكَ هُوَ الضَّلَالُ الْبَعِيدُ﴾ دغه (عبادت دماسوی الله) همدغه گمراهي ده ډېره ليري (چي تري زياته گمراهي نشته لكه څوک لارورکی په صحراكي لالهاند حيران گرزي ﴿يَدْعُوا لَمَن ضَرُّهُ أَقْرَبُ مِن نَّفْعِهِ﴾ بولي دوی (عبادت كوي مشركان) دهغه (معبود) چي ضرردهغه ډېرنژدې دی له گټي دهغه) دنياوي ذلت اورسوايي يې عابدته ډېره نژدې ده له هغي گټي چي عابديې دقيامت په ورځ ددغه معبودد شفاعت په هكله لري چاپيا ويلي چي دآيت شريف معناداچي بالفرض والتقدير كه چېري موږ دهغه گټه اوتاوان رسول ومنو بياهم ضرر يې ترگټه ډېرزيات دی (۱) اوآيت شريف دهغه چادعقلونو تجهيل اوتسفيه كوي چي پدې باور لري چي غيرالله هم په عبادت كولوسره ته دشفاعت غوښتلو په وخت كي گټه رسوي ﴿لَبِئْسَ الْمَوْلَىٰ وَلَبِئْسَ الْعَشِيرُ﴾ خامخا بد دوست دی (دابُت) اوخامخا بد ملگری دی ﴿إِنَّ اللَّهَ يُدْخِلُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ﴾ ببشكه چي الله دننه كوي هغه كسان چي ايمان يې راوړی دی اوكړي يې دي ښه (عملونه) په جنتونو كي چي بهېږي له لاندي (دونو اوماڼيو دهغو) ويالې (دشيدو، شرابو شاتو او اوبو اودوی به خوښ او هوسا سوكاله هلته اوسي ) ﴿إِنَّ اللَّهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيدُ﴾ ببشكه چي الله هرهغه څه كوي چي اراده وكړي؛ يعني ثواب وركوي چاته چي يې خوښه شي اوعذاب وركوي چاته چي يې خوښه شي نو مؤمنانو ته جنت وركول دالله په فضل دی اوكافرانو ته دوزخ تاكل دالله عدل دی ﴿مَن كَانَ يَظُنُّ أَن لَّن يَنصُرَهُ اللَّهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ﴾ هرڅوک چي (داسي) وي چي گمان كوي ددې چي له سره به الله مرسته ونكړي له دغه (محمد صلى الله عليه وسلم) سره په دنياكي اوپه آخرت كي (۲) ﴿فَلْيَمْدُدْ بِسَبَبٍ إِلَى السَّمَاءِ ثُمَّ لْيَقْطَعْ فَلْيَنظُرْ هَلْ يُذْهِبَنَّ كَيْدُهُ مَا يَغِيظُ﴾ نو ودي غځوي يو پړی آسمان (ياچت) ته بيا دي پرې كړي بيا دي وگوري چي بيازائلولی شي هيله (تدبير) دهغهٔ هغه شي لره چي دی يې په قهر كړی دی؛ ابن كثيرواېي چي دغه دابن عباس رضى الله عنه وينا ده اودغه ډېره روښه اوپه تهكم كي څرگنده ده يعني كه څوک

---

(۱) البحر ۲/ ۳۵۲

(۲) مفسرين كرام ددې آيت په باب دوه ډوله تفسير ليكي لومړی داچي (ينصره) ضمير رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راجع شي او معناداچي كه دكفارو څخه څوک هسي گمان كوي چي رسول الله صلى الله عليه وسلم ته به په دنيا او آخرت كي الله مرسته ورنكړي نو رسی دي په غاړه كي واچوي اوخان دي غرغره كړي څكه الله خامخا مرسته وركوي دوهم داچي ضمير پخپله انسان ته راجع شي نو معناداچي كه انسان دخپلي سيني له تنگوالي داسي گمان كوي چي الله به يې له سره مرسته ونكړي نو دي دی رسی په غاړه كي واچوی اوخان دي راځوړند كړي له غمه دي ومري اودغه دوهمه وينا دتسهيل مؤلف غوره كړي ده.

داسي گمان کوي چې الله به محمدصلی الله علیه وسلم ته مرسته له سره ورنکړي نوځان دي ووژني ځکه چې الله هرومروپیغمبرته مرسته ورکونکی دی ﴿ وَكَذَٰلِكَ أَنزَلْنَٰهُ ءَايَٰتٍۭ بَيِّنَٰتٍ ﴾ اوپه شان ددغو(نازل شوو آیتونودقرآن) موږ نازل کړي دي آیتونه ښکاره (واضح الدلالة په خپلو معناګانو) ﴿ وَأَنَّ ٱللَّهَ يَهْدِى مَن يُرِيدُ ﴾ اوبېشکه چې الله سمه صافه لاره ښیي هغه چاته چې اراده وکړي (دهدایت یې) ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ﴾ بېشکه هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی (په الله اورسول اودمحمدصلی الله علیه وسلم اتباع دي) ﴿ وَٱلَّذِينَ هَادُوا۟ ﴾ او(هغه کسان) چې یهودیان (اودموسی علیه السلام پیروان دي) ﴿ وَٱلصَّٰبِـِٔينَ ﴾ او(هغه کسان) چې صابیان (دستوروعبادت کونکي) دي ﴿ وَٱلنَّصَٰرَىٰ ﴾ او(هغه کسان) چې نصرانیان (عیسی علیه السلام ته منسوب) دي ﴿ وَٱلْمَجُوسَ ﴾ او(هغه کسان) چې مجوسیان (آتش پرستان دي) دي ﴿ وَٱلَّذِينَ أَشْرَكُوٓا۟ ﴾ او(هغه کسان) چې شریک یې له الله سره پیداکړی دی (عربي مشرکان دي) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يَفْصِلُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ﴾ بېشکه چې الله به فیصله وکړي په مینځ ددوی (مؤمنانو اوپنځوګمراه ډلوکي) په ورځ دقیامت کي (مؤمنان به جنت اوکافران به دوزخ ته بوزي) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ شَهِيدٌ ﴾ بېشکه چې الله په هرشي باندي ښه عالم شاهددی ﴿ أَلَمْ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ يَسْجُدُ لَهُۥ مَن فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَن فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ آیانه (وینې ته چې بېشکه الله ته سجده ږدي هرهغه چې په آسمانونوکي دي اوهرهغه چې په ځمکه کي دي) یعني هرڅه دالله دعظمت په وړاندي طوعًا اوکرهًاسجده کوي پرښتې په آسمانونوکي،انسانان ، پېریانان اونور ټول مخلوقات په ځمکنی ګره کي ﴿ وَٱلشَّمْسُ وَٱلْقَمَرُ وَٱلنُّجُومُ وَٱلْجِبَالُ وَٱلشَّجَرُ وَٱلدَّوَآبُّ ﴾ اولمراوسپوږمۍ اوستوري اوغرونه اوونې اوځلوربول) دغه ستر اجرام اوحیوانات دالله دعظمت په وړاندي دخضوع اوانقیادسرټیټوي . ابن کثیروایې چې : لمر، سپوږمۍ اوستوري یې په یادونه ځکه ځانګړي کړل چې هغه پخواپرته له الله معبودګڼل شوي وو نوبې څرګنده کړه چې دغه پخپله تابع او مسخردي (¹) اومقصدله آیت شریف څخه دالله تعالی دلوېې او عظمت بیان دی چې هغه په یوازنۍ توګه الله اورب دی چې دغه ټول دده په حکم چلېږي ﴿ وَكَثِيرٌ مِّنَ ٱلنَّاسِ ﴾ اوډېرله خلکو(چې مؤمنان دي داطاعت اوعبادت سجدې لګوي ﴿ وَكَثِيرٌ حَقَّ عَلَيْهِ ٱلْعَذَابُ ﴾ اوډېردي (له کفارو) چې ثابت شوی دی پرې عذاب (په سبب دکفراوعصیان ددوی ﴿ وَمَن يُهِنِ ٱللَّهُ فَمَا لَهُۥ مِن مُّكْرِمٍ ﴾ اوهرڅوک چې الله یې سپک کړي (په شقاوت اوکفرسره) پس نشته ده ته هیڅوک عزت ورکونکی ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يَفْعَلُ مَا يَشَآءُ ﴾ بېشکه چې الله کوي هرهغه کارچې اراده یې

---

(¹) مختصرابن کثیر۲/۵۳۴

وکړي يعني عذاب ورکوي اورحمت فرمايې عزت اوذلت ورکوي اوفقراوبدايې لوروي په ده باندي هيڅوک اعتراض نشي کولای.

بلاغت:

پدې آيتونوکي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډيزيې دادی:

۱ - بليغه تشبيه لکه چي فرمايې ﴿ وَتَرَى ٱلنَّاسَ سُكَٰرَىٰ ﴾ يعني لکه بې هوښه دلته دتشبيه ادات اووجه شبه ندي راوړل شوي نوبليغه تشبيه بلل کېږي.

۲ - استعاره لکه داچي: ﴿ شَيۡطَٰنٖ مَّرِيدٖ ﴾ دشيطان کلمه يې دهرسرغړونکي اوطغيان کونکي لپاره استعاره کړي ده.

۳ - دطباق صنعت چي د ﴿ يُضِلُّهُۥ ﴾ او ﴿ وَيَهۡدِيهِ ﴾ ترمينځ راغلی دی.

۴ - دتهکم اسلوب لکه د ﴿ وَيَهۡدِيهِ إِلَىٰ عَذَابِ ٱلسَّعِيرِ ﴾ په کلام کي.

۵ - دطباق السلب صنعت لکه ﴿ مُّخَلَّقَةٖ وَغَيۡرِ مُخَلَّقَةٖ ﴾.

۶ - لطيفه استعاره لکه ﴿ فَإِذَآ أَنزَلۡنَا عَلَيۡهَا ٱلۡمَآءَ ٱهۡتَزَّتۡ وَرَبَتۡ ﴾ دلته يې ځمکه له هغه بيده سره مشابه کړه چي هڅ وحرکت نه کوي اوبيا کله چي باران ورباندي واوري وخوځېږي اووښوري بياپکي ژوند اوساوچلېږي نوپدې کي تبعيه استعاره ده.

۷ - کنايه چي فرمايې: ﴿ ثَانِيَ عِطۡفِهِۦ ﴾ دغه له تکبراوغرورڅخه کنايه ده.

۸ - مرسل مجازلکه چي پدې کلام کي دی ﴿ بِمَا قَدَّمَتۡ يَدَاكَ ﴾ اوعلاقه يې سببيت دی ځکه په لاسونوباندي دخيراوشرکارونه کېږي.

۹ - تمثيلي استعاره لکه: ﴿ مَن يَعۡبُدُ ٱللَّهَ عَلَىٰ حَرۡفٖ ﴾ دمنافقينولپاره مثال دی چي څرنګه سرګردان اولالهانددي لکه چي دهلاکت دکندي په غاړه ولاړوي دغه څومره خوندوراوله معناڅک مثال دی.

۱۰ - بديعه مقابله لکه ﴿ فَإِنۡ أَصَابَهُۥ خَيۡرٌ ٱطۡمَأَنَّ بِهِۦۖ وَإِنۡ أَصَابَتۡهُ فِتۡنَةٌ ٱنقَلَبَ عَلَىٰ وَجۡهِهِۦ خَسِرَ ٱلدُّنۡيَا وَٱلۡأٓخِرَةَ ﴾.

۱۱ - دطباق صنعت بل ځل لکه د ﴿ يَضُرُّهُۥ .... يَنفَعُهُۥ ﴾ اود ﴿ يُهِنِ .... فَمَا لَهُۥ مِن مُّكۡرِمٍ ﴾ ترمينځ چي راغلی دی.

۱۲ - لطيفه سجع لکه چي دډېروآيتونوترمينځ شتون لري.

نکته اوفائده:

مرضع هغه ښځه وايې چي تی ورکونکی اودتي ورکولوصلاحيت لرونکی وي اومرضعة هغې ته وايې چي بالفعل دتي ورکولوپه حال کي وي اوماشوم ته يې تی په خوله کي ورکړی وي نوالله فرمايې: ﴿ تَذۡهَلُ كُلُّ مُرۡضِعَةٍ ﴾ اوهسي يې ونه فرمايل چي (مرضع) چي دغه په حيرانتيااوهيبت کي

ستراوبې ساري دی څکه کله چي موردماشوم له خولې څخه تی راکاږي (چي خورا ورباندي ګران دی) نوداخودزښته زياتي هيښتيانښه ده.

**تنبيه:**

ابن ابي حاتم وايې چي علی کرم الله وجهه ته يوچاوويل چي: دلته يو څوک شته چي دمشيت (نه منلو) په باب غږېږي نوهغه يې راوباله او ورته يې وويل: ای دالله بنده ته يې هسي پيداکړې لکه چي دالله مشيت دی اويالکه چي ستا؟ هغه وويل لکه دالله خپل مشيت بيايې ورته وويل: چي تاکله ناروغ کوي آيادغه دده مشيت دی اوکه ستا؟ هغه ورته وويل: بلکه دده مشيت دی، ورته ويل يې: چي کله درته روغتيابښي دغه ستامشيت دی اوکه دالله تعالی ؟ هغه ويل بلکه دده نويې ورته وويل: چي همداسي به دي داخل کړي لکه چي دده مشيت دی اوکه داسي لکه چي ستا؟ هغه ورته وويل: بلکه داسي لکه چي دده مشيت دی ؛ علی کرم الله وجهه ورته وويل: زمادي په الله سوګندوي که دي له دې پرته نورڅه ويلي وای ستاتنده به مي په توره وهلي وای([1])

الله تعالی فرمايي:

﴿ هَٰذَانِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوا فِي رَبِّهِمْ ۖ فَالَّذِينَ كَفَرُوا قُطِّعَتْ لَهُمْ ثِيَابٌ مِّن نَّارٍ يُصَبُّ مِن فَوْقِ رُءُوسِهِمُ الْحَمِيمُ ﴿١٩﴾ يُصْهَرُ بِهِ مَا فِي بُطُونِهِمْ وَالْجُلُودُ ﴿٢٠﴾ وَلَهُم مَّقَامِعُ مِنْ حَدِيدٍ ﴿٢١﴾ كُلَّمَا أَرَادُوا أَن يَخْرُجُوا مِنْهَا مِنْ غَمٍّ أُعِيدُوا فِيهَا وَذُوقُوا عَذَابَ الْحَرِيقِ ﴿٢٢﴾ إِنَّ اللَّهَ يُدْخِلُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِن ذَهَبٍ وَلُؤْلُؤًا ۖ وَلِبَاسُهُمْ فِيهَا حَرِيرٌ ﴿٢٣﴾ وَهُدُوا إِلَى الطَّيِّبِ مِنَ الْقَوْلِ وَهُدُوا إِلَىٰ صِرَاطِ الْحَمِيدِ ﴿٢٤﴾ إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ الَّذِي جَعَلْنَاهُ لِلنَّاسِ سَوَاءً الْعَاكِفُ فِيهِ وَالْبَادِ ۚ وَمَن يُرِدْ فِيهِ بِإِلْحَادٍ بِظُلْمٍ نُّذِقْهُ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٢٥﴾ وَإِذْ بَوَّأْنَا لِإِبْرَاهِيمَ مَكَانَ الْبَيْتِ أَن لَّا تُشْرِكْ بِي شَيْئًا وَطَهِّرْ بَيْتِيَ لِلطَّائِفِينَ وَالْقَائِمِينَ وَالرُّكَّعِ السُّجُودِ ﴿٢٦﴾ وَأَذِّن فِي النَّاسِ بِالْحَجِّ يَأْتُوكَ رِجَالًا وَعَلَىٰ كُلِّ ضَامِرٍ يَأْتِينَ مِن كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ ﴿٢٧﴾ لِّيَشْهَدُوا مَنَافِعَ لَهُمْ وَيَذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ فِي أَيَّامٍ مَّعْلُومَاتٍ عَلَىٰ مَا رَزَقَهُم مِّن بَهِيمَةِ الْأَنْعَامِ ۖ فَكُلُوا مِنْهَا وَأَطْعِمُوا الْبَائِسَ الْفَقِيرَ ﴿٢٨﴾ ثُمَّ لْيَقْضُوا تَفَثَهُمْ وَلْيُوفُوا نُذُورَهُمْ وَلْيَطَّوَّفُوا بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ ﴿٢٩﴾ ذَٰلِكَ وَمَن يُعَظِّمْ حُرُمَاتِ اللَّهِ فَهُوَ خَيْرٌ لَّهُ عِندَ رَبِّهِ ۗ وَأُحِلَّتْ لَكُمُ الْأَنْعَامُ إِلَّا مَا يُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ ۖ فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْأَوْثَانِ وَاجْتَنِبُوا قَوْلَ الزُّورِ ﴿٣٠﴾ حُنَفَاءَ لِلَّهِ غَيْرَ مُشْرِكِينَ بِهِ ۚ وَمَن يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَكَأَنَّمَا خَرَّ مِنَ السَّمَاءِ فَتَخْطَفُهُ الطَّيْرُ أَوْ تَهْوِي بِهِ الرِّيحُ فِي مَكَانٍ سَحِيقٍ ﴿٣١﴾ ذَٰلِكَ وَمَن يُعَظِّمْ شَعَائِرَ اللَّهِ فَإِنَّهَا مِن تَقْوَى الْقُلُوبِ ﴿٣٢﴾ لَكُمْ فِيهَا مَنَافِعُ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى ثُمَّ مَحِلُّهَا إِلَى الْبَيْتِ الْعَتِيقِ ﴿٣٣﴾ وَلِكُلِّ

---

([1]) مختصر ابن کثير ٢ / ٥٣٥

أُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنسَكًا لِّيَذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ عَلَىٰ مَا رَزَقَهُم مِّن بَهِيمَةِ الْأَنْعَامِ ۗ فَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ فَلَهُ أَسْلِمُوا ۗ وَبَشِّرِ الْمُخْبِتِينَ ﴿٣٤﴾ الَّذِينَ إِذَا ذُكِرَ اللَّهُ وَجِلَتْ قُلُوبُهُمْ وَالصَّابِرِينَ عَلَىٰ مَا أَصَابَهُمْ وَالْمُقِيمِي الصَّلَاةِ وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنفِقُونَ ﴿٣٥﴾ وَالْبُدْنَ جَعَلْنَاهَا لَكُم مِّن شَعَائِرِ اللَّهِ لَكُمْ فِيهَا خَيْرٌ ۖ فَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهَا صَوَافَّ ۖ فَإِذَا وَجَبَتْ جُنُوبُهَا فَكُلُوا مِنْهَا وَأَطْعِمُوا الْقَانِعَ وَالْمُعْتَرَّ ۚ كَذَٰلِكَ سَخَّرْنَاهَا لَكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴿٣٦﴾ لَن يَنَالَ اللَّهَ لُحُومُهَا وَلَا دِمَاؤُهَا وَلَٰكِن يَنَالُهُ التَّقْوَىٰ مِنكُمْ ۚ كَذَٰلِكَ سَخَّرَهَا لَكُمْ لِتُكَبِّرُوا اللَّهَ عَلَىٰ مَا هَدَاكُمْ ۗ وَبَشِّرِ الْمُحْسِنِينَ ﴾

الحج: ۱۹ ـ ۲۷

### تړاو او مناسبت:

کله چې الله تعالی نېکمرغه او بدمرغه کسان یاد کړل دلته یې ددوی ترمینځ دهغوی ددیني او تعبدي شخړو یادونه راوړه وروسته یې دبیت العتیق داحترام او عظمت پېژندګلوي وکړه چې ابراهیم خلیل علیه السلام ودانه کړې وه او بیا یې دد غو مشرکانو کفارو چې خلګ دالله له لارې بندوي او مسجد الحرام ته یې نه پرېږدي غندنه راوړه.

### لغتونه:

(یصهر) صهرویلي کېدلو ته وایي (مقامع) دمقمعة جمع او څټک (ګرز) ته وایي څکه یې مقمعه بولي چې دفاجر قمع کوي (العاکف) مقیم او ملازم ته وایي (الباد) له بادیه او صحراڅخه راتلونکي ته (باد) وایي (بوأنا) تیاره کړې، ښودلي ، نازله کړي ته ویل کېږي (رجالا) دراجل جمع او پلي پیاده تلونکي ته وایه شي (ضامر) ډنګر او له سفرڅخه ستومانه شوي اوښ ته وایي (تفثهم) تفث په لغت کې خېرو او ناولتیا ته وایي. ثعلبي وایي چې: تفث په لغت کې خېروته وایي عرب هغه چاته چې ورڅخه کرکه کوي وایي (ما أتفثک) یعني څومره خیرن او چټل یې (المخبتین) دمخبت جمع او متواضع ته وایي.

### تفسیر:

﴿ هَٰذَانِ خَصْمَانِ ﴾ دادواړه ډلي (مؤمنان متقیان او کافران مجرمان) مدعیان دي ﴿ اخْتَصَمُوا فِي رَبِّهِمْ ۖ ﴾ چې جګړه یې وکړه سره په (ذات او دین د) الله کي ؛معنادا چې مؤمنان دالله ددین نصرت غواړي او کافران غواړي چې دالله ددین شغله مړه شي ﴿ فَالَّذِينَ كَفَرُوا قُطِّعَتْ لَهُمْ ثِيَابٌ مِّن نَّارٍ ﴾ پس هغه کسا ن چې کافران شوي دي سکښتي (جوړولی) شي ددوی لپاره داورجامې چې کله اورته ولوېږي.

قرطبي وایي چې اور یې له جامو سره تشبیه کړ څکه چې هغه به ددوی لپاره لکه لباس وي او د ﴿ قُطِّعَتْ ﴾ معنا جوړول او ګنډل دي او دماضي په لفظ یې څکه تعبیر وفرمایو چې موعود لکه متحقق غوندي دی(۱) ﴿ يُصَبُّ مِن فَوْقِ رُءُوسِهِمُ الْحَمِيمُ ﴾ اچولی به شي له پاسه دسرونو ددوی او به ایشېدلي ددوزخ په

---

(۱) القرطبي ۱۳ / ۳۲

اور) ﴿ يُصْهَرُ بِهِۦ مَا فِى بُطُونِهِمْ وَٱلْجُلُودُ ﴾ خوړين به شي په دغواوبو سره هغه (کولمې) چي ددوی په ګېډه کي دي اوپوستوکي (ددوی هم) ﴿ وَلَهُم مَّقَـٰمِعُ مِنْ حَدِيدٍ ﴾ اووي به ددوی لپاره څټکونه له اوسپني؛ ابن عباس رضی الله عنه وايې : که چېري ددوزخ دايشېدلوابويوڅاڅکی ددنياپه غرونوپرېوزي هغه به ويلي کړي اوپه حديث شريف کي راغي چي حميم به ددوزخيانوپه سرونوتوئېږي اوککرۍ به يې سورۍ کړي ګېډې ته به يې ورسېږي او په ګېډه کي شته به يې خوړين کړي ترپښوبه يې راتوی شي اوبيابه دغسي شي لکه چي پخواوو(١) امام فخررازي وايې مقصدداچي د حميم تأثيراواغېزه يې په باطن کي دظاهرپه ډول وي ددوی کولمې به همداسي خوړيني کړي لکه چي څرمني يې خوړينوي اوداترهغه قول چي: ﴿ وَسُقُوا مَآءً حَمِيمًا فَقَطَّعَ أَمْعَآءَهُمْ ﴾ محمد: ١٥ زيات أبلغ دی(٢) اود ﴿ وَلَهُم مَّقَـٰمِعُ مِنْ حَدِيدٍ ﴾ په هکله حديث شريف راغي فرمايي که يوګرز(مقمعه) په ځمکه کښېښودل شي انسانان اوپېريانان به يې له ځايه ونه خوځوي اوونه لېږدوي ﴿ كُلَّمَآ أَرَادُوٓا۟ أَن يَخْرُجُوا۟ مِنْهَا مِنْ غَمٍّ أُعِيدُوا۟ فِيهَا ﴾ هرکله چي (دوزخيان اراده وکړي ددې چي له دغه (دوزخه ) له غمه ووزي نوبيرته به دوی په دغه اورکي ګرزولی شي . حسن رحمه الله وايې چي اوربه يې په لمبووهي چي پورته سرته يې راوړي اوبيابه په ګرزونو(څټکونو) ووهلی شي لاندي به راپرېوزي چي داوياکالوپه واتن کي به وي ﴿ وَذُوقُوا۟ عَذَابَ ٱلْحَرِيقِ ﴾ اووڅکئ تاسي عذاب (داورډېر) سوځونکي دهغه چي تاسوبه دروغ ګڼل کله چي الله تعالی هغه څه بيان کړل چي دوزخيانوته يې تيارکړي ورپسې يې هغه ثواب اونعمتونه راوړل چي د مؤمنانو لپاره تيارشوي دي ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يُدْخِلُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّـٰلِحَـٰتِ جَنَّـٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَـٰرُ ﴾ بېشکه چي الله ننني باسي هغه کسان چي ايمان يې راوړی دی اوکړي يې دي ښه (عملونه په داسي) جنتونوکي چي بهېږي له لاندي (دمانيواوونو ) دهغو(ستري ) ويالې (ډول ډول) ﴿ يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِن ذَهَبٍ وَلُؤْلُؤًا ﴾ ګانه به واچولي شي جنتيانوته په دغه (جنت ) کي له باهوګانو(وښيو، لاس وندو) له سروزرواوملغلرو څخه (دغه به ددوی داکرام لپاره وي ﴿ وَلِبَاسُهُمْ فِيهَا حَرِيرٌ ﴾ او جامې ددغو(جنتيانو ) به په جنت کي ورېښميني وي(چي ددنياتر ورېښموبه ډېرزيات اوغوره وي ﴿ وَهُدُوٓا۟ إِلَى ٱلطَّيِّبِ مِنَ ٱلْقَوْلِ ﴾ اولاره ښودلی شوي ده(دوی ته دطيبي پاکي(ګټوري ) وينا (څکه په جنت کي لغو اودروغ نشته ) ﴿ وَهُدُوٓا۟ إِلَىٰ صِرَٰطِ ٱلْحَمِيدِ ﴾ اولاره ښودل شوي دوی ته طرف دلاري چي ستايلي شوي ده (چي هغه جنت دار المتقين دی) بيا الله دمشرکانو ګناهونه په ګوته کوي ، فرمايي: ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ

---

(١) أخرجه الترمذی وقال حديث حسن صحيح غريب
(٢) الرازي ٢٣ / ٢٢

كَفَرُوا۟ وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ وَٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ ﴾ بېشكه هغه كسان چي كافران شوي دي (په محمد صلى الله عليه وسلم باندي) اومنع كوي خلگ له لاري دالله اوله مسجد حرام څخه (چي مناسك اداكړي قرطبي وايي چي داهغه وخت چي دوى رسول الله صلى الله عليه وسلم دحُديبيې په كال له مسجد الحرام څخه منع كړاوداچي دمضارع په صيغه يې وفرمايل ددې لپاره چي په استمرار دلالت وكړي نومعناداچي هغه كسان چي كافران شوي دي حال داچي دالله له لاري خلگ منع كوي لكه چي دالله ويناده ﴿ ٱلَّذِى جَعَلْنَٰهُ لِلنَّاسِ سَوَآءً ٱلْعَٰكِفُ فِيهِ وَٱلْبَادِ ﴾ هغه مسجد چي موږ گرزولى دى دغه مسجد خاى دعبادت دپاره دټولو خلگو برابر دي اوسېدونكي په دغه (مسجد كي اوله بهره راتلونكي ﴿ وَمَن يُرِدْ فِيهِ بِإِلْحَادٍۭ بِظُلْمٍ ﴾ اوهرچاچي اراده وكړه په دغه (مسجد ) كي دبې لاري توب په ظلم سره (په گناه كولو) ﴿ نُّذِقْهُ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ ﴾ نو وروبه څكوموږ(هغه كړېدونكي ) ته له دردناك عذاب څخه؛ ابن مسعود وايي كه په عدن كي يو څوک ددې قصدوكړي چي په مسجد حرام كي گناه وكړي الله به دردناک عذاب ورو څكي او مجاهدوايي چي گناهونه هم هسي په مسجد حرام كي څوچنده كېږي لكه چي نېكي اوحسنات كېږي [1] ﴿ وَإِذْ بَوَّأْنَا لِإِبْرَٰهِيمَ مَكَانَ ٱلْبَيْتِ أَن لَّا تُشْرِكْ بِى شَيْـًٔا ﴾ او(يادكړه اى محمده) هغه وخت چي ښكاره كړو موږ ابراهيم ته ځاى دبيت (الله) او ورومو ښودل ( اوورته وموويل ) چي مه شريكوه له ماسره هيڅ شى( ابن كثيروايي چي:معناداچي يوازي زماپه نامه يې ودانه كړه[2]) ﴿ وَطَهِّرْ بَيْتِىَ لِلطَّآئِفِينَ وَٱلْقَآئِمِينَ وَٱلرُّكَّعِ ٱلسُّجُودِ ﴾ اوپاک ساته كورزما(له بتانواو پليتيوڅخه) لپاره دطواف كونكو اوقيام كونكواو ركوع كونكواوسجده كونكو؛ قرطبي وايي چي: مرادله قيام كونكوڅخه لمونځ كونكي دي الله تعالى دلمانځه هغه ستررکنونه يادكړل چي هغه قيام ركوع اوسجده دي ﴿ وَأَذِّن فِى ٱلنَّاسِ بِٱلْحَجِّ يَأْتُوكَ رِجَالًا وَعَلَىٰ كُلِّ ضَامِرٍ ﴾ اوغږ وكړه (اى ابراهيمه) په خلگو كي دحج (اداكولو) دپاره چي راشي پلى او(سواره) په هر ډنگراوښ؛ ابن عباس رضى الله عنهما وايي چي: كله ابراهيم عليه السلام دكعبې له ودانولوفارغ شو هغه ته وويل شوچي په خلگو كي غږ وكړه هغه ويل: اى پروردگاره زماغږ به تركومه ځايه ورسېږي ؟ الله تعالى ورته وويل: چي ته غږ وكړه رسېدل يې په ما ! نوابراهيم عليه السلام د ابوقبيس غره ته وخوت او ناره يې وكړه: اى خلگوالله ددغي كوټې دحج كولوامرفرمايلى دى چي تاسو ته په ثواب كي جنت در كړي اوله دوزخه مووژغوري نوراشئ حج وكړئ بياهغوكسانوچي دنارينه ووپه شاگانواودښځوپه سينوكي يې شتون درلود ځواب وركړچي: لبيک اللهم لبيک [3] ﴿ يَأْتِينَ مِن كُلِّ فَجٍّ عَمِيقٍ ﴾ چي راځي دا(اوښان) له هري لاري ليري (ژوري)نه داوښانولپاره يې

(۱) تفسيرالرازي ۲۳/ ۲۵
(۲) المختصر ۲/ ۵۳۹
(۳) الرازي ۲۳/ ۲۷

ضمير د (يأتين) وفرمايل شكه چي د دوى تعظيم پكي نغښتى دى چي له خپلو خاوندانو سره حج ته راځي لكه چي الله جل جلاله بل ځاى فرمايي ﴿ وَٱلْعَـٰدِيَـٰتِ ضَبْحًا ﴾ (العاديات۱) دجهاد په آسونوكي كلمه (دضبحا)ضمير كله چي دالله په لاره كي زيار كاږي ﴿ لِّيَشْهَدُوا۟ مَنَـٰفِعَ لَهُمْ ﴾ دپاره ددې چي حاضرشي ځاى دګټو(دنيوي اواُخروي) خپلو ته. امام رازي وايي: نكره يې شكه وفرمايلي چي په نوروعباداتوكي نه موندل كيږي(۱) ﴿ وَيَذْكُرُوا۟ ٱسْمَ ٱللَّهِ فِىٓ أَيَّامٍ مَّعْلُومَـٰتٍ عَلَىٰ مَا رَزَقَهُم مِّنۢ بَهِيمَةِ ٱلْأَنْعَـٰمِ ﴾ اوچي اوچي يادكړي نوم دالله په هغو ورځو كي چي معلومي دي په (ذبح د) هرحيوان چي وركړي دي الله دوى ته له بې ژبو چارپايانو څخه (چي اوښ، غوايي ، پسونه، وزې اونوردي امام رازي وايي: پدې كي داتنبيه ده چي اصلى مقصدد ذبح كولو په وخت كي دالله دنوم يادول دي اوداچي دمشركينو څخه مخالفت ښكاره كړئ هغوى به خپل ذبائح دبُتانو په نامه حلالول(۲) ﴿ فَكُلُوا۟ مِنْهَا ﴾ پس خورئ تاسي له هغي (غوښي) دأضحيې) ﴿ وَأَطْعِمُوا۟ ٱلْبَآئِسَ ٱلْفَقِيرَ ﴾ اوخوروئ يې په بدحال اوفقير؛ ابن عباس رضى الله عنهما وايي: بائس هغه محتاج ته چي بېوزلي يې په بدن اوجاموكي څرګنده وي ويل كيږي اوفقيربياهغه چاته وايي چي داسي نه وي بلكه جامې يې پاكي اودغني څېره لري ﴿ ثُمَّ لْيَقْضُوا۟ تَفَثَهُمْ ﴾ (بيادي ليري كړي (حاجتونه او) خيري خپل) يعني له ذبح كولووروسته دي هغه خيري ليري كړي كوم چي داحرام په اوږدوكي ورته رسېدلي اودغه امردي دوېښتانو په خرېيلواويالندولواو دارنګه دستنوپه وهلواونوكانوپرې كولو باندي ترسره كړي ﴿ وَلْيُوفُوا۟ نُذُورَهُمْ ﴾ اوپوره دي اداكړي نذرونه خپل (هغه چي پخپلو ځانونويې لازم كړي دي) ﴿ وَلْيَطَّوَّفُوا۟ بِٱلْبَيْتِ ٱلْعَتِيقِ ﴾ (اوطواف دي وكړي په هغه كورچي قديم كريم دى) يعني په دغه پخواني كوردي دافاضې طواف وكړي چي هغه ته طواف زيارت هم وايي اوپدې سره تحلل بشپړ كيږي (عتيق) يې ورته شكه ووايوچي دغه لومړنى كورته ده چي د خلګولپاره ودانه شوي ده ﴿ ذَٰلِكَ ﴾ داحكم مو واورېدو (ياامردادى چي تېرشو؛ زمخشري وايي كله چي ليكونكى د خپلي ليكني يوه جمله ذيوې معناسره وړاندي كړي اوپه بله معناكي ورګډېږي نوبياوايي (هذاوقدكان كذا) يعني دابېشكه اوهمداسي وو(۳) ﴿ وَمَن يُعَظِّمْ حُرُمَـٰتِ ٱللَّهِ ﴾ اوهرچاچي دالله داحكامو تعظيم وكړ(اوله محرماتواوګناهونوڅخه يې ځانونه وژغورل) ﴿ فَهُوَ خَيْرٌ لَّهُۥ عِندَ رَبِّهِۦ ﴾ (پس داكارده ته غوره دى په نزد درب دده) يعني دغه دالله دشريعت تعظيم ده ته د اُخروي ثواب له مخي غوره دى ﴿ وَأُحِلَّتْ لَكُمُ ٱلْأَنْعَـٰمُ إِلَّا مَا يُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ ﴾ اوحلال كړى شوى دى

---

(۱) الرازي ۲۳ / ۲۹

(۲) الرازي نفس المرجع

(۳) الكشاف ۳

تاسي ته (خوراک دغوبني د ) څارویو(له ذبحي وروسته) مګر(حرام دي) هغه څاروي چي پرتاسو (وروسته ) لوستل کېږي (حراموالی يې ) هغه چي په قرآن مجيد کي يې استثناء راغلي ده لکه (ميتة، منخنقة اوهغه چي لغير الله ذبح کړی شوي وي اونور... ﴿ فَٱجْتَنِبُوا۟ ٱلرِّجْسَ مِنَ ٱلْأَوْثَٰنِ ﴾ پس خان ساتئ تاسي له پليتي څخه چي بُتان دي ؛ دغه نهايت مبالغه ده چي دبُتانو عبادت مکوئ ﴿ وَٱجْتَنِبُوا۟ قَوْلَ ٱلزُّورِ ﴾ (او ځان ساتئ له ويناددروغ څخه) يعني په دروغوشاهدي مه واياست ﴿ حُنَفَآءَ لِلَّهِ غَيْرَ مُشْرِكِينَ بِهِۦ ﴾ پداسي حال کي چي غاړه ايښودونکي ياست په اخلاص سره خاص الله ته او ورسره شريک نيونکي نه ياست ) ﴿ وَمَن يُشْرِكْ بِٱللَّهِ فَكَأَنَّمَا خَرَّ مِنَ ٱلسَّمَآءِ فَتَخْطَفُهُ ٱلطَّيْرُ ﴾ اوهرچاچي له الله سره شريک ونيو پس لکه چي له آسمانه راوغورځېد پس وتښتوي دی په چابکي سره مرغان) يعني دمشرک همداسي تمثيل دی چي ګمراهي اوهلاکت ورسره تړلی لکه چي يوڅوک له آسمانه راولوېږي اومرغان يې په منډه وتښتوي اوبيايې ټوټه ټوټه کړي ﴿ أَوْ تَهْوِى بِهِ ٱلرِّيحُ فِى مَكَانٍ سَحِيقٍ ﴾ يايې وغورځوي باد(له لوري څخه) په ليري ژورځای کي ﴿ ذَٰلِكَ وَمَن يُعَظِّمْ شَعَٰٓئِرَ ٱللَّهِ ﴾ داحکم مو واورېدو (ياامرهم دادی چي تېرشو ) اوهرچاچي دالله ددين دعلائموتعظيم وکړ(چي دحج افعال د اضاحيو څرېول اونورعبادات دی) ﴿ فَإِنَّهَا مِن تَقْوَى ٱلْقُلُوبِ ﴾ پس (ببشکه دا(تعظيم) له افعالود خاوندانو د) تقوی دزړونودی يعني داتعظيم دمتقيانوکاردی.قرطبي وايي دتقوی نسبت يې زړونوته وکړځکه رسول الله دالله وايي تقوی دلته اوسينې ته يې اشاره وفرمايله([1]) ﴿ لَكُمْ فِيهَا مَنَٰفِعُ إِلَىٰٓ أَجَلٍ مُّسَمًّى ﴾ شته تاسي ته په دغه څلور بولو (دهديو ) کي (ذبېري) ګټي ترمعلومي مودې پوري (چي ددوی دحلالولو وخت دی يعني ترهغو پوری يې له شيدو،سپرېدلواونسل راوړلوڅخه ګټه اخلي ﴿ ثُمَّ مَحِلُّهَآ إِلَى ٱلْبَيْتِ ٱلْعَتِيقِ ﴾ (بيا (رسونه ده) ځای (دحلالولو ) ددوی تر (بيت الله العتيق )بې ځانګری کړځکه چي هغه تر ټول حرم غوره اواشرف دی لکه چي الله فرمايي: ﴿ هَدْيًۢا بَٰلِغَ ٱلْكَعْبَةِ ﴾ (المائده ۹۵ ) ﴿ وَلِكُلِّ أُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنسَكًا ﴾ (اولپاره دهر امت مقررکړي دي مونږ قرباني) يعني دابراهيم عليه السلام له وخته د ټولوامتونولپاره مونږ دالله لپاره دقرباني ځای ټاکلی دی؛ ابن کثيروايي چي الله تعالی ددې خبراکوي چي تل ترتله دقرباني دوراندي کولو اودالله په نامه دويني تويوولودوده په ټولوملتونو کي وو ﴿ لِّيَذْكُرُوا۟ ٱسْمَ ٱللَّهِ ﴾ چي يادکړي دوی نوم دالله (اوذبح وکړي خاص دالله لپاره) ﴿ عَلَىٰ مَا رَزَقَهُم مِّنۢ بَهِيمَةِ ٱلْأَنْعَٰمِ ﴾ په هرهغه شي چي روزي ګرځولی(الله) دوی ته له بې ژبي څارويوڅخه( چي اوښان ، غوايان اوپسونه ، وزې دي بيا الله فرمايي چي دالازم ده ذبح خاص دالله لپاره اودالله په نامه وي ځکه الله خالق اورازق دی نه هسي لکه مشرکان چي دبتانوپه نامه يې حلالوي ﴿ فَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَٰحِدٌ فَلَهُۥٓ أَسْلِمُوا۟ ﴾ پس برحق معبود ستاسي الله

---

([1]) القرطبي ۱۲ / ۵۶

حق معبود دی (شریک نلري) پس خاص هم ده ته غاړه کښېږدئ ! (لپاره دحکم او اطاعت يې) ﴿ وَبَشِّرِ الْمُخْبِتِينَ ﴾ او زېرى ورکړه عاجزي کونکو ته (په جنات النعيم سره بيا الله تعالى جل شانه دوی په څلورو صفتونو ستايي چي ﴿ الَّذِينَ إِذَا ذُكِرَ اللَّهُ وَجِلَتْ قُلُوبُهُمْ ﴾ هغه (عاجزي کونکي) کله چي ياد کړ شي (نوم د) الله نو وېرېږي زړونه ددوی (ځکه چي د الله د جلال شغلې يې په زړه کي وځلېږي لکه چي دوی يې په وړاندي ولاړوي جلال او عظمت يې پخپلو سترګوويني ﴿ وَالصَّابِرِينَ عَلَىٰ مَا أَصَابَهُمْ ﴾ او (زېرى ورکړه) صبر کونکو ته په هغو (سختيو او ناروغيو غمونو) چي دوی ته رسېدلي دي ﴿ وَالْمُقِيمِي الصَّلَاةِ ﴾ او (زېرى ورکړه) هغو کسانو ته چي) سم درونکي دلمانځه (وي سره له ټولو حقوقو او خشوع او خضوع) ﴿ وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنفِقُونَ ﴾ او زېرى ورکړه هغو کسانو ته چي ځيني د هغو شيانو چي موږ دوی ته روزي ورکړي لګوي يې (په ښو کارونو کي) ﴿ وَالْبُدْنَ جَعَلْنَاهَا لَكُم مِّن شَعَائِرِ اللَّهِ ﴾ او اوښان غوايان (دهديې) ګرزولي دي موږ دا تاسي ته له علائمو د (دين د) الله (بُدنه) غټ حيوان ته پدې وايې چي غټ وجودلري او دا چي څرنګه د شريعت له علامو څخه دي پدې چي هغه د الله دبيتې لپاره ځانګړي شوي هدايا دي ﴿ لَكُمْ فِيهَا خَيْرٌ ﴾ شته تاسي ته پدې کي خير (ښېګڼه) ابن عباس رضى الله عنه وايې چي ګټه يې په دنيا کي او ثواب يې په آخرت کي دی ﴿ فَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهَا صَوَافَّ ﴾ پس يادوئ نوم د الله پدې (ذبائحو) پداسي حال کي چي ولاړوي (پښې يې تړلي وي) ﴿ فَإِذَا وَجَبَتْ جُنُوبُهَا ﴾ نو کله چي پرېوتل اړخونه د دوی (پر ځمکه وروسته له ذبح کولو دغه له مړيني څخه کنايه ده يعني چي ساه يې وختله ﴿ فَكُلُوا مِنْهَا وَأَطْعِمُوا الْقَانِعَ وَالْمُعْتَرَّ ﴾ نو خورئ تاسي له دې نه او خوروئ يې په صبر کونکي فقيرانو او بې صبره سوالګرو) دغه دابن عباس رضى الله عنه وينا ده او امام رازي وايې چي دا نژدې بريښي چي قانع هغه ته وويل شي چي هرڅومره ورکړي ورباندي خوښ شي او نورسوال او الحاح نه کوي او معتر هغه چاته ووايه شي چي بې صبرى کوي او نورڅه غواړي له يوه حاله بل ته درومي ([1]) ﴿ كَذَٰلِكَ سَخَّرْنَاهَا لَكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴾ همداسي (لکه چي دغه تسخېر دی تابع کړي مو دي (دغه څلوربولي سره له لويوالي ددوی) تاسي ته لپاره ددې چي تاسي شکروباسئ (په دغه نعمت) ﴿ لَن يَنَالَ اللَّهَ لُحُومُهَا وَلَا دِمَاؤُهَا ﴾ له سره نه رسېږي الله ته غوښي ددوی او نهويني ددوی ﴿ وَلَٰكِن يَنَالُهُ التَّقْوَىٰ مِنكُمْ ﴾ ولاکن رسېږي دغه (الله) ته پرهېزګاري له تاسو نه (چي د الله او امر پرځای کوئ اور ضايې غواړئ) ﴿ كَذَٰلِكَ سَخَّرَهَا لَكُمْ لِتُكَبِّرُوا اللَّهَ عَلَىٰ مَا هَدَاكُمْ ﴾ همداسي (لکه چي ذکرشو) تابع کړي يې دي دغه څاروي تاسي ته چي په لويې يادکړئ الله په

---

([1]) الرازي ۲۳ / ۳۶

هغه ډول سره چي تاسي ته يې لاره در ښودلي ده (ددیني احکامو څخه) ﴿ وَبَشِّرِ ٱلْمُحْسِنِينَ ﴾ اوزېری ورکړه نېکو کارانو ته (په نېکمرغي اوبريالیتوب په جنات النعیم سره).

بلاغت:

په دغه مبارکو آيتونو کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډیزيې دادی:

۱- دايجاز صنعت لکه: ﴿ ٱخْتَصَمُوا۟ فِى رَبِّهِمْ ﴾ يعني په دين درب ددوی کي چي دلته مضاف حذف شوی دی.

۲- استعاره چي فرمايي ﴿ قُطِّعَتْ لَهُمْ ثِيَابٌ مِّن نَّارٍ ﴾ دلته اورپردوی داسي احاطه ګڼل شوی لکه چي دجامو احاطه په بدن وي.

۳- دطباق صنعت چي پدې کلماتو کي دی ﴿ ٱلْعَـٰكِفُ ..... وَٱلْبَادِ ﴾ څکه (عاکف مقیم ته او (باد) له صحرا څخه راتلونکي ته وايي.

۴- تاکید چي دفصل په راګرزولو کي شته اوپه علم بديع کي يې اطناب بولي لکه چي فرمايي: ﴿ فَٱجْتَنِبُوا۟ ٱلرِّجْسَ مِنَ ٱلْأَوْثَـٰنِ وَٱجْتَنِبُوا۟ قَوْلَ ٱلزُّورِ ﴾ چي دهريوه په باب په خانګړي توګه اهتمام ترسره شي.

۵- تمثیلي تشبیه لکه: ﴿ وَمَن يُشْرِكْ بِٱللَّهِ فَكَأَنَّمَا خَرَّ مِنَ ٱلسَّمَآءِ فَتَخْطَفُهُ ٱلطَّيْرُ ﴾ څکه دمشابهت وجه له متعدد څخه اخیستل شوي ده.

۶- ناقص جناس لکه: ﴿ وَجَبَتْ جُنُوبُهَا ﴾.

۷- دطباق صنعت د ﴿ ٱلْقَانِعَ وَٱلْمُعْتَرَّ ﴾ ترمینځ څکه قانع صبرکونکي اومعتربې صبره ته وايي.

۸- لطیفه سجع لکه: ﴿ عَمِيقٍ ..... ٱلْعَتِيقِ ..... سَحِيقٍ ﴾ او ﴿ ٱلْمُحْسِنِينَ ..... ٱلْمُخْبِتِينَ ﴾ اونور.

تنبيه:

الله تعالی هیڅوک يوازي دګناه په قصد کولو نه نیسي مګرهغه وخت چي په مسجدحرام کي وي څکه چي الله فرمايي: ﴿ وَمَن يُرِدْ فِيهِ بِإِلْحَادٍۭ بِظُلْمٍ نُّذِقْهُ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ ﴾ څکه هغه سپېڅلی څای دی هلته بايدانسان له زړه سپېڅلی اوپاکيزه وي پټ اوڅرګندبې له ناولتیاژغورلی وي اوڅوک چي بيادباچا په کورکي دباچادعزت خیال نه ساتي هغه له دوزخ اودردناک عذاب سره ورځی.

***

الله تعالی فرمايي:

﴿ ۞ إِنَّ ٱللَّهَ يُدَٰفِعُ عَنِ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ خَوَّانٍ كَفُورٍ ﴿٣٨﴾ أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَـٰتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا۟ ۚ وَإِنَّ ٱللَّهَ عَلَىٰ نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ ﴿٣٩﴾ ٱلَّذِينَ أُخْرِجُوا۟ مِن دِيَـٰرِهِم بِغَيْرِ حَقٍّ إِلَّآ أَن يَقُولُوا۟ رَبُّنَا ٱللَّهُ ۗ وَلَوْلَا دَفْعُ

ٱللَّهِ ٱلنَّاسَ بَعْضَهُم بِبَعْضٍ لَّهُدِّمَتْ صَوَٰمِعُ وَبِيَعٌ وَصَلَوَٰتٌ وَمَسَٰجِدُ يُذْكَرُ فِيهَا ٱسْمُ ٱللَّهِ كَثِيرًا ۗ وَلَيَنصُرَنَّ ٱللَّهُ مَن يَنصُرُهُۥٓ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَقَوِىٌّ عَزِيزٌ ﴿٤٠﴾ ٱلَّذِينَ إِن مَّكَّنَّٰهُمْ فِى ٱلْأَرْضِ أَقَامُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُا۟ ٱلزَّكَوٰةَ وَأَمَرُوا۟ بِٱلْمَعْرُوفِ وَنَهَوْا۟ عَنِ ٱلْمُنكَرِ ۗ وَلِلَّهِ عَٰقِبَةُ ٱلْأُمُورِ ﴿٤١﴾ وَإِن يُكَذِّبُوكَ فَقَدْ كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ وَعَادٌ وَثَمُودُ ﴿٤٢﴾ وَقَوْمُ إِبْرَٰهِيمَ وَقَوْمُ لُوطٍ ﴿٤٣﴾ وَأَصْحَٰبُ مَدْيَنَ ۖ وَكُذِّبَ مُوسَىٰ فَأَمْلَيْتُ لِلْكَٰفِرِينَ ثُمَّ أَخَذْتُهُمْ ۖ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ ﴿٤٤﴾ فَكَأَيِّن مِّن قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَٰهَا وَهِىَ ظَالِمَةٌ فَهِىَ خَاوِيَةٌ عَلَىٰ عُرُوشِهَا وَبِئْرٍ مُّعَطَّلَةٍ وَقَصْرٍ مَّشِيدٍ ﴿٤٥﴾ أَفَلَمْ يَسِيرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ فَتَكُونَ لَهُمْ قُلُوبٌ يَعْقِلُونَ بِهَآ أَوْ ءَاذَانٌ يَسْمَعُونَ بِهَا ۖ فَإِنَّهَا لَا تَعْمَى ٱلْأَبْصَٰرُ وَلَٰكِن تَعْمَى ٱلْقُلُوبُ ٱلَّتِى فِى ٱلصُّدُورِ ﴿٤٦﴾ وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِٱلْعَذَابِ وَلَن يُخْلِفَ ٱللَّهُ وَعْدَهُۥ ۚ وَإِنَّ يَوْمًا عِندَ رَبِّكَ كَأَلْفِ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّونَ ﴿٤٧﴾ وَكَأَيِّن مِّن قَرْيَةٍ أَمْلَيْتُ لَهَا وَهِىَ ظَالِمَةٌ ثُمَّ أَخَذْتُهَا وَإِلَىَّ ٱلْمَصِيرُ ﴿٤٨﴾ قُلْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنَّمَآ أَنَا۠ لَكُمْ نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴿٤٩﴾ فَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ ﴿٥٠﴾ وَٱلَّذِينَ سَعَوْا۟ فِىٓ ءَايَٰتِنَا مُعَٰجِزِينَ أُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلْجَحِيمِ ﴿٥١﴾ وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ مِن رَّسُولٍ وَلَا نَبِىٍّ إِلَّآ إِذَا تَمَنَّىٰٓ أَلْقَى ٱلشَّيْطَٰنُ فِىٓ أُمْنِيَّتِهِۦ فَيَنسَخُ ٱللَّهُ مَا يُلْقِى ٱلشَّيْطَٰنُ ثُمَّ يُحْكِمُ ٱللَّهُ ءَايَٰتِهِۦ ۗ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿٥٢﴾ لِّيَجْعَلَ مَا يُلْقِى ٱلشَّيْطَٰنُ فِتْنَةً لِّلَّذِينَ فِى قُلُوبِهِم مَّرَضٌ وَٱلْقَاسِيَةِ قُلُوبُهُمْ ۗ وَإِنَّ ٱلظَّٰلِمِينَ لَفِى شِقَاقٍۭ بَعِيدٍ ﴿٥٣﴾ وَلِيَعْلَمَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْعِلْمَ أَنَّهُ ٱلْحَقُّ مِن رَّبِّكَ فَيُؤْمِنُوا۟ بِهِۦ فَتُخْبِتَ لَهُۥ قُلُوبُهُمْ ۗ وَإِنَّ ٱللَّهَ لَهَادِ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِلَىٰ صِرَٰطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٥٤﴾ وَلَا يَزَالُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ فِى مِرْيَةٍ مِّنْهُ حَتَّىٰ تَأْتِيَهُمُ ٱلسَّاعَةُ بَغْتَةً أَوْ يَأْتِيَهُمْ عَذَابُ يَوْمٍ عَقِيمٍ ﴿٥٥﴾ ٱلْمُلْكُ يَوْمَئِذٍ لِّلَّهِ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ ۚ فَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ فِى جَنَّٰتِ ٱلنَّعِيمِ ﴿٥٦﴾ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ وَكَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا فَأُو۟لَٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ ﴿٥٧﴾ وَٱلَّذِينَ هَاجَرُوا۟ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ثُمَّ قُتِلُوٓا۟ أَوْ مَاتُوا۟ لَيَرْزُقَنَّهُمُ ٱللَّهُ رِزْقًا حَسَنًا ۚ وَإِنَّ ٱللَّهَ لَهُوَ خَيْرُ ٱلرَّٰزِقِينَ ﴿٥٨﴾ لَيُدْخِلَنَّهُم مُّدْخَلًا يَرْضَوْنَهُۥ ۗ وَإِنَّ ٱللَّهَ لَعَلِيمٌ حَلِيمٌ ﴿٥٩﴾ ۞ ذَٰلِكَ وَمَنْ عَاقَبَ بِمِثْلِ مَا عُوقِبَ بِهِۦ ثُمَّ بُغِىَ عَلَيْهِ لَيَنصُرَنَّهُ ٱللَّهُ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَعَفُوٌّ غَفُورٌ ﴿٦٠﴾ ذَٰلِكَ بِأَنَّ ٱللَّهَ يُولِجُ ٱلَّيْلَ فِى ٱلنَّهَارِ وَيُولِجُ ٱلنَّهَارَ فِى ٱلَّيْلِ وَأَنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌۢ بَصِيرٌ ﴿٦١﴾ ذَٰلِكَ بِأَنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلْحَقُّ وَأَنَّ مَا يَدْعُونَ مِن دُونِهِۦ هُوَ ٱلْبَٰطِلُ وَأَنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلْعَلِىُّ ٱلْكَبِيرُ ﴿٦٢﴾ الحج: ۳۸ - ۶۲

### مناسبت او تړاو:

کله چي الله د حج مناسک او هغه چي پکي دنيوي او اُخروي ګټې دي بيان کړل او دا يې څرګنده کړه چي کافرانو مؤمنان د الله له دين او د مکې د کلي څخه منع کول د لته يې دا يادونه وکړه چي الله جل جلاله له

مؤمنانو څخه دفاع کوي او دجګړې درواوالي حکمت يې په دا ګه کړچې په دغه جهاد سره له مقدساتو څخه دفاع، دمستضعفينو ملاتړ او مؤمنانو ته دعبادت کولو تمکين او واک ورکول کېږي.

لغتونه:

(صوامع) دصومعة جمع او هغه لوړي بناته چې رهبانان پکې وي ويل کېږي (بيع) دبيعة جمع او دنصاراوو عبادت ځای (کنيسة) ته ويلی شي (صلوات) ديهوديانو معابدو ته وايې اوزجاج وايې چې دغه دعبراني (صلوتا) دی (نکير) دانکارپه معنامصدردی جوهري ليکلي چې انکاردمنکرتغير دی (معطلة) پرې ايښي شوي اودشي تعطيل داچې منفعتونه يې باطل شوي وي (قصر مشيد) مضبوطه لوړه اودنګه ماڼۍ.

تفسير:

﴿إِنَّ ٱللَّهَ يُدَٰفِعُ عَنِ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ﴾ (بېشکه چې الله دفع کوي (دکفارو شراو مکر) له هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی) يعني الله مؤمنانو ته مرسته ورکوي دغه دمؤمنانولپاره زېرې دی چې دوی به په کفارولوړوي او الله به دکفارومکر له دوی څخه دفع کوي ﴿إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ خَوَّانٖ كَفُورٍ﴾ بېشکه چې الله نه خوښوي هرخيانت ګر(دامانا تواو)ناشکره ﴿أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَٰتَلُونَ بِأَنَّهُمۡ ظُلِمُواْ﴾ حکم ورکړی شوی دی (دقتال) هغوکسانو ته چې قتال ورسره کاوه شي (دکفارو له خوا) پدې سبب چې بېشکه په دوی ظلم شوی دی؛ ابن عباس رضی الله عنه وايې چې دغه لومړنی آيت دی چې دجهاد په هکله نازل شوی دی.

مفسرين کرام وايې چې: دغه درسول الله صلی الله عليه وسلم دملګروپه باب دی چې دمکې مشرکانو به ربړول اودوی به چې وهل شوي اوزخميان وو رسول الله ته راتلل رسول الله صلی الله عليه وسلم به ورته ويل: صبروکړئ ماته تراوسه دجهاد کولو حکم ندی شوی ترڅوچې دوی هجرت وفرمايو بيا دغه آيت نازل شواودالومړنی آيت دی چې وروسته له هغه چې اوياځله له قتال څخه منع راغلي وه بيانازل شو ﴿وَإِنَّ ٱللَّهَ عَلَىٰ نَصۡرِهِمۡ لَقَدِيرٌ﴾ اوبېشکه چې الله په مرسته ددوی خامخابنه قادر دی چې پرته له قتاله يې مددوکړي خو دالله داسي اراده شوي چې دوی خپل زيار دالله دطاعت په لاره کي ترسره کړي ترڅوچې دشهيدانو اجرومومي ﴿ٱلَّذِينَ أُخۡرِجُواْ مِن دِيَٰرِهِم بِغَيۡرِ حَقٍّ﴾ داهغه کسان ) دي چې ايستل شوي دي له کورونو خپلو په ناحقه سره (په ظلم او دښمني بې له کوم سببه ) ابن عباس رضی الله عنه وايې چې دغه محمد مصطفی اودهغه ملګري دي چې له مکې څخه مدينې منورې ته په وتلو مجبورشول ﴿إِلَّآ أَن يَقُولُواْ رَبُّنَا ٱللَّهُ﴾ (بل هيڅ سبب نه وومګر دا ) چې ويل به دغو (مؤمنانو ) رب زموږ(يوازي) الله دی (ورسره شريک يې نه مانو ) ﴿وَلَوۡلَا دَفۡعُ ٱللَّهِ ٱلنَّاسَ بَعۡضَهُم بِبَعۡضٖ﴾ (اوکه چېرې نه وای دفع کول دالله خلګولره ځيني ددوی په ځينونورو باندي ) يعني که الله جل جلاله قتال اوجهادرواکړی نه وای نو به مشرکينو په اهل اديانو باندي چپاوکړی وواوشعائربه معطل پاتي شوي وای خوالله جل جلاله دقتال حکم وکړاوددوی شربې دفع کړ ﴿لَّهُدِّمَتۡ صَوَٰمِعُ وَبِيَعٞ وَصَلَوَٰتٞ﴾ خامخانړول شوي به وې تکيې

اومدرسي اوعبادتخانې ( دراهبانو معبدونه اود نصاراووكنيسې ) ﴿ وَمَسَٰجِدُ يُذۡكَرُ فِيهَا ٱسۡمُ ٱللَّهِ كَثِيرٗاۗ ﴾ اومسجدونه چې يادوه شي په هغو کې ډېردالله نوم دآيت شريف معناداچې که الله تعالى چېرې مشرکين له مسلمانانوڅخه ايسارکړي نه واى اومسلمانانوته يې دجهادحکم ورکړی نه واى نوبه مشرکان په نوروملتونو بلوسېدلي اوغالب شوي واى د هغوى دعبادت ځايونه به يې نړولي واى نه به نصاراوته خپله عبادتخانه اونه به رهبانانوته صومعه ، نه هم يهودانوته کنيسه پاتې واى اونه هم دمسلمانانو مسجدونه, مشرکان به په ټولو اديانوورختلي واى اوداچې په ځانګړي توګه يې مسجدونه دالله دنوم په ډېرويادولو وستايل دايې دهغوى تعظيم او شرف په ګوته کړچې دغه حقيقي عبادت ځايونه دي ﴿ وَلَيَنصُرَنَّ ٱللَّهُ مَن يَنصُرُهُۥٓۚ ﴾ اوخامخامرسته به وکړي هرومروالله له هغه چاسره چې مرسته ورکوى (دين د ) الله ته (اورسول الله ته) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَقَوِيٌّ عَزِيزٌ ﴾ بېشکه چې الله خامخاقوي دى(هيڅوک يې مغلوبولاى نشي) ډېرزور والادى؛ ابن کثير وايې چې الله تعالى خپل ځان په قوت او عزت سره وستايونودهغه په قوت سره هرڅه پيداشول او هغه په غلبه اوزورسره وستايو چې هيڅوک ورباندي غالب کېدلاى نشي[1] ﴿ ٱلَّذِينَ إِن مَّكَّنَّٰهُمۡ فِي ٱلۡأَرۡضِ أَقَامُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُاْ ٱلزَّكَوٰةَ ﴾ دغه (مهاجر مظلومان) هغه کسان دي چې که چېرې قدرت ورکړو موږدوى ته په ځمکه کې نوقائموي به دوى لمونځ او ورکوي به زکات) يعني همدغه کسان دمرستي وړدي که چېرې موږدوى ته په ځمکه تمکين ورکړو نوبه دالله عبادت کوي سم به له ټولو حقوقوسره لمونځ ادا کوي اوزکاتونه به ورکوي ﴿ وَأَمَرُواْ بِٱلۡمَعۡرُوفِ وَنَهَوۡاْ عَنِ ٱلۡمُنكَرِۗ ﴾ اوحکم به کوي (خلګو ته) په معروف (شرعي کار) سره اومنع کوي به (خلګ) له بدکارڅخه ﴿ وَلِلَّهِ عَٰقِبَةُ ٱلۡأُمُورِ ﴾ اوخاص دالله په (تقديراو) واک کې ده خاتمه دټولو امورو ﴿ وَإِن يُكَذِّبُوكَ فَقَدۡ كَذَّبَتۡ قَبۡلَهُمۡ قَوۡمُ نُوحٖ وَعَادٞ وَثَمُودُ ﴾ اوکه چېرې دروغجن کړي تا(اى محمده !) پس په تحقيق دروغجن کړي يې وو رسولان خپل) پخواله دغه (قوم ستا) قوم دنوح او(قوم د) عاداو(قوم د ) ثمود؛ پدې کې درسول الله صلى الله عليه وسلم لپاره ډاډينه اودمشرکانولپاره وعيد دى يعني که دغه ستاټبر(دمکې خلګو ) ستا تکذيب وکړنوته لومړنى پيغمبرنه يې چې تکذيب دي کېږي په تحقيق سره ترتاړومبى انبياء هم تکذيب شوي وو اوصبريې کړى ووترڅوچې الله مکذبين او دروغجن کونکي هلاک کړل نوته پرهغوى پسې اقتداء وکړه ﴿ وَقَوۡمُ إِبۡرَٰهِيمَ وَقَوۡمُ لُوطٖ وَأَصۡحَٰبُ مَدۡيَنَۖ ﴾ اوقوم دابراهيم اوقوم دلوط اواهل (دښار) دمدين( چې دشعيب قوم وو ) ﴿ وَكُذِّبَ مُوسَىٰ ﴾ او دروغجن ګڼل شوى وموسى( هم له دې سره سره چې ښکاره معجزې اوښکاره دلائل ورسره وو نو ستاپه نوروڅه ګومان دى ؟) ﴿ فَأَمۡلَيۡتُ لِلۡكَٰفِرِينَ ثُمَّ أَخَذۡتُهُمۡۖ فَكَيۡفَ كَانَ نَكِيرِ ﴾ نومهلت مې ورکړى ووکافرانوته بيامې ونيول دوى (په عذاب سره پس څرنګه وو انکارزما(پردوى دعذاب آيا دردناک

---

[1] المختصر ۲ / ۵۴۸

عذاب نه وو؟ آیاددوی نعمت مي په نقمت بدل نکړ؟ اوکثرت يې په قلت وانه اوښتل؟ ودانۍ يې ويجاړي نشوې؟ همداسي زماچلندبه دمکې له خلګوسره هم وي ﴿ فَكَأَيِّن مِّن قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَٰهَا وَهِىَ ظَالِمَةٌ ﴾ پس ډېردي له کليو(اوښارونو) څخه چي موږهلاک کړي دي (په بشپړ عذاب سره)حال داچي دغه ظالمان (مشرکان کافران)وو﴿ فَهِىَ خَاوِيَةٌ عَلَىٰ عُرُوشِهَا ﴾ پس هغه (کلي) پرېوتلي دي (دېوالونه يې د پاسه) په بامونوخپلوباندي (وران ويجاړ شوي ) ﴿ وَبِئْرٍ مُّعَطَّلَةٍ وَقَصْرٍ مَّشِيدٍ ﴾ اوډېرکوهيان دي چي (ډک له اوبو) بېکاره پراته دي چي خاوندان (اهل) يې هلاک شوي اوډېري پخې لوړي اوچتي مانۍ (تشي پاتي دي چي خاوندان يې هلاک شوي دي (آياپدې کي دپند اخيستونکولپاره پندنشته؟﴿ أَفَلَمْ يَسِيرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ فَتَكُونَ لَهُمْ قُلُوبٌ يَعْقِلُونَ بِهَآ ﴾ (آياپس ندي ګرزېدلي دوی (دغه کفار) په ځمکه کي پس واې دوی لره زړونه چي فکرېې کولوپه هغو (زړونوسره) يعني آيادغه دمکې خلګومسافرتونه ندي کړي ترڅوچي دکفارودهلاکت ځايونه وويني اوورباندي عبرت واخلي؟ اوآيادوی عقل نه چلوي لکه چي دايمان اوتوحيدپه باب عقل چلول لازم دي؟﴿ أَوْ ءَاذَانٌ يَسْمَعُونَ بِهَا ﴾ يا(وي دوی) لره غوږونه چي خبري يې اورېدلی په دغو (غوږونو د)پنداونصيحت) ﴿ فَإِنَّهَا لَا تَعْمَى ٱلْأَبْصَٰرُ وَلَٰكِن تَعْمَى ٱلْقُلُوبُ ٱلَّتِى فِى ٱلصُّدُورِ ﴾ پس قصه داده چي ړندې نه دي سترګي (ظاهري ددوی) ولکن ړانده دي زړونه (ددوی) هغه چي دننه په سينوکي دي) يعني حقيقتاًددوی سترګي ړندې نه دي بلکه بصيرت يې نشته اوڅوک چي په زړه ړندوي هغه پنداو نصيحت نه اوري اودسينوذکرېې ځکه فرمايلی چي دمجاز توهم نفی کړي﴿ وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِٱلْعَذَابِ وَلَن يُخْلِفَ ٱللَّهُ وَعْدَهُۥ ﴾ (اوتلوارکوي کفارپه تاپه (راوستلود ) عذاب اوله سره به خلافه نکړي الله وعده خپله) يعني ای محمده دغه مشرکان له تاڅخه په بېړه دعذاب راتلل دملنډوپه ترڅ کښي غواړي اودغه عذاب اروموراتلونکی دی خوتاکلي موده لري له هغې څخه تجاوزنکوي ځکه چي الله تعالی په خپله وعده کي مخالفت نکوي ﴿ وَإِنَّ يَوْمًا عِندَ رَبِّكَ كَأَلْفِ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّونَ ﴾ (اوبېشکه يوه ورځ په نزد درب ستاداسی ده لکه زرکاله له هغوکلونوچي تاسي يې شمېرى يعني الله تعالیٰ حليم دی تلوارنه کوي ځکه اندازه ديوزرکاله دمخلوق په وړاندي دالله جل جلاله حلم ته داسي ده لکه يوه ورځ نوتاسوولي عذاب ليري ګڼۍ اوپه بېړه يې غواړۍ؟ ځکه وروسته فرمايي: ﴿ وَكَأَيِّن مِّن قَرْيَةٍ أَمْلَيْتُ لَهَا وَهِىَ ظَالِمَةٌ ﴾ اوډېردي له (اهله دپخوانيوښارونو او )کليوچي مامهلت ورکړی وودوی ته حال داچي اهل دهغوظالمان وو(اوپه دغه تاخيراومهلت باندي تېروتل ﴿ ثُمَّ أَخَذْتُهَا وَإِلَىَّ ٱلْمَصِيرُ ﴾ بياماهغوی ونيول اوخاص ماته راتله دهرچادي په البحرکي وايي: کله چي الله تعالی قريشوته مهلت ورکړخودوی په بېړه (تلوار)عذاب غوښتل نوآيت شريف دايادوي چي پخوانيوأمتونوته مهلت ورکول شوی بياهلاک شوي دي اوبېشکه قريش هم که څه هم الله وخت اومهلت ورکړی اروموربه يې هلاکوي دوی دي دعذاب په خندېدلونه

خوشحالېږي (١) ﴿ قُلْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنَّمَآ أَنَا۠ لَكُمْ نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴾ (ووايه (اى محمده!) اى خلكوبېشكه همداخبره ده چي زه تاسي ته ښكاره وېرونكى يم) يعني اى محمده دغه بېړه كونكو دعذاب ته ووايه چي زه يوازي ښكاره وېرونكى يم تاسودالله له عذاب څخه وېروم پرته له دې چي زمادي په تعجيل اوتأخيركي لاس وي ﴿ فَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ ﴾ (پس هغه كسان چي ايمان يې راوړى دى اوكړي يې دي ښه(عملونه) شته دوى ته ښښنه اوعزتناكه روزي) يعني هغه صادق مؤمنان چي ايمان اوصالح عمل يې سره يوځاى كړى وي دو ي لره دګناهونوبښل اوعزتناكه روزي په جنات النعيم كي شته. امام رازي وايې چي څوک دايمان اوصالح عمل يوځايوالى وكړي الله تعالى به ورته مغفرت اورزق كريم يوځاى وركړي (٢) قرطبي وايې كله چي له الله څخه واورې چي فرمايې:
﴿ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ ﴾ نوپدې وپوهېږه چي همدا جنت دى (٣) ﴿ وَٱلَّذِينَ سَعَوْا۟ فِىٓ ءَايَٰتِنَا مُعَٰجِزِينَ أُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلْجَحِيمِ ﴾ اوهغه كسان چي كوښښ كوي په (بطلان) د آيتونو زموږ كي (غواړي دالله دنور د پوه مړه كړي) حال داچي عاجزكونكي زموږ وي (ددوى په ګمان) همدغه كسان ملګري ددوزخ دي (چي تل به پكې وي) دوى يې ددوام له وجهي له ملګري سره مشابه كړل. امام رازي رحمه الله وايې: كه څوک وپوښتي چي رسول الله صلى الله عليه وسلم خولوړي مؤمنانوته زېرى وركړى اودوهم ځل يې پدې آيت كي كافرانوته انذار اورولى نودقياس غوښتنه داده چي ويل شوي واى ﴿ انماانالكم بشيرونذير ﴾ ځواب دادى چي دغه كلام دمشركانوپه باب روان شوى هغوى ووچي عذاب يې په بېړه غوښتل نو﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ﴾ددوى لپاره غږ دى اوداچي د مؤمنانوثوابونه اويادونه وشوه ترڅوچي دمشركانوقهراوغصه زياته شي (٤) ﴿ وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ مِن رَّسُولٍ وَلَا نَبِىٍّ ﴾ اونه وولېږلي موږ پخواله تا (اى محمده!) هيڅ رسول اونه هيڅ نبي ﴿ إِلَّآ إِذَا تَمَنَّىٰٓ ﴾ مګرچي كله به يې يوڅيزخوښ شواوزړه به يې وغوښت ﴿ أَلْقَى ٱلشَّيْطَٰنُ فِىٓ أُمْنِيَّتِهِۦ ﴾ نووبه غورځاوو شيطان دده په تمنااومايشتهى كي (ځيني وسوسې چي په دنيابه يې مشغولاوو لكه چي رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايې: (انه ليغان على قلبى فأستغفرالله فى اليوم سبعين مرة) يعني هرومروزماپه زړه هم سهوغفلت راځي نوله الله څخه اوياځلي په ورځ كي مغفرت غواړم) فرآء وايې د(تمنى) معناداچي په زړه كي څه ورتېركړي په بخاري كي راځي چي ابن عباس رضى الله عنهما فرمايې (الااذاتمنى ألقى الشيطان فى أمنيته) ددې معناداچي هغه وخت چي خبري كوي نوشيطان يې په ويناكي يوڅه ورواچوي نوالله دشيطان غورځول شوي باطلي كړې اوخپل

---

(١) البحر ٢/ ٣٧٩
(٢) الرازي ٢٣/ ٤٧
(٣) المختصر ٢/ ٥٥
(٤) الرازي ٢٣/ ٤٧

آيتونه محكم كړي اوداسي ويل كېږي چي (أمنيته) لوستل دده ([1])نحاس وايې چي پدې باره كي ترټولوښه اولوړه ويناداده چي ددې آيت په هكله وشي اومعنادآيت داسي راشي چي موږ نه ولېږلى هيڅ يورسول اوهيڅ نبي چي په زړه كي به يې يوڅه ورو ګرزېدل اودخپل اُمت لپاره به يې دهدايت تمناوكړه مګرشيطان به وسوسې په زړه كي ور واچولې اوپدې لاره كي به يې خنډونه راپورته كړل چي دقوم په زړونوكي به يې كفرښايسته كړاو د پيغمبرمخالفت كولوته به يې چمتوكړل نولكه چي آيت شريف درسول عليه السلام لپاره ډاډينه وي چي ورته وايې خواشيني اوغم مكوه اى محمده! ترتادمخه پيغمبرانوهمدغه سنت دى چي قومونوبه يې ورسره دښمني كوله ([2]) ﴿ فَيَنسَخُ ٱللَّهُ مَا يُلْقِى ٱلشَّيْطَٰنُ ﴾ پس ليري به كړي الله هغه (وسوسې) چي غورځولي دي شيطان په تمنا دده كي ﴿ ثُمَّ يُحْكِمُ ٱللَّهُ ءَايَٰتِهِۦ ۗ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴾ (بيامحكموي الله خپل آيتونه اوالله ښه عالم دى ښه حكمت لرونكى دى) يعني بيا الله د پيغمبرپه زړه كي په وحدانيت اورسالت باندي دلائل ټينګوي ابوالسعودوايې چي په آيت شريف كي دانبياء عليهم السلام په سهوكېدلوجوازموجوددى چي هغوى ته هم وسوسې لاره موندلاى شي ﴿ لِّيَجْعَلَ مَا يُلْقِى ٱلشَّيْطَٰنُ ﴾ دپاره ددې چي الله وګرزوي هغه شى چي شيطان يې غورځوي ﴿ فِتْنَةً لِّلَّذِينَ فِى قُلُوبِهِم مَّرَضٌ ﴾ ازموينښت دهغو كسانوچي په زړونو ددوى كي ناروغي (مرض دشك اونفاق) دى ﴿ وَٱلْقَاسِيَةِ قُلُوبُهُمْ ۗ ﴾ (بل دپاره دهغوچي) سخت دي زړونه ددوى يعني دكافرانوترټولوسخت كسان دي لكه ابوجهل ،نضراوعتبه ﴿ وَإِنَّ ٱلظَّٰلِمِينَ لَفِى شِقَاقٍۭ بَعِيدٍ ﴾ (اوبېشكه ظالمان خامخاپه مخالفت ډېر ليري كي دي) يعني دغه يادشوي كسان له منافقينو اومشركينوڅخه سخت دښمني كونكي دي له الله اورسول سره اومخالفت ته چي يې ليري وويل داپدې چي دوى په خوراګمراهي اوله خيرڅخه ډېرليري وو ﴿ وَلِيَعْلَمَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْعِلْمَ أَنَّهُ ٱلْحَقُّ مِن رَّبِّكَ ﴾ اوچي پوه شي هغه كسان

---

(۱) انظرصحيح البخاري كتاب التفسير .

(۲) داترټولوهغووينا وچي ددغه آيت شريف په تفسيركي راغلي ښه ده اودغه دمحققينومفسرينوغوره ده اوهغه دغرانيق كيسه چي ځيني مفسرينوراوړي ښځي باطله ده هغه داچي رسول الله صلى الله عليه وسلم د﴿ وَٱلنَّجْمِ إِذَا هَوَىٰ ﴾ سورت لوستل اومشركان اومسلمانان ورته ناست ووكله چي دې ځاى ته ورسېدو﴿ أَفَرَءَيْتُمُ ٱللَّٰتَ وَٱلْعُزَّىٰ ﴿١٩﴾ وَمَنَوٰةَ ٱلثَّالِثَةَ ٱلْأُخْرَىٰٓ ﴾ نوشيطان يې په ژبه داكلماتي چي: (تلك الغرانيق العلى* وان شفاعتهن لترتجى ) وغورځول مشركان پدې خوشحاله شول اوچي سورت پاى ته ورسېدورسول الله صلى الله عليه وسلم سجده وكړه اومشركانوهم سجده وكړه؛ ابن عربي وايې چي ټول هغه څه چي پدې كيسه كي راغلي باطل دي. ابن اسحاق وايې چي: دغه دزنادقه وولړ ځانه جوړه كړي كيسه ده بيهقي وايې چي ددې كيسې راويان مطعون فيهم دي. ابن كثيروايې چي ډېرومفسرينو دغرانيق كيسه رانقل كړي اوهغه روايتونه مرسل اومنقطع دي. قاضي عياض وايې چي داهسي حديث دى چي هيچاپه متصل سليم سند نه دى راوړى اودصحيحواحاديثو راويانونه دى نقل كړى خوځينوتاريخ ليكونكواومفسرينو راوړي دي هغه چي هرڅېږي غريب اونادرتوكي راغونډوي زه وايم چي ددې كيسې په باطلوالي دقرآنكريم دغه آيت دلالت كوي: ﴿ وَمَا يَنطِقُ عَنِ ٱلْهَوَىٰٓ ﴿٣﴾ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْىٌ يُوحَىٰ ﴾ نومعصوم به څرنګه داسي كلماتي ولولي لكه چي دوى ګمان كوي سبحانك هذابهتان عظيم قاطع اوغوڅ ترديديې دامام رازي په تفسيركي شته.

چي وركړى شوى دى دوى ته علم چي بېشكه دا قرآن حق دى له طرفه د رب ستا (نازل شوى دى) ﴿ فَيُؤْمِنُوا بِهِۦ ﴾ پس ايمان به راوړي دوى په ده سره ﴿ فَتُخْبِتَ لَهُۥ قُلُوبُهُمْ ﴾ نو نرم به شي دغه (قرآن ته) زړونه ددوى (په خلاف دهغه چاچي په زړونو كي يې ناروغي وي) ﴿ وَإِنَّ ٱللَّهَ لَهَادِ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِلَىٰ صِرَٰطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴾ اوبېشكه الله خامخالاره ښوونكى دى هغوكسانو ته چي ايمان يې راوړى دى طرف د سمي صافي لاري (داسلام) ته (اوددوى له ضلالت او گمراهي څخه ژغورونكى دى ﴿ وَلَا يَزَالُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ فِى مِرْيَةٍ مِّنْهُ ﴾ اوتل به وي هغه كسان چي كافران شوي دي په شك كي له دې قرآنه ﴿ حَتَّىٰ تَأْتِيَهُمُ ٱلسَّاعَةُ بَغْتَةً ﴾ (ترهغه وخته پوري چي راشي دوى ته قيامت ناڅاپه) بې له دې نه چي خبرشي قتاده وايي چي الله هيڅوك ندى نيولى مگر ددوى دمستي په وخت كي چي دوى تېروتلي مغرور اوپه نعمت كي غوپه وي نوپه الله جل جلاله تېروزي په الله جل جلاله باندي له فاسقانو پرته بل څوك نه مغروريږي اوتېروزي ﴿ أَوْ يَأْتِيَهُمْ عَذَابُ يَوْمٍ عَقِيمٍ ﴾ ياراشي دوى ته دشنډي ورځي عذاب (دقيامت عذاب) اوځكه يې دغي ورځي ته شنډه وويله چي له دې وروسته به بله ورځ نه راځي اودلته يې هسي ونه ويل چي (أو يأتيهم عذابها) اودغه يې دضمير پرځاى راوړه چي زيات هيبت يې څرگند شي ﴿ ٱلْمُلْكُ يَوْمَئِذٍ لِّلَّهِ ﴾ سلطنت په دغه ورځ دقيامت كي خاص الله لره دى (هيڅوك ورسره دفع كونكى اونزاع كونكى نشته ﴿ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ ﴾ فيصله به كوي په مينځ ددوى (مؤمنانو او كافرانو) كي (مؤمنان به جنت ته اوكافران به دوزخ ته بيايي ځكه يې وفرمايل: ﴿ فَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ فِى جَنَّٰتِ ٱلنَّعِيمِ ﴾ پس هغه كسان چي ايمان يې راوړى دى (په الله اورسول) اوكړي يې دي ښه (عملونه) په جنتونو د نعمتونو كي به وي ﴿ وَٱلَّذِينَ كَفَرُواْ وَكَذَّبُواْ بِـَٔايَٰتِنَا فَأُوْلَٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ ﴾ اوهغه كسان چي كافران شوي دى اونسبت د دروغو يې كړى دى آيتونو زموږ ته پس دغو كسانو ته شته عذاب سپكونكى (په دوزخ كي) ﴿ وَٱلَّذِينَ هَاجَرُواْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾ اوهرهغه چي خپل كورونه يې پرې ايښي دى (دالله درضا لپاره) په لاره دالله كي (لپاره داعلاء كلمة الله) ﴿ ثُمَّ قُتِلُوٓاْ أَوْ مَاتُواْ ﴾ بيا ووژلى شي (په جهاد كي) يامړه شي (پخپل بستر) ﴿ لَيَرْزُقَنَّهُمُ ٱللَّهُ رِزْقًا حَسَنًا ﴾ نوخامخاروزي به وركړي دوى ته الله روزي نېكه (دجنت چي هيڅ انقطاع به ونلري) ﴿ وَإِنَّ ٱللَّهَ لَهُوَ خَيْرُ ٱلرَّٰزِقِينَ ﴾ اوبېشكه الله هم دى غوره روزي وركونكى دى (ځكه بې حسابه روزي وركوي) ﴿ لَيُدْخِلَنَّهُم مُّدْخَلًا يَرْضَوْنَهُۥ ﴾ خامخا داخل به كړي (الله) هرومرو دوى په داسي يوځاى (دجنت) كي چي دوى به هغه خوښ كړي (چي هلته داسي نعمتونه شته چي نه ستر گو ليدلي ، نه غوږونو اورېدلي اونه

د بشرپه زړه هم کله تېرشوي دي) ﴿ وَإِنَّ ٱللَّهَ لَعَلِيمٌ حَلِيمٌ ﴾ اوبېشکه الله خامخا ډېر عالم (په درجاتو ددوی) ښه حلم لرونکی دی (له عذابه ددوی) ﴿ ذَٰلِكَ وَمَنْ عَاقَبَ بِمِثْلِ مَا عُوقِبَ بِهِۦ ﴾ (خبره هم داده (لکه چي وموویله ) اوهرهغه چي بدل واخيست په مثل دهغه (ضرر) چي دی په هغه سره معذب شوی دی ﴿ ثُمَّ بُغِىَ عَلَيْهِ لَيَنصُرَنَّهُ ٱللَّهُ ﴾ بيا (دوهم ځل) ظلم وکړای شي په ده باندي نو خامخا الله به مرسته وکړي هرومرو له ده سره ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَعَفُوٌّ غَفُورٌ ﴾ بېشکه الله خامخا ښه عفوه کونکی دی ډېربښونکی دی؛ پدې کي دعفو او ښنني لورته هڅونه او ترغيب دی ځکه چي الله تعالی سره له دې چي په کسات اخيستلو او انتقام باندي بشپړ قدرت لري خو بيا هم عفوه او ښنه کوي نو رخو ک خو ښېخي بايد داکار وکړي ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّ ٱللَّهَ يُولِجُ ٱلَّيْلَ فِى ٱلنَّهَارِ وَيُولِجُ ٱلنَّهَارَ فِى ٱلَّيْلِ ﴾ دغه (نصرت) په سبب ددې دی) چي بېشکه الله ننی باسي شپه په ورځ کي او ننني باسي ورځ په شپه کي (چي کله ورځ لنډه شپه اوږده وي کله شپه لنډه ورځ اوږده وي چي دغه ليدني کتلی په ژمي اودوبي کي هرچاکړي دي ﴿ وَأَنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌۢ بَصِيرٌ ﴾ اوبېشکه الله ښه اورېدونکی دی (داقوالو د بندګانو) ښه ليدونکی دی (پر احوالو ددوی هيڅ شی ځني الونيا (پټ) نه دی ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلْحَقُّ وَأَنَّ مَا يَدْعُونَ مِن دُونِهِۦ هُوَ ٱلْبَٰطِلُ ﴾ دغه (مرسته پدې ده چي) بېشکه الله همدی دی حق ثابت اوبېشکه هغه چي بولي يې (کفاراوعبادت يې کوي) بې له الله څخه همدغه باطل دی (چي په هيڅ شي قدرت نلري) ﴿ وَأَنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلْعَلِىُّ ٱلْكَبِيرُ ﴾ اوبېشکه (الله همدی دی (له ټولو څخه) ښه لوړښه لوی د عظمت او کبريا خاوندی ترده څوک اوچت او ستر هډو نشته

**بلاغت:**

پدې آيتونو کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي نغښتي لنډيزيې دادی:

۱ - دمبالغې صيغه لکه ﴿ خَوَّانٍ كَفُورٍ ﴾ ځکه فعال او فعول دمبالغې صيغې دي.

۲ - دسياق له پلوه په حذف دلالت لکه: ﴿ أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَٰتَلُونَ ﴾ چي معنا داچي (اذن بالقتال للذين يقاتلون).

۳ - تاکيد مدح بمايشبه الذم لکه: ﴿ إِلَّآ أَن يَقُولُوا۟ رَبُّنَا ٱللَّهُ ﴾ يعني ددوی نوره ګناه نشته مګر داچي وايي زموږ پروردګار الله دی

۴ - لطيفه مقابله لکه د ﴿ فَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ ﴾ اود ﴿ وَٱلَّذِينَ سَعَوْا۟ فِىٓ ءَايَٰتِنَا مُعَٰجِزِينَ أُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلْجَحِيمِ ﴾ ترمينځ راغلي ده.

۵ - اشتقاقي جناس لکه ﴿ وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن رَّسُولٍ ﴾.

۶- د طباق صنعت چي د ﴿فَيَنسَخُ ثُمَّ ..... يُحْكِمُ﴾ ترمينځ راغلی دی.

۷- بدیعه استعاره لکه چي فرمايي: ﴿أَوْ يَأْتِيَهُمْ عَذَابُ يَوْمٍ عَقِيمٍ﴾ اودغه له خوراښکليو استعاراتو څخه ګڼل کېږي څکه شنډوالی دهغې مېرمني لپاره ويل کېږي چي زوزات يې نه کېږي لکه چي الله همدغه ورځ په دغه صفت وستايله پدې سبب چي له دې وروسته نه شپه شته ، نه ورځ څکه زمانه تېره شوه مکلفيت پای ته ورسېدو نوورځي داولاد په منزلت دشپولپاره اودغه ورځ دهغوی له مينځه شنډه وګڼله شوه چي دغه استعاره بلل کېدای شي. [1]

***

الله تعالی فرمايي:

﴿أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَتُصْبِحُ الْأَرْضُ مُخْضَرَّةً ۗ إِنَّ اللَّهَ لَطِيفٌ خَبِيرٌ ﴿٦٣﴾ لَّهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۗ وَإِنَّ اللَّهَ لَهُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيدُ ﴿٦٤﴾ أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ سَخَّرَ لَكُم مَّا فِي الْأَرْضِ وَالْفُلْكَ تَجْرِي فِي الْبَحْرِ بِأَمْرِهِ وَيُمْسِكُ السَّمَاءَ أَن تَقَعَ عَلَى الْأَرْضِ إِلَّا بِإِذْنِهِ ۗ إِنَّ اللَّهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴿٦٥﴾ وَهُوَ الَّذِي أَحْيَاكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ ۗ إِنَّ الْإِنسَانَ لَكَفُورٌ ﴿٦٦﴾ لِّكُلِّ أُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنسَكًا هُمْ نَاسِكُوهُ ۖ فَلَا يُنَازِعُنَّكَ فِي الْأَمْرِ ۚ وَادْعُ إِلَىٰ رَبِّكَ ۖ إِنَّكَ لَعَلَىٰ هُدًى مُّسْتَقِيمٍ ﴿٦٧﴾ وَإِن جَادَلُوكَ فَقُلِ اللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴿٦٨﴾ اللَّهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ﴿٦٩﴾ أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ ۗ إِنَّ ذَٰلِكَ فِي كِتَابٍ ۚ إِنَّ ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرٌ ﴿٧٠﴾ وَيَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِ سُلْطَانًا وَمَا لَيْسَ لَهُم بِهِ عِلْمٌ ۗ وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِن نَّصِيرٍ ﴿٧١﴾ وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ تَعْرِفُ فِي وُجُوهِ الَّذِينَ كَفَرُوا الْمُنكَرَ ۖ يَكَادُونَ يَسْطُونَ بِالَّذِينَ يَتْلُونَ عَلَيْهِمْ آيَاتِنَا ۗ قُلْ أَفَأُنَبِّئُكُم بِشَرٍّ مِّن ذَٰلِكُمُ ۗ النَّارُ وَعَدَهَا اللَّهُ الَّذِينَ كَفَرُوا ۖ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ﴿٧٢﴾ يَا أَيُّهَا النَّاسُ ضُرِبَ مَثَلٌ فَاسْتَمِعُوا لَهُ ۚ إِنَّ الَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِ اللَّهِ لَن يَخْلُقُوا ذُبَابًا وَلَوِ اجْتَمَعُوا لَهُ ۖ وَإِن يَسْلُبْهُمُ الذُّبَابُ شَيْئًا لَّا يَسْتَنقِذُوهُ مِنْهُ ۚ ضَعُفَ الطَّالِبُ وَالْمَطْلُوبُ ﴿٧٣﴾ مَا قَدَرُوا اللَّهَ حَقَّ قَدْرِهِ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَقَوِيٌّ عَزِيزٌ ﴿٧٤﴾ اللَّهُ يَصْطَفِي مِنَ الْمَلَائِكَةِ رُسُلًا وَمِنَ النَّاسِ ۚ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ بَصِيرٌ ﴿٧٥﴾ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ ۗ وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ ﴿٧٦﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا ارْكَعُوا وَاسْجُدُوا وَاعْبُدُوا رَبَّكُمْ وَافْعَلُوا الْخَيْرَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ۩ ﴿٧٧﴾ وَجَاهِدُوا فِي اللَّهِ حَقَّ جِهَادِهِ ۚ هُوَ اجْتَبَاكُمْ وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّينِ مِنْ حَرَجٍ ۚ مِّلَّةَ أَبِيكُمْ إِبْرَاهِيمَ ۚ هُوَ سَمَّاكُمُ

---

[1] ابو السعود ۴/ ۱۸

ٱلْمُسْلِمِينَ مِن قَبْلُ وَفِي هَٰذَا لِيَكُونَ ٱلرَّسُولُ شَهِيدًا عَلَيْكُمْ وَتَكُونُوا۟ شُهَدَآءَ عَلَى ٱلنَّاسِ ۚ فَأَقِيمُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتُوا۟ ٱلزَّكَوٰةَ وَٱعْتَصِمُوا۟ بِٱللَّهِ هُوَ مَوْلَىٰكُمْ ۖ فَنِعْمَ ٱلْمَوْلَىٰ وَنِعْمَ ٱلنَّصِيرُ ﴿٧٨﴾ ﴾ الحج: ٦٣ ـ ٧٨

مناسبت او تړاو:

کله چي الله تعالی د خپل قدرت دلائل چي ورځ په شپه او شپه په ورځ کی ننني باسي یاد کړل او د خپلو نعمتونو په هکله یې ځرګندونه وکړه د لته یې د بل ډول دلائلو چي هغه هم د الله په قدرت او حکمت شاهدي ورکوي یادونه وفرمایله چي د بعث او نشور لپاره لکه سریزه او مقدمه غوندي ګرزي او سورت په پای کي مؤمنانو ته د واحد أحد ذات د عبادت بلنه ورکوي.

لغتونه: (سلطانا) حجت او برهان ته وایي (یسطون) له سطوت څخه اخیستل شوی او په قهر او غصه سره مضبوط نیولو ته وایي (یسلبهم) اخیستلو ته چي په منډه ترسره شي ویل کیږي (قدروا) تعظیم یې کړی (یصطفي) له اصطفاء څخه دی او غوره کولو ته وایي (حرج) تنګي (ملة) دین ته ویلای شي.

تفسیر:

﴿ أَلَمْ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ أَنزَلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً ﴾ (آیا ندی لیدلی تا (نه یې خبرای مخاطبه) چي بېشکه الله نازلي کړي دي او به (له طرفه د) آسمانه) استفهام تقریري دی یعني الله پخپل قدرت سره له آسمانه باران نازل کړی دی ﴿ فَتُصْبِحُ ٱلْأَرْضُ مُخْضَرَّةً ﴾ پس ګرزي ځمکه (پدې او بو سره) تکه شنه (وروسته له هغه چي وچه سپېره وي) د مضارع په صیغه سره یې ځکه تعبیر وفرمایل چي انځوریې مستحضر کړي او ونبیي چي همداسي به یو څه وخت پاتي وي ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَطِيفٌ خَبِيرٌ ﴾ بېشکه الله ښه مهربان عالم دی ښه خبردار دی (په ټولو شیانو) ابن عباس رضی الله عنه وایي چي معنا دا چي الله د بندګانو په روزي لطیف باریک بین او په پټو رازونو یې خبردار دی کوم چي په زړونو کي ناهیلي وي مقصد له دې آیت څخه شریف څخه د الله جل جلاله په بشپړ قدرت باندي دلیل راوړل دی چي دغه الله په بعث او بیرته راپاڅولو هم قادر دی نو ځکه یې فرمایلي دي: ﴿ وَهُوَ ٱلَّذِىٓ أَحْيَاكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ ﴾ ﴿ لَّهُۥ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ خاص همدغه (الله) ته دي هر څه چي په آسمانونو کي او هر څه چي په ځمکه کي دي (خلقًا، ملکًا او تصرفًا) ګرده د هغه تدبیر او اتقان ته اړ او محتاج دی ﴿ وَإِنَّ ٱللَّهَ لَهُوَ ٱلْغَنِىُّ ٱلْحَمِيدُ ﴾ او بېشکه الله خامخا هم دی غني بې پروا دی ښه ستایلی دي (په ټولو حالاتو کي) ﴿ أَلَمْ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ سَخَّرَ لَكُم مَّا فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ آیا ندی لیدلی تا (نه یې خبرای مخاطبه!) چي بېشکه الله تابع کړي دي تاسي ته هر هغه چي په ځمکه کي دي) یعني ای هوښیاره ته نه وینې چي الله خپلو بندګانو ته ټول هغه چي ورته اړدي اېل او مسخر ګرزولي هغه که حیوانات دي، که وني نهرونه او کانونه دي دغه د الله د نورو نعمتونو تذکار دی ﴿ وَٱلْفُلْكَ تَجْرِى فِى ٱلْبَحْرِ بِأَمْرِهِۦ ﴾ او (مسخر کړي یې د ه) بېړۍ چي ګرزي په بحر کي په حکم د هغه سره (د رانه بارونه او خلک باروي د الله جل جلاله په قدرت او مشیت سره د رومي)

﴿ وَيُمْسِكُ ٱلسَّمَآءَ أَن تَقَعَ عَلَى ٱلْأَرْضِ ﴾ اوساتي آسمان له دې نه چې راولوېږي په ځمکه باندې (اوټول
هغه چې پکې دي ووژني ) ﴿ إِلَّا بِإِذْنِهِۦٓ ﴾ مګرخو په حکم دهغه سره (اودغه اذن به د قيامت په ورځ وي )
﴿ إِنَّ ٱللَّهَ بِٱلنَّاسِ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴾ بېشکه الله پرخلګو خامخا ښه نرمي کونکی، ښه مهربان دی؛ او دغه يې
د لطف نښه ده چې ستاسي لپاره يې دژوندانه اسباب تيار کړي دي نو دالله دنعمتونو شکر اداکړئ ﴿ وَهُوَ
ٱلَّذِىٓ أَحْيَاكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ إِنَّ ٱلْإِنسَـٰنَ لَكَفُورٌ ﴾ اودغه (الله هغه قادرذات دی ) چې
ژوندي کړي ياست تاسي ( وروسته له عدمه) بيابه مړه کاندي تاسي(چې کله مو ټاکلي موده راشي)
بيابه موژوندي کاندي (په قيامت کي لپاره دحساب اوثواب،عقاب) بېشکه انسان خامخاناشکره دی
(دالله دنعمتونو ابن عباس رضی الله عنه وايي چې: مرادله انسان څخه کافر دی اوغرض له دې
آيتونوڅخه دمشرکانوتوبيخ اوترټنه ده لکه چې وايي: څرنګه له الله سره سيالان نيسي اوپه عبادت کي
ورسره نورګډوي پداسي حال کي چې الله په پيداکولو، رزق ورکولو او تصرفاتوکي خپلواک اومستقل
دی؟﴿ لِّكُلِّ أُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنسَكًا ﴾ (دپاره دهريوه اُمت مقرر کړی دی موږ يوه لاره دبندګي) يعني
هرپيغمبرله پيغمبرانوته اوهراُمت له پخوانيواُمتونوته موږ شريعت او لاره ارته ټاکلي ده.لکه چې الله
تعالی بل ځای فرمايي ﴿ لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنكُمْ شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا ﴾ (المائده۴۸ ) ﴿ هُمْ نَاسِكُوهُ ﴾ چې دوی
دهغه عمل کونکي دي ( له شريعت نه) ﴿ فَلَا ) يُنَـٰزِعُنَّكَ فِى ٱلْأَمْرِ ﴾ دهغه پس نه ښايي چې جګړه وکړي
(دامشرکان) له تاسره پدې کار (د دين) کي ( چې ستا او ستاداُمت لپاره کوم شريعت ټاکلی شوی دی
ځکه په هروخت اوزمان کي شريعتونه موجودوو دغه په ظاهره نهي اومقصد ورڅخه نفي ده يعني له نبي
سره جګړه کول مناسب نه ده ځکه حق روښانه شوی او جګړه کول پکي نه ځائېږي ﴿ وَٱدْعُ إِلَىٰ رَبِّكَ إِنَّكَ
لَعَلَىٰ هُدًى مُّسْتَقِيمٍ ﴾ اوبلنه کوه !(دخلګوعبادت د ) رب خپل (اودهغه ښايسته شريعت ته) بېشکه ته
يې خامخاپه سمه صافه لاره (چې حق ته برابره تللي اوجنت ته رسېدونکي ده) ﴿ وَإِن جَـٰدَلُوكَ فَقُلِ ٱللَّهُ
أَعْلَمُ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴾ (اوکه جګړه کوي له تاسره (په دين کي) نو ووايه (ای محمده دوی ته) چې الله ښه پوه
دی په هغه (جګړه اوعناد )چې تاسي يې کوی) يعني که چېري دوی ددليل اوبرهان څخه وروسته هم کله
چې حق څرګند شي بيالاجګړه کوي نو ورته ووايه چې الله ستاسي په بدواعمالواوپه هغه چې
تاسودڅرنګه جزا ور اومستحق ياست ښه خبردار دی ! پدې کي وعيداو وېرونه نغښتي ده ﴿ ٱللَّهُ يَحْكُمُ
بَيْنَكُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَـٰمَةِ فِيمَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ﴾ الله به حکم وکړي په مينځ ستاسي کي په ورځ دقيامت
په هغه شي کي چې وی تاسي په هغه کي مواختلاف کاوو (له ديني چاروڅخه نوهله به حق له باطل څخه
بېل شي) ﴿ أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّ ٱللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِى ٱلسَّمَآءِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ آيانه پوهېږې ته (ای محمده ! بلکه پوهېږې)
چې بېشکه الله پوهېږي په هرهغه شي چې پدې آسمان کي دي اوهغه چې پدې ځمکه کي دي (استفهام

تقرېري دی یعني ته پوهېږې چي: دالله علم په آسماني اوځمکني موجوداتومحیط دی نوددوی کړه وړه ورڅخه پټ نه دي ﴿ إِنَّ ذَٰلِكَ فِي كِتَابٍ ﴾ بېشکه دا په کتاب(لوح محفوظ)کي لیکل شوي دي﴿إِنَّ ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرٌ ﴾بېشکه دا(حصرد مخلوقاتواودالله په علم اواحاطه کي راتلل) په الله آسان دي ؛ بیاالله تعالی هغه بیان فرمایي چي له دې سره سره چي الله خورازیات نعمتونه پېرزوکړي خوبیاهم کافران انکارکوي: ﴿ وَيَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ ﴾ اوعبادت کوي دغه (کفارقریش) غیرله الله (دبتانوچي نه اوري ، نهویني) ﴿مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِ سُلْطَانًا ﴾ چي ندی نازل کړی (الله) په (عبادت د ) هغه هیڅ سند(اودلیل له جهته د شریعته ﴿وَمَا لَيْسَ لَهُم بِهِ عِلْمٌ ﴾ اودهغه شي چي نشته دوی ته په هغه باندي هیڅ علم ؛ دلیل پوهه (له جهته دعقله بلکه یوازي دخپلوپلرونو ړوند تقلیدکوي) ﴿وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِن نَّصِيرٍ ﴾ اونشته ظالمانوته هیڅ مرسته کونکی (چي دالله له عذابه یې وژغوري) ﴿ وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ ﴾ اوکله چي ولوستل شي په دوی آیتونه (دقرآن) زموږ په داسي حال کي چي صاف واضح ښکاره دي(اودالله په وحدانیت کوټلي شاهدي ورکوي) ﴿تَعْرِفُ فِي وُجُوهِ الَّذِينَ كَفَرُوا الْمُنكَرَ ﴾نوپېژني په مخونو د هغوکسانوچي کافران شوي دي ( آثارد ) انکار(اوتریوتندي دناخوښي په سبب) ﴿يَكَادُونَ يَسْطُونَ بِالَّذِينَ يَتْلُونَ عَلَيْهِمْ آيَاتِنَا ﴾ نژدې وي چي حمله وکړي (له ډېره قهره ) په هغوکسانو (مؤمنانو) چي لولي په دوی باندي آیتونه (دقرآن) زموږ﴿ قُلْ أَفَأُنَبِّئُكُم بِشَرٍّ مِّن ذَٰلِكُمُ النَّارُ ﴾ ( ووایه( ای محمده دوی ته چي) آیاپس خبرکړم تاسي په ډېر بدله دې (قهره )ستاسي چي دغه اور (ددوزخ) دی) یعني دوی ته ووایه چي ستاسوتردې وېروني اوحملې چي تاسویې په مؤمنانو کوی زیات سخت اوبدځېزدرته وښیم چي هغه ددوزخ اور او عذاب دی ؟﴿وَعَدَهَا اللَّهُ الَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ وعده کړي ده (الله ) ددې اورله هغوکسانوسره چي کافران شوي دي﴿ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ﴾ اوخامخابدځای دبیرته ورتلودی (دااور) ددوزخ) ﴿ يَا أَيُّهَا النَّاسُ ضُرِبَ مَثَلٌ فَاسْتَمِعُوا لَهُ ﴾ ای خلکو بیان شوی دی تاسي ته یومثال (دهغه چاچي له الله پرته دبتانوعبادت کوي ) نوغوږکېږدئ تاسي هغه ته( اوسوچ پکي وکړئ چي دادی) ﴿ إِنَّ الَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِ اللَّهِ لَن يَخْلُقُوا ذُبَابًا وَلَوِ اجْتَمَعُوا لَهُ ﴾ بېشکه هغه بُتان چي تاسي یې عبادت کوی غیرله الله له سره نشي پیداکولای یومچ هم اوکه راټول شي داټول معبودان د هغه لپاره (چي پیدایې کړي وبه نشي کړای نو څرنګه به هوښیارداسي بُتانوعبادت وکړي اوپه الوهیت به یې غوره کړي ؟ قرطبي وایي چي مچ یې د دې لپاره ځانګړی کړ چي پکي څلورځېزونه شته دي یوسپکتیا ، بل ضعف، دریم چټلي او ناولتیا ، څلورم دهغوی ډېروالی اوکثرت نوکله چي هغه ترټولوضعیف اوحقیروي اوددوی معبودان یې په پیدا کولوتوان نلري آزار له ځانه دفع کولای نشي نوڅرنګه یې په معبودوالي مني؟

اوداهغه خورا كلك دليل او ښكاره حجت دى ([1]) ﴿ وَإِن يَسْلُبْهُمُ ٱلذُّبَابُ شَيْـًٔا لَّا يَسْتَنقِذُوهُ مِنْهُ ﴾ (اوكه چېري وتښتوي له دوى څخه مچ يوشى نونشي خلاصولاى دوى هغه شى له هغه مچ څخه) يعني كه چېري مچ له دغو بُتانوڅخه هغه خوشبويي چي دغه عابدان يې وروباندي مښي وتښتوي نو هيڅكله به يې بُتان ځني راونشي گرزولاى (!) ﴿ ضَعُفَ ٱلطَّالِبُ وَٱلْمَطْلُوبُ ﴾ نوكمزوري دى (داطالب (عابد) اودامطلوب (چي معبوددى)([2]) ﴿ مَا قَدَرُوا۟ ٱللَّهَ حَقَّ قَدْرِهِۦٓ ﴾ نه دى پېژندلى (دغوكفارو) اونه يې تعظيم كړى د الله په حق پېژندلواو تعظيم دده سره (چي بُتان يې له هغه سره شريكان گرزولي سره له دې چي دېر حقير دي څكه نوالله فرمايي: ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَقَوِىٌّ عَزِيزٌ ﴾ بېشكه الله خامخاښه قوي زورور دېرزبردست دى (چي هيڅوك وروباندي برلاسى كېداى نشي نودوى څرنگه زورور الله اودسپكتياخاوندعاجزه بُتان يوله بله سره برابرگني؟(!) ﴿ ٱللَّهُ يَصْطَفِى مِنَ ٱلْمَلَٰٓئِكَةِ رُسُلًا وَمِنَ ٱلنَّاسِ ﴾ الله غوره كوي له پرښتو څخه استازي (لپاره درسولودوحى خپلونبيانوته) اوله خلكوڅخه (هم بشري استازي ددين دشرائعو درسولولپاره غورچاڼ كوي په آيت شريف كي په هغه چاباندي رددى چي دوى وايي څرنگه پيغمبر بشرتاكل كېږي؟ ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌۢ بَصِيرٌ ﴾ بېشكه الله ښه اورېدونكى دى(داقوالو) ښه ليدونكى دى (دټولوافعالواوكړو وړو ﴿ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ ﴾ (پوهېږي (الله) په هغه څه چي ددوى دوړاندي دى اوپه هغه څه چي وروسته ددوى دى) يعني الله ددوى په پخوانيواعمالواوهغوچي وروسته يې كوي ښه پوهېږي ﴿ وَإِلَى ٱللَّهِ تُرْجَعُ ٱلْأُمُورُ ﴾ اوخاص دالله طرف ته بيرته گرزولى كېږي ټول كارونه (اوالله ورته جزاوركوي) ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱرْكَعُوا۟ وَٱسْجُدُوا۟ ﴾ اى هغو كسانو چي ايمان يې راوړى دى( اى مؤمنانو) ركوع كوئ تاسي اوسجده كوئ تاي(په لمانځه كي) او داچي له لمانځه څخه يې په ركوع اوسجده تعبيروفرمايوڅكه دايې اشرف ركنونه دي ﴿ وَٱعْبُدُوا۟ رَبَّكُمْ ﴾ اوكوئ عبادت درب ستاسي ﴿ وَٱفْعَلُوا۟ ٱلْخَيْرَ ﴾ اوكوئ نېک كارونه (لكه صله رحمي ,له يتيمانوسره ښه چلنداودشپې لمنځونه چي خلگ ويده وي) ﴿ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴾ ددې لپاره چي برى ومومي (دآخرت نعمتونه موپه برخه شي) ﴿ وَجَٰهِدُوا۟ فِى ٱللَّهِ حَقَّ جِهَادِهِۦ ﴾ اوزيار كوئ په (لاره دجهاد,طاعت ,رضا د) الله كي په حق دجهاددهغه سره (څوموطاقت اوتوان وي) ﴿ هُوَ ٱجْتَبَىٰكُمْ ﴾ دغه الله غوره كړي ياست تاسي( له مينځه دنوروأمتونودخپل دين دمرستي او نصرت لپاره اوتاسي يې ځانگړي كړئ په ښايسته پيغمبر اوترټولوكامل دين باندي) ﴿ وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِى ٱلدِّينِ مِنْ حَرَجٍ ﴾ اونه يې دى گرزولى ( نه يې دى ايښى)

---

([1]) القرطبي ١٢/ ٩٧

([2]) ابن عباس رضى الله عنه وايي طالب (بُت) اومطلوب (مچ) دى اوسدي وايي چي طالب عابداومطلوب بُت دى اودغه غوره دى اومورږ هم چاڼ كړى دى.

په تاسي په دين کي هيڅ حرج (او مشقت چي داسي څه يې درباندي بار کړی وي چي توان يې نلری بلکه حنيف او آسانه دين دی ځکه فرمايي: ﴿ مِّلَّةَ أَبِيكُمْ إِبْرَٰهِيمَ ﴾ دين د پلار ستاسو چي ابراهيم دی (ټينګ يې ونيسئ ځکه صاف سم دين دی لکه چي بل ځای فرمايي: ﴿ دِينًا قِيَمًا مِّلَّةَ إِبْرَٰهِيمَ حَنِيفًا ﴾ (الانعام ١٦١)

﴿ هُوَ سَمَّىٰكُمُ ٱلْمُسْلِمِينَ مِن قَبْلُ وَفِى هَٰذَا ﴾ دغه (الله ونومولی مسلمانان پخوا (١) له دغه قرآنه په نورو آسماني کتابونو کي او په دغه قرآن کي (اوله تاسو څخه يې اسلام خوښ کړ امام رازي وايي چي معنادا چي الله پاک په ګردو پخوانيو کتابونو او همداراز په قرآنکريم کي تاسو په نورو اُمتونو باندي بهتر او غوره ګڼلي او په دغه نامه يې نوملي ياست نو کله چي الله په داسي کرامت ونازولی نو د الله عبادت وکړئ او تکاليف يې له اوړو مه غورځوئ ﴿ لِيَكُونَ ٱلرَّسُولُ شَهِيدًا عَلَيْكُمْ وَتَكُونُوا۟ شُهَدَآءَ عَلَى ٱلنَّاسِ ﴾ لپاره ددې چي شي رسول (ستاسي) شاهد په تاسي (په رسولو د رسالت تاسو ته) او شئ تاسي شاهدان په نورو خلکو ﴿ فَأَقِيمُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتُوا۟ ٱلزَّكَوٰةَ ﴾ (نو قائموئ لمونځ او ورکوئ تاسي زکات) يعني کله چي الله تاسي ددغسي ستري پېرزويني جوګه کړی او دغه لوړه مرتبه يې درباندي ولوروله د دغه نعمت د شکر په باب لمونځونه کوئ او زکاتونه ورکوئ ﴿ وَٱعْتَصِمُوا۟ بِٱللَّهِ هُوَ مَوْلَىٰكُمْ ﴾ او ښه ټينګ ونيسئ تاسي دالله دين له (دغه الله څخه مرسته وغواړئ په ټولو چارو کي) ﴿ فَنِعْمَ ٱلْمَوْلَىٰ وَنِعْمَ ٱلنَّصِيرُ ﴾ دغه (الله) ښه مالک دی ستاسي او ښه مرسته کونکی دی (الله).

بلاغت: پدې آيتونو کي چي دبلاغت، بديع او بيان کومې ښکلاوي شته لنديزيې دادي:

١ - امتنان دالله په نعمتونو چي فرمايي: ﴿ أَلَمْ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ سَخَّرَ لَكُم مَّا فِى ٱلْأَرْضِ وَٱلْفُلْكَ تَجْرِى ﴾ او همداسي دلته هغه استفهام چي تقرير افاده کوي پکې دی.

٢ - طباق لکه چي: ﴿ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ ﴾.

٣ - دمبالغې صيغه چي فرمايي: ﴿ إِنَّ ٱلْإِنسَٰنَ لَكَفُورٌ ﴾ يعني زيات انکار کونکی دی.

۴ - هغه نهی چي مراد ورڅخه نفی وي لکه دا چي: ﴿ فَلَا يُنَٰزِعُنَّكَ ﴾ يعني حق څرګند او روښانه شو نه ښايي چي دوی له تا سره شخړه وکړي.

۵ - لطيفه استعاره چي الله تعالی فرمايي: ﴿ تَعْرِفُ فِى وُجُوهِ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ٱلْمُنكَرَ ﴾ يعني ته ددوی په څېرو کي ناخوښي وينې چي دوی دبدي اراده لري لکه چي څوک وايي مادفلاني په تندې کي د شر ښي وليدې.

---

(١) دغه دابن عباس وينا او ظاهره هم ده حسن رحمه الله وايي چي ضمير ابراهيم ته راجع دی خو دغه خبره مرجوح ده. والله اعلم

۶ - تمثیل چي خوراخوندوردی لکه چي پدې کلام کي: ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ لَن يَخْلُقُوا۟ ذُبَابًا ﴾ دلته يې کفارمتوجه کړل چي کوم عبادت چي دوی يې غيرالله ته کوي ددوی معبودان دومره ناوسه دي چي يومچ نشي پيداکولای زمخشري وايي چي د مثال په ترڅ کي يې خوندوره ښايسته په ادب پسوللي کېسه راوړه.

۷ - مرسل مجازچي: ﴿ ٱرْكَعُوا۟ وَٱسْجُدُوا۟ ﴾ دی اودجزء اطلاق يې په کل باندي کړی دی يعني لمنځونه کوئ مگريوازي رکوع سجود يې دلمانځه ارکان يادکړل.

۸ - دعام يادونه وروسته له خاص څخه چي عموم افاده کړي اودخاص په هکله پاملرنه راشي لکه ﴿ ٱرْكَعُوا۟ وَٱسْجُدُوا۟ وَٱعْبُدُوا۟ رَبَّكُمْ وَٱفْعَلُوا۟ ٱلْخَيْرَ ﴾ چي لومړی يې خاص ذکرکړبيا عام او وروسته يې أعم راووړ.

دالله جل جلاله په مرسته دالحج سورت تفسيربشپړشو.

***

## دالمؤمنون سورت مکي اويوسل اتلس آيتونه لري .

دسورت په وړاندي :

دالمؤمنون سورت له مکي سورتونوڅخه يودی اودهغه په شان له عقيدوي موضوعاتولکه توحيد ، رسالت اوبعث څخه غږيږي پدغه مبارک نامه ځکه ونومول شوترڅوددغومؤمنانوتلپاتي خاطره اوددوی دغوره فضائلواوکرامتونوچي دهغوپه سبب په جنات النعيم کي داعلی فردوس وړ او مستحق گرزيدلی يادونه وکړي .

*په سورت کي دالله تعالی دقدرت او وحدانيت بېلگي چي ددغه عجيبه کائناتوپه وجودکي انځورشوي ښودل کيږي، په انساني وجود ، حيواني وجودنباتي وجوداوبيادغواسمانونوپه پيداښت کي چي دلاروليکوخاوندان دي اونورهغه چي بنيادم يې په دغه عالم کي گوري لکه خرما ، انگور ،زيتون ،اناراونورې ډيرې ميوې اودبيرېوپه شتون کي هغه چي خورالويې لويې او د سيندپه اوبوکي په غرمبهارڅي اونورډيردلائل چي دالله تبارک وتعالی په وجود دلالت کوي راغلي دي .

* همداسي په سورت کي دځيني انبياوو عليهم السلام کيسې درسول الله صلي الله عليه وسلم دډاډيني لپاره راغلی ځکه چي هغه ته دمشرکانوله لوري ډيرکړاونه ورکول شوی وو نولومړی دنوح (عليه السلام) بيا دهود(عليه السلام) وروسته دموسی(عليه السلام) او وروسته دمريمې (رضی الله عنها ) اودهغې دزوی عيسی(عليه السلام ) کيسه اوروړل کيږي.

* وروسته دمکي کفاروته هغه چي زيات سرغړونکي وواوله حق سره به يې تل جگړه وه سره له دي چي دبعثت په هکله ښکاره دلائل اوکوټلي براهين وړاندي شول خوبياهم دوی نه منل اخطاراوتهديد ورکول کيږي اوداگواکي هغه محوردی چي سورت وړباندي راڅرخی اوپه ښکلي بيان يې دباطل ملاماته کړې ده .

*سورت هله بیاهغه سختې اوهیبتونکې پېښې راوړ ي کومې چې دځنکندن په وخت کې کفار ورسره لاس اوګریوان وي دوی داوخت ددې هیله کوي چې بیرته دنیاته ستانه شی اودخپلوبدو اعمالوتدارک وکړي خوافسوس چې دغه وخت یې له لاسه وتلی اوهیلې یې ناشونې دي په پای کې سورت دقیامت ورځ بیانوي کله چې خلک په د وو ډلوویشل کیږي دنیکمرغه اوبدمرغه هلته بیادحسب اونسب پوښتنه نشته له ایمان اونېه عمل څخه پرته بل څه ګټه نه لري همداسي دالله تعالی دجبارذات او د دوزخیانوترمینځ خبرې اترې راوړي چې دوی ته نه ځواب ور ګرزول کیږي اونه یې مرسته کیږي .

***

الله تعالی فرمایې:

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿قَدۡ أَفۡلَحَ ٱلۡمُؤۡمِنُونَ ﴿١﴾ ٱلَّذِينَ هُمۡ فِي صَلَاتِهِمۡ خَٰشِعُونَ ﴿٢﴾ وَٱلَّذِينَ هُمۡ عَنِ ٱللَّغۡوِ مُعۡرِضُونَ ﴿٣﴾ وَٱلَّذِينَ هُمۡ لِلزَّكَوٰةِ فَٰعِلُونَ ﴿٤﴾ وَٱلَّذِينَ هُمۡ لِفُرُوجِهِمۡ حَٰفِظُونَ ﴿٥﴾ إِلَّا عَلَىٰٓ أَزۡوَٰجِهِمۡ أَوۡ مَا مَلَكَتۡ أَيۡمَٰنُهُمۡ فَإِنَّهُمۡ غَيۡرُ مَلُومِينَ ﴿٦﴾ فَمَنِ ٱبۡتَغَىٰ وَرَآءَ ذَٰلِكَ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡعَادُونَ ﴿٧﴾ وَٱلَّذِينَ هُمۡ لِأَمَٰنَٰتِهِمۡ وَعَهۡدِهِمۡ رَٰعُونَ ﴿٨﴾ وَٱلَّذِينَ هُمۡ عَلَىٰ صَلَوَٰتِهِمۡ يُحَافِظُونَ ﴿٩﴾ أُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡوَٰرِثُونَ ﴿١٠﴾ ٱلَّذِينَ يَرِثُونَ ٱلۡفِرۡدَوۡسَ هُمۡ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴿١١﴾ وَلَقَدۡ خَلَقۡنَا ٱلۡإِنسَٰنَ مِن سُلَٰلَةٖ مِّن طِينٖ ﴿١٢﴾ ثُمَّ جَعَلۡنَٰهُ نُطۡفَةٗ فِي قَرَارٖ مَّكِينٖ ﴿١٣﴾ ثُمَّ خَلَقۡنَا ٱلنُّطۡفَةَ عَلَقَةٗ فَخَلَقۡنَا ٱلۡعَلَقَةَ مُضۡغَةٗ فَخَلَقۡنَا ٱلۡمُضۡغَةَ عِظَٰمٗا فَكَسَوۡنَا ٱلۡعِظَٰمَ لَحۡمٗا ثُمَّ أَنشَأۡنَٰهُ خَلۡقًا ءَاخَرَۚ فَتَبَارَكَ ٱللَّهُ أَحۡسَنُ ٱلۡخَٰلِقِينَ ﴿١٤﴾ ثُمَّ إِنَّكُم بَعۡدَ ذَٰلِكَ لَمَيِّتُونَ ﴿١٥﴾ ثُمَّ إِنَّكُمۡ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ تُبۡعَثُونَ ﴿١٦﴾ وَلَقَدۡ خَلَقۡنَا فَوۡقَكُمۡ سَبۡعَ طَرَآئِقَ وَمَا كُنَّا عَنِ ٱلۡخَلۡقِ غَٰفِلِينَ ﴿١٧﴾ وَأَنزَلۡنَا مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءَۢ بِقَدَرٖ فَأَسۡكَنَّٰهُ فِي ٱلۡأَرۡضِۖ وَإِنَّا عَلَىٰ ذَهَابِۭ بِهِۦ لَقَٰدِرُونَ ﴿١٨﴾ فَأَنشَأۡنَا لَكُم بِهِۦ جَنَّٰتٖ مِّن نَّخِيلٖ وَأَعۡنَٰبٖ لَّكُمۡ فِيهَا فَوَٰكِهُ كَثِيرَةٞ وَمِنۡهَا تَأۡكُلُونَ ﴿١٩﴾ وَشَجَرَةٗ تَخۡرُجُ مِن طُورِ سَيۡنَآءَ تَنۢبُتُ بِٱلدُّهۡنِ وَصِبۡغٖ لِّلۡأٓكِلِينَ ﴿٢٠﴾ وَإِنَّ لَكُمۡ فِي ٱلۡأَنۡعَٰمِ لَعِبۡرَةٗۖ نُّسۡقِيكُم مِّمَّا فِي بُطُونِهَا وَلَكُمۡ فِيهَا مَنَٰفِعُ كَثِيرَةٞ وَمِنۡهَا تَأۡكُلُونَ ﴿٢١﴾ وَعَلَيۡهَا وَعَلَى ٱلۡفُلۡكِ تُحۡمَلُونَ ﴿٢٢﴾﴾ المؤمنون: ۱ - ۲۲

لغتونه:

(سلاله)چاڼ اوخلاصی ته ویل کیږی لکه چې وایې (سللت الشعرمن العجين)یعني له لمدو اوړوڅخه مې وېښته راوایستل ګواکې له (سلّ)څخه مشتق او استخراج یې معناده اوهمداسې کله چې توره له تیکې راوایستل شی یعني خلک ټول له خالصې ختې چې بوی لرونکې ده پیداشوي دي او همدغې ختې ته ګردبیرته ورګرځی اوهمداسې ویل کیږي (الولدسلالة ابيه)ځکه هغه یې له ملاڅخه را وتلی دی (مکين)ثابت او راسخ ته وایې کله چې په ځای ټینګ اومضبوط وي (طرائق)دطریقې جمع او مراد له دې څخه اوه اسمانونه دي ځکه یې طرائق بولی چې ځینې په ځینونورو وهل شوي دي لکه چې (طارق النعل ) هلته چې یویې په بل دپاسه وي(صبغ) کتغ اونګولی اواصل یې له صباغ څخه هغه چې جامې ورباندې رنګول

کیږي اخیستل شوی دی هروي وايې هرکتغ ته چي مړی وربانديي مروړل کيږي صبغ ویلای شی (الانعام) هغه څلوربول حیوانات چي غوښې يې دخوړلو وړوی لکه اوښ، غوايې، او پسونه ،گډي .

تفسير:

﴿ قَدْ أَفْلَحَ ٱلْمُؤْمِنُونَ ﴾ په تحقیق مؤمنان بریالی شوي دي (هغه کسان چي پدي صفتونو متصف دي) قددتحقیق لپاره راځی لکه چي وايې په تحقیق سره خامخامؤمنان بهرمنده شوي دي په سبب دايمان اونیک عمل ،ورپسي بې الله تعالی صفتونه گڼی فرمايي ﴿ ٱلَّذِينَ هُمْ فِي صَلَاتِهِمْ خَٰشِعُونَ ﴾ هغه (مؤمنان) چي دوی پخپلولمونځونوکي عاجزی کونکي ، ویر ډدونکي اوله وېري آرام په لمانځه کي درېدونکي وي دالله جلاله عظمت اوجلال يې په زړونوکي هيبت وراچولی وي . ﴿ وَٱلَّذِينَ هُمْ عَنِ ٱللَّغْوِ مُعْرِضُونَ ﴾ اوهغه کسان بهره من شول چي دوی له ناکاره وينااو ښکنځلو ، دروغو اوچټياتو څخه مخ گرزيدونکي دي ابن کثيروايې چي (لغو) باطل ته ويل کېږي اوهغه شرک اوټولو گناهونو ته شامل دي اوهغه شيان هم پکي راځی چي گټه نلري (١)﴿ وَٱلَّذِينَ هُمْ لِلزَّكَوٰةِ فَٰعِلُونَ ﴾ اوهغه کسان بريالی دي چي دوی (تل) دزکات اداکونکي وي (فقيرانو بيوزلوته يې په خپله خوښه دالله درضالپاره ورکوي ﴿ وَٱلَّذِينَ هُمْ لِفُرُوجِهِمْ حَٰفِظُونَ ﴾ اوهغه کسان دي چي دوی خپلوفرجونولره ساتونکي دي دغه څلورم صفت دی چي دوی خپل فرجونه له زنا ، لواطت اوبربندولو(لوڅولو )څخه ژغوري ﴿ إِلَّا عَلَىٰٓ أَزْوَٰجِهِمْ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَٰنُهُمْ فَإِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُومِينَ ﴾ مگرپرښځوخپلو(او ) ياپر هغووينځو خپلوچي ددوی ښی لاسونه يې مالکان شوی دي پس بيشکه دوی نه دی ملامت کړی شوی (په ورتلوسره هغوی ته) ﴿ فَمَنِ ٱبْتَغَىٰ وَرَآءَ ذَٰلِكَ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْعَادُونَ ﴾ پس هغه څوک چي وغواړي (دفع شهوت )غيرله (دغوزوجاتو او وينځو )نه پس دغه کسان هم دوی دي تجاوزکونکي (له حده په فساداوسرغړونه کي ﴿ وَٱلَّذِينَ هُمْ لِأَمَٰنَٰتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رَٰعُونَ ﴾ اوهغه کسان (بهره مند شول) چي دوی رعايت کونکي دي خپلوامانتونواوعهدونوته (چي پکي خيانت نکوي اونه وعدې ماتوي ابوحيان وايې چي مرادټول امانات دي اوپدي کي دالله تعالی امانتونه هم راځی چي الله پاک بندگان له قول اوفعل څخه وربانديي امناء ټاکلي دي اوهغه دانسانانو ودائع اوامانتونه هم (٢)چي ددوی ترخپل مينځ دی . ﴿ وَٱلَّذِينَ هُمْ عَلَىٰ صَلَوَٰتِهِمْ يُحَافِظُونَ ﴾ اوهغه کسان (هم بهرمن شول چي)دوی هميشه پرخپلو لمنځونوساتنه کوي (پخپل وخت کي يې اداکوي)اودغه شپږم وصف دی په التسهيل کي وايې چي څرنگه يې دلمانځه يادونه په سراوپای کي وکړه ؟ ځواب داچي دلته هيڅ ډول تکرارنشته ځکه په لمړی لمانځه کي يې دخشوع يادونه وکړه اودلته

(١) مختصرابن کثير ٢ / ٥٥٩
(٢) البحر ٦ / ٣٩٧

بې بيا دساتنې نو دوی دواړه ګواکې سره مختلف دي (¹) ﴿ أُولَٰئِكَ هُمُ الْوَارِثُونَ ﴾ همدغه دوی دي وارثان (لائقان دجنت) ﴿ الَّذِينَ يَرِثُونَ الْفِرْدَوْسَ ﴾ هغه چې ميراث به اخلي (مجانا اعلی جنت) فردوس (هغه چې دجنت بيالې له هغه څخه راوزي په حديث شريف کې راځي کله چې له الله څخه جنت غواړی نود(اعلی) فردوس غوښتنه يې وکړئ ځکه هغه خوراښکلی اودجنت لوړځای دی اودجنت وياله همدغه څخه راوزي (²) ﴿ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴾ دوی به په دغه جنت کې تل پاته کيدونکي وي. هيڅ لوري ته به نه بيول کيږي بيا الله تعالی په خپل قدرت او وحدانيت دلائل راوړي فرمايي: ﴿ وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ مِن سُلَالَةٍ مِّن طِينٍ ﴾ اوقسم دي خامخا په تحقيق پيدا کړي دي موږ انسان له خالصې صافې خټې څخه ابن عباس (رضی الله عنه) وايې چې دغه پخپله آدم نبيی ځکه چې هغه له خټې څخه جوړشوی اوراايستل شوی دی ﴿ ثُمَّ جَعَلْنَاهُ نُطْفَةً ﴾ بيا وګرزاوو موږ دغه آدم نطفه (چې د نارينه وو له شاګانو راوزي) ﴿ فِي قَرَارٍ مَّكِينٍ ﴾ په يوه قرارګاه محکم کې (چې رحم دی) ﴿ ثُمَّ خَلَقْنَا النُّطْفَةَ عَلَقَةً ﴾ بيا وګرزوله موږ دا نطفه ټوټه دوينو ﴿ فَخَلَقْنَا الْعَلَقَةَ مُضْغَةً ﴾ بيا وګرزوله موږ دا ټوټه سرښناکه يوه وړه بوټي غوښه (لکه غوښه غوندي چې نه پکې شکل صورت نيولی اونه هم پکې کوم پلان ترل شوی وو ﴿ فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ عِظَامًا ﴾ بيا وګرزوله موږ دغه وړه بوټي هډوکي (کلک چې دبدن لپاره ستنې شي) ﴿ فَكَسَوْنَا الْعِظَامَ لَحْمًا ثُمَّ أَنشَأْنَاهُ خَلْقًا آخَرَ ﴾ بيا ورواغوستله موږ دي هډوکو ته غوښه بيا مو (ژوندی) پيدا کړ دی په بل پيدايښت سره (په احسن تقويم ډول امام رازي وايې معناداچې دغه پيدايښت برعکس د لومړي پيدايښت دی چې لومړی جماداوبيا انسان شو اوناطق جوړشو کله چې پخوا ګونګی وو، اوريدونکی جوړشو چې ترله مخه کوڼ وو، ليدونکی جوړشو چې پخوا به ړوندوو اوپه هرغړي او اندام کې الله دفطرت عجائب خوندي کړل اودحکمت غرائب يې پکې پيدا کړل چې دصفت کونکو وس دلته ناوسه دی ﴿ فَتَبَارَكَ اللَّهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ ﴾ بس ډيرلوی دی دالله شان هغه ذات چې ډيرښه پيدا کونکی دی (له ټولو پيداکونکو څخه) ﴿ ثُمَّ إِنَّكُم بَعْدَ ذَٰلِكَ لَمَيِّتُونَ ﴾ بيا بيشکه تاسي پس له دي ژوندي کولو دستاسي خامخا مړه کيدونکي يې ﴿ ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ تُبْعَثُونَ ﴾ بيا بيشکه تاسي به په ورځې د قيامت کې بيا راپاڅول شي (دحساب اوجزا لپاره) کله چې الله تعالی دانساني خلقت مختلف پړاونه وښودل اودهغه پيل اوپای يې څرګند کړنو ورپسې يې دآسمانونو اوځمکو يادونه وفرمايله ترڅو دالله (جل جلاله) په وجود باندي کوټلې دليل پيداشي ويې ويل: ﴿ وَلَقَدْ خَلَقْنَا فَوْقَكُمْ سَبْعَ طَرَائِقَ ﴾ اوخامخا په تحقيق پيدا کړي دی

---

(¹) التسهيل ۳ / ۴۹

(²) أخرجه مسلم.

موږ پاس په سر د تاسي اوه لیارې (اسمانونه) څکه یې ورته طرائق وویل چې ځیني یې د ځینو د پاسه دی ﴿ وَمَا كُنَّا عَنِ ٱلْخَلْقِ غَٰفِلِينَ ﴾ او نه یو موږ له خلقو څخه بې خبره (بلکه هغوی ساتو او د چارو تدبیریې کوو ﴿ وَأَنزَلْنَا مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءًۢ بِقَدَرٍ ﴾ او نازلې کړي دي موږ له (طرفه) د آسمانه اوبه په اندازه د اړتیا نه زیاتې چې څکه ورانه کړي او نه لږ چې د میوو غلو کفایت (بسنه) نه کوي ﴿ فَأَسْكَنَّٰهُ فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ وو مو درولی دغه اوبه په ځمکه کي ترڅو د ضرورت په وخت کي ور څخه ګټه واخلی ﴿ وَإِنَّا عَلَىٰ ذَهَابٍۭ بِهِۦ لَقَٰدِرُونَ ﴾ او بیشکه موږ په ورک کولو بیولو د دي (اوبو) هرو مرو قادر یو (دغه وعید او تهدید دی یعني موږ دد غو اوبو په ځمکه کي په بیخي لاندي بیولو هم قادر یو چې بیا به تاسو او ستاسي څاروي له تندي هلاک شي ابن کثیر رحمه الله وایې معنادا چې که موږ وغواړو دا اوبه به له ځمکي دو مره تل ته دننه کړو چې تاسو ورته نشي رسیدلای او وربانديګټه نشوای اخیستلای خوالله په خپل بشپړ لطف او مهرباني اوربښت له وریځی څخه د خوږو اوخوندور و اوبو وکړاوبیابیې په ځمکه کي خوندي کړي چې وروسته د چینو په شکل له ځمکي راوزي او رودونه (نهرونه) بهیږي غلې داني اوبوي اوهم دا رنګه تاسو او ستاسي څلوربول او څاروي یې څښي ([1]) ﴿ فَأَنشَأْنَا لَكُم بِهِۦ جَنَّٰتٍ مِّن نَّخِيلٍ وَأَعْنَٰبٍ ﴾ پس بیا موږ تاسي ته پیدا کړی پیدا کړی دي پدې او بو سره رنګارنګ باغونه له خرماوو له انګورو ﴿ لَّكُمْ فِيهَا فَوَٰكِهُ كَثِيرَةٌ وَمِنْهَا تَأْكُلُونَ ﴾ چې شته تاسي ته پدې باغونو کي میوې ډیري او له دي (باغونو) څخه تاسي (میوې) خوری د ژمي دوبي لکه وچې لمدې (کشمش انګور) لمدې خرماوې (رطب) اووچې خرماوې (تمر) اودا چې انګوراو خرماوې بې ځانګړې کړل څکه چې پکي ډېرې ګټې دي دغه دواړه د ډوډۍ اوکتغ دواړو پرځای د ریږی او وچې لمدې یې دفاکهې لپاره استعمالولای شي همدغه د عربو تر ټولو زیاته فاکهه تشکیلوی ﴿ وَشَجَرَةً تَخْرُجُ مِن طُورِ سَيْنَآءَ ﴾ او (بل پیدا مو کړه هغه) ونه چې وزی له (غره د) طور سینا څخه) یعني د زیتون ونه چې د طور د غره خواو شا هغه چې الله جل جلاله په هغه غره باندي له موسی علیه السلام سره خبرې اترې کړي وې زرغونیږي ﴿ تَنۢبُتُ بِٱلدُّهْنِ وَصِبْغٍ لِّلْءَاكِلِينَ ﴾ زرغونیږی له غوړو سره اوله انګولی (سالن) سره لپاره د خوړونکیو یعني غوړی راوړي هغه چې ستر ې ګټې پکي دي اوکتغ دي څکه یې صبغ وبلله کله چې ډوډۍ پکي ومږورل شي کتغ هم مړی رنګوي الله پاک پدې ونه کي دوه نعمتونه یوځای کړي یو غوړي بل انګولي په یو حدیث شریف کي راځی چې تیل (غوړی) یې خورئ او ځان ورباند غوړ وئ چې دغه مبارکه ونه ده ([2]) ﴿ وَإِنَّ لَكُمْ فِى ٱلْأَنْعَٰمِ لَعِبْرَةً ﴾ او بیشکه تاسي ته په څارویو کي خامخا عبرت دی یعني په اوښو، غواوو او میږو کي ستر پند دی ښایي چې ځني عبرت واخلي . ﴿ نُّسْقِيكُم مِّمَّا فِى بُطُونِهَا ﴾ چې څښوو موږ تاسي ته له هغو پیو نه چې په ګېډو دوی کي دی (خوږې شیدی د څښونکو لپاره هغه چې

---

([1]) مختصر ابن کثیر ۲ / ۵۲۳

([2]) أخرجه احمد

دوينواوخوشايوله مينځه يې راوباسو) ﴿ وَلَكُمۡ فِيهَا مَنَٰفِعُ ﴾ او شته تاسي ته په غوښاورويوکې ګټې (فائدې) ډېرې ،شيدې يې څښئ له وړيوېې جامې جوړوى اواوغوندى يې ، ورباندې سپرېږئ اودرانه بارونه ورباند باروى ﴿ وَمِنۡهَا تَأۡكُلُونَ ﴾ اوله دوى څخه تاسي خورى غوښې ﴿ وَعَلَيۡهَا وَعَلَى ٱلۡفُلۡكِ تُحۡمَلُونَ ﴾ اوپردغو(څاروو)اوپربېړيوباندې تاسي باروَلى شئ)يعني تاسي پراوښانوپه وچه اوصحرا کې داسې باروَل کېږئ لکه چي په سمندرکې په بېړيوباندې څکه اوښان دوچې (بر) بېړۍ دى لکه چي بېړۍ د بحرکې دروَمى همداسې دوى په صحراکې چلېږي .

بلاغت:

په آيتونو کې دبديع اوبيان ښکلاوې شته چي لنډيز يې د ادى :

۱:دماضى په صيغه سره اخبارکول چي ثبوت اوتحقيق وښيي لکه چي فرمايي ﴿ قَدۡ أَفۡلَحَ ٱلۡمُؤۡمِنُونَ ﴾ اوهمداسي د(قد )کلمه دتحقيق دافادې لپاره ده .

۲-تفصيل له اجماله ورسته چي فرمايي ﴿ ٱلَّذِينَ هُمۡ فِي صَلَاتِهِمۡ خَٰشِعُونَ وَٱلَّذِينَ هُمۡ عَنِ ٱللَّغۡوِ مُعۡرِضُونَ ﴾.

۳:ناانکاره ځيزدانکاري پرځاى راوړل لکه چي ﴿ ثُمَّ إِنَّكُم بَعۡدَ ذَٰلِكَ لَمَيِّتُونَ ﴾ خلک خوله مرګه هيڅ وخت انکارنه کوي خوددوى غفلت اوبى خبري اوداچي دمرګ لپاره يې تيارى نه وي نيولى دا دواړه دانکارله نښو څخه ښکاريږي څکه يې نودانکارپرځاى ودرول اورايى وړل .

۴ :لطيفه استعاره چي فرمايي ﴿ سَبۡعَ طَرَآئِقَ ﴾ اوه آسمانونه يې دڅپليوله مخ سره مشابه کړى هغه چي ځيني يې په ځينود پاسه وي اودغه استعاره ده.

۵ : تهديد چي فرمايي ﴿ وَإِنَّا عَلَىٰ ذَهَابِۭ بِهِۦ لَقَٰدِرُونَ ﴾.

۶ :غيرتکليفى سجع چي فرمايي ﴿ خَٰشِعُونَ ....حَٰفِظُونَ ....ٱلۡعَادُونَ ﴾ آن ترديې پورې چي ﴿ طِينٖ ....مَّكِينٖ....ٱلۡخَٰلِقِينَ ﴾ چي ټول دغه بديعي محسنات دى .

تنبيه:

الله تعالى پدى مباکوآيتونوکي چي له ﴿ وَلَقَدۡ خَلَقۡنَا ٱلۡإِنسَٰنَ ﴾ څخه نيولى بياتر ﴿ وَعَلَى ٱلۡفُلۡكِ تُحۡمَلُونَ ﴾ پورې دخپل قدرت دڅلورډوله نعمتونويادونه کړې ده لومړى داچي دانسان دپيدايښت نه ګونى (۹) مرحلې يې ښودلې چي وروستنى يې بعث بعدالموت دى دوهم داوو آسمانونوخلقت دريم له آسمانه دباران اورښت څلورم له حيواناتوڅخه ګټې ترلاسه کول چي دلته يې څلورګټې په ګوته کړې په شيدوګټه اخيستل په وړيوپه غوښه اوسپريدلوباندې له هغوى څخه منفعتونه خپلول .

فائده او ګټه:

امام احمدله عمربن الخطاب (ﷺ) عنه نه روایت کوي چي هغه وویل کله چي به په رسول الله ﷺ وحی نازلیدله دهغه په وړاندي به لکه دمچیو دګنه ګونې غوندي اوازاوریدل کیدونویوه ورځ موږسره یوه ګړی ورسره ووچي دقبلې لوري ته مخامخ شولاسونه یې اوچت کړل اوداسي یې وویل: (اللهم زدنا ولاتنقصنا واکرمنا ولاتهننا واعطنا ولاتحرمنا وآثرنا ولاتؤثر علینا وارضنا وارض عنا )اوبیایې وویل په تحقیق سره خامخا په ماباندي لس آیتونه نازل شول هرڅوک چي یې پرځای کړي جنت ته به یې ورولی او بیایې لوستل پیل کړل چي ﴿ قَدۡ أَفۡلَحَ ٱلۡمُؤۡمِنُونَ ﴾ ترڅویې لس سره بشپړ کړل[1]

الله تعالی فرمایي:

﴿ وَلَقَدۡ أَرۡسَلۡنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوۡمِهِۦ فَقَالَ يَٰقَوۡمِ ٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ مَا لَكُم مِّنۡ إِلَٰهٍ غَيۡرُهُۥٓۚ أَفَلَا تَتَّقُونَ ﴿٢٣﴾ فَقَالَ ٱلۡمَلَؤُاْ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ مِن قَوۡمِهِۦ مَا هَٰذَآ إِلَّا بَشَرٞ مِّثۡلُكُمۡ يُرِيدُ أَن يَتَفَضَّلَ عَلَيۡكُمۡ وَلَوۡ شَآءَ ٱللَّهُ لَأَنزَلَ مَلَٰٓئِكَةٗ مَّا سَمِعۡنَا بِهَٰذَا فِيٓ ءَابَآئِنَا ٱلۡأَوَّلِينَ ﴿٢٤﴾ إِنۡ هُوَ إِلَّا رَجُلُۢ بِهِۦ جِنَّةٞ فَتَرَبَّصُواْ بِهِۦ حَتَّىٰ حِينٖ ﴿٢٥﴾ قَالَ رَبِّ ٱنصُرۡنِي بِمَا كَذَّبُونِ ﴿٢٦﴾ فَأَوۡحَيۡنَآ إِلَيۡهِ أَنِ ٱصۡنَعِ ٱلۡفُلۡكَ بِأَعۡيُنِنَا وَوَحۡيِنَا فَإِذَا جَآءَ أَمۡرُنَا وَفَارَ ٱلتَّنُّورُ فَٱسۡلُكۡ فِيهَا مِن كُلّٖ زَوۡجَيۡنِ ٱثۡنَيۡنِ وَأَهۡلَكَ إِلَّا مَن سَبَقَ عَلَيۡهِ ٱلۡقَوۡلُ مِنۡهُمۡۖ وَلَا تُخَٰطِبۡنِي فِي ٱلَّذِينَ ظَلَمُوٓاْ إِنَّهُم مُّغۡرَقُونَ ﴿٢٧﴾ فَإِذَا ٱسۡتَوَيۡتَ أَنتَ وَمَن مَّعَكَ عَلَى ٱلۡفُلۡكِ فَقُلِ ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ ٱلَّذِي نَجَّىٰنَا مِنَ ٱلۡقَوۡمِ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٢٨﴾ وَقُل رَّبِّ أَنزِلۡنِي مُنزَلٗا مُّبَارَكٗا وَأَنتَ خَيۡرُ ٱلۡمُنزِلِينَ ﴿٢٩﴾ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأٓيَٰتٖ وَإِن كُنَّا لَمُبۡتَلِينَ ﴿٣٠﴾ ثُمَّ أَنشَأۡنَا مِنۢ بَعۡدِهِمۡ قَرۡنًا ءَاخَرِينَ ﴿٣١﴾ فَأَرۡسَلۡنَا فِيهِمۡ رَسُولٗا مِّنۡهُمۡ أَنِ ٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ مَا لَكُم مِّنۡ إِلَٰهٍ غَيۡرُهُۥٓۚ أَفَلَا تَتَّقُونَ ﴿٣٢﴾ وَقَالَ ٱلۡمَلَأُ مِن قَوۡمِهِ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ وَكَذَّبُواْ بِلِقَآءِ ٱلۡأٓخِرَةِ وَأَتۡرَفۡنَٰهُمۡ فِي ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا مَا هَٰذَآ إِلَّا بَشَرٞ مِّثۡلُكُمۡ يَأۡكُلُ مِمَّا تَأۡكُلُونَ مِنۡهُ وَيَشۡرَبُ مِمَّا تَشۡرَبُونَ ﴿٣٣﴾ وَلَئِنۡ أَطَعۡتُم بَشَرٗا مِّثۡلَكُمۡ إِنَّكُمۡ إِذٗا لَّخَٰسِرُونَ ﴿٣٤﴾ أَيَعِدُكُمۡ أَنَّكُمۡ إِذَا مِتُّمۡ وَكُنتُمۡ تُرَابٗا وَعِظَٰمًا أَنَّكُم مُّخۡرَجُونَ ﴿٣٥﴾ ۞ هَيۡهَاتَ هَيۡهَاتَ لِمَا تُوعَدُونَ ﴿٣٦﴾ إِنۡ هِيَ إِلَّا حَيَاتُنَا ٱلدُّنۡيَا نَمُوتُ وَنَحۡيَا وَمَا نَحۡنُ بِمَبۡعُوثِينَ ﴿٣٧﴾ إِنۡ هُوَ إِلَّا رَجُلٌ ٱفۡتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبٗا وَمَا نَحۡنُ لَهُۥ بِمُؤۡمِنِينَ ﴿٣٨﴾ قَالَ رَبِّ ٱنصُرۡنِي بِمَا كَذَّبُونِ ﴿٣٩﴾ قَالَ عَمَّا قَلِيلٖ لَّيُصۡبِحُنَّ نَٰدِمِينَ ﴿٤٠﴾ فَأَخَذَتۡهُمُ ٱلصَّيۡحَةُ بِٱلۡحَقِّ فَجَعَلۡنَٰهُمۡ غُثَآءٗۚ فَبُعۡدٗا لِّلۡقَوۡمِ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٤١﴾ ثُمَّ أَنشَأۡنَا مِنۢ بَعۡدِهِمۡ قُرُونًا ءَاخَرِينَ ﴿٤٢﴾ مَا تَسۡبِقُ مِنۡ أُمَّةٍ أَجَلَهَا وَمَا يَسۡتَـٔۡخِرُونَ ﴿٤٣﴾ ثُمَّ أَرۡسَلۡنَا رُسُلَنَا تَتۡرَاۖ كُلَّ مَا جَآءَ أُمَّةٗ رَّسُولُهَا كَذَّبُوهُۖ فَأَتۡبَعۡنَا بَعۡضَهُم بَعۡضٗا وَجَعَلۡنَٰهُمۡ أَحَادِيثَۚ فَبُعۡدٗا لِّقَوۡمٖ لَّا يُؤۡمِنُونَ ﴿٤٤﴾ ثُمَّ أَرۡسَلۡنَا مُوسَىٰ وَأَخَاهُ هَٰرُونَ بِـَٔايَٰتِنَا وَسُلۡطَٰنٖ مُّبِينٍ ﴿٤٥﴾ إِلَىٰ فِرۡعَوۡنَ وَمَلَإِيْهِۦ فَٱسۡتَكۡبَرُواْ وَكَانُواْ قَوۡمًا عَالِينَ ﴿٤٦﴾ فَقَالُوٓاْ أَنُؤۡمِنُ لِبَشَرَيۡنِ مِثۡلِنَا وَقَوۡمُهُمَا لَنَا عَٰبِدُونَ ﴿٤٧﴾ فَكَذَّبُوهُمَا فَكَانُواْ مِنَ ٱلۡمُهۡلَكِينَ ﴿٤٨﴾ وَلَقَدۡ ءَاتَيۡنَا مُوسَى ٱلۡكِتَٰبَ لَعَلَّهُمۡ يَهۡتَدُونَ

[1] اخرجه احمدوالترمذی والنسائی

﴿ وَجَعَلْنَا ابْنَ مَرْيَمَ وَأُمَّهُۥٓ ءَايَةً وَءَاوَيْنَٰهُمَآ إِلَىٰ رَبْوَةٍ ذَاتِ قَرَارٍ وَمَعِينٍ ۝٥٠ يَٰٓأَيُّهَا ٱلرُّسُلُ كُلُوا۟ مِنَ ٱلطَّيِّبَٰتِ وَٱعْمَلُوا۟ صَٰلِحًا ۖ إِنِّى بِمَا تَعْمَلُونَ عَلِيمٌ ۝٥١ وَإِنَّ هَٰذِهِۦٓ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَٰحِدَةً وَأَنَا۠ رَبُّكُمْ فَٱتَّقُونِ ۝٥٢ ﴾ المؤمنون: ٢٣ - ٥٢

مناسبت او تړاو :

کله چي الله تعالی د توحید دلائل دانسان ،حیوان،نبات،آسمان او ځمکي په پیدا ښت کي وښودل او په خپلو بندگانو یې نعمتونه وشمیرل نو دلته یې د مکي د کفارو لپاره د پخوانیو دروغجن کونکو امتونو مثالونه راوړل چي هغوی ته څه ډول عذابونه ورپیښ شوي وو لومړی یې د نوح علیه السلام کیسه ورپسي د هود علیه السلام او بیا د موسی علیه السلام او فرعون له هغه وروسته د عیسی بن مریم علیه السلام کیسه راوړه چي پدي گردو کي د دروغجن کونکو (مکذبینو) لپاره پندونه او نصیحتونه شته .

لغتونه:

(جِنة) په کسره سره لیونتوب ته وایي(فتربصوا) تربص انتظار ته وایي معنا پس انتظار وکړئ(مبتلین) ازموینښت کونکي (هیهات) دغه اسم فعل او د(بَعُدَ) په معنا دی.(غثآء) هغه واښه چي وچ شی او(غثاء السیل ) هغه خس او خاشاک ته وایي چي سیلاب یې داوبو په سر راوړي(بعد) هلاکت او خرابي ته وایي امام رازي وایي چي دغه او ددي امثال مصدرونه دي خو دافعالو پرځای د ریږي او سیبویه وایي چي دغه په هغه افعالو باندي منصوب دي چي اظهارېږي نه کول کیږي او معنی یې د(بَعُدَ بُعداً ) هلاک شوی په هلاکت سره (قرونا) اُمتونه (تترا)پرله پسې (معین) بهېدونکي اوبه چي چینې یې ښکاره وي (احادیث) د(اُحدوثةٌ )جمع او دا هغه څه ته وایي چي د تعجب او تسلیت په ډول کومي خبري اتري کېږي(ربوة) لوړ ځای ته وایي .

تفسیر :

﴿ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِۦ فَقَالَ يَٰقَوْمِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُۥٓ ﴾ قسم دی خامخا په تحقیق موږ نوح لیږلی وو خپل قوم ته نو وویل (نوح )ای زما قومه عبادت کوئ تاسي یوازي د الله نشته تاسي ته بل هیڅ معبود غیر له دغه (الله )مفسرین کرام وایي چي دغه د رسول الله ﷺ لپاره تسلیت دی چي ورته د نوح علیه السلام کیسه اوروي او ورته داسي (حکم) کوي چي په هغه پسي اقتدا وکړي د هغه صبر خپل کړي او پدي خبر شي چي نورو نبیانو ته هم د دروغو نسبتونه شوي دي. ﴿ أَفَلَا تَتَّقُونَ ﴾ ایا پس نه ویریږی تاسي (د الله له عذابه چي د بل چا عبادت کوی؟) پدی کي وعید او زجر نغښتی دی ﴿ فَقَالَ ٱلْمَلَؤُا۟ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ مِن قَوْمِهِۦ ﴾ پس وویل هغو مشرانو چي کافران شوی وو له قومه د دغه (نوح خپلو اتباعو ته )چي ﴿ مَا هَٰذَآ إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُرِيدُ أَن يَتَفَضَّلَ عَلَيْكُمْ ﴾ ندی دا نوح مگر ستاسي په شان یو انسان دی اراده لري د دي خبري چي پر تاسو مشر شی )یعني دغه سړی چي د نبوت په دعوی باندي پر تاسو رئیس شی تر څو تاسي د ده اتباع او پیروان شی او زښته زیاته د تعجب خبره خو دا ده چي د وی د الیري گڼله چي نبي دي له بشر څخه

دي خود حبر (ډېرې) لپاره يې ربوبيت پخپله ثابت کړی وو ﴿ وَلَوْ شَآءَ ٱللَّهُ لَأَنزَلَ مَلَٰٓئِكَةً ﴾ او که اراده وفرمايې الله دليږلو دا ستازی انسانانو ته نو خامخا پرښتې به يې ليږلي وای (نه انسانان) ﴿ مَّا سَمِعْنَا بِهَٰذَا فِيٓ ءَابَآئِنَا ٱلْأَوَّلِينَ ﴾ ندی اوريدلي موږ دا (چې رسول بني آدم وي) په هغو پلرونو زموږ کې چې له پخواوو ﴿ إِنْ هُوَ إِلَّا رَجُلٌۢ بِهِۦ جِنَّةٌ ﴾ ندی دا (نوح) مګر يو داسې سړی دی چې ليونتوب ورسره دی ﴿ فَتَرَبَّصُوا۟ بِهِۦ حَتَّىٰ حِينٍ ﴾ پس تاسې انتظار کوئ ده ته تر يو وخته پورې (او صبر ورته وکړئ تر څو چې ومري) ﴿ قَالَ رَبِّ ٱنصُرْنِى بِمَا كَذَّبُونِ ﴾ وويل (نوح) ای زما ربه زما مدد وکړه په سبب د دې چې زما تکذيب يې وکړ يعني نوح عليه السلام کله چې ورته څرګنده شوه چې دوی ايمان نه راوړي او دده تکذيب يې وکړ نو د ګردو د هلاکت دعا يې وکړه چې الهی ! زما مرسته وکړې او دوی ټول هلاک کړې ﴿ فَأَوْحَيْنَآ إِلَيْهِ أَنِ ٱصْنَعِ ٱلْفُلْكَ بِأَعْيُنِنَا ﴾ پس وحی وکړه موږ دغه (نوح عليه السلام ته) داسې چې اوس يوه بېړۍ جوړه کړه په ليدلو (ساتلو) زموږ ﴿ وَوَحْيِنَا ﴾ او په وحی (ښوونه) زموږ سره ﴿ فَإِذَا جَآءَ أَمْرُنَا وَفَارَ ٱلتَّنُّورُ ﴾ پس کله چې راغی حکم زموږ (د عذاب په انزال باندې) او راو وخوټيد و تنور مفسرين کرام وايې چې الله تعالی همدغه د نوح عليه السلام لپاره دده د قوم په هلاکت باندې علامه او نښه ګرزولې وه ﴿ فَٱسْلُكْ فِيهَا مِن كُلٍّ زَوْجَيْنِ ٱثْنَيْنِ ﴾ پس ورننباسه (سپاره کړه) پدې بېړۍ کې له هره قسمه جوړه، (نر او ښځه) تر څو چې د دغه حيوان نسل او ذات منقطع نشي او ونه شليږي ﴿ وَأَهْلَكَ إِلَّا مَن سَبَقَ عَلَيْهِ ٱلْقَوْلُ مِنْهُمْ ﴾ او اهل بيت خپل (هم) پرته له هغه چا چې ړومبی شوي ده په ده خبره (د عذاب) له ده نه (لکه مېرمن او زوی يې) ﴿ وَلَا تُخَٰطِبْنِى فِى ٱلَّذِينَ ظَلَمُوٓا۟ ۖ إِنَّهُم مُّغْرَقُونَ ﴾ او مه کوه له ما سره خبرې په باب د هغو کسانو کې چې ظلم کړی دی دوی (پخپلو ځانونو) بيشکه دوی غرق کولی شي يعني ته د ظالمانو په هکله سپارښتنه مکوه کله چې د دوی عذاب او هلاکت راشي ځکه پر دوی باندې د غرقيدلو فيصله صادره شوې او هيڅ بدلون نه منی ﴿ فَإِذَا ٱسْتَوَيْتَ أَنتَ وَمَن مَّعَكَ عَلَى ٱلْفُلْكِ ﴾ نو کله چې برابر شوی وختلی ته (ای نوحه) او هغه (مومنانو) چې له تا سره دي پر بېړۍ باندې ﴿ فَقُلِ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ ٱلَّذِى نَجَّىٰنَا مِنَ ٱلْقَوْمِ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ نو ووايه چې ټول حمد ثناء خاص الله ته دی چې موږ يې د ظالمانو (مشرکانو) څخه خلاص کړو او دلته چې يې وفرمايل ﴿ فَقُلِ ﴾ او داسې يې ونه ويل چې (فقولوا) ځکه چې حضرت نوح د دوی امام او نبي وو او هغه ته خطاب دوی ته خطاب دی ﴿ وَقُل رَّبِّ أَنزِلْنِى مُنزَلًا مُّبَارَكًا وَأَنتَ خَيْرُ ٱلْمُنزِلِينَ ﴾ او ووايه (ای نوحه د کوزيدلو په وخت کې) ای زما ربه ما په يو داسې ځای کې کوز کړه چې برکتناک وی حال دا چې ته ډېر غوره يې د ټولو کوزونکيو څخه يعني ای الله ما په مبارک کوزيدلو چې له هرې بدۍ او شر څخه مې وژغوري کوز کړه (ابن عباس (رضي الله عنه)) وايې د دغه وينا د کوزيدلو په وخت کې ده او ته خير المنزلين د خپلو اولياءو

اوساتونکی دبندګانو یی ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ ﴾ بیشکه په دغه (کیسه د نوح) کي خامخا دلائل (دعبرت اوقدرت زموږ) دي (چي خلک ورڅخه پند اخلي) ﴿ وَإِن كُنَّا لَمُبْتَلِينَ ﴾ اوحال دا چي یو موږ خامخا دازموینت کونکي (دانبیاوو په رالیږلو سره) ﴿ ثُمَّ أَنشَأْنَا مِن بَعْدِهِمْ قَرْنًا آخَرِينَ ﴾ بیا پیدا کړو موږ پس له هلاکه دنوح دقوم یو اهل دزماني نور (چي عادیان وو) ﴿ فَأَرْسَلْنَا فِيهِمْ رَسُولًا مِّنْهُمْ ﴾ پس ولیږلو موږ په هغوکي یو استازی (هود) له دوی څخه ﴿ أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ ﴾ (وویل موږ په ژبه دهغه رسول دوی ته) چي عبادت کوئ تاسي (یوازي) دالله نشته تاسي ته بل برحقه معبود پرته له الله تعالی ﴿ أَفَلَا تَتَّقُونَ ﴾ آیا پس تاسي نه ویریږئ (له عذابه دالله ﷻ او کسات دهغه چي ستاسي د کفرپه سبب یی درڅخه واخلی؟ ﴿ وَقَالَ الْمَلَأُ مِن قَوْمِهِ الَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِلِقَاءِ الْآخِرَةِ ﴾ او وویل مشرانوله قومه ددغه (نبی) څخه هغه کسان چي کافران شوی وو او نسبت د درغویی کړی وو ملاقات دآخرت ته اوله ثواب عذابه چي پکي دی. ﴿ وَأَتْرَفْنَاهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا ﴾ او نعمتونه ورکړي وو موږ دوی ته په دغه ژوندانه کي ﴿ مَا هَٰذَا إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ ﴾ (دوی خپلو اتباعو ته په داسي حال کي چي هغوی یی ګمراه کول وویل) ندی دا چي دنبوت ګومان کوی مګر یو بشرسړی دی په مثل ستاسي ﴿ يَأْكُلُ مِمَّا تَأْكُلُونَ مِنْهُ وَيَشْرَبُ مِمَّا تَشْرَبُونَ ﴾ چي خوري له هغه څیزه چي تاسي یې خوری او څښي له هغه څیزه چي تاسي له هغه څښی (هغه هم خوړلو څښلوته اړدی څکه نوترتاسو بهتري نلري) ﴿ وَلَئِنْ أَطَعْتُم بَشَرًا مِّثْلَكُمْ إِنَّكُمْ إِذًا لَّخَاسِرُونَ ﴾ او که خامخا تاسو فرمان یووړ دیو انسان په شان ستاسي بیشکه چي تاسي په هغه وخت کي خامخاله زیانکارانو څخه یاست څکه تاسي ځانونه دهغه په متابعت ذلیل کړی دی ابوالسعود وایې: وګوره څرنګه دوی دبرحق پیغمبر متابعت خسران او تاوان ګڼي؟ خو دبتانو عبادت تاوان نه ګڼي چي ترهغه زیات خسران او تاوان هڅو نشته (قَاتَلَهُمُ اللَّهُ أَنَّىٰ يُؤْفَكُونَ) (۱) ﴿ أَيَعِدُكُمْ أَنَّكُمْ إِذَا مِتُّمْ وَكُنتُمْ تُرَابًا وَعِظَامًا أَنَّكُم مُّخْرَجُونَ ﴾ آیا وعده کوی له تاسي سره چي بیشکه تاسي کله چي مړه شی خاوري شي او هډوکي نو بیشکه چي تاسو به راایستل کیږئ؟ استفهام دملنډو د استهزاء او استبعاد لپاره دی یعني کله چي تاسي خاوري ایرې شی بیا دی دژوندا و بعثت وعده در کوي؟ او دا چي ﴿ أَنَّكُمْ ﴾ لفظ یې مکرر راووړ چي تاکید افاده کړي او کله چي کلام اوږد شی تکرار حسن او ښه ایسي ﴿ هَيْهَاتَ هَيْهَاتَ لِمَا تُوعَدُونَ ﴾ ډیر لیري دی ډیر لیري دی هغه څه چي له تاسو سره وعده کولای شي (چي له قبرونو به راپاڅیږي ددوی غرض پدي کي دادی چي له سره به دا سي ونشي) ﴿ إِنْ هِيَ إِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا نَمُوتُ وَنَحْيَا ﴾ نه دی دا ژوندون مګر همدا ژوندون زموږ ددنیا چي مرو او ژوندي کیږو یعني ځیني به مړه کیږو او ځیني به پیدا کیږو ترڅو چي دنیا ودانه وي ﴿ وَمَا نَحْنُ

---

(۱) ارشادالعقل السلیم ۴ / ۳۱

مَبْعُوثِينَ ﴾ اونه يو موږ بيا ژوندي پورته كړى شوي وروسته له مرګه ﴿ إِنْ هُوَ إِلَّا رَجُلٌ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا ﴾ ندى دغه (سړى) مګر يو سړى دى چي تړلي يې دي پر الله دروغ (چي تاسو ته يې رسالت راوړى اومعاد خبر دركوي ﴿ وَمَا نَحْنُ لَهُ بِمُؤْمِنِينَ ﴾ اونه يو موږ پر ده ايمان راوړنكي ﴿ قَالَ رَبِّ انصُرْنِي بِمَا كَذَّبُونِ ﴾ (كله چي نبي د دوى له ايمان راوړلو ناهيلى شو) وى ويل اى ربه زما مدو كړه له ماسره په سبب د دي چي دروغجن يې وبللم ﴿ قَالَ عَمَّا قَلِيلٍ لَّيُصْبِحُنَّ نَادِمِينَ ﴾ نو وفرمايل الله چي پس له لږ موده خامخا به ګرزي دوى پښېمانه (په كفر باندي) ﴿ فَأَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ بِالْحَقِّ ﴾ پس دوى ونيول چيغى د هلاك په عدل (حق) سره (نه په ظلم) ﴿ فَجَعَلْنَاهُمْ غُثَاءً فَبُعْدًا لِّلْقَوْمِ الظَّالِمِينَ ﴾ (پس هلاك شول) نو وګرزول موږ دوى د سيلاب خس او خاشاك، لرى والى دى قوم د ظالمانو ته (د الله له رحمته). مفسرين كرام وايي چي جبريل عليه السلام ورباندي چيغه كړه او څمكه تري لاندي ولړزيده نو دوى له دغه شدته او سختي لكه شاوړي خس او خاشاك غوندي وګرزيدل (غثاء) هغه ناڅيزه توكى ته وايي چي هيڅ ګټه ورڅخه نه اخيستل كيږي او داچي الله تعالى وفرمايل ﴿ فَبُعْدًا لِّلْقَوْمِ ﴾ دغه دعائيه جمله ده يعني دوى لره دي هلاكت او د الله له رحمته ليري والى وى ﴿ ثُمَّ أَنشَأْنَا مِن بَعْدِهِمْ قُرُونًا آخَرِينَ ﴾ بيا پيدا كړ موږ وروسته له هغوى نور خلګ لكه د صالح، ابراهيم، لوط او شعيب عليهم السلام قومونه ابن عباس (ﷺ) وايي چي دغه بني اسرائيل دى او په كلام كي حذف شته تقديري دادى چي دوى د خپلو نبيانو تكذيب وكړ او موږ هم دوى هلاك كړل او پدي باندي د الله تعالى داوينا دلالت كوي چي: ﴿ مَا تَسْبِقُ مِنْ أُمَّةٍ أَجَلَهَا وَمَا يَسْتَأْخِرُونَ ﴾ يعني هيڅ امت له امتونو له ټاكلي موده د مخه د هلاكت ځاى ته نه وړاندي كيږي او نه هم تري وروسته كېږي ﴿ ثُمَّ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا تَتْرَا ﴾ بيا وليږل موږ خپل استازى حال داچي يو په بل پسى پيوست وو. ابن عباس وايي چي ځينو د ځينو نورو متابعت كاوو ﴿ كُلَّ مَا جَاءَ أُمَّةً رَّسُولُهَا كَذَّبُوهُ ﴾ (هركله چي رابه غى كوم امت ته رسول د دوى نو هغه به يى دروغجن وباله) پدي كي د دوى د بشپړي ګمراهى څرګندونه كيږي او د دوى تشنيع ده يعني دوى د خپلو نبيانو په تكذيب كي د رومبنيو تګ لاره غوره كړه څكه فرمايي: ﴿ فَأَتْبَعْنَا بَعْضَهُم بَعْضًا ﴾ پس پرله پسي به كړل موځيني د دوى په ځيني نورو (په هلاكولو كي) ﴿ وَجَعَلْنَاهُمْ أَحَادِيثَ ﴾ او وګرزول موږ دوى تشي كيسې (چي خلك ورباندي د تعجب او ساتيري لپاره ږغيږي) ﴿ فَبُعْدًا لِّقَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُونَ ﴾ پس لري والى دى (د الله له رحمته) هغه قوم ته چي ايمان نه راوړي (په الله او پيغمبر باندي) ﴿ ثُمَّ أَرْسَلْنَا مُوسَىٰ وَأَخَاهُ هَارُونَ بِآيَاتِنَا ﴾ بيا وليږل موږ موسى او دده ورور هارون په دلائلو معجزاتو (لكه لكړه، سپين لاس، ملخ، او نور......... چي ګرده نهه معجزې وې ﴿ وَسُلْطَانٍ مُّبِينٍ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَمَلَئِهِ ﴾ او په برهان دليل ښكاره سند (چي د دښمن ماتونكي وو)

طرف د فرعون او قوم دده ته (ملاء د قوم متکبرین او اشراف دی) ﴿ فَٱسۡتَكۡبَرُواْ وَكَانُواْ قَوۡمًا عَالِينَ ﴾ پس کبر سرکشي یې وکړه (له ایمانه) حال دا چې دوی متکبر قوم (ظالمان او سرغړونکي) وو ﴿ فَقَالُوٓاْ أَنُؤۡمِنُ لِبَشَرَيۡنِ مِثۡلِنَا ﴾ پس وویل (دوی) ایا پس مونږ ایمان راوړو په دوو سړیو په شان زمونږ (او تابعان یې شو؟) ﴿ وَقَوۡمُهُمَا لَنَا عَٰبِدُونَ ﴾ حال دا چې د دوی (موسی او هارون) قوم زمونږ خادمان (مریان) دی ﴿ فَكَذَّبُوهُمَا فَكَانُواْ مِنَ ٱلۡمُهۡلَكِينَ ﴾ پس دروغجن وبلل دغو (موسی او هارون) دواړو لره پس شول له هلاک کړی شویو (په بحر کې په غرقیدلو) ﴿ وَلَقَدۡ ءَاتَيۡنَا مُوسَى ٱلۡكِتَٰبَ لَعَلَّهُمۡ يَهۡتَدُونَ ﴾ او خامخا په تحقیق ورکړی وو مونږ موسی ته کتاب (تورات) ښایي چې دغه (بني اسرائیل وروسته د فرعون له غرقیدلو) سمه صافه لاره ومومي ﴿ وَجَعَلۡنَا ٱبۡنَ مَرۡيَمَ وَأُمَّهُۥٓ ءَايَةً ﴾ او وګرزولي وه مونږ دا کیسه د زوی د مریمې او مورد ده (مریمې) یو (لوی) دلیل د کمال (قدرت) زمونږ ﴿ وَءَاوَيۡنَٰهُمَآ إِلَىٰ رَبۡوَةٍ ﴾ او ځای ورکړی را وستی وو مونږ دوی هسکي ځمکې (بیت المقدس) ته ابن عباس (رضی الله عنه) وایې چې لوړه ځمکه د زرغونتیا لپاره هغه ترټولو غوره وي ﴿ ذَاتِ قَرَارٖ وَمَعِينٖ ﴾ چې خاونده د کرار ده (او سیدونکي یې آرام ژوند تیروي) او خاونده د پاکو صافو بهیدونکو اوبو ده امام رازي وایي چې قرار هره ځمکه چې غوړیدلې پراخه وي او معین بیا هغه جاري رواني اوبه په سرد ځمکې ته وایې قتاده وایې چې معنا دا چې میوې، او به لري یعنې د میوو له کبله او سیدونکي پکې (بېغمه سو کاله) اوسي[1] ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلرُّسُلُ كُلُواْ مِنَ ٱلطَّيِّبَٰتِ وَٱعۡمَلُواْ صَٰلِحًا ﴾ ای رسولانو خورئ تاسې له طیباتو (پاکیزه خوراکونو) ځخه او وکړئ تاسې ښه (عملونه) دغه نداء د خپل وخت هر یو پیغمبر ته ده چې امت ته یې ارشاد کړی لکه چې ته کوم سوداګر ته خطاب کوي وایې: ای سوداګروله سود ځخه ځان وساتئ!
﴿ إِنِّي بِمَا تَعۡمَلُونَ عَلِيمٞ ﴾ بیشکه زه پر هغو کارونو چې تاسې یې کوئ ښه عالم خبردار یم دغه وعید او تهدید دی یعنې ستاسې د اعمالو هیڅ له ما ځخه الونیا او پټ نه دی قرطبي وایې چې ټول په وعید کې شامل دي نو کله چې دغه د انبیاوو او پیغمبرانو حال وي نو د نورو خلکو په خپلو ځانونو څه ګومان دی؟[2] ﴿ وَإِنَّ هَٰذِهِۦٓ أُمَّتُكُمۡ أُمَّةٗ وَٰحِدَةٗ ﴾ او بیشکه دا (دین) د تاسې (او ستاسې د امتیانو) دی چې یو دین دی ﴿ وَأَنَا۠ رَبُّكُمۡ فَٱتَّقُونِ ﴾ او زه ستاسې رب یم نو له ماوو پر یږئ!

بلاغت:

دغه آیتونه د بدیع او بیان په ښکلاوو مشتمل دي چې لنډ یزیې دادی:

---

(1) التفسیر الکبیر ۲۳ / ۱۰۳
(2) القرطبي ۱۲ / ۱۲۸

۱ـ بدیعه استعاره لکه : ﴿ أَصْنَعِ ٱلْفُلْكَ بِأَعْيُنِنَا ﴾ دلته له ساتنی او حفظ څخه مبالغه په سترګو کړی ځکه یو څوک چي دیو شي ساتنه کوی غالبًا هغه په سترګو څاري نو ځکه د(عین) یادونه دحفظ او څارني پرځای راغلی ده .

۲ـ کنایه ﴿ وَفَارَ ٱلتَّنُّورُ ﴾ دغه له شدت څخه کنایه ده لکه چي وایي (حمی الوطیس ) او ځینو عالمانو له تنور څخه د ځمکي مخ مجازًا اخیستی دی .

۳ـ اشتقاقی جناس لکه ﴿ أَنزِلْنِي مُنزَلًا ﴾ او ﴿ تَعْمَلُونَ عَلِيمٌ ﴾ .

۴ـ طباق صنعت لکه چي فرمایی: ﴿ نَمُوتُ وَنَحْيَا ﴾ او ﴿ تَسْبِقُ ﴾ او ﴿ يَسْتَـْٔخِرُونَ ﴾ .

۵ـ په دي کلام کي ناقص جناس دی کله چي الله تعالی ارشاد کوي ﴿ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا ﴾ ځکه چي د ځینو تورو تغییر له شکله سره سره پکي شته .

۶ـ بلیغه تشبیه لکه ﴿ فَجَعَلْنَٰهُمْ غُثَآءً ﴾ یعني لکه خس خاشاک چي سیک سپاند او ژر له مینځه ځي وجه دشبه او دتشبیه ادات پکي نشته نو بلیغه تشبیه ده .

۷ـ داطناب اسلوب چي پدی کلام کي موندل کیږي ﴿ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ وَكَذَّبُوا۟ بِلِقَآءِ ٱلْءَاخِرَةِ وَأَتْرَفْنَٰهُمْ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ﴾ چي دغه ددوی بدي ستایي او پردوی باندي دناولتیا او ناپاکي ځرګندېدل او تسجیل تثبیت ښیي .

۸ـ لطیفه سجع چي الله فرمایی : ﴿ تَتَّقُونَ ...تَشْرَبُونَ... مُّخْرَجُونَ ﴾ او ﴿ عَالِينَ ...ٱلْمُهْلَكِينَ ...قَرَارٍ وَمَعِينٍ ﴾ .

فائده :

دبشر لفظ دواحد او جمع دواړو لپاره راځی لکه : ﴿ فَتَمَثَّلَ لَهَا بَشَرًا سَوِيًّا ...أَنُؤْمِنُ لِبَشَرَيْنِ مِثْلِنَا ﴾ او کله چي په جمع یې اطلاق کیږی هغه لکه ﴿ فَإِمَّا تَرَيِنَّ مِنَ ٱلْبَشَرِ أَحَدًا ... وَمَا هِىَ إِلَّا ذِكْرَىٰ لِلْبَشَرِ ﴾ دغه پورتنی فائده دکشاف افاده ده .

****

الله تعالی فرمايي:

﴿ فَتَقَطَّعُوٓا۟ أَمْرَهُم بَيْنَهُمْ زُبُرًا ۖ كُلُّ حِزْبٍۭ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ ﴿٥٣﴾ فَذَرْهُمْ فِى غَمْرَتِهِمْ حَتَّىٰ حِينٍ ﴿٥٤﴾ أَيَحْسَبُونَ أَنَّمَا نُمِدُّهُم بِهِۦ مِن مَّالٍ وَبَنِينَ ﴿٥٥﴾ نُسَارِعُ لَهُمْ فِى ٱلْخَيْرَٰتِ ۚ بَل لَّا يَشْعُرُونَ ﴿٥٦﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ هُم مِّنْ خَشْيَةِ رَبِّهِم مُّشْفِقُونَ ﴿٥٧﴾ وَٱلَّذِينَ هُم بِـَٔايَٰتِ رَبِّهِمْ يُؤْمِنُونَ ﴿٥٨﴾ وَٱلَّذِينَ هُم بِرَبِّهِمْ لَا يُشْرِكُونَ ﴿٥٩﴾ وَٱلَّذِينَ يُؤْتُونَ مَآ ءَاتَوا۟ وَّقُلُوبُهُمْ وَجِلَةٌ أَنَّهُمْ إِلَىٰ رَبِّهِمْ رَٰجِعُونَ ﴿٦٠﴾ أُو۟لَٰٓئِكَ يُسَٰرِعُونَ فِى ٱلْخَيْرَٰتِ وَهُمْ لَهَا سَٰبِقُونَ ﴿٦١﴾ وَلَا نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا ۖ وَلَدَيْنَا كِتَٰبٌ يَنطِقُ

بِالْحَقِّ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿٦٢﴾ بَلْ قُلُوبُهُمْ فِي غَمْرَةٍ مِّنْ هَٰذَا وَلَهُمْ أَعْمَالٌ مِّن دُونِ ذَٰلِكَ هُمْ لَهَا عَامِلُونَ ﴿٦٣﴾ حَتَّىٰ إِذَا أَخَذْنَا مُتْرَفِيهِم بِالْعَذَابِ إِذَا هُمْ يَجْأَرُونَ ﴿٦٤﴾ لَا تَجْأَرُوا الْيَوْمَ إِنَّكُم مِّنَّا لَا تُنصَرُونَ ﴿٦٥﴾ قَدْ كَانَتْ آيَاتِي تُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ فَكُنتُمْ عَلَىٰ أَعْقَابِكُمْ تَنكِصُونَ ﴿٦٦﴾ مُسْتَكْبِرِينَ بِهِ سَامِرًا تَهْجُرُونَ ﴿٦٧﴾ أَفَلَمْ يَدَّبَّرُوا الْقَوْلَ أَمْ جَاءَهُم مَّا لَمْ يَأْتِ آبَاءَهُمُ الْأَوَّلِينَ ﴿٦٨﴾ أَمْ لَمْ يَعْرِفُوا رَسُولَهُمْ فَهُمْ لَهُ مُنكِرُونَ ﴿٦٩﴾ أَمْ يَقُولُونَ بِهِ جِنَّةٌ بَلْ جَاءَهُم بِالْحَقِّ وَأَكْثَرُهُمْ لِلْحَقِّ كَارِهُونَ ﴿٧٠﴾ وَلَوِ اتَّبَعَ الْحَقُّ أَهْوَاءَهُمْ لَفَسَدَتِ السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ وَمَن فِيهِنَّ بَلْ أَتَيْنَاهُم بِذِكْرِهِمْ فَهُمْ عَن ذِكْرِهِم مُّعْرِضُونَ ﴿٧١﴾ أَمْ تَسْأَلُهُمْ خَرْجًا فَخَرَاجُ رَبِّكَ خَيْرٌ وَهُوَ خَيْرُ الرَّازِقِينَ ﴿٧٢﴾ وَإِنَّكَ لَتَدْعُوهُمْ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٧٣﴾ وَإِنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ عَنِ الصِّرَاطِ لَنَاكِبُونَ ﴿٧٤﴾ المؤمنون: ٥٣ - ٧٤

مناسبت او تړاو:

کله چي الله تعالی دانبیاوو علیهم السلام کیسې یادې کړې وروسی یې دسرغړونکو کفارو کیسې راوړې چي څرنګه هغوی په خلکو کي تفرقې او اختلافونه پیدا کړی وو؟ او هغوی یې په مختلفو لارو او کوڅو روان کړي وو ترڅو چي انسانان ددغو ګمراهانو له کړو وړو څخه عبرت واخلي او ځان ترې وژغوري.

لغتونه:

(زبرا) دزبور جمع او دا و سپنې او یا زرو ټوټې ته ویل کیږي (غمرتهم) حیرانتیا او ګمراهي ته وایي اصل یې په اوبو کي ډوبېدل دي (یجأرون) فریاد کونکي کله چي په زاري عاجزي غږ او چتوي لکه چي غوایي غړونه کوي (تنکصون) (نکوص) په شاتګ ته وایې (ناکبون) له لارې څخه کږېدل (نکوب) بولي.

تفسیر:

﴿ فَتَقَطَّعُوا أَمْرَهُم بَيْنَهُمْ زُبُرًا ﴾ پس پرې (غوڅ) کړدوی دین خپل پخپل مینځ کي ټوټې ټوټې (چي دغه مجوسي دی دغه یهودي او دغه نصراني دی) ﴿ كُلُّ حِزْبٍ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ ﴾ هر یو ګوند (له دوی نه) په هغه (باطل دین) چي له دوی سره دی خوشحال دی (داسي ور ته ښکاري چي دی پر حق او ګټه کي او له ده پرته نور په ګمراهي او تاوان کي دی) ﴿ فَذَرْهُمْ فِي غَمْرَتِهِمْ ﴾ پس پرېږده (ای محمده!؛ دوی په خپلي ګمراهي کي (خطاب رسول الله ﷺ ته او ضمیر دمکی کفارو ته راجع دی) ﴿ حَتَّىٰ حِينٍ ﴾ تر یوه وخته پوري (دمرګ پدې کي د رسول الله لپاره ډاډینه او کفارو ته تهدید دی ﴿ أَيَحْسَبُونَ أَنَّمَا نُمِدُّهُم بِهِ مِن مَّالٍ وَبَنِينَ ﴾ ایا دوی ګومان کوی چي بیشکه هر هغه څیز چي موږ یې ورکوو دوی ته (په دنیا کي) له مال او زامنو ﴿ نُسَارِعُ لَهُمْ فِي الْخَيْرَاتِ ﴾ چي تلوار کوو موږ دوی ته په خیراتونو (نه ده داسي بلکه دغه ددوی لپاره استدراج دی او ددوی دګناهونو زیاتوالی دی څکه وروسي فرمایې: ﴿ بَل لَّا يَشْعُرُونَ ﴾ بلکه دوی نه پوهېږي (چي دغه امهال او استدراج دی یعني دوی چارپایان غوندي دي په چارویې سرنه خلاصېږي

په آيت شريف کي دمشرکانو دګومانونو ترديد دی چي دوی به ويل داچي موږته مالونه اولادونه راکول کيږي همدغه دالله دخوښی لامل دی لکه چي الله ورڅخه حکايت کوی فرمايي: ﴿ وَقَالُوا۟ نَحْنُ أَكْثَرُ أَمْوَٰلًا وَأَوْلَٰدًا وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِينَ ﴾ اوپه حديث شريف کي راځی چي: الله پاک دنيا هرچاته ورکوی چي که خوښ يې وي اوياېي خوښ نه وي مګردين هغه چاته ورکوي چي هغه يې خوښ وي (۱) اوکله چي الله تعالی تعالی دمشرکانوبدي بيان کړې نوورپسي دمؤمنانو خورا ښه صفات په دي ډول يادوي چي: ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ هُم مِّنْ خَشْيَةِ رَبِّهِم مُّشْفِقُونَ ﴾ بيشکه هغه کسان چي دوی له (خوفه) د عذاب درب خپل وېرېدونکي دي ﴿ وَٱلَّذِينَ هُم بِـَٔايَٰتِ رَبِّهِمْ يُؤْمِنُونَ ﴾ (اوهغه کسان دي چي دوی په آيتونو (دقرآن) درب خپل ايمان راوړی) يعني دالله تعالی دقرآن په آيتونوايمان راوړی اودکائنا توپه نښانو چي دالله سبحانه وتعالی په وجود دلالت کوي باورلرونکي دي (وفي کل شئ له آية * تدل علی انه واحد) ﴿ وَٱلَّذِينَ هُم بِرَبِّهِمْ لَا يُشْرِكُونَ ﴾ او هغه کسان چي دوی پخپل رب پوري (بل هيڅ شی) نه شريکوي (بلکه يوازي الله ته عبادت کوي امام رازي وايې چي دلته مقصدايمان په توحيداودشريک نفی نه ده ځکه هغه په پورتني آيت کي شامل دي بلکه مراددخفي شرک نفی ده هغه چي عبادت (يوازی دالله دذات اودهغه درضااوخوښي لپاره کوئ (۲) ﴿ وَٱلَّذِينَ يُؤْتُونَ مَآ ءَاتَوا۟ وَّقُلُوبُهُمْ وَجِلَةٌ ﴾ اوهغه کسان چي ورکوي هرهغه چي ورکوي (له زکاتونو، خيراتونه) حال داچي زړونه ددوی وېرېدونکي دي (له قبلېدلودهغه) حسن رحمه الله وايي چي دمؤمن دغه صفت دی چي احسان اوويره دواړه يوځای کوي اومنافق بياګناه اوامن يوځای کوي پورتنی داحسان صفت د مؤمنانوشلورم صفت دی ﴿ أَنَّهُمْ إِلَىٰ رَبِّهِمْ رَٰجِعُونَ ﴾ بيشکه دوی خپل رب ته ورتلونکي دي يعني دوی په دې وېرېږي چي ګني دوی به دطاعاتواواعمالوپه هکله کوتاهي کړي وي دوی همداعقيده لري چي بېشکه خپل رب ته ورتلونکي دي اوهغه به ورسره حساب کوي روايت کېږي چي حضرت عائشي صديقي ددغه آيت په هکله چي: ﴿ وَٱلَّذِينَ يُؤْتُونَ مَآ ءَاتَوا۟ وَّقُلُوبُهُمْ وَجِلَةٌ ﴾ دی له رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي ايادا هغه څوک دي چي زناکوي، غلاکوي، اوشراب څښي، اوله الله څخه وېرېږي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: نه ای دصِديق لوري! داهغه څوک دي چي لمونځونه کوي روژې نيسي اوخيراتونه ورکوي له دی سره سره له الله جل جلاله وېرېږي (۳) ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ يُسَٰرِعُونَ فِى ٱلْخَيْرَٰتِ ﴾ دغه کسان ډېرتلوار کوي په نېکيوکي (ترڅولوړی درجې ومومي اومجرمين کفار دغسي نه کوي) ﴿ وَهُمْ لَهَا سَٰبِقُونَ ﴾ او دوی هغو (نېکيو) ته ړومبي کېدونکي دي (له نوروخلکو) امام فخرالدين الرازي وايې چي پدې پوه شه چي ددغوصفاتوخورا ښکلی ترتيب دی لومړی صفت دسختی وېريدني اوخوف

(۱) دحديث شريف پوره توته ده چي امام احمدراوړی دی.

(۲) التفسيرالکبير ۲۳ / ۱۰۷

(۳) اخرجه امام احمد.

دی کوم چي له نه ښنائيدونکي شيانو څخه هم د ځان ژغورلو موجب ګرځي دوهم د الله په وحدانيت باور کول دی دريم درياء په پريښودلوکي چي د هرډول طاعت په هلکه دی ځلورم داچي دغه پوتني درې سره صفتونه هلته بشپړاو يو ځای کيدی شي چي له طاعاتو سره د تقصيرويره موجوده وی اودغه ورستی ځای د صديقينودی الله دی موږته موندل اورسيدل راپه برخه کړي آمين يارب العلمين (۱) ﴿ وَلَا نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا ﴾ اونه مکلف کوو هيڅ نفس مګر په اندازه د طاقت دهغه (دغه زموږ احسان اولطف دی دغه يی د مؤمنانوله صفتونووروسته څکه راووړچي دې ته اشاره وکړي چي دغه مخلصين دوی ترتوان پورته مکلف شوی نه دی اوټول مکلفيتونه دانسان په قدرت کي شته ﴿ وَلَدَيْنَا كِتَٰبٌ يَنطِقُ بِالْحَقِّ ﴾ اوله موږ څخه يو کتاب دی بيانوي حق رښتيا (اعمالنامه چي ټول خيراو شرپکي ليکلي په آخرت کي به په هغه سزا جزا ورکوو چي بيا فرمايی) ﴿ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴾ اوپردوی به هيڅ قسم ظلم ونکړی شي (په زيادت دعذاب او تنقيص دثواب کي قرطبي وايې چي په آيت شريف کي تهديداوله ظلم څخه امان ښکاره شوی دی (۲) ﴿ بَلْ قُلُوبُهُمْ فِي غَمْرَةٍ مِّنْ هَٰذَا ﴾ بلکه زړونه (ددغو کفارو) په غفلت کي دی له دغه (قرآنه) ﴿ وَلَهُمْ أَعْمَٰلٌ مِّن دُونِ ذَٰلِكَ هُمْ لَهَا عَٰمِلُونَ ﴾ (اوشته دوی ته عملونه (ناپاکه غيرله دغه کفراوشرک نه) چي دوی دهغو (عملونو) کونکي وي) يعني داچي دوی به يې په راتلونکي کي ترسره کوي ترڅوبې بدمرغي لابنه څرګنده شي دوی دکفراوبدو اعمالو يوځای والی کړی دی نو څکه ددوی لپاره عذاب مقرردی ﴿ حَتَّىٰٓ إِذَآ أَخَذْنَا مُتْرَفِيهِم بِٱلْعَذَابِ ﴾ ترهغه پوري کله چي ونيسو (هغه) غټان (غنيان) ددوی په (دنيوي) عذاب (لکه لوږه، قحط قتل اوبندي کيدل نو) ﴿ إِذَا هُمْ يَجْـَٔرُونَ ﴾ ناڅاپه دوی به فريادونه کوي (ژړا زاري او نارې به وهي) ﴿ لَا تَجْـَٔرُوا۟ ٱلْيَوْمَ إِنَّكُم مِّنَّا لَا تُنصَرُونَ ﴾ مه کوئ نن ورځ فرياد بيشکه تاسي سره به ونکړی شي له موږ څخه هيڅ مدد (په خلاصولو دعذاب کي) ﴿ قَدْ كَانَتْ ءَايَٰتِى تُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ ﴾ په تحقيق وو آيتونه (دقرآن) زماچي پرتاسي به لوستلی شو (تاسوبه اوريدل) ﴿ فَكُنتُمْ عَلَىٰٓ أَعْقَٰبِكُمْ تَنكِصُونَ ﴾ پس وي به تاسي په پنډيو خپلو ګرزيدونکي بيرته (چي نه به مومنل) يعني تاسوبه بيرته (دشا لوري ته ګرزيدلاست تښتيدلاست دغه تمثيل دی چي د وی به له حق څخه په شاتګ او اعراض کاوو ﴿ مُسْتَكْبِرِينَ بِهِۦ ﴾ پداسي حال کي چي کبر کونکی به وی په سبب دهغه (قرآن) له ايمان څخه؛ ابن کثير وايې چي ضمير قرآن ته راجع دی اودوی به دشپې مجلسونه کول قرآنکريم به يې په ناروا ستايل هغه ته به يې کودې، شعر، کهانت اوداسي نور چټي نومونه اوناروا صفتونه اينبودل (۳) ابن جوزی وايې چي ضميربيت الله ته راجع دی اودغه هسی کنايه ده چي دغير مذکورلپاره راوړل کيږي چي هغه د شهرت له کبله وی نو

---

(۱) تفسير کبير ۲۳ / ۱۰۷

(۲) القرطبي ۱۲ / ۱۳۴

(۳) مختصر ابن کثير ۲ / ۵۲۹

معنی داچي تاسي دبيت الله په سبب تکبراو وياړ(فخر)کوی چي تاسوپه حرم کي په امن ياست او نور گردخلک په خپلوهيوادونوکي ويرېږي تاسووایاست چي موږدحرم اوسيدونکي يوله هيچانه ويرېږو موږد بيت الله په لمن کي اوسو همدغه دابن عباس اونورو مفسرينو ويناهم ده (١)﴿ سَٰمِرًا تَهۡجُرُونَ ﴾ حال داچي دشپې کيسې کونکي به وي دمقدساتوپه طعن کي مسخرې به موکولې پرېښودل به مو (قرآن) يعني تاسودشپې په وروستي مجلسونوکي په قرآنکريم باندي طعن وايود هجر معناهغه چتي اوناکاره وينا ده چي دوی به دقرآنکريم اوپيغمبر عليه السلام په هکله کوله ﴿ أَفَلَمۡ يَدَّبَّرُواْ ٱلۡقَوۡلَ ﴾ ايا پس کفارپه دی وينا کي فکرنه کوي (چي قرآن دی؟)څوپه دي وپوهيږي چي دغه دالله جل جلاله کلام اومعجزنظم دی نوبه وورباندي ايمان راوړي ﴿ أَمۡ جَآءَهُم مَّا لَمۡ يَأۡتِ ءَابَآءَهُمُ ٱلۡأَوَّلِينَ ﴾ (آیاکه راغلي دي دوی ته هغه څه چي نه وو راغلي پلرونو پخوانيو ددوی ته ؟)يعني ايا پيغمبردوی ته کوم نوی څیزچي د دوی پلرونوته پخوانه وو ورکول شوی راوړی دی؟ ابوالسعودوايي چي د کتابونو راتگ دالله له لوری پيغمبرانوته پخوانی سنت (پاتي لاره) ده چي انکارځني نشي کيدای او قرآنکريم هم دغسي دالله له لوري رسول الله ته راغلی نوبياولي دوی انکارکوي ؟ ﴿ أَمۡ لَمۡ يَعۡرِفُواْ رَسُولَهُمۡ فَهُمۡ لَهُۥ مُنكِرُونَ ﴾ ايا ندی پيژندلی دوی (کفارو)خپل پيغمبر(په امانتداري ،رښتنولي اوښو اخلاقوسره )؟ پس دوی له ده څخه منکران دي ؛ دغه ددوی لپاره يوبل توبيخ دی لمړی توبيخ پدی هکله ووچي دوی په قرآنکريم باندي نفع نه ده اخيستي دوهم داچي دغه کتاب لکه هغه کتابونه چي ددوی پخوانيوپلرونوته راغلی داسي کتاب دی دریم داچي د وی دغه محمد ﷺ له نسبه ،صدقه اوامانته پېژني څلورم داچي دوی دغه پيغمبرپه ليونتوب تورنوي خو دوی ته معلومه ده چي هغه ﷺ ترټولو د کامل اوبشپړعقل خاونداود خورا ځيرک ذهن څښتن دی څکه بی پس وفرمايل چي: ﴿ أَمۡ يَقُولُونَ بِهِۦ جِنَّةُۢ ﴾ ايادوی وايي چي په ده ليونتوب دی دغه بل توبيخ اوتعجب دی چي دوی څه ډول رنگ رنگ عناداوانکارکوی ﴿ بَلۡ جَآءَهُم بِٱلۡحَقِّ ﴾ بلکه راغلی دی دا (محمد )دوی ته په حق (دين هغه چي هيڅ ډول شک اوشبه ورته لاره نلري ) اوقرآن يې راوړی کوم چي په توحيداواسلامي شرائعو مشتمل دی ﴿ وَأَكۡثَرُهُمۡ لِلۡحَقِّ كَٰرِهُونَ ﴾ او اکثره ددوی حق لره ناخوښوونکی دی )يعني سره له دی ښکاره دعوت او بلني ډيرمشرکان له حق څخه کرکه کوي څکه چي په زړونوکي کږوالی (او انحراف) دی ﴿ وَلَوِ ٱتَّبَعَ ٱلۡحَقُّ أَهۡوَآءَهُمۡ ﴾ (اوکه متابعت کړی وای حق د نفسياتي غوښتنو ددوی) يعني که چيري هغه ددوی ناخوښه حق چي توحيداو عدل دی ددوی د نفسياتي خواهشاتواوفاسدو غوښتنو متابعت کړی وای نو﴿ لَفَسَدَتِ ٱلسَّمَٰوَٰتُ وَٱلۡأَرۡضُ وَمَن فِيهِنَّۚ ﴾ نوخامخا اسمانونه به خراب شوي وو اوځمکه اوهرهغه (مخلوق)چي پدوی کي دی(ددوی دفاسدواومختلفونفسي غوښتنوله سببه به دعلوي اوسفلي عالمونونظام وران شوي وای ابن کثيروايي

(١)زادالمسير ٤٨٢/٥

چي پدې ګردوخبروکي دبندګانو عجزاوددوی د خواهشاتو اورايواختلاف بيان شوی دی اوبل داچي الله تعالی په خپلوټولوصفاتو ،افعالو اودخلکو دچاروپه تدبيرکي دکامل توان اوبشپړقدرت خاوند دی (۱)﴿ بَلْ أَتَيْنَاهُم بِذِكْرِهِمْ ﴾ بلکه راوړی مودی دوی ته ذکرپند ددوی (چي قرآن مجيددی اود دوی فخراو شرف پکي ده ﴿ فَهُمْ عَن ذِكْرِهِم مُّعْرِضُونَ ﴾ پس دوی له ذکرپندخپل نه مخ ګرزونکي دي (بنائېدل خوداچي ورته يې غاړه اېښي وای اوتعظيم يې کړی وای ځکه چي ددوی عزت اوکرامت دی (ذکر)لفظ يې دقرآن دتعظيم اودرناوی لپاره بياراووړ﴿ أَمْ تَسْأَلُهُمْ خَرْجًا فَخَرَاجُ رَبِّكَ خَيْرٌ ﴾ ايا غواړي ته ای محمده له دوی څخه اجرت (په تبليغ درسالت باندي ځکه دوی ايمان نه راوړی ؟ اوپدی کي پردوی باندی ملامتيااوتشنيع ده چي ايمان نه راوړي ځکه محمدورڅخه مزدوري نه غواړي نوبياولي يې دوی تکذيب کوي؟ اودښمني ورسره پالي) پس هغه اجرت (دزرق اوعطاء)رب ستاډيره غوره دی ﴿ وَهُوَ خَيْرُ الرَّازِقِينَ ﴾ اوهم دغه (الله)ډيرغوره دټولوروزي ورکونکودی (ځکه الله بې له اړتيادرلودلو خلکوته روزي ورکوي اونور ځوک يې کله چي چاته يې اړتياوي بياروزي ورکوي ﴿ وَإِنَّكَ لَتَدْعُوهُمْ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴾ اوبيشکه ته خامخادوی بولی دسمي صافي لاري لوري ته (چي اسلام دی) هغه چي جنات النعيم ته رسېږي )﴿ وَإِنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ عَنِ الصِّرَاطِ لَنَاكِبُونَ ﴾ او بيشکه هغه کسان چي په قيامت ايمان نه راوړی له سمي صافي لاري څخه خامخاکږېدونکي دي (ضلالت ته).

بلاغت:

پدی آيتونو کي چې دبديع اوبيان کوم ښکلی صنعتونه شته لنډيزيې په لاندی ډول دی :

۱.لطيفه استعاره لکه چي فرمايي﴿ فَذَرْهُمْ فِي غَمْرَتِهِمْ ﴾ (غمر)اصلي معناپه اوبوکي دقامت پټيدلوته وايي نوددوی ګمراهي اوناپوهي له هغواوبوسره مشابه کړه چي دانسان ټول تن پټوي اوخورازياتي وی اودغه يوه استعاره ده.

۲. انکاری استفهام چي پدی کلام کي دی: ﴿ أَيَحْسَبُونَ أَنَّمَا نُمِدُّهُم ﴾ .

۳. دټرونکي (رابط )حذف چي دلته راغلی لکه: ﴿ نُسَارِعُ لَهُمْ فِي الْخَيْرَاتِ ﴾ اودغه حذف ځکه خوندور دی چي کلام پراخ اوالتباس هم نشته

۴. دطباق صنعت لکه ﴿ يُؤْمِنُونَ...يُشْرِكُونَ ﴾ .

۵. بديعه استعاره لکه داچي: ﴿ وَلَدَيْنَا كِتَابٌ يَنطِقُ بِالْحَقِّ ﴾ نطق خوپرته له هغه چاچي په ژبه ګړېږي له بل چاڅخه نشی راتلای اوکتاب خوژبه نلری نوالله جل جلاله چي کتاب ګړيدونکی وباله دغه يې د ښکندوالي په هکله مبالغه اودبرهان اعلان دی اوداچي په ګړيدونکی يې وستايه اوتشبيه کړدا استعاره ده.

---

(۱) مختصرابن کثير۲ / ۵۷۰

۶: اشتقاقي جناس لکه داچي: ﴿يُؤْتُونَ مَآ ءَاتَوا﴾ او ﴿أَعْمَالٌ هُمْ لَهَا عَامِلُونَ﴾.

۷: لوړه اوښائسته استعاره لکه چي فرمايي: ﴿فَكُنتُمْ عَلَىٰٓ أَعْقَٰبِكُمْ تَنكِصُونَ﴾ دلته يې د دوی اعراض له حق څخه له هغه چاسره چي د شا په خوا د رومي مشابه کړاو دغه ته تمثيلي استعاره ويل کېږي.

۸: ښکلي سجع او آهنگ لکه داچي: ﴿مُّشْفِقُونَ.... يُؤْمِنُونَ.... يُشْرِكُونَ.... سَٰبِقُونَ﴾ ترپايه.

***

الله تعالی فرمايي:

﴿۞ وَلَوْ رَحِمْنَٰهُمْ وَكَشَفْنَا مَا بِهِم مِّن ضُرٍّ لَّلَجُّوا۟ فِى طُغْيَٰنِهِمْ يَعْمَهُونَ ﴿٧٥﴾ وَلَقَدْ أَخَذْنَٰهُم بِٱلْعَذَابِ فَمَا ٱسْتَكَانُوا۟ لِرَبِّهِمْ وَمَا يَتَضَرَّعُونَ ﴿٧٦﴾ حَتَّىٰٓ إِذَا فَتَحْنَا عَلَيْهِم بَابًا ذَا عَذَابٍ شَدِيدٍ إِذَا هُمْ فِيهِ مُبْلِسُونَ ﴿٧٧﴾ وَهُوَ ٱلَّذِىٓ أَنشَأَ لَكُمُ ٱلسَّمْعَ وَٱلْأَبْصَٰرَ وَٱلْأَفْـِٔدَةَ ۚ قَلِيلًا مَّا تَشْكُرُونَ ﴿٧٨﴾ وَهُوَ ٱلَّذِى ذَرَأَكُمْ فِى ٱلْأَرْضِ وَإِلَيْهِ تُحْشَرُونَ ﴿٧٩﴾ وَهُوَ ٱلَّذِى يُحْىِۦ وَيُمِيتُ وَلَهُ ٱخْتِلَٰفُ ٱلَّيْلِ وَٱلنَّهَارِ ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿٨٠﴾ بَلْ قَالُوا۟ مِثْلَ مَا قَالَ ٱلْأَوَّلُونَ ﴿٨١﴾ قَالُوٓا۟ أَءِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَعِظَٰمًا أَءِنَّا لَمَبْعُوثُونَ ﴿٨٢﴾ لَقَدْ وُعِدْنَا نَحْنُ وَءَابَآؤُنَا هَٰذَا مِن قَبْلُ إِنْ هَٰذَآ إِلَّآ أَسَٰطِيرُ ٱلْأَوَّلِينَ ﴿٨٣﴾ قُل لِّمَنِ ٱلْأَرْضُ وَمَن فِيهَآ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٨٤﴾ سَيَقُولُونَ لِلَّهِ ۚ قُلْ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴿٨٥﴾ قُلْ مَن رَّبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ ٱلسَّبْعِ وَرَبُّ ٱلْعَرْشِ ٱلْعَظِيمِ ﴿٨٦﴾ سَيَقُولُونَ لِلَّهِ ۚ قُلْ أَفَلَا تَتَّقُونَ ﴿٨٧﴾ قُلْ مَنۢ بِيَدِهِۦ مَلَكُوتُ كُلِّ شَىْءٍ وَهُوَ يُجِيرُ وَلَا يُجَارُ عَلَيْهِ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٨٨﴾ سَيَقُولُونَ لِلَّهِ ۚ قُلْ فَأَنَّىٰ تُسْحَرُونَ ﴿٨٩﴾ بَلْ أَتَيْنَٰهُم بِٱلْحَقِّ وَإِنَّهُمْ لَكَٰذِبُونَ ﴿٩٠﴾ مَا ٱتَّخَذَ ٱللَّهُ مِن وَلَدٍ وَمَا كَانَ مَعَهُۥ مِنْ إِلَٰهٍ ۚ إِذًا لَّذَهَبَ كُلُّ إِلَٰهٍۭ بِمَا خَلَقَ وَلَعَلَا بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ ۚ سُبْحَٰنَ ٱللَّهِ عَمَّا يَصِفُونَ ﴿٩١﴾ عَٰلِمِ ٱلْغَيْبِ وَٱلشَّهَٰدَةِ فَتَعَٰلَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴿٩٢﴾ قُل رَّبِّ إِمَّا تُرِيَنِّى مَا يُوعَدُونَ ﴿٩٣﴾ رَبِّ فَلَا تَجْعَلْنِى فِى ٱلْقَوْمِ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٩٤﴾ وَإِنَّا عَلَىٰٓ أَن نُّرِيَكَ مَا نَعِدُهُمْ لَقَٰدِرُونَ ﴿٩٥﴾ ٱدْفَعْ بِٱلَّتِى هِىَ أَحْسَنُ ٱلسَّيِّئَةَ ۚ نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَصِفُونَ ﴿٩٦﴾ وَقُل رَّبِّ أَعُوذُ بِكَ مِنْ هَمَزَٰتِ ٱلشَّيَٰطِينِ ﴿٩٧﴾ وَأَعُوذُ بِكَ رَبِّ أَن يَحْضُرُونِ ﴿٩٨﴾ حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءَ أَحَدَهُمُ ٱلْمَوْتُ قَالَ رَبِّ ٱرْجِعُونِ ﴿٩٩﴾ لَعَلِّىٓ أَعْمَلُ صَٰلِحًا فِيمَا تَرَكْتُ ۚ كَلَّآ ۚ إِنَّهَا كَلِمَةٌ هُوَ قَآئِلُهَا ۖ وَمِن وَرَآئِهِم بَرْزَخٌ إِلَىٰ يَوْمِ يُبْعَثُونَ ﴿١٠٠﴾ فَإِذَا نُفِخَ فِى ٱلصُّورِ فَلَآ أَنسَابَ بَيْنَهُمْ يَوْمَئِذٍ وَلَا يَتَسَآءَلُونَ ﴿١٠١﴾ فَمَن ثَقُلَتْ مَوَٰزِينُهُۥ فَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ ﴿١٠٢﴾ وَمَنْ خَفَّتْ مَوَٰزِينُهُۥ فَأُو۟لَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ خَسِرُوٓا۟ أَنفُسَهُمْ فِى جَهَنَّمَ خَٰلِدُونَ ﴿١٠٣﴾ تَلْفَحُ وُجُوهَهُمُ ٱلنَّارُ وَهُمْ فِيهَا كَٰلِحُونَ ﴿١٠٤﴾ أَلَمْ تَكُنْ ءَايَٰتِى تُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ فَكُنتُم بِهَا تُكَذِّبُونَ ﴿١٠٥﴾ قَالُوا۟ رَبَّنَا غَلَبَتْ عَلَيْنَا شِقْوَتُنَا وَكُنَّا قَوْمًا ضَآلِّينَ ﴿١٠٦﴾ رَبَّنَآ أَخْرِجْنَا مِنْهَا فَإِنْ عُدْنَا فَإِنَّا

ظَـٰلِمُونَ ﴿١٠٧﴾ قَالَ ٱخْسَـُٔوا۟ فِيهَا وَلَا تُكَلِّمُونِ ﴿١٠٨﴾ إِنَّهُۥ كَانَ فَرِيقٌ مِّنْ عِبَادِى يَقُولُونَ رَبَّنَآ ءَامَنَّا فَٱغْفِرْ لَنَا وَٱرْحَمْنَا وَأَنتَ خَيْرُ ٱلرَّٰحِمِينَ ﴿١٠٩﴾ فَٱتَّخَذْتُمُوهُمْ سِخْرِيًّا حَتَّىٰٓ أَنسَوْكُمْ ذِكْرِى وَكُنتُم مِّنْهُمْ تَضْحَكُونَ ﴿١١٠﴾ إِنِّى جَزَيْتُهُمُ ٱلْيَوْمَ بِمَا صَبَرُوٓا۟ أَنَّهُمْ هُمُ ٱلْفَآئِزُونَ ﴿١١١﴾ قَـٰلَ كَمْ لَبِثْتُمْ فِى ٱلْأَرْضِ عَدَدَ سِنِينَ ﴿١١٢﴾ قَالُوا۟ لَبِثْنَا يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ فَسْـَٔلِ ٱلْعَآدِّينَ ﴿١١٣﴾ قَـٰلَ إِن لَّبِثْتُمْ إِلَّا قَلِيلًا ۖ لَّوْ أَنَّكُمْ كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿١١٤﴾ أَفَحَسِبْتُمْ أَنَّمَا خَلَقْنَـٰكُمْ عَبَثًا وَأَنَّكُمْ إِلَيْنَا لَا تُرْجَعُونَ ﴿١١٥﴾ فَتَعَـٰلَى ٱللَّهُ ٱلْمَلِكُ ٱلْحَقُّ ۖ لَآ إِلَـٰهَ إِلَّا هُوَ رَبُّ ٱلْعَرْشِ ٱلْكَرِيمِ ﴿١١٦﴾ وَمَن يَدْعُ مَعَ ٱللَّهِ إِلَـٰهًا ءَاخَرَ لَا بُرْهَـٰنَ لَهُۥ بِهِۦ فَإِنَّمَا حِسَابُهُۥ عِندَ رَبِّهِۦٓ ۚ إِنَّهُۥ لَا يُفْلِحُ ٱلْكَـٰفِرُونَ ﴿١١٧﴾ وَقُل رَّبِّ ٱغْفِرْ وَٱرْحَمْ وَأَنتَ خَيْرُ ٱلرَّٰحِمِينَ ﴿١١٨﴾ المؤمنون: ٧٥ - ١١٨

مناسبت اوتړاو :

کله چي الله تبارک وتعالی دمشرکانوسرغړونه یاده کړه چي دایمان بلنه نه مني نودلته یې دهغوی دنه منلوسبب چي عناداوطغیان دی راوړل درپسی یې په توحیدباندی د لیلونه اوبیایې دآخرت او قیامت حالاتو ته اوهلته چي خلک په دوو ډلونیکمرغانوبدمرغانوویشل کیږي کتنه وکړه اودسورت په پآی کي یې دمحشرحکمت چي دجزاډګردی بیان کړځکه که همداحشرنه وای نوبه عاصی اومطیع ،نکوکاراوفاجربدکارنشوبیلیدلای.

لغتونه :

(مبلسون)حیران ناهیلی له (ابلاس) څخه اخیستل شوی اوله هری ښیګړي څخه ناهیلی اومأیوس ته ویل کیږی (ابلیس هم له دغې مادې څخه دی )(یجیر) منع کوی چي کله چاته پناه وروړل شي نوهغه ځنی شرمنع کوی ویل کیږی (آجرت فلاناعلی فلان) یعني فلانی ته می له فلانی څخه پناه ورکړه اوځنی منع می کړ(همزات) دهمزجمع اوهغه پوری وهلوته وایې اودشیطان (همزات) دهغه وسوسې اودوکی دی (برزخ) حاجزاوخنډ ،مانع ته ویل کیږی جوهری وایې چي دبرزخ معناد دووځیزونوترمینځ پرده اوحائل دی ([1]) (کالحون) (کلح) هغه حالت ته وایې چي دواړه شونډې له غاښونوڅخه لیرې شی اودغه خورابدشکله انسانی ځیره څرګندوی .

دنزول سبب :

ابن عباس (رض) وایې دغه آیتونه د(ثمامه بن آثال ) په کیسه کي راغلی دی چي دی یوې ډلې غازیانوپه اسارت ونیوبیایې اسلام راووړ رسول الله ﷺ آزادی وروبښله اوبیاهغه دمکی لاره ونیوه قافلې به دمشرکانولوری ته نه پریښودلی لوړه یې وکړه چي زمادی په الله قسم وی که به تاسوته دیمامی له خوایوه دانه غنم هم درورسیږی ترڅوچي رسول الله ﷺ یې دپریښودلواجازه ونکړی پدی کلونوکي قریش سخت په کاختي اودلوږی ستونزه کي ووآن تردی چي دمړګی اوسپیوغوښې یې وخوړې همداسي چي (علهز)یې خوړل چاپوښتنه وکړه (علهز)څه شی دی ؟ ورته یې وویل (علهز)داچي وړی او

([1]) القرطبي ١٢ / ١٥٠

وزغني (دوزو وړي، ورګونه) به يې په وينو ولړل او بيا به يې پاخه کړل هغه به يې خوړل ابو سفيان رسول الله ﷺ ته راغی ورته ويل يې په الله لوړه درکوم دخپلوی اوقرابت لوری ته دی پام را اړه وم ايا ته داسي ګومان نه کوي چي الله دعالميانو لپاره رحمت را استولی يې ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل هو همداسي دی نو ابو سفيان وويل پلرونه دي په توره ووژل او ماشومان يې په لوږه نو الله جلاله دا آيت نازل کړ: ﴿ وَلَوْ رَحِمْنَٰهُمْ وَكَشَفْنَا مَا بِهِم مِّن ضُرٍّ لَّلَجُّوا فِي طُغْيَٰنِهِمْ يَعْمَهُونَ ﴾ (١) دا آيتونه تر پايه.

تفسير:

﴿ وَلَوْ رَحِمْنَٰهُمْ وَكَشَفْنَا مَا بِهِم مِّن ضُرٍّ ﴾ او که مهرباني کړي وای موږ پردوی (مشرکانو) او موږ لرې کړي وای قحط هغه چي پردوی له ضرر څخه وو (اودوی موله دی ازموينت څخه خلاص کړی وای) ﴿ لَّلَجُّوا فِي طُغْيَٰنِهِمْ يَعْمَهُونَ ﴾ نو خامخا به لاټينګ شوی وای دوی په ګمراهی ،سرکشی خپله کي چي حيران او متردد به وو ﴿ وَلَقَدْ أَخَذْنَٰهُم بِالْعَذَابِ ﴾ او خامخا په تحقيق موږ دوی په عذاب ونيول (چي قحط او لوږه ده دغه مصيبتونه او ازميښتونه مو وروليدل) ﴿ فَمَا اسْتَكَانُوا لِرَبِّهِمْ ﴾ پس خپل رب ته يې غاړه نه کيښوده (عاجزی يې ونکړه الله ته) ﴿ وَمَا يَتَضَرَّعُونَ ﴾ او نه يې تضرع زاری وکړه (چي ابتلاء ځنی لرې کړی بلکه په سرکشی او طغيان کي تلپاتي او سيدل (مقصد دا چي دوی الله ته پخوا هم رجوع نه دی کړې او نه به يې په راتلونکی کي وکړي چي خوراسرکښه او متکبرين دی) ﴿ حَتَّىٰ إِذَا فَتَحْنَا عَلَيْهِم بَابًا ذَا عَذَابٍ شَدِيدٍ ﴾ تر هغه پوري چي موږ په دغو (متکبرانو) پرانستله يوه دروازه خاونده دسخت عذاب (چي دوی يې هډو ګومان نه کاوو) ﴿ إِذَا هُمْ فِيهِ مُبْلِسُونَ ﴾ ناڅاپه دوی په دغه (عذاب) کي حيران لالهاند ناهيلي له هره خيره څخه وو) ابو السعود وايي مقصد له دغه عذابه څخه دآخرت عذاب دی لکه چي صفت يې ددی خبرې اګاهی ورکوی يعني موږ دوی په ډيرو محنتونو وازمايل لکه وژل ،بندی کيدل ،لوږه او نور خو ددوی له پلوه داسلام ايمان راوړلو خواته څه نرمی ونه ليدل شوه ترڅو چي دآخرت عذاب ووينی نو هلته به دوی ناهيلي او غاړي به کيږدی بيا الله تبارک وتعالی خپل نعمتونه ګڼی او دوحدانيت دليلونه راوړی فرمايي: ﴿ وَهُوَ الَّذِي أَنشَأَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَٰرَ وَالْأَفْـِٔدَةَ ﴾ او دغه (الله) هغه ذات دی چي تاسي ته يې غوږونه او سترګې اوزړونه پيداکړی دی چي ووينئ واوری او وپوهيږئ ! پدې کي دمشرکانو لپاره توبيخ دی چي دوی خپل نعمتونه پخپلو اړوند وکارونو نه دی ګومارلی ځکه دسامعي حس داوريد لو لپاره دی چي دارشاد خبری وربانديی واوری دباصري حس دليد لو لپاره ده چي دالله دکمال دلائل او اوصاف ووينی اوعقل بيا ددی لپاره دی چي دالله دبشپړقدرت په مصنوعاتو کي سوچ وکړی نو څوک دغه پخپلو ځايونو کي ونه لګوی هغه داسي دی لکه چي له سره دغه نعمتونه نلری لکه چي الله فرمايي: ﴿ فَمَا أَغْنَىٰ عَنْهُمْ سَمْعُهُمْ وَلَا أَبْصَٰرُهُمْ وَلَا أَفْـِٔدَتُهُم مِّن شَيْءٍ ﴾ دغه دري يې ددي لپاره يادکړي چي

---

(١) البحر ١٢/ ٤١٥

خوراسترمنافع پکي شته ﴿ قَلِيلًا مَّا تَشْكُرُونَ ﴾ ډیرلږ تاسي شکر وباسي (دخپل رب) ﴿ وَهُوَ الَّذِي ذَرَأَكُمْ فِي الْأَرْضِ وَإِلَيْهِ تُحْشَرُونَ ﴾ اوالله هغه ذات دی چي پیدا کړی یی تاسي اود تناسل په لاره يې خواره کړی یی په ځمکه کي او خاص هم دغه (الله) ته به ور جمع کړی شي (لپاره ) دحساب اوجزاء) ﴿ وَهُوَ الَّذِي يُحْيِي وَيُمِيتُ ﴾ اوالله هغه ذات دی چي ژوندی کوي اومړه کوي (خلک اوامتونه) ﴿ وَلَهُ اخْتِلَافُ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ ﴾ اوخاص دهمده کار دی بدلول دشپې او ورځې (په زیاتوالي اوکمبودکي چي دده په وجوداوقدرت دلالت وکړی ﴿ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴾ نوایاپس تاسي عقل نه چلوی (عبرت نه اخلی؟چي هغه ځوک کوم چي په ړومبی پیدایښت قادردی له فناوروسته په را پنځولواوپورته کولوهم توانادی ﴿ بَلْ قَالُوا مِثْلَ مَا قَالَ الْأَوَّلُونَ ﴾ بلکه وايې (دا کفار)په شان د هغي ویناچي پخوانیو کفارو ویلي ده﴿ بَلْ ﴾ داضراب لپاره یعني دوی عقلونه نلری چي له دی آیتونوڅخه پندواخلی بلکه دغه دمکې مشرکان لکه دپخوانیوامتونوپه شان ویناوي کوي ﴿ قَالُوا أَإِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَعِظَامًا أَإِنَّا لَمَبْعُوثُونَ ﴾ ویل دوی کله چي موږمړه شواو خاوري (وراسته )هډوکي شونوایاموږبه خامخابیاژوندي راپاځول کیږو؟ بلکه نه کیږوهسي ګني چي د غه مستحیل کاردی ﴿ لَقَدْ وُعِدْنَا نَحْنُ وَآبَاؤُنَا هَٰذَا مِن قَبْلُ ﴾ خامخاپه تحقیق له موږسره وعده کړی شوی اوزموږ له پلرونوسره همدغه وعده پخوالاشوی(خوموږيې حقیقت اورښتینوالی ندی لیدلی )﴿ إِنْ هَٰذَا إِلَّا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ ﴾ ندی داخبری مګردروغجنې کیسې دی دپخوانیو خلکو؛نوڅرنګه چي دوی له بعثت او نشورڅخه منکردی الله تعالی پیغمبرعلیه السلام ته وفرمایل چي دغسي یوکلک دلیل ورته وړاندي کړي چي دباطل یومخیزه ملاورماته کړي نوبيي فرمایل ﴿ قُل لِّمَنِ الْأَرْضُ وَمَن فِيهَا ﴾ ووایه (ای محمده ! ودغوکفاروته دځواب لپاره ) دچاده دغه ځمکه اومخلوقات چي په هغي کي دی ؟! (څوک يې مالک ،متصرف پیداکونکی اوفناکونکی دی ؟ ) ﴿ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴾ که چېري يې تاسي چي پوهیږئ (نومالک يي راوښيي ،پدی کي ددوی دناپوهی څرګندول اوددوی سپکتیاده قرطبی وایې په آیت شریف کي الله تعالی دخپل ربوبیت او وحدانیت څخه اخبارکوی او دابښیی چي دالله قدرت زوال نلری اونه يې پاچهي، پای ته رسیږی همدغه آیتونه اوله دی راوروسته آیتونه پدې دلالت کوی چي له کفاروسره دلیل ویل اومجادله کول روادی اوهمدابیانوی چي هغه څوک کوم چي خلق اوایجادیې پیل کړی همدغه دعبادت کولواوالوهیت سره وړاوښایی[1] ﴿ سَيَقُولُونَ لِلَّهِ ﴾ نوژربه ووایې خاص الله ته دي (یعني الله یې خالق اوموجددی ﴿ قُلْ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴾ ووایه ای محمده دوی ته ) ایا پس تاسي پند نه اخلی ؟ (چي هغه څوک چي په لومړی

---

(1) القرطبي ۱۲ / ۱۴۵

پیدا ایښت قادر دی هغه يې په بيارا پاڅولو هم توانا دی ) ﴿ قُلْ مَن رَّبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ ٱلسَّبْعِ وَرَبُّ ٱلْعَرْشِ ٱلْعَظِيمِ ﴾ ووایه څوک دی رب داوو آسمانونو اورب دعرش ډېر لوی) یعني داوو آسمانونو اوپه هغوکي دستوررواو لمرونو سپوږمیو اوسترعرش خالق څوک دی ؟ هغه عرش چي پاکيزه ملائکي يې حمل کوی؟﴿ سَيَقُولُونَ لِلَّهِ ﴾ نوژربه ووايې دوی چي دغه ټول (منسوب) الله ته دی ﴿ قُلْ أَفَلَا تَتَّقُونَ ﴾ نو ووایه (ای محمده دوی ته چي ) ایاپس تاسي نه وېرېږی ؟ ! (د الله له عذابه چي دده عبادت وکړي اودبتانوله عبادته لاس واخلي )﴿ قُلْ مَنۢ بِيَدِهِۦ مَلَكُوتُ كُلِّ شَيْءٍ ﴾ او ووایه (ای محمده دوی ته چي ) څوک دی هغه ذات چي په يد بلاكيفه دده کي پاچهي تصرف دی دهرڅيز؟ )یعني دچاپه لاس بلاكيف کي خزانی دهرڅه دی اودچابشپړه پاچهي ده څکه چي ملکوت د مبالغې له صفاتوڅخه دی اوپراخ بشپړملک ته وایي څوک په دې کائناتوکي تصرف کوي تدبيرونه چلوي اوپيداکوي جوړوي يې؟ ﴿ وَهُوَ يُجِيرُ وَلَا يُجَارُ عَلَيْهِ ﴾ اودی پناه ورکوی (مخلوقاتو ته)اوپناه نه ورکوله کيږی (په ضررد )ده باندي (يوچاته) ﴿ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴾ که يې تاسي چي پوهېږي (نوخبرراکړئ ) ﴿ سَيَقُولُونَ لِلَّهِ قُلْ فَأَنَّىٰ تُسْحَرُونَ ﴾ نو ژر به ووايې چي داصفات ټول الله ته دي ووایه (ای محمده دوی ته) پس څرنګه ټګي درباندی کولای شي؟ اوله حقه ګرزی دالله په توحيد اعتراف نکوی سره له دی چي پوهيږی يوازی الله متصرف او مالک دی نوولی تيروزی ؟ ابوحيان وايې چي دلته دسحرمجازی معنا اوتشبيه ده لکه څرنګه چي مسحورباندی خپل اقوال احوال سره ګډوډشی همداسي په دوی ګډوډ کيدل نوپه تدريج سره ددوی دغه توبيخات يې داسي وستايل لوړی ﴿ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴾ دوهم ﴿ أَفَلَا تَتَّقُونَ ﴾ داتر هغه لوړی زيات اوويره پکي ډيره ده دريم ځل يې وفرمايل ﴿ فَأَنَّىٰ تُسْحَرُونَ ﴾ اوپه دی کي دومره زيات توبيخ دی چي په نوروکي نشته (١)﴿ بَلْ أَتَيْنَٰهُم بِٱلْحَقِّ ﴾ بلکه راتله کړی (راوړی ) مودی دوی ته حق درښتياوينا د توحيدپه باب اوهمداسي دبعث اونشورپه هکله﴿ وَإِنَّهُمْ لَكَٰذِبُونَ ﴾اوبيشکه دوی خامخا دروغجنان دی (چي الله ته دشريک اواولادنسبت کوی کله چي په تيروآيتونو کي په بشپړه توګه پردوی دلائل راوړل شول نو ورپسی يې دغه آيت لکه تهديداووعيدورپسی راووړاوبيايې د شريک او ولدبطلان په کوټلی دليل اوقاطع برهان له مينځه يوړو وېې فرمايل ﴿ مَا ٱتَّخَذَ ٱللَّهُ مِن وَلَدٍ ﴾ الله ندی نيولی هيڅ ولد(مطلقانه خوله بشراونه له پرښتو څخه) ﴿ وَمَا كَانَ مَعَهُۥ مِنْ إِلَٰهٍ ﴾ (او نشته ورسره بل هيڅ معبود )یعني نشته بل داسي څوک چي له ده سره په الوهيت اوربوبيت کي شريک وی ﴿ إِذًا لَّذَهَبَ كُلُّ إِلَٰهٍۭ بِمَا خَلَقَ ﴾ نوپه دغه وخت کي بيولی به ووهرخدای هغه مخلوق چي پيداکړی يې وو (اوبيل

---

(١) البحرالمحيط

کړی به یې وه خپله پاچهي دبل له پاچهي څخه ﴿ وَلَعَلَا بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ ﴾ اوخامخاغلبه کوله ځینوددوی پرځیني نورو(لکه دنړی پاچهان . ابن کثیروایې که داسي وانګیروچي پیداکونکي معبودان ډیردی نوهریوبه خپل پنځول شوي مخلوق له ځانه سره بیایې اوبیابه هریوپربل برلاسی غواړی نوبه وجودپه نظم اوترتیب پاتي نشي اوداخوڅرګنده اولیدلی کتلی ده چي کائنات په خورانښکلی نظم اوترتیب جوړښت لری نودادی دلیل دی چي الله تعالی له ولداوشریک څخه پاک دی (۱)نوځکه فرمایي :﴿ سُبْحَـٰنَ ٱللَّهِ عَمَّا يَصِفُونَ ﴾ پاکی ده الله لره له هغه څه چي دوی یې بیانوی (له ولد او شریک نه)﴿ عَـٰلِمِ ٱلْغَيْبِ وَٱلشَّهَـٰدَةِ فَتَعَـٰلَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴾ عالم دی په پټواوښکاره وو ډېر لوی دی له هغه شیزه چي ورسره شریکوی یې )یعني الله تعالی په ټولوپټواوالونیانوشیانو پوهیدونکی دی له هغه څخه دمخلوقاتوهیڅ چاره هم پټه نه ده اوپاک دی له ولداوشریک څخه ﴿ قُل رَّبِّ إِمَّا تُرِيَنِّي مَا يُوعَدُونَ ﴾ (ووایه ته ای محمده )ای زماربه که چیری وښیي ته ماته هغه (عذاب چي وعده یې کولی شي (له دوی سره )یعني ووایه ای ربه که چیری خامخاماته ددوی هغه عذاب چي له دوی سره یې وعده کوی په دنیاکي رالیدونکی یې نو﴿ رَبِّ فَلَا تَجْعَلْنِي فِى ٱلْقَوْمِ ٱلظَّـٰلِمِينَ ﴾ ای زماربه ماد ظالمانوپه قوم کي مه لره !(دغه د ﴿ إِمَّا ﴾ شرطیي ځواب دی اود﴿ رَّبِّ ﴾ کلمه یې ځکه تکرارکړه چي په دعاکي مبالغه وشي اوتضرع افاده کړی یعني مادظالمانوپه ډله کي مه لره چي بیابه زه هم له دوی سره هلاک شم ابوحیان وایې چي: داخومعلومه خبره ده چي رسول الله ﷺله ظالمانوسره له ګډیدلومعصوم دی خوپدی دعاکولو ورته امروشو ترڅو چي دعبودیت اوتواضع څرګندونه وشي (۲) ﴿ وَإِنَّا عَلَىٰٓ أَن نُّرِيَكَ مَا نَعِدُهُمْ لَقَـٰدِرُونَ ﴾ اوبیشکه موږ پدي کارچي وښیوتاته هغه عذاب چي له دوی سره یې وعده کووخامخاقادر یو(خودکوم حکمت لپاره یې وروسته کوو )﴿ ٱدْفَعْ بِٱلَّتِى هِىَ أَحْسَنُ ٱلسَّيِّئَةَ ﴾ (دفع کړه (ای محمده )بدی په هغه خصلت سره چي هغه ډیرښه دی ) یعني په ښو اخلاقو او عفوددوی بدی دفعه کړه ابن کثیروایې چي الله تعالی هغه ته خورانښه علاج ور وښودچي هغه له هغو سره چي بدکوي احسان کول دی ترڅویې زړه خپل کړی او دښمني یې په دوستي بدله شي بغض یې په مینه واوړي (۳)﴿ نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَصِفُونَ ﴾موږته ښه معلوم دی هغه خبرې چي ستایې (دوی استهزاوې کوي نوبه ورته سزاورکړو) .
﴿ وَقُل رَّبِّ أَعُوذُ بِكَ مِنْ هَمَزَٰتِ ٱلشَّيَـٰطِينِ ﴾ او ووایه (ای محمده) ای زما ربه په تاپوري پناه غواړم له چخولو(وسوسو ) د شیطانانو څخه (هغه چي سړی باطل او ګناهونو ته راکاږي ) ﴿ وَأَعُوذُ بِكَ رَبِّ أَن

---

(۱) مختصرابن کثیر۲ /۵۷۲
(۲) مختصرابن کثیر۲ /۵۷۳
(۳) مختصرابن کثیر۲ /۵۷۴

يَحْضُرُونِ ﴾ اوپناه غوارم په تاباندی ای زمار به چي حاضر شی (دوی) ماته ) يعني او پناه غوارم په تاباندي ای زمار به چي حاضرشي (دوی ماته ضرر ورسوي (يازماپه چاروكي راسره ملگری شي دوه خله بې ځكه تكرار كړچي داستعاذې په هكله اهتمام راشي ﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءَ أَحَدَهُمُ ٱلْمَوْتُ ﴾ ترهغه پوري چي كله راشي يوددوی ته مرگ اوننبي ننباني يې ووينې دلته بيرته كلام مشركانوته راوگرزيدو ) ﴿ قَالَ رَبِّ ٱرْجِعُونِ ﴾ نو وبه وايې ای زما ربه بيرته وگرزوه مادنياته دجمع صيغه دتعظيم لپاره استعمال شوي ده ) ﴿ لَعَلِّىٓ أَعْمَلُ صَٰلِحًا فِيمَا تَرَكْتُ ﴾ ددې لپاره چي زه نيک عمل وكړم په هغه ځه كي چي مابيرته پری ايښی دی (عمرمي ضائع كړی دی ) ﴿ كَلَّآ ۚ إِنَّهَا كَلِمَةٌ هُوَ قَآئِلُهَا ﴾ نه دی داسي بيشكه دغه (درجعت خبره) داسي چتې بيكاره خبره ده چي دی يې ويونكی دی (اوهيڅ گټه فائده پكي نشته هغه بادوړې خبره ده ﴿ وَمِن وَرَآئِهِم بَرْزَخٌ إِلَىٰ يَوْمِ يُبْعَثُونَ ﴾ او په مخ كي ددوی برزخ (پرده دقبر) ده ترهغي ورځي پوري بيا ژوندی راپاڅول كيږي مجاهدوايې برزخ هغه حاجز ته وايې چي ددنيا اوآخرت ترمينځ وی ﴿ فَإِذَا نُفِخَ فِى ٱلصُّورِ فَلَآ أَنسَابَ بَيْنَهُمْ يَوْمَئِذٍ ﴾ نوكله چي پوكی وكړی شی دوهم ځل په صورشپيلۍ كي پس نه به وي (گټه رسونكي) نسبونه په مينځ ددوی كي (چي يوبل ته نفع ورسوی ځكه چي گردبه پخپلو وريښنو مصيبتونواخته وی هر څوک به له ورروره، موره، پلاره، مېرمنې اوزويه تښتي ﴿ وَلَا يَتَسَآءَلُونَ ﴾ اونه به دوی يوله بله پوښتنه كوی (چي تول به مشغول وی اودغه آيت له دی آيت سره چي فرمايي ﴿ وَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ يَتَسَآءَلُونَ ﴾ [الصافات: ۲۷] سره كوم منافات نلری ځكه دقيامت اوږده ورځ ده اوهلته به څوتم ځايونه (مواقف) وی چي كله به سره يوله بله پوښتني كوي اوكله به بيابيخي خبري نكوي ﴿ فَمَن ثَقُلَتْ مَوَٰزِينُهُۥ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ ﴾ پس هر څوک چي درنې شي تلې (دښوعملونو )ددوی (كه څه هم په يوه نيكی وي) ﴿ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ ﴾ پس همدغه كسان هم دوی دی برياليان (نيكمرغه چي له دوزخ ژغورل شوی اوجنت ته تلونكی دی ) ﴿ وَمَنْ خَفَّتْ مَوَٰزِينُهُۥ فَأُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ خَسِرُوٓاْ أَنفُسَهُمْ فِى جَهَنَّمَ خَٰلِدُونَ ﴾ اوهر هغه څوک چي سپكي شي تلې (دنيكوعملونو )ددوی پس دا هغه كسان دي چي زيان يې كړی دنفسونو خپلو (په ضائع كيدلود نيكمرغي اولړلوپه كفراوگناهونو باندي ) په دوزخ كي به تل پراته وی (چي نه به ځنی وزی ) ﴿ تَلْفَحُ وُجُوهَهُمُ ٱلنَّارُ ﴾ اوربه ددوی مخونه سوځي (په ځانگړي توگه دمخونو يادونه په پدې وشوه چي هغه دگردوغړواشرف دی ﴿ وَهُمْ فِيهَا كَٰلِحُونَ ﴾ اووی به دوی په دغه اوركي گونجي تندی (بدمخی او بدرنگه) ابن مسعودوايي غاښونه به يې له ورايه ښكاري شونډان به يې سره ارت وي لكه په اور ډمنځ شوی سرغوندي په حديث شريف كي راځي چي اوربه يې داسي بدرنگه

کړی چي پورتني شونډه به يې دسرمابين ته اوښکتي به يې ترنامه راوځړېږي (۱) ﴿ أَلَمْ تَكُنْ ءَايَٰتِى تُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ ﴾ آيا نه وو آيتونه زما چي پرتاسي لوستل کيدو (په دنيا کي) ﴿ فَكُنتُم بِهَا تُكَذِّبُونَ ﴾ پس وی -اسي چي پرهغو به مو تکذيب کاوو (نه مومنل سره له دې چي ځرګندوو) ﴿ قَالُوا۟ رَبَّنَا غَلَبَتْ عَلَيْنَا شِقْوَتُنَا ﴾ نوو به وايي (کفار) ای زموږ ربه غالبه شوې وه پرموږ بدبختي زموږ ﴿ وَكُنَّا قَوْمًا ضَآلِّينَ ﴾ اوموږ وويو قوم ګمراهان چي په نفسي خواهشاتو پسي ګرزيدو ﴿ رَبَّنَآ أَخْرِجْنَا مِنْهَا فَإِنْ عُدْنَا فَإِنَّا ظَٰلِمُونَ ﴾ ای زموږ ربه وباسه موږ له دې دوزخه پس که بيا راو ګرزيدو موږ (دې کفر ته) پس بيشکه موږ ظالمان يو؛ دوی دلته لوموړی پخپله ګناه اقرار وکړ اوبيا وروورويې دتضرع لوري ته رغبت وکړاو ځواب په ناهيلي سره ورکړ شو ﴿ قَالَ ٱخْسَـُٔوا۟ فِيهَا وَلَا تُكَلِّمُونِ ﴾ وبه فرمايي الله چي چپ شئ (لکه چي سپي ته ويل کيږي چغه شئ) او خبرې مه کوئ له ماسره (په دفع کولو دعذاب کي په التسهيل نومي کتاب کي راوړي چي (اخسئوا) داسي کلمه ده چي دسپيو دزجرلپاره استعمالېږي او په دې کي اهانت اوشړل شته (۲) ﴿ إِنَّهُۥ كَانَ فَرِيقٌ مِّنْ عِبَادِى يَقُولُونَ رَبَّنَآ ءَامَنَّا فَٱغْفِرْ لَنَا وَٱرْحَمْنَا وَأَنتَ خَيْرُ ٱلرَّٰحِمِينَ ﴾ بيشکه شان دادی چي وه يوه ډله له بندګانو زما (مؤمنان) چي دوی ويل (تضرعًا) ای زموږ ربه پوره يقين اوتصديق مو وکړی (په ټول مؤمن به شيانو) نومغفرت وکړه موږ ته او مهرباني راباندي وکړه او ته ډير غوره دټولو مهربانې کونکويې؛ مجاهد وايې چي دغه کسان بلال، خباب، صهيب، اونور بيوزله مسلمانان ووچي ابوجهل اواندي والانو به يې په دوی ملنډي وهلې (۳) ﴿ فَٱتَّخَذْتُمُوهُمْ سِخْرِيًّا ﴾ پس نيولي ووتاسي دوی مسخرې کړی شوي پردوی ﴿ حَتَّىٰٓ أَنسَوْكُمْ ذِكْرِى ﴾ ترهغه چي هېر کړله تاسو (دغه کارستاسي) ذکرياد زما دطاعت اوعبادت ای کفارو ﴿ وَكُنتُم مِّنْهُمْ تَضْحَكُونَ ﴾ اووی تاسي چي په هغوی پوري موخندل (په دنيا کي) ﴿ إِنِّى جَزَيْتُهُمُ ٱلْيَوْمَ بِمَا صَبَرُوٓا۟ ﴾ بيشکه جزامي ورکړه دوی ته نن ورځ په سبب دهغه چي هغوی صبر کړی وو (ستاسو په ايذا ضرر باندي) ﴿ أَنَّهُمْ هُمُ ٱلْفَآئِزُونَ ﴾ بيشکه هغوی چي دی همدوی دي بريا ليان (خپلو مقصدونو ته رسيدلي) ﴿ قَٰلَ كَمْ لَبِثْتُمْ فِى ٱلْأَرْضِ عَدَدَ سِنِينَ ﴾ وبه وايې (الله تعالی کفاروته توبيخاً) څومره څنډ موتيرکړی دی تاسي په ځمکه کي په شمارد کلونو؟! ﴿ قَالُوا۟ لَبِثْنَا يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ ﴾ نو وبه وايې کفار څنډ مو کړی دی يوه ورځ يا يوه برخه دورځي ﴿ فَسْـَٔلِ ٱلْعَآدِّينَ ﴾ نوته پخپله پوښتنه وکړه له حسابګروڅخه؛ ابن عباس وايې له دوی څخه دغه عذاب هغه

---

(۱) أخرجه الترمذي وقال حسن غريب
(۲) التسهيل ۳ / ۵۷
(۳) القرطبي ۱۲ / ۱۵۴

موده بيخي هېره کړه کوم چي دوی په دنياکي اوسيدلي وو ﴿ قَـٰلَ إِن لَّبِثۡتُمۡ إِلَّا قَلِيلًاۖ ﴾ وبه فرمايي چي ندی ځنډکړی تاسي (په دنياکي ) مګرلږه موده ؛امام رازي وايي لکه چي داسي معنالري چي هوکي رښتياتاسو لږځنډکړی ځکه هغه موده تيره شوه تېرېدل يې لرل اومقصد دوی ته ددنياد ژوندموده ورپيژندل دی چي دآخرت دمودې په وړاندی خورالږه ده (١) ﴿ لَّوۡ أَنَّكُمۡ كُنتُمۡ تَعۡلَمُونَ ﴾ (که چيری بيشکه تاسي بې چي پوهېږي) يعني که چېري تاسوپوهه اوفکر درلودای نوبه د دنيا حقارت اونه پاتيدونکی متاع درته معلومه وای ﴿ أَفَحَسِبۡتُمۡ أَنَّمَا خَلَقۡنَـٰكُمۡ عَبَثًا ﴾ ايا پس ګومان کوی تاسي داچي بيشکه خبره داده چي پيداکړي مويی تاسي عبث؟ (بې له ثواب او عقابه لکه چارپايان غوندي ) ﴿ وَأَنَّكُمۡ إِلَيۡنَا لَا تُرۡجَعُونَ ﴾ اوداسي ګومان کوی؟ چي بيشکه تاسي به موږته نه راوستل کېږي (دجزاء لپاره ) نه , هسي نه ده لکه چي تاسي ګومان کوی بلکه دجزالپاره راتله شته ﴿ فَتَعَـٰلَى ٱللَّهُ ٱلۡمَلِكُ ٱلۡحَقُّۖ ﴾ پس ډيرپورته لوی لوړدی الله (له ګردو عيبونو ) مطلق حق باچادی ؛ (د تصرف خاوند دی چي څوک وژني څوک ژوندي کوي پاک دی له عبثياتو اوبيهوده کارونوچي داسي څوک پيداکړي چي بې معناوي ځکه دحکمت خاونددی ﴿ لَآ إِلَـٰهَ إِلَّا هُوَ رَبُّ ٱلۡعَرۡشِ ٱلۡكَرِيمِ ﴾ نشته هيڅوک لائق دعبادت په رښتيامګرخوهم دی دی مالک دعرش کريم (عزت ناک دی چي رحمت اوخيرتري رانازلېږي اواکرم الاکرمين ذات ته يې نسبت کېږي) ﴿ وَمَن يَدۡعُ مَعَ ٱللَّهِ إِلَـٰهًا ءَاخَرَ لَا بُرۡهَـٰنَ لَهُۥ بِهِۦ ﴾ اوهر څوک چي بولي له الله سره بل خدای (چي دهغه عبادت هم کوي هسي خدای چي )نشته هيڅ علمي برهان سندده ته په دغه (عبادت دغير) ﴿ فَإِنَّمَا حِسَابُهُۥ عِندَ رَبِّهِۦٓ ﴾ بيشکه همدا خبره ده چي حساب (جزاء) ددی (مشرک) په نزد درب دده دی ﴿ إِنَّهُۥ لَا يُفۡلِحُ ٱلۡكَـٰفِرُونَ ﴾ بيشکه شان دادی چي بری نه مومي کافران (اونه خلاصېږي له عذابه) دسورت پيل يې په ﴿ قَدۡ أَفۡلَحَ ٱلۡمُؤۡمِنُونَ ﴾ وفرمايو او پای يې په ﴿ إِنَّهُۥ لَا يُفۡلِحُ ٱلۡكَـٰفِرُونَ ﴾ وکړترڅو ددواړوترمينځ تفاوت څرګندشی اوداڅمکي آسمان واټن دی ددواړوترمينځ چي پيل او پای يې راوور ﴿ وَقُل رَّبِّ ٱغۡفِرۡ وَٱرۡحَمۡ وَأَنتَ خَيۡرُ ٱلرَّـٰحِمِينَ ﴾ (او ووايه ای محمده ) ای زماربه مغفرت او رحم وکړه اوته ډيرغوره دټولورحم کونکويې) دلته الله تعالی خپل استازی ته داستغفاراواسترحام امر کوي اوامت ته تعليم ورکوی چي د ثناء اودعالاره ونيسئ اللهم اغفرلنا وارحمنا برحمتک التی وسعت کل شئ ياارحم الراحمين اللهم آمين .

بلاغت : پدی آيتونوکي چي دبيان اوبديع کومې ښکلاوې شته لنډيز يی دادی :

١ـ امتنان لکه ﴿ وَهُوَ ٱلَّذِيٓ أَنشَأَ لَكُمُ ٱلسَّمۡعَ وَٱلۡأَبۡصَـٰرَ وَٱلۡأَفۡـِٔدَةَ ﴾.

---

(١) التفسيرالکبير ٢٣ / ١٢٧

۲ـ تفنن چي: ﴿ ٱلسَّمۡعَ وَٱلۡأَبۡصَٰرَ ﴾ یې وفرمایل سمع یې مفرد او ابصار یې جمع راوړل.

۳ـ د تقلیل لپاره تنکیر لکه: ﴿ قَلِيلٗا مَّا تَشۡكُرُونَ ﴾ او یاد تاکید لپاره ده چي دغه تقلیل چي له تنکیر ځخه پیدا شوی ټینګ کړی چي شکرا قلیلا یې معناده او دغه له ناشکری ځخه کنایه راغلی ده.

۴ـ استفهام چي غرض ځنی انکار او توبیخ دی لکه: ﴿ أَفَلَا تَعۡقِلُونَ ﴾ ﴿ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴾ ﴿ أَفَلَا تَتَّقُونَ ﴾.

۵ـ د طباق صنعت لکه چي د ﴿ يُحۡيِۦ وَيُمِيتُ ﴾ ترمنیځ دی.

۶ـ د شرط د ځواب حذف چي لفظ ورباندي دلالت کوي لکه داچي: ﴿ إِن كُنتُمۡ تَعۡلَمُونَ ﴾ او ځواب یې داچي (فاخبرونی عنه) یعني که پوهیږي نو خبر را کړئ.

۷ـ د سلب طباق لکه ﴿ وَهُوَ يُجِيرُ وَلَا يُجَارُ عَلَيۡهِ ﴾.

۸ـ د کلام تاکید د حرف جر په زیاتوالی سره لکه ﴿ مَا ٱتَّخَذَ ٱللَّهُ مِن وَلَدٖ ﴾ چي معناداچي (مااتخذالله ولدا) او یاداچي ﴿ وَمَا كَانَ مَعَهُۥ مِنۡ إِلَٰهٍۚ ﴾ چي په دواړوځایونوکي د ﴿ مِنۡ ﴾ راتلل دنفی د تاکید او تثبیت لپاره دی.

۹ـ د طباق بل صنعت لکه: ﴿ عَٰلِمِ ٱلۡغَيۡبِ وَٱلشَّهَٰدَةِ ﴾.

۱۰ـ تاکید په ال او لام سره لکه داچي: ﴿ وَإِنَّا عَلَىٰٓ أَن نُّرِيَكَ مَا نَعِدُهُمۡ لَقَٰدِرُونَ ﴾ چي د مخاطبینو د انکار لپاره راغلی دئ.

۱۱ـ معنوی طباق لکه چي فرمایي: ﴿ ٱدۡفَعۡ بِٱلَّتِي هِيَ أَحۡسَنُ ٱلسَّيِّئَةَ ﴾ ځکه چي معنادا چي (ادفع بالحسنة السيئة) نو دغه معنوي طباق دی.

۱۲ـ د جمعی لپاره دواوړل د تعظیم په هکله لکه دا: ﴿ رَبِّ ٱرۡجِعُونِ ﴾ او داسي یې ونه ویل چي (رب ارجعنی) چي د الله جل جلاله لپاره تعظیم وشي.

۱۳ـ مرسل مجاز چي فرمایي ﴿ إِنَّهَا كَلِمَةٌ هُوَ قَآئِلُهَا ﴾ چي د کلمې اطلاق یې په جمله باندي و فرمایل او دغه اطلاق د جزء مراد ځني کل دی.

۱۴ـ لطیفه مقابله: ﴿ فَمَن ثَقُلَتۡ مَوَٰزِينُهُۥ ﴾ او ﴿ وَمَنۡ خَفَّتۡ مَوَٰزِينُهُۥ ﴾ د دواړو آیتونو ترمینځ.

۱۵ـ د قصر صنعت لکه: ﴿ أَنَّهُمۡ هُمُ ٱلۡفَآئِزُونَ ﴾.

۱۶ـ اشتقاقی جناس چي فرمایی ﴿ ٱغۡفِرۡ وَٱرۡحَمۡ وَأَنتَ خَيۡرُ ٱلرَّٰحِمِينَ ﴾.

۱۷ـ موزونه سجعه چي له تکلفاتو ځخه ژغورلی او خوره زیاته او مشهوره ده.

(د الله (ﷻ) په مرسته د المؤمنون سورت تفسیر بشپړ شو.

## د(النور) سورت مدنی او څلویښت آیتونه لري.

دسورت په وړاندي :

* دالنورسورت له مدنی سورتونوڅخه یودی اوتشریعی احکام څیري اخلاق اوسلوک ښیي تولنیزو چاروته پاملرنه کوی په ځانګړې توګه هغه څه ښیې چي مسلمانان بایدورباندی وروزل شی هغوی که افراد دی اوکه ټولګی همدارازسورت په ډیرومهموحکمونواوتوجیهاتومشتمل دی کوم چي په کورنۍ پوري اړونددی هغه کورنۍ چي دستري ټولنې لپاره زړی (تخم) تشکیلوی .
* سورت هغه ټولنیزاداب څرګندوی کوم چي لازم دی مسلمانان یې پخپل ټولنیزژوندانه کي اړو مروعملی کړی لکه چي استیذان غوښتل ،پردي ناموس ته نه کتل ،خپل فروج له نارواکارونوڅخه خوندی ساتل اوله پردیوښځوسره دنامحرمونارینه ووګډون نه کول دی اوګردهغه شیان چي دیوې مسلماني کورنۍ لپاره یې ترسره کول اړین (ضروری )وی لکه عفاف (پاک لمنی) ستر(حجاب) اوپه شریعت باندی ثبات اواستقامت کول ترڅوچي حرمت یې پرځای وساتل شی اوله وراني ویجاړی څخه یې خوندي پاتی کړي کوم چي کورنۍ اوامتونه له اخلاقی پلوه نړوی اوله مینځه یې وړی .
* پدې سورت کي ځیني هغه حدودچي الله تعالی فرض کړی لکه دزناحد ،دقذف حداودلعان حداغلی دی اودغه ټول حدودپه مجموع کي دټولنې له فساداوبې لاریوڅخه دپاکوالی لپاره فرض شوی ترڅونسبونه ګډوډنشی اخلاقی تیټ والی انحطاط اوانحلال رامنځته نشی اوامت دفساداوذلت په خوساړندونوکي غوپه نشی څوچي شرف اوعرض یې خوندی وی په لنډه توګه دغه سورت ترټولوستر پلوته چي هغه دټولنیزژوندانه هغه له خطراتوډک لوری دی پام کوی چي هغه کورنۍ ده اودهغي په وړاندی کي خنډونه اومشکلات شته دی چي غواړی هغه له مینځه یوسی سربیره پردې په سورت کي لوړاخلاق سترحکمتونه ښائسته لارښووني راغلې چي دعزتمن اوله فضیلت نه ډک ژوندانه تاداوونه ایږدي ځکه نوعمربن الخطاب دکوفې خلکوته یولیک ولیکل چي پکي راغلی وو : خپلو میرمنوته سورت النور ورزده کړئ.

تسمیه اونومول یې :

دغه سورت ته سورت النورپدی وایې چي ربانی وړانګې اوانوارپکي دشرعی احکامواو انساني فضائلوچي دالله له نورڅخه یوه شغله ده له ورایه ځلیږی اودالله دفیوضاتواوبرکاتو احساناتو ټولګه ده فرمایي ﴿ اللَّهُ نُورُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴾ اللهم نور قلوبنابکتابک المبین یارب العلمین آمین .

الله تعالی فرمایي :

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ سُورَةٌ أَنزَلْنَاهَا وَفَرَضْنَاهَا وَأَنزَلْنَا فِيهَا آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ لَّعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ﴿١﴾ الزَّانِيَةُ وَالزَّانِي فَاجْلِدُوا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ وَلَا تَأْخُذْكُم بِهِمَا رَأْفَةٌ فِي دِينِ اللَّهِ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَلْيَشْهَدْ عَذَابَهُمَا طَائِفَةٌ مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٢﴾ الزَّانِي لَا يَنكِحُ إِلَّا زَانِيَةً أَوْ مُشْرِكَةً وَالزَّانِيَةُ لَا يَنكِحُهَا إِلَّا زَانٍ أَوْ مُشْرِكٌ وَحُرِّمَ ذَٰلِكَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ ﴿٣﴾ وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنَاتِ ثُمَّ لَمْ

يَأْتُوا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءَ فَاجْلِدُوهُمْ ثَمَانِينَ جَلْدَةً وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا ۚ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ ﴿٤﴾ إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا مِنْ بَعْدِ ذَٰلِكَ وَأَصْلَحُوا فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿٥﴾ وَالَّذِينَ يَرْمُونَ أَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُمْ شُهَدَاءُ إِلَّا أَنْفُسُهُمْ فَشَهَادَةُ أَحَدِهِمْ أَرْبَعُ شَهَادَاتٍ بِاللَّهِ ۙ إِنَّهُ لَمِنَ الصَّادِقِينَ ﴿٦﴾ وَالْخَامِسَةُ أَنَّ لَعْنَتَ اللَّهِ عَلَيْهِ إِنْ كَانَ مِنَ الْكَاذِبِينَ ﴿٧﴾ وَيَدْرَأُ عَنْهَا الْعَذَابَ أَنْ تَشْهَدَ أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ بِاللَّهِ ۙ إِنَّهُ لَمِنَ الْكَاذِبِينَ ﴿٨﴾ وَالْخَامِسَةَ أَنَّ غَضَبَ اللَّهِ عَلَيْهَا إِنْ كَانَ مِنَ الصَّادِقِينَ ﴿٩﴾ وَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُ وَأَنَّ اللَّهَ تَوَّابٌ حَكِيمٌ ﴿١٠﴾ إِنَّ الَّذِينَ جَاءُوا بِالْإِفْكِ عُصْبَةٌ مِنْكُمْ ۚ لَا تَحْسَبُوهُ شَرًّا لَكُمْ ۖ بَلْ هُوَ خَيْرٌ لَكُمْ ۚ لِكُلِّ امْرِئٍ مِنْهُمْ مَا اكْتَسَبَ مِنَ الْإِثْمِ ۚ وَالَّذِي تَوَلَّىٰ كِبْرَهُ مِنْهُمْ لَهُ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿١١﴾ لَوْلَا إِذْ سَمِعْتُمُوهُ ظَنَّ الْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بِأَنْفُسِهِمْ خَيْرًا وَقَالُوا هَٰذَا إِفْكٌ مُبِينٌ ﴿١٢﴾ لَوْلَا جَاءُوا عَلَيْهِ بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءَ ۚ فَإِذْ لَمْ يَأْتُوا بِالشُّهَدَاءِ فَأُولَٰئِكَ عِنْدَ اللَّهِ هُمُ الْكَاذِبُونَ ﴿١٣﴾ وَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ لَمَسَّكُمْ فِي مَا أَفَضْتُمْ فِيهِ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿١٤﴾ إِذْ تَلَقَّوْنَهُ بِأَلْسِنَتِكُمْ وَتَقُولُونَ بِأَفْوَاهِكُمْ مَا لَيْسَ لَكُمْ بِهِ عِلْمٌ وَتَحْسَبُونَهُ هَيِّنًا وَهُوَ عِنْدَ اللَّهِ عَظِيمٌ ﴿١٥﴾ وَلَوْلَا إِذْ سَمِعْتُمُوهُ قُلْتُمْ مَا يَكُونُ لَنَا أَنْ نَتَكَلَّمَ بِهَٰذَا سُبْحَانَكَ هَٰذَا بُهْتَانٌ عَظِيمٌ ﴿١٦﴾ يَعِظُكُمُ اللَّهُ أَنْ تَعُودُوا لِمِثْلِهِ أَبَدًا إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ ﴿١٧﴾ وَيُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ ۚ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿١٨﴾ إِنَّ الَّذِينَ يُحِبُّونَ أَنْ تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِينَ آمَنُوا لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ۚ وَاللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴿١٩﴾ وَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُ وَأَنَّ اللَّهَ رَءُوفٌ رَحِيمٌ ﴿٢٠﴾ النور ١ - ٢٠

## لغتونه:

(سورة) سورت په لغت کي ستري رتبې اولوړي مرتبې ته وايې اوهغه ټولګه آيتونه چي پيل اوپای يې معلوم دی ځکه سورت بولی چي ستره مرتبه اوشرافت لری لکه جګ ديوال ته هم (سور) وايې (الزنی) زنی حرامي وطی ته وايې اوفاحشه يې هم بولی چي په بدی کي منتهاته رسيدلی وي زاني يې فاعل دی اهل نجديی (زنا) ليکي (رأفة) له رؤف څخه مشتق اونرم زړه مهربان ته وايې (المحصنات) پاک لمنو ميرمنوته وايې (احصان) منعي ته وايې اوځکه نوميرمنوته محصنات ويل کيږی چي ځانونه يې له بدوافعالومنع کړی اوبرج ته هم حصن وايې ځکه هغه دښمنانَ منع کوی (يدرأ) له (درء) څخه اودفع کولوته وايې (الشيع) له شاع څخه اخيستل شوی اوظهورخپراوی ته وايې (عصبة) هغه ټولګي اوډلګی ته وايې چي ځيني يې دځينونورو ملاتړکوي.

## دنزول سبب:

۱ـ روايت کيږی چي يوه ښځه چي (ام مهزول) نوميده ناولی کارونه يی کول يعني زنابه يی کوله اوپه سړی به يی داسي شرط ايښودل چي ددې نفقه به ورکوی نوله مسلمانانوڅخه يوچا دهغي دنکاح کولو

اراده وکړه اورسول الله ﷺ ته يې په دې هکله وويل نو الله تعالی دا آيت نازل کړ: ﴿ وَٱلزَّانِيَةُ لَا يَنكِحُهَآ إِلَّا زَانٍ أَوۡ مُشۡرِكٞۚ ﴾ (۱)

ب ـ ابن عباس (رض) وايي چي هلال بن اميه د رسول الله ﷺ په وړاندي پخپله ښځه تور ولګاوو چي له (شريک بن سحماء) سره توره شوې رسول الله ﷺ ورته وفرمايل يا به شاهدان تيروي او يا به دي پر ملا دُرې درکول کيږي حد به درباندي جاري کيږي نو هغه وويل اى رسول الله ﷺ کله چي يو څوک له خپلې ميرمنې سره يو څوک ووينی بيا به نو په شاهدانو پسی ګرزي؟ زما دې په هغه ذات قسم وي چي ته يې په حقه را استولی يې زه رښتياويونکی يم او الله دي هغه څه رانازل کړي چي زما شاله (حد) څخه وژغوري نو بيا دا آيتونه نازل شول: ﴿ وَٱلَّذِينَ يَرۡمُونَ أَزۡوَٰجَهُمۡ ﴾ (۲)

تفسير:

﴿ سُورَةٌ أَنزَلۡنَٰهَا ﴾ (دا يو عظيم الشان) سورت دی چي نازل کړی دی موږ) يعني دا د قرآني جوامع السورو څخه يو ستر سورت دی چي موږ تا ته ای محمده نازل کړي ﴿ وَفَرَضۡنَٰهَا ﴾ او فرض کړی دی موږ (له قطعي او ايجابي احکامو څخه) ﴿ وَأَنزَلۡنَا فِيهَآ ءَايَٰتِۭ بَيِّنَٰتٖ ﴾ او نازل کړی دی موږ پدی قرآن کي ښکاره آيتونه د شرعي احکامو خوستاسو لپاره اى مؤمنانو د لارې مشال وي او دانزال کلمه په تکراري ډول څکه راوړل شوی چي په شان کي يې زيات اهتمام او پاملرنه وشی لکه چي فرمايي مادغه يوازي د تلاوت کولو لپاره نه دي نازل کړې بلکه د عملي کولو او تطبيق لپاره مي نازل کړی دی ﴿ لَّعَلَّكُمۡ تَذَكَّرُونَ ﴾ د دي لپاره چي تاسي (پرې) پند واخلئ (او په موجب يې عمل وکړی وروسته الله تعالی د احکامو په بيانولو پيل کوی او د زنا د حد په هکله فرمايي ﴿ ٱلزَّانِيَةُ وَٱلزَّانِي فَٱجۡلِدُواْ كُلَّ وَٰحِدٖ مِّنۡهُمَا مِاْئَةَ جَلۡدَةٖۖ ﴾ هغه ښځه چي زنايې کړې وي او هغه سړی چي زنايې کړې وي (غير محصنين وي) پس وهی تاسي (په دې سخته ګناه باندي هر يو له دغو دواړو سل دُرې ﴿ وَلَا تَأۡخُذۡكُم بِهِمَا رَأۡفَةٞ فِي دِينِ ٱللَّهِ ﴾ او ندی نيسی تاسو له په دغو دواړو (زناکارانو) زړه سوی مهرباني (په انفاذ) د حکم د الله کي (چي په کراريی وهی او يا شمير ورلږ کړي بلکه مزبوت يې ووهي مجاهد وايي معنا دا چي د الله حدود مه معطل کوئ او د شفقت او مرحمت له مخې هغه بيخی له پامه مه غورزوی (۳) ﴿ إِن كُنتُمۡ تُؤۡمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِۖ ﴾ که يې تاسي چي ټينګ يقين په الله او په ورځې د قيامت لری (نو د الله جل جلاله حدود مه پريږدی او په زانيانو شفقت مکوئ څکه د زنا ګناه د دی وړ نه ده چي څوک دی ورباندي ورحميږی او شفقت دی پری وکړي ﴿ وَلۡيَشۡهَدۡ عَذَابَهُمَا طَآئِفَةٞ مِّنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴾ او حاضر دی شی عذاب کولو د دی دواړو ته يوه ډله د مؤمنانو تر څو د دوی زجر زيات

---

(۱) رواه احمد والنسائي

(۲) رواه البخاري او د بحث بشپړه کيسه زموږ په تأليف روائع البيان ۲ / ۸۰ کي وګورئ

(۳) التفسير الکبير ۲۳ / ۱۴۸

اوتعذيب يې اضافه شي ځكه كله كله ترعذاب رسوايي ډيره دڅغورنې سبب كيږي ﴿ ٱلزَّانِى لَا يَنكِحُ إِلَّا زَانِيَةً أَوْ مُشْرِكَةً ﴾ (زناكارسړى نه نكاح كوي مگرخوزناكاره ښځه يا مشركه ښځه ) يعني له زناكاره سړي نه ښايي چي عفيفه پاک لمنه شريفه ښځه په نكاح واخلي بلكه هغه لكه ځان غوندى ښځه په رغبت اومينه غواړي اوياهغه چي ترده هم لاناولې بدكاره وي اويابيخي مشركه بت پرسته وي ﴿ وَٱلزَّانِيَةُ لَا يَنكِحُهَآ إِلَّا زَانٍ أَوْ مُشْرِكٌ ﴾ اوزناكاره ښځه نه په نكاح كوي (ددې سره په رغبت اومحبت )مگر زناكار اويامشرک سړى يعني اوله ناولې بدكاره ښځې سره نه ښايي چي پاک پريولي مسلمان ورسره نكاح وتړي بلكه هغه ورسره وړدي چي ددې په شان ناولې اوياتردې هم زيات بدكار اوكافرمشرک وي ځكه پاک نفسونه نه غواړي چي له فاسقاتو ،بدكاره ښځوسره دنكاح تړون وكړي امام فخررازي فرمايي چي ترټولوغوره تفسيرچي ددې آيت په هكله راغلى دادى چي پليت فاسق هغه چي روزگاريې زناوفسق وي دصالحاتو ميرمنوسره رغبت نلري بلكه دځان په شان پليته خبيثه اومشركه ښځه لټوي همداسې فاسقه ښځه دنيكانو صالحانو په نكاح كولوكي رغبت نلري او ورځخه كركه كوي هغه څوک غواړي چي ددې له جنس څخه وي اودفاسقانو مشركانوله ډلي څخه وي لكه چي وايي : دخير كارپرته له پرهيزگاره سړي بل څوک نه كوي اوكله ناكله يوڅه دخيركارهغه هم كوي چي پرهيزگاره نه وي دلته هم داسې ده ﴿ وَحُرِّمَ ذَٰلِكَ عَلَى ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ اوحرامه كړى شويده دغه زناا‌ويانكاح له بدكارو سره پرمؤمنانو او صالحانو ځكه چي پكي خورازيات سترضرورنه دي (١) بياالله تعالى دقذف حد بيانوي فرمايي چي : ﴿ وَٱلَّذِينَ يَرْمُونَ ٱلْمُحْصَنَٰتِ ثُمَّ لَمْ يَأْتُوا۟ بِأَرْبَعَةِ شُهَدَآءَ ﴾ اوهغه كسان چي ولي محصنې (عفيفاتي شريفاتي ) ښځي چي نسبت دزناورته وكړي بيارانه ولي (په دعوى خپله باندى) څلورتنه شاهدان (عادلان چي د دوى تورثابت كړي كوم چي په ښځويې دزنالگولي وي ) ﴿ فَٱجْلِدُوهُمْ ثَمَٰنِينَ جَلْدَةً ﴾ پس ووهئ تاسي (اى حاكمانو ) دغه هريو(دقاذفانو ) اتيادُرې (ځكه دوى دروغ ويلي او پاكي ميرمني يې توري كړى اود خلكوپه ناموسونوكي غوپه شوي دي ﴿ وَلَا تَقْبَلُوا۟ لَهُمْ شَهَٰدَةً أَبَدًا ﴾ اومه قبلوئ تاسي له دوى نه شاهدي هيڅكله (ترمرگه پورې ) يعني ددوى په عذاب داهم ورزيات كړى ځكه چي انساني كرامت ته يې په سپكه كتلي دي نوترهغوى چي په دروغواوبهتان ټينگ وي شاهدي يې مه منئ ﴿ وَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْفَٰسِقُونَ ﴾ اودا(قاذفان) هم دوى دي فاسقان وتلي له طاعته دالله عزوجل ځكه چي دكبيره گناه مرتكب شوي اوسترجرم يې كړى دى ابن كثيروايي چي الله ﷻ په قاذف باندى چي دخپل تورپه هكله شاهدان رانه ولي درى حكمونه واجب كړى لومړى داچي اتيادُرې دى ووهل شي دوهم داچي هيڅكله دى گواهي (شاهدي) ونه منل شي اودريم بياداچي دوى فاسقان دي ،نه دالله په وړاندي اونه هم د خلكوپه مخ كي

---

(١) پدې كي دمفسرينو دوه قوله دي لومړى دالتسهيل مؤلف غوره كړى اودوهم بيادابو السعوداو قرطبي خوښ دى.

عادلان کیدای شي(۱) ﴿ إِلَّا ٱلَّذِينَ تَابُوا۟ مِنۢ بَعۡدِ ذَٰلِكَ وَأَصۡلَحُوا۟ ﴾ مګرهغه کسان چي توبه وباسي (اورجوع وکړي الله ته) او اصلاح کړي (نیت او عمل خپل بل وار په پاکو ښځو دزنا تورنه لګوي ابن عباس وايي معنا داچي خپله توبه ښکاره کړي ﴿ فَإِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴾ (پس په تحقیق الله ښه مغفرت کونکی دی ) دګناهونو ډیر رحم والادی (په انعام داجریعني دوی ته عفو وکړي اوله ګناه يې تېرشي هغه بايللي اعتبار بيرته ورکړي شاهدي يې ومني ځکه الله جل جلاله غفور رحيم دی دخپل بنده توبه منی کله چي خپل ځان اصلاح کړي وروسته بيا الله پاک دهغه چاچي خپله مېرمن په زنا تورنه کړي (چي دغه ته په عرف کي لعان وايي ) حال داسي بيانوي ﴿ وَٱلَّذِينَ يَرۡمُونَ أَزۡوَٰجَهُمۡ ﴾ اوهغه کسان چي ولی ښځی خپلي (په توردزنا ) ﴿ وَلَمۡ يَكُن لَّهُمۡ شُهَدَآءُ إِلَّآ أَنفُسُهُمۡ ﴾ حال داچي نه وی دوی ته شاهدان (پدی کارد زنا کي) پرته له خپله ځانه ددوی ﴿ فَشَهَٰدَةُ أَحَدِهِمۡ أَرۡبَعُ شَهَٰدَٰتِۭ بِٱللَّهِ إِنَّهُۥ لَمِنَ ٱلصَّٰدِقِينَ ﴾ (پس واجبه ده پدې کي )شاهدي ديوه ددوی څلورشاهدی په (نامه) دالله (په خبره چي ) بيشکه دی خامخاله رښتيا ويونکودی ) يعني شاهدی ديوه ددوی چي ورڅخه دقذف (حد )ليري کوي داده چي څلورځلي شاهدي ووايي چي دڅلوروشاهدانو پرځای ودريږي ﴿ وَٱلۡخَٰمِسَةُ أَنَّ لَعۡنَتَ ٱللَّهِ عَلَيۡهِ ﴾ اوپنځمه شاهدی داسي ده ) چي بيشکه دالله لعنت دی وی پردغه (ميړه) ﴿ إِن كَانَ مِنَ ٱلۡكَٰذِبِينَ ﴾ که وي دی (ميړه) له دروغجنانو څخه (په دغه تورن کولودښځي خپلي کي په زنا باندي ﴿ وَيَدۡرَؤُا۟ عَنۡهَا ٱلۡعَذَابَ ﴾ اودفع کوي له دغی ښځي څخه عذاب د(حدزناپه ويناد ميړه سره) ﴿ أَن تَشۡهَدَ أَرۡبَعَ شَهَٰدَٰتِۭ بِٱللَّهِ إِنَّهُۥ لَمِنَ ٱلۡكَٰذِبِينَ ﴾ داچي شاهدي ووايي دا(ښځه )څلور واری شاهدی په (نامه) دالله چي بيشکه دا(ميړه زما ) خامخاله دروغ ويونکودی (په تورن کولوزماکي ) ﴿ وَٱلۡخَٰمِسَةَ أَنَّ غَضَبَ ٱللَّهِ عَلَيۡهَآ إِن كَانَ مِنَ ٱلصَّٰدِقِينَ ﴾ اوپنځمه (داسي ده چي ووايي) بيشکه غضب دالله دی وی پردی (ښځي ) که چيري وي (داميړه مي) له صادقانو رښتيا ويونکوڅخه (په تورن کولودی کي په زناباندی ) ﴿ وَلَوۡلَا فَضۡلُ ٱللَّهِ عَلَيۡكُمۡ وَرَحۡمَتُهُۥ ﴾ اوکه نه وی فضل (احسان) دالله پرتاسي اورحمت دده (په ستراوپټولو، ځواب دلولامحذوف دی اوهغه هم د تهويل لپاره تقديرېې داسي دی چي ارو مروبه يې رسوا کړي وای تاسي اوعذاب به يې درکړی وواوډېرځله مسکوت عنه ترمنطوق ابلغ وي ﴿ وَأَنَّ ٱللَّهَ تَوَّابٌ حَكِيمٌ ﴾ بيشکه الله ډيرتوبه قبلونکی لوی حکمت والادی (اوله دی جملې څخه دلعان حکم هم دالله په حکمت بنادی؛ دلولاځواب لکه چي ومو ويل محذوف دی اولکه ويل شوی دی که چيری دالله فضل اواحسان نه وای نوهغه څه به رامنځته شوی وای چي دبيان په توان کي نه راځی اودالله دحکمت څخه يوداهم دی که چيری يې دغه لعان په دی توګه نه وی فرمايلی او رواکړی نوبه بياپه ميړه باندی دقذف حدواجب شوی ووسره له دی چي ظاهره خودی رښتياويونکی برېښی ځکه دی هم په رسوايي کي ورسره ګډدی اوکه چيری دده

---

(۱) المختصر ۲/ ۵۸۳

ځوځلی شاهدی په ښځه باندی دحدموجب ګرزېدلی وای نوبه په هغی شفقت نه وواغلی اوکه دهغی
ځوځله شاهدی په ده باندی دقذف دحدموجب ګڼل شوی وای بیابه دده په هکله دشفقت څرګندونه
وای فسبحانه ما اعظم شانه واوسع رحمته وأدقّ حکمته (١) وروسته له دی الله تبارک وتعالی دافک
کیسه بیانوی هغه چي په پاک لمنې پاکیزه اودبرائت توتي حضرت صدیقي رضی الله عنها پوري دبهتان
اودروغ تور لګول شوی وو(٢) نوفرمایی : ﴿إِنَّ الَّذِينَ جَاءُو بِالْإِفْكِ﴾ بیشکه هغه کسان چي راوړی دی غټ
دروغ (او بدترین بهتان چي دحضرت عائشې رضی الله عنها تورن کول دی امام فخر رازی وایي افک
ددروغو اوافتراء وروستی سرحدته وایي اودټولو مسلمانانو په دی اجماع ده چي مرادله دغه افک څخه
د حضرت عائشې چي دمعصوم پیغمبرصلی الله علیه وسلم مبارکه میرمن وه تورن کول دی (٣) ﴿عُصْبَةٌ
مِّنكُمْ﴾ یوه ټولی ده له تاسي (مسلمانانو ) څخه اوددوی په سرکي ابن سلول دنفاق بخرکی وو ﴿لَا
تَحْسَبُوهُ شَرًّا لَّكُم بَلْ هُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ﴾ ګومان مه کوی پدې (دروغو )چي شردی تاسولره (ای آل ابوبکره!)،
بلکه دغه (دروغ) خیردی تاسي ته (چي پکي سترشرف دی ځکه چي دأم المؤمنین دبرائت په هکله وحی
رانازلیږی اودغه لوړشرف اوفضل دی مفسیرین کرام وایي چي پدې کي له پنځووجوهاتو خیرشته دی :
دأم المؤمنین برائت ،اودهغی دعزت په باب دوحی نزول اودهغي دشان سترتوب ستراجرېدی توربانډی
ورکول کیږی دمؤمنانولپاره پنداونصحیت اوله مفتریانوکسات اخیستل کیږی (٤) ﴿لِكُلِّ امْرِئٍ مِّنْهُم مَّا
اكْتَسَبَ مِنَ الْإِثْمِ﴾ مقرردی هرسړی ته له دغو(بهتان ویونکیوجزاء) هغه څیزچي له ګناه څخه یې ګټلی
دی (په اندازه دډوبېدلودهغې) ﴿وَالَّذِي تَوَلَّىٰ كِبْرَهُ مِنْهُمْ لَهُ عَذَابٌ عَظِيمٌ﴾ اوهغه څوک چي پورته یې
کړلوی (پېټی ) ددغه (بهتان اوشائع یې کړل دروغ چي دمنافقانوسرداراابن سلول دی ) شته ورته عذاب
لوی (دوزخ په آخرت کي)﴿لَّوْلَا إِذْ سَمِعْتُمُوهُ﴾ ولي نه ای مؤمنانوپه هغه وخت چي واوریده تاسي داخبره
(دافتراء اودصدیقي عائشې (رضی الله عنها ) تورول ) ﴿ظَنَّ الْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بِأَنفُسِهِمْ خَيْرًا﴾ ګمان
کاووایمان داره سړیواوایمان داره ښځوپه نفسونوخپلو(په خپلومنځوکي ) دخیر (خبری )یعني ولی یې
دخیرګومان نه کاوواوژرترژره یې دتومت لګول په هغه چاچي دهغه سپېڅلتیا اوپاکي یې لیدلي ونه
منل ځکه همدادایمان غوښتنه ده چي مسلمان دی په بل مسلمان وروړد عیب اوپیغورخبره تپل نه مني
ابن کثیروایي چي دغه دالله جل جلاله له لوری دادب ښوونه ده چي مؤمنانوته فرمایی کله چي ځیني
ددوی په بدوخبروکي ډوبېدل چي ولی مودغه پخپل ځان باندی نه قیاس کاوو داچي له تاسوسره هسی
نه ښائیدل نوله ام المؤمنین رضی الله عنهاسره خوبه په اولی طریقه نه ښایی روایت کیږی چي دابوایوب

---

(١) ارشادالعقل السلیم ۴ / ۶۸
(٢) وګوره تفصیلي کیسه زموږپه کتاب روائع البیان کي ٢ / ١١٧
(٣) التفسیرالکبیر ٢٣ / ١٧٢
(٤) التسهیل ٣ / ٦١

رضی الله عنه ماندیني خپل خاوند ته وویل ایا هغه څه دی اورېدلي چي دعائشې په باب يې خلک وايي؟ هغه ورته وویل هو! او دغه سراسر دروغ دی ایا ته ای دایوب موري؟! دغه کار کوې هغې وویل نه په والله که يې وکړم نو هغه ورته وویل چي قسم په الله عائشه رضی الله عنها تر تا بهتره ده (١) ﴿وَقَالُوا۟ هَٰذَآ إِفْكٌ مُّبِينٌ﴾ او ویلي وي دوی (تولو داسي) دا خبره ښکاره دروغ ده ﴿لَّوْلَا جَآءُو عَلَيْهِ بِأَرْبَعَةِ شُهَدَآءَ﴾ ولي نه راوسته (دوی) پدې خبره څلور شاهدان (چي شاهدي ورکړي پدې قذف (ددې) ﴿فَإِذْ لَمْ يَأْتُوا۟ بِٱلشُّهَدَآءِ﴾ پس کله چي يې نه راوستل څلور شاهدان (پخپله دعوا باندي) ﴿فَأُو۟لَٰٓئِكَ عِندَ ٱللَّهِ هُمُ ٱلْكَٰذِبُونَ﴾ پس دغه کسان په نزد دالله کي هم دوی دروغجنان دي (دوی دالله په حکم اوشریعت کي مفسدين اودروغجن دی پدې کي توبيخ اوترټل دی دهغه چالپاره چي لومړی ځل يې دغه تورواوريده اوهغه يې تردید نکړ ﴿وَلَوْلَا فَضْلُ ٱللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُۥ فِى ٱلدُّنْيَا وَٱلْءَاخِرَةِ﴾ اوکه نه وای فضل دالله اواحسان دده په دنیااوآخرت کي (چي تاسي ته يې مهلت درکړاوسمدستي يې عذاب درته نه راواستاوو) ﴿لَمَسَّكُمْ فِى مَآ أَفَضْتُمْ فِيهِ عَذَابٌ عَظِيمٌ﴾ خامخا رسیدلی به ووتاسي ته په هغه دروغ کي چي غوپې وهلې تاسي به هغو (دروغو) کي لوی عذاب (چي ډرې وهل اوترټل به ورته ډیرآسان وو) قرطبي وايي دعه دالله له لوری دهغه چالپاره چي دافک په هکله يې غوپی وهلی دی ډیرزورعتاب دی خودالله په رحمت يې په دنیاکي دوی پټ کړل اوپه آخرت کي بیاهغه چاته کوم چي توبه ګارشي عفواومغفرت کوي (٢) ﴿إِذْ تَلَقَّوْنَهُۥ بِأَلْسِنَتِكُمْ﴾ کله چي واخيست تاسودا (افک) په خپلو ژبوسره (چي ځيني له ځيني نوروڅخه پوښتنه کوله ؛ مجاهدوايي معناداچي ځيني کسانوبه ځيني نوروته روايت کاووچي دامي له فلاني واوريده اوفلاني هسي ويل (٣) ﴿وَتَقُولُونَ بِأَفْوَاهِكُم مَّا لَيْسَ لَكُم بِهِۦ عِلْمٌ﴾ او ويله به موپه خولوخپلو سره هغه خبره چي نه وو تاسوته په هغې باندي هيڅ علم (بلکه محض دروغ اوبهتان وو) ﴿وَتَحْسَبُونَهُۥ هَيِّنًا وَهُوَ عِندَ ٱللَّهِ عَظِيمٌ﴾ اوګڼله تاسي دغه خبره آسانه کوچنی ګناه چي عذاب يې نشته حال داچي دغه (خبره) په نزددالله کي ډيره لويه ده څکه چي د مسلمانانوپه اعراضوکي لويدل دی) په التسهيل کي وايي چي الله دوی په دريوڅيزونوباندي وترټل لومړی داچي په ژبواخيستل يې چي له دی تور څخه به يې پوښتنی کولی دوهم داچي پخپله به پکي ګډېدل دريم داچي هغه يي ورکوتي ګناه ګڼله اوسره له دی چي دالله په نزدخوراستره ګناه ده اودا چي الله تعالی هغه په دی الفاظوچي : ﴿بِأَلْسِنَتِكُمْ﴾...... ﴿بِأَفْوَاهِكُم﴾ دی راوړه ګټه يې داده چي دغه خبري اصلا يوازي په ژبوويل کېدې اوپه زړونوکي نه وې څکه دوی ته يې

(١) مختصرابن کثير٢/٥٩١
(٢) القرطبي١٢/٢٠٣
(٣) المختصر٢/٥٩١

پخپلوزړونوکي حقيقت نه وومعلوم (۱) ﴿ وَلَوْلَآ إِذْ سَمِعْتُمُوهُ قُلْتُم مَّا يَكُونُ لَنَآ أَن نَّتَكَلَّمَ بِهَٰذَا ﴾ ( ولې نه کله چي تاسي داخبره واوريده ويل تاسي چي نه ښايي موږته داکارچي خوله وخوځووپدې خبره باندي)دغه گردو مؤمنانو ته عتاب دی يعني ولې موله لومړی اوريدلوسره دغه خبره تکذيب او ترديد نکړه ؟ چي ويلی مووای موږته نه ښايي پدې خبره خوله پرانيزويايې چاته وکړو ﴿ سُبْحَٰنَكَ هَٰذَا بُهْتَٰنٌ عَظِيمٌ ﴾ پاکي ده تالره (ای ربه) دا ډېرلوی دروغ دی) يعني سبحان الله چي درسول الله صلی الله عليه وسلم په ماندينه هغه چي پاکيزه طاهره ده داسي ستره گناه تړل شوی اوافتراء کړی ده دغه خورا ستر جرم دی زمخشري وايې چي دغه د امردسترتوب اواستبعادپه هکله تعجب دی اودغه عمومي قاعده ده چي دتعجب دچارو د ليدوپه وخت کي سړی تسبيح وايې (۲) ﴿ يَعِظُكُمُ ٱللَّهُ أَن تَعُودُواْ لِمِثْلِهِۦٓ أَبَدًا ﴾ پند درکوي الله تاسي ته (اومنع کوي مو) چي بياونه گرزی دې خبرې ته هيڅکله ﴿ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴾ که چېري يی تاسي مؤمنان (ځکه ايمان له دغسی بهتان ويلوڅخه سړی راگرزوي پدي کي (پنداخيستلولپاره هڅونه ده ) ﴿ وَيُبَيِّنُ ٱللَّهُ لَكُمُ ٱلْءَايَٰتِ ﴾ اوبيانوي الله تاسي ته آيتونه (پندهغه چي په شرائعواونيکوادابودلالت کوي ترڅو تاسي ورباندي پندواخلی اوادب زده کړی ﴿ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴾ اوالله ښه علم والاښه حکمت والادی (مصالح دبندگانوورته معلوم اوپه تدبيراو تشريع کي حکمت لري) ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ يُحِبُّونَ أَن تَشِيعَ ٱلْفَٰحِشَةُ ﴾ بيشکه هغه کسان چي خوښوي دغه (خبره)چي خوره شي بدنامي (زنا،رذالت اونور منکرات) ﴿ فِى ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ﴾ په حق د هغوکسانوکي چي ايمان يې راوړی دی اوپاکان دي ﴿ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ فِى ٱلدُّنْيَا وَٱلْءَاخِرَةِ ﴾ شته دغو کسانوته عذاب دردناک په دنيااوآخرت کي (چي په دنياکي د قذف (حد ) ورباندی جاري کېږي او په آخرت کي ددوزخ عذاب ورکول کيږی حسن رحمه الله وايې پدې وعيدباندی منافقين په غوږ وهل شوی ځکه هغوی دغه خوښوله اودرسول الله صلی الله عليه وسلم ربړول يې مقصدوواودغه دکفراولعنت موجب دی (۳) ﴿ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴾ اوالله ښه عالم دی اوتاسونه پوهيږی يعني الله په پټو رازونواونيتونوښه خبرداردی امام فخررازی وايې چي دغه جمله په خوراښه ځای کي واقع شوی ده ځکه دزړه مينه اومحبت يوپټ شيزدی موږپه هغه باندي پرته له نښونښانونه پوهيږواوالله جل جلاله خوپه هرڅه پوهيدونکی دی دغه يادونه دلته ښځي پرځای ده اوزجرلپاره ښه کارونکی ده ځکه څوک چي دبدنامي خپرېدل خوښوي که څه هم دغه خوښونه په زړه کي پټه ساتي خوپدې پوهيږي چي پدې باندي الله تبارک وتعالی علم لري اود سزاور کولو اندازه يې هم

---

(۱) التسهيل فی علوم التنزيل ۳ / ۲۲
(۲) الکشاف ۳ / ۲۲۵
(۳) البحر المحيط ۶ / ۴۳۹

ورنه معلومه ده (¹) ﴿ وَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُ وَأَنَّ اللَّهَ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴾ او که نه وای فضل اواحسان دالله پرتاسي باندي اورحمت مهرباني دده (دانه وای) چي بيشکه الله ښه نرمي کونکی ښه رحم والادی (نوبه یی دوی هلاک کړی اومغلوب کړی وای اوهغه څه به پیښ شوی وای چي له انساني تصورڅخه پورته اواتکل یی ممکن نه دی.

**بلاغت:**

پدې آيتونوکي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډيزيي دادی:

۱-تنکیردتفخیم لپاره لکه چي فرمایی ﴿ سُورَةٌ أَنزَلْنَاهَا ﴾ یعني دغه دسترشان درلودونکی سورت دی چي الله پاک نازل کړی دی.

۲-اطناب چي لفظ مکرر راوړل شی چي ﴿ وَأَنزَلْنَا ﴾ دی اوفرمايي ﴿ وَأَنزَلْنَا فِيهَا آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ ﴾ چي په هکله یی بشپړاهتمام اوزیاته پاملرنه وشی اودغه ته ذکردخاص وروسته له عام څخه وايي.

۳- استعاره چي فرمایی: ﴿ وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنَاتِ ﴾ رمی په درانه شي لکه ډبره ويشتلوته وايي اوبيادېي دوارکولولپاره استعمال شوه ځکه دغه هم لکه حسی ربړاوتکلیف غوندی ده نوپدې کي لطيفه استعاره نغښتي ده.

۴-پارونه اوهڅونه لکه داچي: ﴿ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ ﴾ لکه چي ته وايې که نریی داسي به وکړی ؟!

۵-دمبالغې صيغې چي فرمايې ﴿ تَوَّابٌ حَكِيمٌ ﴾ او ﴿ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ ځکه چي فعول اوفعال دواړه دمبالغې صيغې دی اوپدغوصفاتوکي وروستي حد رسيدلوته وايې.

۶-دطباق صنعت لکه د ﴿ الصَّادِقِينَ ﴾ او ﴿ الْكَاذِبِينَ ﴾ ترمينځ چي دی.

۷-د( وَلَوْلَا ) دځواب حذف چي دتهويل اوهيبت لپاره راغلی کله چي فرمایی! ﴿ وَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُ ﴾ اودادې لپاره چي وهم اوفکرهرلوری ته وزغلی اودزجراوتهديدهرلوی ولتوی اوپه اندازه کولوکي ترهوره شی.

۸-دطباق صنعت چي فرمايې ﴿ لَا تَحْسَبُوهُ شَرًّا لَّكُم بَلْ هُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ﴾ او ﴿ وَتَحْسَبُونَهُ هَيِّنًا وَهُوَ عِندَ اللَّهِ عَظِيمٌ ﴾ چي دلته دشراوخيرمطابقت کړي همداسي يې دهيّن اوعظيم ترمينځ طباق راوړی دی.

۹-له غيبت څخه خطاب ته التفات چي پدې کلام کي راغي ﴿ لَّوْلَا إِذْ سَمِعْتُمُوهُ ظَنَّ الْمُؤْمِنُونَ ﴾ چي ښائيدوداسي چي وويل شي ( ظننتم ) اوله دې څخه يې دتوبيخ (مبالغې لپاره عدول وفرمايل اوبل داچي دايمان غوښتنه هم داده چي په مؤمنانوبه دخيرگومان کوئ.

---

(¹) التفسير الكبير ۲۳ / ۱۸۳

۱۰ـ ﴿ لَوۡلَا جَآءُو عَلَيۡهِ بِأَرۡبَعَةِ شُهَدَآءَ ﴾ دلته تحضيض يا تېزول دى يعني (هلا جاءوا) ولي نه راغلل په څلورو شاهدانو او مقصود ورڅخه توبيخ او ملامتيا ده.

۱۱ـ تعجب چي پدې كلام كي دى ﴿ سُبۡحَٰنَكَ هَٰذَا بُهۡتَٰنٌ عَظِيمٞ ﴾ پدې كي دهغه چا په هكله تعجب دى چي هسي وايې، ددى كلمې په اړه چي ﴿ سُبۡحَٰنَكَ ﴾ ده قاعده داده چي هغه دالهى عجيب صنعت دليدلو په وخت كي ويله كيږي او داچي دداسي عجيبه څيز پيداكول هم دالله له قدرت څخه بهرنه دى الله لره له دې څخه پاكى ده چي ترتوان يې يو څيزوتلى وى بياوروسته دهرعجيبه څيزدليدلو په وخت كي ويل كيږي.

فائده: داچي الله تعالى دزنا په هكله بيان په ښځو پيل كړى اودغلا په هكله په نارينه وو خواب داچي زناله ښځي څخه خورابده اوجرم سزايي زياته ده اوغلاله نارينه څخه چي هغه دغلا په باب زړه ورهم وى اوزورورهم څكه الله هلته فرمايي ﴿ وَٱلسَّارِقُ وَٱلسَّارِقَةُ فَٱقۡطَعُوٓاْ أَيۡدِيَهُمَا ﴾.

تنبيه:

داچي الله تبارك وتعالى په احصان سره تعبيرفرمايلى اووايې چي: ﴿ وَٱلَّذِينَ يَرۡمُونَ ٱلۡمُحۡصَنَٰتِ ﴾ پدې كي خوراباريكه اشاره پته ده هغه داچي دپاكانو مؤمنانو اوپاكانو مؤمناتو تورول دقذف دحد موجب ګرزي اوكه چېري سړى يا مېرمنه په بدلمني اوفجورباندي مشهور وونو په تورلګونكي باندي يې حدنه جاري كيږي څكه چي دفاسق بدكرداره كرامت له مينځه تللى دى.

لطيفه:

ولي الله تبارك وتعالى له دى ويناچي: ﴿ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴾ دى دى ويناته چي ﴿ تَوَّابٌ حَكِيمٌ ﴾ دى وګرزيدو؟ سره له دى چي رحمت له توبى سره وړدى څواب داچي الله جل جلاله په بندګانو باندى دستراراده فرمايلى چي لعان يې رواكړى دى ترڅو دزوجينو ترمينځ ترسره شى كه دانه وايې نوبه په مېړه باندى دقذف حد جارى كيدواوظاهره خوداده چي هغه رښتيا وايې اوكه يوازى دده په لعان كفايت شوى واى نوبه په مېرمن دزناحد جارى كيدلو نودحكمت همدغه غوښتنه ده چي داسي حكم يې رواكړاوعذاب يې له دواړو څخه پدې شاهد يو ونړاوو فسبحانه ماأوسع رحمته وأجل حكمته [1]

***

الله تعالى فرمايي:

﴿ ۞ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّبِعُواْ خُطُوَٰتِ ٱلشَّيۡطَٰنِۚ وَمَن يَتَّبِعۡ خُطُوَٰتِ ٱلشَّيۡطَٰنِ فَإِنَّهُۥ يَأۡمُرُ بِٱلۡفَحۡشَآءِ وَٱلۡمُنكَرِۚ وَلَوۡلَا فَضۡلُ ٱللَّهِ عَلَيۡكُمۡ وَرَحۡمَتُهُۥ مَا زَكَىٰ مِنكُم مِّنۡ أَحَدٍ أَبَدٗا وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ يُزَكِّي مَن يَشَآءُۗ وَٱللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٞ (۲۱) وَلَا يَأۡتَلِ أُوْلُواْ

---

[1] وګوره په اسلامي حدودو كي تشريعي حكمت زموږ په كتاب (تفسير آيات الاحكام) كي ۵۲/۲

ٱلْفَضْلِ مِنكُمْ وَٱلسَّعَةِ أَن يُؤْتُوٓا۟ أُو۟لِى ٱلْقُرْبَىٰ وَٱلْمَسَٰكِينَ وَٱلْمُهَٰجِرِينَ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ۖ وَلْيَعْفُوا۟ وَلْيَصْفَحُوٓا۟ ۗ أَلَا تُحِبُّونَ أَن يَغْفِرَ ٱللَّهُ لَكُمْ ۗ وَٱللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٢٢﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَرْمُونَ ٱلْمُحْصَنَٰتِ ٱلْغَٰفِلَٰتِ ٱلْمُؤْمِنَٰتِ لُعِنُوا۟ فِى ٱلدُّنْيَا وَٱلْءَاخِرَةِ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿٢٣﴾ يَوْمَ تَشْهَدُ عَلَيْهِمْ أَلْسِنَتُهُمْ وَأَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُم بِمَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴿٢٤﴾ يَوْمَئِذٍ يُوَفِّيهِمُ ٱللَّهُ دِينَهُمُ ٱلْحَقَّ وَيَعْلَمُونَ أَنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلْحَقُّ ٱلْمُبِينُ ﴿٢٥﴾ ٱلْخَبِيثَٰتُ لِلْخَبِيثِينَ وَٱلْخَبِيثُونَ لِلْخَبِيثَٰتِ ۖ وَٱلطَّيِّبَٰتُ لِلطَّيِّبِينَ وَٱلطَّيِّبُونَ لِلطَّيِّبَٰتِ ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ مُبَرَّءُونَ مِمَّا يَقُولُونَ ۖ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ ﴿٢٦﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَدْخُلُوا۟ بُيُوتًا غَيْرَ بُيُوتِكُمْ حَتَّىٰ تَسْتَأْنِسُوا۟ وَتُسَلِّمُوا۟ عَلَىٰٓ أَهْلِهَا ۚ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ﴿٢٧﴾ فَإِن لَّمْ تَجِدُوا۟ فِيهَآ أَحَدًا فَلَا تَدْخُلُوهَا حَتَّىٰ يُؤْذَنَ لَكُمْ ۖ وَإِن قِيلَ لَكُمُ ٱرْجِعُوا۟ فَٱرْجِعُوا۟ ۖ هُوَ أَزْكَىٰ لَكُمْ ۚ وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ عَلِيمٌ ﴿٢٨﴾ لَّيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَن تَدْخُلُوا۟ بُيُوتًا غَيْرَ مَسْكُونَةٍ فِيهَا مَتَٰعٌ لَّكُمْ ۚ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُونَ وَمَا تَكْتُمُونَ ﴿٢٩﴾ قُل لِّلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا۟ مِنْ أَبْصَٰرِهِمْ وَيَحْفَظُوا۟ فُرُوجَهُمْ ۚ ذَٰلِكَ أَزْكَىٰ لَهُمْ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ خَبِيرٌۢ بِمَا يَصْنَعُونَ ﴿٣٠﴾ وَقُل لِّلْمُؤْمِنَٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَٰرِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوجَهُنَّ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا ۖ وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَىٰ جُيُوبِهِنَّ ۖ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا لِبُعُولَتِهِنَّ أَوْ ءَابَآئِهِنَّ أَوْ ءَابَآءِ بُعُولَتِهِنَّ أَوْ أَبْنَآئِهِنَّ أَوْ أَبْنَآءِ بُعُولَتِهِنَّ أَوْ إِخْوَٰنِهِنَّ أَوْ بَنِىٓ إِخْوَٰنِهِنَّ أَوْ بَنِىٓ أَخَوَٰتِهِنَّ أَوْ نِسَآئِهِنَّ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَٰنُهُنَّ أَوِ ٱلتَّٰبِعِينَ غَيْرِ أُو۟لِى ٱلْإِرْبَةِ مِنَ ٱلرِّجَالِ أَوِ ٱلطِّفْلِ ٱلَّذِينَ لَمْ يَظْهَرُوا۟ عَلَىٰ عَوْرَٰتِ ٱلنِّسَآءِ ۖ وَلَا يَضْرِبْنَ بِأَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِينَ مِن زِينَتِهِنَّ ۚ وَتُوبُوٓا۟ إِلَى ٱللَّهِ جَمِيعًا أَيُّهَ ٱلْمُؤْمِنُونَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿٣١﴾ وَأَنكِحُوا۟ ٱلْأَيَٰمَىٰ مِنكُمْ وَٱلصَّٰلِحِينَ مِنْ عِبَادِكُمْ وَإِمَآئِكُمْ ۚ إِن يَكُونُوا۟ فُقَرَآءَ يُغْنِهِمُ ٱللَّهُ مِن فَضْلِهِۦ ۗ وَٱللَّهُ وَٰسِعٌ عَلِيمٌ ﴿٣٢﴾ وَلْيَسْتَعْفِفِ ٱلَّذِينَ لَا يَجِدُونَ نِكَاحًا حَتَّىٰ يُغْنِيَهُمُ ٱللَّهُ مِن فَضْلِهِۦ ۗ وَٱلَّذِينَ يَبْتَغُونَ ٱلْكِتَٰبَ مِمَّا مَلَكَتْ أَيْمَٰنُكُمْ فَكَاتِبُوهُمْ إِنْ عَلِمْتُمْ فِيهِمْ خَيْرًا ۖ وَءَاتُوهُم مِّن مَّالِ ٱللَّهِ ٱلَّذِىٓ ءَاتَىٰكُمْ ۚ وَلَا تُكْرِهُوا۟ فَتَيَٰتِكُمْ عَلَى ٱلْبِغَآءِ إِنْ أَرَدْنَ تَحَصُّنًا لِّتَبْتَغُوا۟ عَرَضَ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ۚ وَمَن يُكْرِههُّنَّ فَإِنَّ ٱللَّهَ مِنۢ بَعْدِ إِكْرَٰهِهِنَّ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٣٣﴾ وَلَقَدْ أَنزَلْنَآ إِلَيْكُمْ ءَايَٰتٍ مُّبَيِّنَٰتٍ وَمَثَلًا مِّنَ ٱلَّذِينَ خَلَوْا۟ مِن قَبْلِكُمْ وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِينَ ﴿٣٤﴾ النور: ٢١ - ٣٤

## مناسبت او تړاو:

کله چي الله تعالی د (افک) پيښه ياده کړه ورپسې يې ددې تنبيه راوړه چي شيطان له لوموخخه هغه چي انسانانو ته يې د شر او فساد لوري ته دبېولو لپاره خپرې کړې ځانونه وژغورئ او بيايې د استيذان لپاره اداب او اخلاق ذکر کړل ولي چي د (افک) تور لګولو لپاره منافقينو ته څکه موقع په لاس ورغله چي ناڅاپه دغه مخامخ کېدل پيښ شول نو الله په مسلمانانو دالازم کړل کله چي کوم انسان يو کور ته ننوځي

کیږي سلام دی وکړی او اجازه دی ترلاسه کړی او وروسی یې دسترګود خوندي ساتلو او پټولو امرونه راوړل.

لغتونه:

(یأتل) له (الیة) څخه اخیستل شوی اولوړي قسم ته وایې اوله دې څخه ده چې (یؤلون من نسآئهم) یعني قسمونه اخلي (المحصنات) عفیفاتی، پاک لمنې (مبرؤن) منزه اوپاکان چې له تهمتونوبریئ اوپاک وي (تستأنسوا) په لغت کي دالفت طلب ته وایې (یغضوا) (غض البصر) سترګي ښکته کولو اوبانوپه بانو اینبودلوته وایې (خمرهن) دخمارجمع ده اوهغه څادرته وایې چې میرمن یې په سرکوی اولکه چې ویل کېږي (خمرواالآنیة) یعني لوښی پټ کړئ برغولی اوسرپوښونه وربادي کېږدئ(جیوبهن) دجیب جمع اوسینې ته وایې (ګرېوان یې ښه معناده) (الاربة) ښځوته اړتیا.

دنزول سبب:

أ- ابوبکرصدیق رضی الله عنه به (مسطح بن اثاثه) ته دهغه دمسکنت اولوړی له سببه یو څه ورکول چې هغه یې خپلوان اوقریب وواوکله چې د (افک) پیښه وشوه مسطح رضی الله عنه هم هغه څه وویل چې وې ویل نوحضرت ابوبکر رضی الله عنه (کله چې دعائشې رضی الله عنهادبرائت آیتونه نازل شول) قسم وخوړ چې (مسطح) ته به هیڅ ګټه نه ور رسوي اونه به ورسره مالی مرسته کوی بیا الله جل جلاله دا آیت نازل کړ ﴿ وَلَا يَأۡتَلِ أُوْلُواْ ٱلۡفَضۡلِ مِنكُمۡ وَٱلسَّعَةِ ﴾ دآیت ترپایه نوابوبکر رضی الله عنه وویل زه دی قسم وي چې زه داغواړم چې الله تعالی ماته ببښنه وکړي اوبیایې مسطح ته هغه لګښت قلنګ کوم چې پخوایې ورکاوه پیل کړاوقسم یې وکړچې هیڅکله به یې ورڅخه دریغ نکړم[1]

ب- علی کرم الله وجهه فرمایی چې یوتن درسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کې دمدینې په کومه لاره تیرېدونویوې میرمنې ته یې وکتل اوهغې ده ته وکتل اودواړوته شیطان وسوسه ورواچوله چې دواړویوبل ته دخوښې اواعجاب کتنه تبادله کړه چې دغه سړی په لاری روان اوهغې ته یې کتل دده په وړاندی دیوال راورسیده اوهغه ورسره ټکرشوپوزه یې ماته شوه او وینې ترې بهیدلې نویې قسم وکړکه داوینې ترهغو وینځم ترڅورسول الله صلی الله علیه وسلم ته رسیدلی نه یم اودغه کیسه می نه وی ورته کړی هغه (صلی الله علیه وسلم) ته راغی اوکیسه یې ټوله ورته تیره کړه نورسول الله (صلی الله علیه وسلم) ورته وفرمایل چې دغه ستادګناه عذاب دی بیا الله جل جلاله داآیتونه نازل کړل: ﴿ قُل لِّلۡمُؤۡمِنِينَ يَغُضُّواْ مِنۡ أَبۡصَٰرِهِمۡ ﴾ دآیتونه ترپایه[2]

تفسیر:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّبِعُواْ خُطُوَٰتِ ٱلشَّيۡطَٰنِۚ ﴾ ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (ای مؤمنانو) دشیطان دګامونومتابعت مکوئ (چې دفاحش تورونوخپرول کوي اویادغسي دبدنامي اوزناتورونوته

---

(1) القرطبي ١٢ / ٢٠٧

(2) الدرالمنثورللسیوطي ٥ / ٢٠

غوړنیسی ) ﴿ وَمَن يَتَّبِعْ خُطُوَٰتِ ٱلشَّيْطَٰنِ ﴾ اوهرڅاچي د شيطان دګامونومتابعت وکړ دهغه لاره اوسيرت بې خپل کړ ﴿ فَإِنَّهُۥ يَأْمُرُ بِٱلْفَحْشَآءِ وَٱلْمُنكَرِ ﴾ (نوبیشکه دغه (شیطان) امرکوی (خپل پلوی اوتابع ته) دبدوکارونواونامشروع خبرو ) يعني بې شکه چي شيطان انسان ګمراه کوی اودهغه څه حکم ورته کوی چي هغه خورابدوی اوداسي ناروا وی چي شریعت یې نه منی اوسلیم عقلونه ورڅخه نفرت اوکرکه کوی ﴿ وَلَوْلَا فَضْلُ ٱللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُۥ ﴾ اوکه نه وای فضل احسان دالله پرتاسي اورحمت دده (ای مؤمنانو چي دتوبې توفيق يې درکړی هغه چي ګناه له مينځه وړی اوحدودیې رواکړل چي دګناهونو تکفیرکوی ) ﴿ مَا زَكَىٰ مِنكُم مِّنْ أَحَدٍ أَبَدًا ﴾ نونه به وای پاک کړی (الله له معصیت دافک څخه) تاسي هیڅوک هیڅکله ﴿ وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ يُزَكِّي مَن يَشَآءُ ﴾ لاکن الله پاکوی (په قبول دتوبې له ګناهونو ) هرهغه څوک چي اراده وفرمایی دپاکی یې) يعني الله پخپل فضل اومرحمت هغه څوک پاکوي چي دنصوح توبې توفیق ورپه برخه کړی اوهغه ورڅخه قبوله کړی قرطبي وايې مقصد دآيت داده چي ستاسوپاکی اوهدايت چي الله درپه برخه کړی دغه یوازی دالله جل جلاله دفضل اواحسان څرګندونه ده ستاسي داعمالوپه سبب نه دي [1] ﴿ وَٱللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴾ اوالله ښه اوریدونکي (دویناستاسو) ښه پوهیدونکی (په نیتونواوزړونوستاسي ) دی ﴿ وَلَا يَأْتَلِ أُولُوا۟ ٱلْفَضْلِ مِنكُمْ وَٱلسَّعَةِ ﴾ اوقسم دی نکوی خاوندان دفضل (په دین کي ) اودشتمنی والامالدار ﴿ أَن يُؤْتُوٓا۟ أُو۟لِى ٱلْقُرْبَىٰ وَٱلْمَسَٰكِينَ وَٱلْمُهَٰجِرِينَ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾ (پدی چي نفقه به نه ورکوی) خاوندانودخپلوی اومسکینانواومهاجرینوته په لاره دالله کي (کوم چي پخوایی ورکوله له دی سببه چي په ګناه کي شريک شوی دی ) ﴿ وَلْيَعْفُوا۟ وَلْيَصْفَحُوٓا۟ ﴾ اوښایی چي عفودی وکړی اوښایی چي ترتیردی شی (له هغې ګناه چي هغوی یې مرتکب شوی دی او بیرته دی هغه انعام احسان ورسره پیل کړی کوم چي پخوایې ورسره کاوو. ﴿ أَلَا تُحِبُّونَ أَن يَغْفِرَ ٱللَّهُ لَكُمْ ﴾ ایادوست نلرئ تاسي داچي مغفرت وکړی تاسي ته الله تعالی (په سبب دعفوې ستاسي هغه چاته چي تاسوته یې بدی رسولی ده ؟ روايت کيږی چي کله ابوبکرصديق رضی الله عنه دغه آیت واوریدونوویې ویل هوزه دغه دوست ګنم چي الله راته ببنښه وکړی اوبیرته یې خپله هغه ورکړه مسطح رضی الله عنه ته جاری کړه اودیمین کفاره یې پرځای کړه اوداسي یې وویل زمادی په الله سوګندوی که به یې هیڅکله ورڅخه منع کړم !! مفسرين کرام وايې چي په آیت شريف کي دحضرت ابوبکر رضی الله عنه صفت هم څرګند دی چي الله فرمایی ﴿ وَلَا يَأْتَلِ أُولُوا۟ ٱلْفَضْلِ ﴾ اوهمدغه دحضرت صديق دبهتری لپاره بس اوکافی ده(رضی الله عنه وارضاه) ﴿ وَٱللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ اوالله ښه مغفرت کونکی د( خطیاتو ) ډیررحم والادی (سره له دی چي په عذاب ورکولوبشپړه قدرت لری خوبیاهم ببنښه اورحمت فرمایی وروسته بیاالله پاک دهغوکسانولپاره دعذاب خبرورکوي څوک چي

---

[1] القرطبي ۱۲/ ۲۰۷

پاک لمني ميرمنې په بدکار تورنوي نو الله وفرمايل ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ يَرۡمُونَ ٱلۡمُحۡصَنَٰتِ ٱلۡغَٰفِلَٰتِ﴾ بیشکه هغه کسان چي دوی ولي (په نسبت کولو دزنا سره) پاکي عفيفي ناخبره ښځي (چي زړونه يې له هري بدکاري څخه پاکيزه وي) ﴿ٱلۡمُؤۡمِنَٰتِ﴾ ايمان راوړونکی (په الله او رسول سره دزړه له پاکوالی) ﴿لُعِنُواْ فِي ٱلدُّنۡيَا وَٱلۡأٓخِرَةِ﴾ لعنت کړی شوی دی پردوی په دنيا او آخرت کي؛ ابن عباس رضی الله عنه وايې چي دغه لعنت دهغه چا په باب دی چي درسول الله صلی الله عليه وسلم دزوجات مطهرات و په قذف ککړوی څکه چي دداسي چا توبه نه قبليږي او څوک چي بله مسلمانه ميرمن تورنه کړی دهغه لپاره دتو به موقع شته (١) ابوحمزه وايې چي دغه دمکې مشرکانو په هکله نازل شوی کله چي به کومه ميرمن مدينې منورې ته مهاجره شوه دوی به هغه په زنا تورنوله او ويل به يې دزناکولو لپاره وتلې ده (٢) ﴿وَلَهُمۡ عَذَابٌ عَظِيمٌ﴾ او شته دوی ته عذاب ډېرلوی (سره له لعنته هومره لوی عذاب چي ستايل يې ګران دی) ﴿يَوۡمَ تَشۡهَدُ عَلَيۡهِمۡ أَلۡسِنَتُهُمۡ وَأَيۡدِيهِمۡ وَأَرۡجُلُهُم بِمَا كَانُواْ يَعۡمَلُونَ﴾ په هغه وخت کي چي شاهدي به ورکړی پردوی باندی ژبې ددوی اولاسونه ددوی او پښې ددوی پرهغو (اقوالو افعالو) چي دوی به کول (په دنيا کي) ﴿يَوۡمَئِذٖ يُوَفِّيهِمُ ٱللَّهُ دِينَهُمُ ٱلۡحَقَّ﴾ په دغه ورځ کي به الله پوره ورکړی دوی ته جزاء ،حق لائق ددوی (چي داحکم الحاکمين له لوري نه به عادلانه وی) ﴿وَيَعۡلَمُونَ أَنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلۡحَقُّ ٱلۡمُبِينُ﴾ او پوه به شي چي بیشکه الله دی حق ثابت (په ذات او صفات خپل کي) يعني په همدی ورځ به دوی پوه شي چي الله عادل ذات دی په هيڅ ظلم نه کوی عدل يې په تشريع او حکم کي څرګند دی وروسته الله جل جلاله په قاطع او کوټلی بُرهان او دليل باندی دحضرت عائشې پاکي بيانوي هغه دسپيڅلي پيغمبر ميرمن ده او دالله سنت په دې جاري دی چي پاکان له پاکانو سره يوځای کوی که چيری عائشه رضی الله عنها پاکيزه نه وای نو دداسي پاکيزه افضل الخلق پيغمبر صلی الله عليه وسلم ناوې به نه وای نو ځکه يې وفرمايل ﴿ٱلۡخَبِيثَٰتُ لِلۡخَبِيثِينَ وَٱلۡخَبِيثُونَ لِلۡخَبِيثَٰتِۖ وَٱلطَّيِّبَٰتُ لِلطَّيِّبِينَ وَٱلطَّيِّبُونَ لِلطَّيِّبَٰتِۚ﴾ ناپاکی ښځی دناپاکو (نارينه وو) لپاره دی او ناپاکه (خلک) دپاره دناپاکو (ښځو) دی او پاکی (ښځي) دپاکو خلکو دی او پاک (خلک) د پاکو (ښځو) لپاره دی (٣) دغه لکه چي دحضرت عائشې رضی الله عنها دبرائت دليل دی څکه چي د اشرف الرسل والخلق محمد مصطفی صلی الله عليه وسلم ميرمن ده که هسی نه وای الله جل جلاله به دخپل ترټولو محبوب بنده لپاره ميرمن نه غوره کوله ﴿أُوْلَٰٓئِكَ مُبَرَّءُونَ مِمَّا يَقُولُونَۖ﴾ دغه (پاکان فاضلان) پاک دی له

(١) حاشية شيخ زاده على البيضاوي ٤٣٠/٣

(٢) البحر ٤٤٠/٦

(٣) دغه دابن زيد وينا او څرګنده ده او مجاهد وايې چي خبيث کلام دخبيثو خلکو لپاره دی او مقصد دا چي هره وينا له خپله اهله سره ښايې بده وينا له اشرارو سره او ښه له اخيارو سره خو کوم څه موږ يې دلته يادونه کړي هغه ترټولو څرګنده ده او هم پوهېدلو ته نژدې ده.

هغوخبروچي (دروغجنان اهل الافک يې ددوی په هکله) وايې ﴿ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ ﴾ (شته دوی ته مغفرت بښنه اوروزی ښه ) يعني دوی ته پدې چي ورته کړاو او تکليف ورسيدودګناهونومغفرت او په جنت کي دعزت روزی ده ابن کثيروايې چي پدې کلام کي دغه وعده ښکاري چي حضرت صديقه رضی الله عنها به په جنت کي درسول الله صلی الله عليه وسلم ميرمن وي

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَدْخُلُواْ بُيُوتًا غَيْرَ بُيُوتِكُمْ ﴾ (ای هغه کسانوچي ايمان يې راوړی دی (ای مؤمنانو) مه ننوزی تاسي (هغو) کورونوته چي ستاسي له کورونو غيروی ) کله چي الله تعالی د محصناتوله قذف څخه منع وفرمايله اوسخت عذاب يې ورته واوراوو اوڅرنګه چي دغه دافک پيښې دښخواو نرودګډون اومخالطت په سبب رامنځته کيدلی نوالله تعالی دشرعی ادبونو چي کله کورونو ته

څوک دننه کيږي لارښودنه وکړه اولومړی داجازي ورپسي دسلام اچولو مارپينه يې وفرمايله ﴿ حَتَّىٰ تَسْتَأْنِسُواْ وَتُسَلِّمُواْ عَلَىٰٓ أَهْلِهَا ﴾ ترهغه پوری چي اجازه وغواړئ او سلام واچوي پر اهل ددوی ﴿ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ ﴾ دغه استيذان (اواخبار) دتاسي ډيرغوره دی تاسي ته (تر ناڅاپه ننوتلو ) ﴿ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ﴾ (ښايې چي تاسي (پدې سره پندواخلی ؛اوپدې سترو ادبونو باندي عمل وکړي قرطبي وايې چي مقصدداچي اجازه اخيستل اوسلام اچول ترنابيره اوبې اجاز ې ننوتلو او همداراز دجاهليت تراجازی اوسلام کولوبهتراوغوره دی په جاهلی دورکي به کله چي څوک د يوچا کورته ورننوتلونوبه يې ويل (حييتم صباحا ) او(حييتم مساءًا ) يعني سهاراوماښام موپه خيراونوربه ورننوتل داسي به هم پيښيدله چي داوخت به مېړه له خپلي ارتينې سره په بړستن کي څملاستي وو ؛ اويوسړی رسول الله صلی الله عليه وسلم ته وويل چي ايازه خپلي مورته دورتلوپه وخت کي هم اجازه ترلاسه کوم ؟ رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وويل هوهغه ورته وويل دهغی له ماپرته بل خدمتګارنشته نوهرځلی چي ورځم اجازه به اخلم ؟رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل چي اياته غواړی هغه بربنده ووينې هغه وويل نه نويې ورته وفرمايل چي داسي ده نواجازه څيني اخله (١) ﴿ فَإِن لَّمْ تَجِدُواْ فِيهَآ أَحَدًا ﴾ پس که چيری ونه مومي تاسي پدې کورونوکي څوک (چي دورننوتلو اجازه در کړي) ﴿ فَلَا تَدْخُلُوهَا حَتَّىٰ يُؤْذَنَ لَكُمْ ﴾ پس مه ننوزی پدې کورونوکي ترهغو چي تاسي ته اذن وکړی شي (ځکه چي کورونه حرمت لری او ورننوتل روانه دی ترڅوچي خاوندان يې اجازه درنکړي )﴿ وَإِن قِيلَ لَكُمُ ٱرْجِعُواْ فَٱرْجِعُواْ ﴾ اوکه چيري تاسي ته وويل شی (داستيذان په وخت کي چي) بيرته وګرزي پس تاسي بيرته وګرزی (اودننوتلوهڅه مه کوئ ) ﴿ هُوَ أَزْكَىٰ لَكُمْ ﴾ (چي دغه بيرته ګرځيدل غوره (پاک ) دی تاسوته يعني دغه رجوع ستاسودنفوسودپاره ترلجاجت کولواوانتظارغوره او پاکيزه ده ﴿ وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ عَلِيمٌ ﴾ اوالله په هغوکارونوچي تاسي يې کوی ښه عالم دی (اوجزابه درکړي) قرطبي وايې چي پدې کي دهغه چالپاره

(١) البيضاوي ٢ / ٥٧

وعيددی چي غواړي دخلكود كورونوجاسوسي وكړي او وروسته بيا الله پاک دهغوكورونوحال چي دهستوګني نه وی وروسته د هستوګني له كورونو داسي بيانوي فرمايي ﴿ لَّيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ ﴾ نشته پرتاسي باندي هيڅ ګناه (او تكليف) ﴿ أَن تَدْخُلُوا۟ بُيُوتًا غَيْرَ مَسْكُونَةٍ ﴾ پدې كي چي ننوزي (بې اجازې)هغوكورونوته چي دچا د اوسيدلونه وی ؛لكه رباطونه ،هوټلونه ، دكانونه مجاهدوايې چي دغه ځايونه هوټلونه اوكاروان سرايونه دی چي دلاری په اوږدوكي د مسافرينولپاره آبادشوی وی اوددې لپاره ودان دی چي مسافر پكي شپه سباكړی (۱) ﴿ فِيهَا مَتَٰعٌ لَّكُمْ ﴾ په هغه كي متاع اومنفعت ستاسي وی ؛ اوياكوم دارتيا وړخيزوي لكه له ګرمي څخه سيوري ته كېدل اويادسامان اوتوښې خوندي كول ﴿ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُونَ وَمَا تَكْتُمُونَ ﴾ او الله ته ښه معلوم دی هغه چي تاسي يې ښكاره كوی اوهغه چي تاسي يې پټوی (پخپلو سينوكي الله به وربانديی جزاء دركړی ؛ ابوالسعود وايې چي دغه دهغه چالپاره چي غواړي د خلكو په پټوعيبونو ځان خبركړی اودفسادپه خپرولوپسي ګرځي وعيددی (۲) وروسته الله هغه ستراولوړاخلاق چي د ستركو ښكته كول اودفرج ساتل دی داسي بيانوي ﴿ قُل لِّلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا۟ مِنْ أَبْصَٰرِهِمْ ﴾ ووايه (ای محمده) مؤمنانوته چي پټی دی كړی دوی ستركي خپلی (له نامحرمو ښځو څخه ځكه چي كتل په زړه كي شهوت راپاروی اوډيرځله بيادغه شهوت داوږده خفګان موجب ګرزی ﴿ وَيَحْفَظُوا۟ فُرُوجَهُمْ ﴾ اوودې ساتی فرجونه خپل له زنا اوبې ستری څخه ﴿ ذَٰلِكَ أَزْكَىٰ لَهُمْ ﴾ دغه اغماض اوحفظ ډيرپاكيزه دی لپاره (دزړونو ) ددوی يعني ددين لپاره يې دتقوی سبب دی اوپه زنا باندی له اخته كيدلوښه ساتنه ده ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ خَبِيرٌۢ بِمَا يَصْنَعُونَ ﴾ بيشكه چي الله ښه خبردارددی په هغو كارونوچي دوی يې كوی (نوپردوی لازمه ده چي له الله څخه په پټه اوښكاره وويرېږي ؛ امام فخر رازي وايې چي كه څوک پوښتي چي ولي يې ستركي پټول ترفرج ساتلودمخه ذكركړل ؟ ځواب داچي كتل دزنا ريباردی اودفجوراستازی اوپدې كښ ازمويښت زيات دی اونږدی هيڅوک ځان ورڅخه ژغورلی نشی (۳) ﴿ وَقُل لِّلْمُؤْمِنَٰتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَٰرِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوجَهُنَّ ﴾ او ووايه ای محمده ايماندارو ښځوته چي پټی دی كړی ستركی خپلی (له نامحرمو سړو څخه ) اوودې ساتی فرجونه خپل (له زنااوبې ستري څخه؛مفسرين كرام وايې چي الله تعالی ايماندارو ښځوته دستركوپټولواوفرجونه ساتلوامر وكړ اوترنارينه ووبی يوبل زيات مكلفيت هم په اوږو وركړهغه داچي سينګاردی بې له محارمواو خپلوانو بل چاته نه ښكاره كوي ويې فرمايل ﴿ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا ﴾ اونه دی ښكاروي زينت ښائيست خپل مګرهغه چي ښكاريږی له دغه زينت څخه (بی له قصده اوپرته له بده نيته ) ابن كثيروايې معناداچي له زينت څخه دی پرديوته هيڅ شی نه ښكاروی مګرهغه چي پټول يې

---

(۱) القرطبي ۱۲/ ۲۲۱

(۲) ابوالسعود ۴/ ۵۵

(۳) التفسيرالكبير ۲۳/ ۲۰۵

ممکن نه وي لکه چي ابن مسعودوايي : زينت په دوه ډوله دی يوهغه چي پرته له ميړه يې بل څوک نه ويني لکه ګوتمی، باهوګان اوبل يې هغه چي پردی خلک يې هم ويني لکه سربيره جامی (۱) چابياويلي چي مراد له دی څخه دلاسونوورغوی دی اومخ دی چي دغه عورت نه دی بيضاوی وايي ظاهرداچي داحکم په لمانځه کي دی نه په کتلوکي څکه چي داصيلی ميرمنی ټول وجودعورت دی چي پرته له ميړه د هغي هيڅ څيز ته کتل روانه دی مګرچي کله ضرورت وی لکه دډاکترمعاينه (کتل) اوياشاهدی اداکول

(۲) ﴿ وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَىٰ جُيُوبِهِنَّ ﴾ اوښايي چي وادي اچوي پروني (ټکري) خپل په ګريوانونو خپلو (چي غاړه اوسينه يې هډو څرګنده نشي اودوهلو(ضرب) په کلمه سره تعبيرپه ستراو ساتنه کي د مبالغې لپاره راوړل شوی دی له حضرت عائشې رضى الله عنها څخه روايت شوی چي فرمايي : الله دی په لومړنيومهاجرومیرمنورحمت وکړی کله چي دغه آيت نازل شونوخپل (مروط يعني لنګونه) يې څيري کړل اوټکري يې څني جوړ کړل (۳) مفسرين کرام وايي چي په جاهلی دورکي ميرمن لکه په ننی جاهلی دورکي وه دخلکوپه وړاندی به لوڅ مخ تيريدله غاړه اوسينه به يې بربنده وه څنګلي به يې لوڅي وې آن تردي چي ډيرځله به يې دتن اوبدن مفاتن څرګندوو زلفي به يې په اوږو خنګېدلې چي نارينه وتخنوي اوپروني به يې له شاپسي ځړېدل سينې به يې لوڅي بربندي وې نو مؤمنانومیرمنوته امروشوترڅوپه پروني کي ځان ونغاړي اوداشراروله شره څخه يې وژغوري ﴿ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا لِبُعُولَتِهِنَّ ﴾ اونه دی ښکاروی زينت ښائست خپل (هغه چي الله حرام کړي دي مګر) لپاره دميړونوخپلو ﴿ أَوْ ءَابَآئِهِنَّ أَوْ ءَابَآءِ بُعُولَتِهِنَّ ﴾ ياپلرونو(اونيکونو خپلو، پلرونودميړونو خپلو ته چي هغه تره دخاوندپلاراودوی دواړه له محارمو څخه دی څکه چي پلار د خپلي لورپټ ساتي اود ميړه پلارهم هغه څه نه غواړي چي زوی ته يې ناخوښ وي بياوروسته نور محارم داسي بيانوي ﴿ أَوْ أَبْنَآئِهِنَّ أَوْ أَبْنَآءِ بُعُولَتِهِنَّ أَوْ إِخْوَٰنِهِنَّ أَوْ بَنِىٓ إِخْوَٰنِهِنَّ أَوْ بَنِىٓ أَخَوَٰتِهِنَّ ﴾ يازامنو(اولمسيو ) خپلوته يازامنودميړونو خپلوته ياوروڼوخپلوته يازامنودوروڼوخپلو ته يازامنودخويندوخپلوته ؛ چي دغه ګردهغه څوک دی چي نکاح ورسره ندی روا اوداسبب دی چي الله پاک په طبيعتونوکي داپيدا کړي چي له داسي خپلوانوسره نکاح اوهغوی ته نژدی کيدل نه مني ﴿ أَوْ نِسَآئِهِنَّ ﴾ ياښځوخپلوته (مؤمناتوته چي کافرانی تری ووزی مجاهدوايي چي مرادهغه ددوی مسلماني ښځي دي اومشرکاني خوددوی نه دي اومسلماني ميرمني ته جائزنه ده چي دکافري ښځي په وړاندی خپل ښايست څرګند کړي اوابن عباس رضى الله عنه وايي چي له دې څخه مسلماني ښځي مراددی نوخپل زينت دی ديهودی اونصرانی ښځی په وړاندی نه

---

(۱) مختصرابن کثير
(۲) البيضاوي ۲/۵۸
(۳) اخرجه البخاري

ځرګندوی (۱) ﴿ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَٰنُهُنَّ ﴾ یاهغه چاته چي مالک شوی دی (دهغه) ښی لاسونه ددوی یعني مشرکې مینځی ابن جریر وایې چي مراد دلته مشرکانی مینځي دی نودوی ته روادی چي خپل ښائست دهغوی په وړاندی ځرګند کړی که څه هم هغه مشرکه وی ځکه چي هغه یې مینځه ده ﴿ أَوِ ٱلتَّٰبِعِينَ غَيْرِ أُوْلِي ٱلْإِرْبَةِ مِنَ ٱلرِّجَالِ ﴾ ( یاهغو تابعانو ته چي نه وی خاوندان دحاجت ښځوته له سړیونه) یعني یاهغه چوپړیان اوخدمت کونکي چي میرمنوته شوق او رغبت نلري لکه چي معتوه وی یاناپوه اودجنسي امورو په هکله نه پوهېږي مجاهد وایې داهغه کسان دی چي یوازي دخپلي خېټي غم ورسره وي دوی غواړي خوله ښځوسره کارنلري ﴿ أَوِ ٱلطِّفْلِ ٱلَّذِينَ لَمْ يَظْهَرُواْ عَلَىٰ عَوْرَٰتِ ٱلنِّسَآءِ ﴾ (یاهغوهلکانوته چي دښځوپه اسرارونه وي خبر) یعني هغه ماشومان چي تراوسه لادجماع اوکوروالي په چاروا وکړو ورونه پوهېږي هغوی ته هم دزینت ښکارول روادی ﴿ وَلَا يَضْرِبْنَ بِأَرْجُلِهِنَّ لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِينَ مِن زِينَتِهِنَّ ﴾ اونه یې دی وهی دا ښځی پښې خپلې دپاره ددې چي معلوم کړشی هغه څیزچې پټوی یې دوی له زینت ښائست (ګاڼې) خپلی) یعني ښځي دي په زوره پښې په ځمکه نه وهی چي نارینه یې دپایزېب (خلخال) غږ واند اوري نوهغه څوک چي په زړونوکي یې رنځ وی تمه به یې پیداشی ابن عباس رضی الله عنهماوایې میرمن به روانه وه اوپه زوره به یې ځمکه په پښوو هله چي خلک یې دپایېلو(خلخال) غږ واوری نوالله جل جلاله له دی څخه منع کړه ځکه دغه دشیطان کړن چاره ده ﴿ وَتُوبُوٓاْ إِلَى ٱللَّهِ جَمِيعًا أَيُّهَ ٱلْمُؤْمِنُونَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴾ اوراجع شئ توبه وباسئ تاسي الله ته ټول ای مؤمنانو ددې لپاره چي تاسي ښیګڼه اوخلاصي ومومی (په دارینوکي نیکمرغه شی) ﴿ وَأَنكِحُواْ ٱلْأَيَٰمَىٰ مِنكُمْ ﴾ اوپه نکاح کړی (ای أولیاوو) هغه بې میړونوښځي (اونارینه چي بې ښځو اواصیل وي طبري وایې معنا داچي (ایامی) جمع د(أیم) دی اودنارینه ښځینه دواړولپاره صفت راځی هغه چاته وایې چي جوړه نلري (۲) ﴿ وَٱلصَّٰلِحِينَ مِنْ عِبَادِكُمْ وَإِمَآئِكُمْ ﴾ او صالحان نیکان له مریو خپلو او وینځو خپلو ) اودصالحینو ځانګړتیا یې په دی وکړه چي دهغوی ددین ساتنه او هغوی ته پاملرنه ترټولوغوره اومهمه ده (۳) اوپدې کي دااشاره هم شته چي تقوی اوصلاح دبهتری لوړمقام لری ﴿ إِن يَكُونُواْ فُقَرَآءَ يُغْنِهِمُ ٱللَّهُ مِن فَضْلِهِۦ ﴾ که چیری وی (دغه مذکورین) فقیران نادارہ نو الله به دوی له خپله فضله غنیان کړی (ددوی نیستی اوفقردی تاسي دهغوی له واده کولوڅخه راونه ګرځوي ځکه دالله فضل دوی غني کولای هم شي) ﴿ وَٱللَّهُ وَٰسِعٌ عَلِيمٌ ﴾ اوالله کشایش والاښه عالم دی ) یعني الله پاک جوادکریم او واسع الفضل دی چاته چي یې خوښه شی روزی

(۱) دغه داکثرسلف صالحینورایه ده چي مرادله دې ښځوڅخه مؤمنانې دي فخررازي وایې چي مقصد ګردي ښځي دي ځکه دوی پدې کي برابري دي چي یوه بلي ته وګوري خود سلفو وینا په استحباب بناده.

(۲) الطبري ۱۸/ ۹۸

(۳) البیضاوي ۲/ ۵۸

ورکوی اود مخلوقاتو په مصلحتونو پوهېږي قرطبي وايي چي پدي کي دهغه کوزده کونکولپاره دغناوعده شوی کوم چي دالله درضا اوخوښي لپاره دغه مسنون عمل اوچاره ترسره کوی اوله ګناهونوځخه ځان ژغوری ابن مسعود رضی الله عنه وايي چي په واده کولوکي دبډايي لټون وکړی اودغه آيت شريف يې تلاوت کړ(١) په حديث شريف کي راځی چي دری تنه دی چي په الله جل جلاله باندی ددوی مرسته پوردی يويې هغه نکاح کونکی چي دعفاف لپاره نکاح کوی دوهم هغه مريی (مکاتب)چي له خپل بادارسره دحريت تړون لاس ليک کوي اودريم دالله په لاره کي دسربښندونکی مجاهدغازی(٢)﴿ وَلْيَسْتَعْفِفِ ٱلَّذِينَ لَا يَجِدُونَ نِكَاحًا ﴾ اوښايي چي ځان دي وساتي هغه کسان چي دوي (اسباب د) نکاح نه مومي ) يعني دوی دی دشهوت په پرېښودلواوکمولوکي زياروباسي ﴿ حَتَّىٰ يُغْنِيَهُمُ ٱللَّهُ مِن فَضْلِهِۦ ﴾ ترهغه پوری چي الله دوی غنيان کړي له خپله فضله ځخه ؛ يعني پردوی پراخی راولی اودواده اسانتياوی يې په برخه شی ځکه کله چي بنده له الله ځخه وويرېږی نوالله جل جلاله يې چاره سموی اوله تنګي ځخه دوتلولاره يې پرانيزی ﴿ وَٱلَّذِينَ يَبْتَغُونَ ٱلْكِتَـٰبَ مِمَّا مَلَكَتْ أَيْمَـٰنُكُمْ ﴾ اوهغه کسان چي غواړی مکاتب والی له هغو (وينځومريو) چي مالکان شوي د ي ښي لاسونه ستاسي ﴿ فَكَاتِبُوهُمْ إِنْ عَلِمْتُمْ فِيهِمْ خَيْرًا ﴾ نو مکاتبان کړی دوی که چيري تاسي پيژانده په دوی کي خير) يعني نوله هغوی سره قراردادوکړی که چيری په دوی کي امانت اوپوهی وينی ځوچي دوی آزادشی ﴿ وَءَاتُوهُم مِّن مَّالِ ٱللَّهِ ٱلَّذِىٓ ءَاتَىٰكُمْ ﴾ او ورکوی دوی له ځينومالونو دالله نه هغه چي درکړی يې دی تاسوته (ترځوچي دوی خپل ځانونه آزاد کړي )﴿ وَلَا تُكْرِهُوا۟ فَتَيَـٰتِكُمْ عَلَى ٱلْبِغَآءِ ﴾ اوتاسي مه مجبوروئ مينځي خپلي په زناسره ﴿ إِنْ أَرَدْنَ تَحَصُّنًا ﴾ که چيری دوی دځان پاک ساتلواراده لری ؛ دغه وروستی جمله قيداوشرط نه دی بلکه ددغی چاری دبدی ځرګندولو لپاره راوړل شوی ده په مينځه کي خواصل اودود داده چي باداربه يې له بدلمنی ځخه ګوری اورا ګرزوي اوداچي باداريې په زناکولو ګوماری اوهغه بياممانعت کوی اوعفت غواړی دغه نود سپکتيا اوټيټ والی وروستنی پوړدی مفسرين کرام وايي دغه آيت شريف دعبدالله بن ابی بن سلول په هکله رانازل شوی چي هغه منافق دوه مينځی درلودی ديوی نوم(مسيکه ) وواوبله (اميمه ) نوميده اودغه (ناولي) به دوی دواړوته دزنا کولوامرکاووااوهغوی به يې وهلی نوهغوی دواړورسول الله صلی الله عليه وسلم ته شکايت وکړ اوبيادا آيت نازل شو؛ ﴿ لِّتَبْتَغُوا۟ عَرَضَ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ﴾ دپاره ددې چي تاسي طلب کوی (په دغه اکراه سره ) مال ددنيا(چي دوی زناکولوته اړباسي) ﴿ وَمَن يُكْرِههُّنَّ فَإِنَّ ٱللَّهَ مِنۢ بَعْدِ إِكْرَٰهِهِنَّ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ اوهرهغه چي زوريې وکړپه دوی پس بيشکه الله وروسته له زوردمالکانو پر دوی ډيرښښونکی ښه رحم والادی (پردغومينځو په دغی ګناه يې

---

(١) الطبري ١٨ / ٩٨

(٢) البيضاوي ٢ / ٥٨

نه نيسي ځکه چي ورته مجبوري کړی شوی دی اوژردی چي دزور کونکو څخه به غچ او انتقام واخيستلي شي ﴿ وَلَقَدْ أَنزَلْنَآ إِلَيْكُمْ ءَايَـٰتٍ مُّبَيِّنَـٰتٍ ﴾ اوپه تحقيق خامخا موږتاسوته نازل کړی دی ښکاره آيتونه (دحلالو، حراموا وحدودو احکام ) ﴿ وَمَثَلًا مِّنَ ٱلَّذِينَ خَلَوْا۟ مِن قَبْلِكُمْ ﴾ اومثال دهغو کسانوچي پخوا له تاسي تېر شوي دي ﴿ وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِينَ ﴾ اونازل کړی دی موږموعظه پند لپاره دمتقيانو پرهيزګارانو).

بلاغت :

پدې آيتونو کي چي بديع اوبيان کومې ښکلاوی شته لنډيزيې په لاندې ډول دی:

۱ـ لطيفه استعاره چي فرمايي ﴿ لَا تَتَّبِعُوا۟ خُطُوَٰتِ ٱلشَّيْطَـٰنِ ﴾ دلته يې دشيطان سلوک تعقيبول له هغه چاسره مشابه کړی چي دبل په پلونوروان وی اوپدې کي استعاره ده.

۲ـ ايجازبالحذف لکه چي په آيت شريف کي داکلمه ﴿ أَن يُؤْتُوٓا۟ ﴾ چي د(لا) توری حذف شوی ځکه چي معناورباندی دلالت کوی اودغه ډول محذوفات په ژبه کي ډير راځي.

۳ـ دجمعي صيغه دتعظيم لپاره چي فرمايي ﴿ أَلَا تُحِبُّونَ أَن يَغْفِرَ ٱللَّهُ لَكُمْ ﴾ اومقصدځنی ابوبکر صديق رضی الله عنه دی.

۴ـ ناقص جناس لکه ﴿ وَيَعْلَمُونَ.... يَعْمَلُونَ ﴾.

۵ـ لطيفه مقابله لکه ﴿ تُبْدُونَ.... وَمَا تَكْتُمُونَ ﴾.

۶ـ دطباق صنعت لکه ﴿ ٱلْخَبِيثَـٰتُ لِلْخَبِيثِينَ.... وَٱلطَّيِّبَـٰتُ لِلطَّيِّبِينَ ﴾.

۷ـ ايجازبالحذف لکه ﴿ يَغُضُّوا۟ مِنْ أَبْصَـٰرِهِمْ ﴾ چي مرادځنی دسترګوپټول له محرماتوڅخه دی نه له هرڅه نه نوځکه هغه تری حذف شول چي دمخاطبينوپه پوهه باندی اکتفاء (بسنه) شوی دی.

۸ـ مرسل مجازچي فرمايي: ﴿ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ ﴾ چي مرادځني دزينت ځايونه دی اودغه د حال ذکرکول مرادځنی محل دی زمخشری وايې چي زينت يې يادکړی اوځايونه يې نه دی ښودلی تر څوپه ستراوپټولو کي زياته مبالغه شوی وی.

نکته اوفائده :

ځيني محققين پوهان وايې چي کله يوسف عليه السلام ته دزناتور ورپوری شونو الله پاک دده پاکی ديو وړکی ماشوم په ژبه چي په زانګوکي ووبيان کړه اوکله چي حضرت مريمه رضی الله عنهاپه دی تورنه شوه نودهغې زوی حضرت عيسی عليه السلام دهغې دپاکي شاهدي ورکړه اوبرائت يې په برخه شوخوکله چي حضرت صديقی رضی الله عنهاته تور ورپوری شونو الله پاک په خپل عزيزکتاب قرآن کريم دهغې پاکی راوړه اودکوم ماشوم اويا پيغمبرپه ګواهی يې ددی برائت ثابت نه کړبلکه په قرآن کريم باندی يې له قذف اوبهتان څخه برائت ورکړ[1].

[1] القرطبي ۱۲/۲۱۲

تنبيه :

پدې کې چې دسترګو پټول دفرج له ساتلو څخه پخوا ذکر شوي چې ﴿قُل لِّلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ﴾ دا راز پروت دی چې کتل د زنا ریبار او قاصد وی او دغه یې مقدمه جوړوي.

لطیفه :

وايي چې یو (قسیس) غوښتل مسلمانانو ته پېغور ورکړي نو یې وویل چې: حضرت عائشه صدیقه (رضی الله عنها) خلکو تورنه کړه او مورنه پوهیږو چې هغه به (بریئ) او که (تورنه)؟! نو له حاضرینو څخه یو چا ورته وویل چې دا عجیبه واوره دوی میرمنی دی چې په زنا تورې شوی او ددوی دواړو قرآنکریم دبرائت ګواهي ورکړي ده چې یوې یې میړه نه درلود او زوی یې پیدا شو بلې میړه درلود خو زوی یې نه دی شوی (چې مریمه او عائشة رضی الله عنهما یې مقصدوې) نو ایا کومه یوه به د تهمت وړوي؟! نو قسیس چپ او ګونګی شو.

***

الله تعالی فرمایي :

﴿ اللَّهُ نُورُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۚ مَثَلُ نُورِهِ كَمِشْكَاةٍ فِيهَا مِصْبَاحٌ ۖ الْمِصْبَاحُ فِي زُجَاجَةٍ ۖ الزُّجَاجَةُ كَأَنَّهَا كَوْكَبٌ دُرِّيٌّ يُوقَدُ مِن شَجَرَةٍ مُّبَارَكَةٍ زَيْتُونَةٍ لَّا شَرْقِيَّةٍ وَلَا غَرْبِيَّةٍ يَكَادُ زَيْتُهَا يُضِيءُ وَلَوْ لَمْ تَمْسَسْهُ نَارٌ ۚ نُّورٌ عَلَىٰ نُورٍ ۗ يَهْدِي اللَّهُ لِنُورِهِ مَن يَشَاءُ ۚ وَيَضْرِبُ اللَّهُ الْأَمْثَالَ لِلنَّاسِ ۗ وَاللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿٣٥﴾ فِي بُيُوتٍ أَذِنَ اللَّهُ أَن تُرْفَعَ وَيُذْكَرَ فِيهَا اسْمُهُ يُسَبِّحُ لَهُ فِيهَا بِالْغُدُوِّ وَالْآصَالِ ﴿٣٦﴾ رِجَالٌ لَّا تُلْهِيهِمْ تِجَارَةٌ وَلَا بَيْعٌ عَن ذِكْرِ اللَّهِ وَإِقَامِ الصَّلَاةِ وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ ۙ يَخَافُونَ يَوْمًا تَتَقَلَّبُ فِيهِ الْقُلُوبُ وَالْأَبْصَارُ ﴿٣٧﴾ لِيَجْزِيَهُمُ اللَّهُ أَحْسَنَ مَا عَمِلُوا وَيَزِيدَهُم مِّن فَضْلِهِ ۗ وَاللَّهُ يَرْزُقُ مَن يَشَاءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿٣٨﴾ وَالَّذِينَ كَفَرُوا أَعْمَالُهُمْ كَسَرَابٍ بِقِيعَةٍ يَحْسَبُهُ الظَّمْآنُ مَاءً حَتَّىٰ إِذَا جَاءَهُ لَمْ يَجِدْهُ شَيْئًا وَوَجَدَ اللَّهَ عِندَهُ فَوَفَّاهُ حِسَابَهُ ۗ وَاللَّهُ سَرِيعُ الْحِسَابِ ﴿٣٩﴾ أَوْ كَظُلُمَاتٍ فِي بَحْرٍ لُّجِّيٍّ يَغْشَاهُ مَوْجٌ مِّن فَوْقِهِ مَوْجٌ مِّن فَوْقِهِ سَحَابٌ ۚ ظُلُمَاتٌ بَعْضُهَا فَوْقَ بَعْضٍ إِذَا أَخْرَجَ يَدَهُ لَمْ يَكَدْ يَرَاهَا ۗ وَمَن لَّمْ يَجْعَلِ اللَّهُ لَهُ نُورًا فَمَا لَهُ مِن نُّورٍ ﴿٤٠﴾ أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ يُسَبِّحُ لَهُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَالطَّيْرُ صَافَّاتٍ ۖ كُلٌّ قَدْ عَلِمَ صَلَاتَهُ وَتَسْبِيحَهُ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِمَا يَفْعَلُونَ ﴿٤١﴾ وَلِلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۖ وَإِلَى اللَّهِ الْمَصِيرُ ﴿٤٢﴾ أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ يُزْجِي سَحَابًا ثُمَّ يُؤَلِّفُ بَيْنَهُ ثُمَّ يَجْعَلُهُ رُكَامًا فَتَرَى الْوَدْقَ يَخْرُجُ مِنْ خِلَالِهِ وَيُنَزِّلُ مِنَ السَّمَاءِ مِن جِبَالٍ فِيهَا مِن بَرَدٍ فَيُصِيبُ بِهِ مَن يَشَاءُ وَيَصْرِفُهُ عَن مَّن يَشَاءُ ۖ يَكَادُ سَنَا بَرْقِهِ يَذْهَبُ بِالْأَبْصَارِ ﴿٤٣﴾ يُقَلِّبُ اللَّهُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَعِبْرَةً لِّأُولِي الْأَبْصَارِ ﴿٤٤﴾ وَاللَّهُ خَلَقَ كُلَّ دَابَّةٍ مِّن مَّاءٍ ۖ فَمِنْهُم مَّن يَمْشِي عَلَىٰ بَطْنِهِ وَمِنْهُم مَّن يَمْشِي عَلَىٰ رِجْلَيْنِ وَمِنْهُم مَّن يَمْشِي عَلَىٰ أَرْبَعٍ ۚ يَخْلُقُ اللَّهُ مَا يَشَاءُ ۚ إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٤٥﴾ لَّقَدْ أَنزَلْنَا آيَاتٍ مُّبَيِّنَاتٍ ۚ وَاللَّهُ يَهْدِي مَن يَشَاءُ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٤٦﴾ وَيَقُولُونَ آمَنَّا بِاللَّهِ وَبِالرَّسُولِ وَأَطَعْنَا

﴿ثُمَّ يَتَوَلَّىٰ فَرِيقٌ مِّنْهُم مِّنۢ بَعْدِ ذَٰلِكَ ۚ وَمَآ أُو۟لَٰٓئِكَ بِٱلْمُؤْمِنِينَ ﴿٤٧﴾ وَإِذَا دُعُوٓا۟ إِلَى ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ إِذَا فَرِيقٌ مِّنْهُم مُّعْرِضُونَ ﴿٤٨﴾ وَإِن يَكُن لَّهُمُ ٱلْحَقُّ يَأْتُوٓا۟ إِلَيْهِ مُذْعِنِينَ ﴿٤٩﴾ أَفِى قُلُوبِهِم مَّرَضٌ أَمِ ٱرْتَابُوٓا۟ أَمْ يَخَافُونَ أَن يَحِيفَ ٱللَّهُ عَلَيْهِمْ وَرَسُولُهُۥ ۚ بَلْ أُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ﴿٥٠﴾ إِنَّمَا كَانَ قَوْلَ ٱلْمُؤْمِنِينَ إِذَا دُعُوٓا۟ إِلَى ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ أَن يَقُولُوا۟ سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا ۚ وَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ ﴿٥١﴾ وَمَن يُطِعِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَيَخْشَ ٱللَّهَ وَيَتَّقْهِ فَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْفَآئِزُونَ ﴿٥٢﴾﴾ النور: ۳۵ - ۵۲

مناسبت اوتړاو :

کله چي الله جل جلاله دا وښودله چي څرګند آیتونه یې نازل کړي او د خپل وحدانیت دلائل یې راوړي همداسي د ټولنی د نیکمرغي لپاره یې شرعي احکام را استولي ورپسی یې دوه مثالونه نور ذکر کړل یو دا چي د ایمان او وحدانیت دلائل ښته زیات څرګند او دوهم دا چي د کفارو ادیان خوراپه تاریکه کي دی او ددې مثالونو په تو پیر کولو سره د ستر ګو خاوندان سهار پیژندلای شي .

لغتونه :

(مشکوة) په دیوال کي له کړکۍ څخه پرته بله تاخچه او اصل یې هغه ځای (لوښي) ته وایه شي چي پکي کوم څیز ایښود ل کیږي (دری) ځلیدونکی چي له ملغلرو سره په ښایست او ځلاکي مشابه وي (سراب) هغه چي په تکنده غرمه کي یې څوکویني ته به وایې چي داوبو سمندر دی خو هیڅ هم نه وي او (ځیني خلک ورته شګی ګل وایې) سراب یې ځکه بولی چي لکه اوبه روانی وی . (قیعة) فراء وایې چي دغه د (قاع) جمع او لکه (جار) او (جیره) غوندی دی او قاع بیاویړی پراخي غوړېدلي ځمکي ته وایې او زمخشری لیکی چي داپخپله دقاع په معنادی او جمع نه دی (۱) همداسي ابو عبیده هم وایې (لجی) هغه ګرداب چي تل (مینځ) یې له ژور والی څخه نه معلومیږی او (لجة) ډیرو اوبو ته وایې چي جمع یې لجج راځی او کله چي وویل شی ( التج البحر) یعني دریاب په څپوراغی (یزجی) ازجاء یو څیز په کرار او سکون سره لیږدولو ته وایې (رکاما) یو دبل د پاسه اوډلي (الودق) باران لیث وایې چي (ودق) په عامه توګه باران ته وایې که سخت وي او که نرم (۲) (سنا) روښنایی او ځلا ته وایې . (مذعنین) غاړه ایښودونکي (یحیف) ظلم او ځلل کوي .

تفسیر :

﴿ٱللَّهُ نُورُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ﴾ الله جل جلاله (مالک د ) نور د آسمانونو او ځمکی دی ) یعني الله تعالی روښانونکی د آسمانونو او ځمکی دی چي آسمانونه یې په ستورو ښائسته کړي . او ځمکه یې په شرعي احکامو او د پیغمبرانو په را استولو باندی؛ طبري وایې معنا دا چي الله پاک لارښوونکی او هدایت کونکی د اهل د آسمانونو او ځمکی دی ځکه دوی د الله په نور باندی د حق لاره مومی او د الله په

(۱) الفخر الرازي ۲۴ / ۷
(۲) زاد المسیر ۵ / ۵۲

هدايت اوښوونه له حيرانتيا اوله لهاندتياڅخه ژغورل کيږي (١) قرطبي وايي چي نوردعربانو په اصطلاح هغه څلا ته چي په سترګوليدل کيږي وايه شي اومجازا بياپه نوروومعناګانوکي هم استعمالېږي ويل ګيږي چي داهسي ويناده چي نورلرى جريروايي چي : (وأنت لنانور وغيث وعصمة) او ته موږته نور،باران،اوساتنه يې ؛ خلک وايي چي فلانى دهيوادرڼاده دزمانې لمراوسپوږمۍ. ده نو داهم رواده چي وويل شي الله نوردى کله چي يې حمداومدح کيږي ځکه دټولوڅيزونوابتداء او صدور له همده جل جلاله څخه دى اودده په قدرت يې چارې سمى شوى دى (٢) ابن عطاء الله وايي چي کائنات توره تاريکه ووخودحق ظهورهغوى روښانه کړل که دالله جل جلاله وجودنه واى نوبه دعالم هيڅ موجودهم نه وو پيداشوى (٣) اوپه حديث شريف کي راځي (اللهم لک الحمد أنت نور السماوات والأرض ومن فيهن) الهى تاته حمداوثناء ده ته دآسمانونواوځمکى اوهغوڅيزونوچي په دى کي دى نوريې عبدالله بن مسعودوايي چي: (ليس عند ربكم ليل ولانهار نور السماوات والأرض نور وجهه) ستادرب په نزدشپه او ورځ نشته دآسمانونواو ځمکى نورددہ دوجه (ذات)نوردى ابن قيم وايي چي الله پاک خپل ځان نور ستايلى اونومولى او قرآن يې نورګرزولى او رسول يې نورګرزولى او له خلکو څخه په نور پټ دى اوکله کله مفسرين دا آيتونه داسي تفسيرفرمايي چي الله تعالى منورکونکى دآسمانونو اوځمکى همدارازهدايت کونکى دآسمانونواوځمکى دى اوهغه چي ابن مسعودويلى دآيت تفسيرته نږدې دې تردې چي څوک وايي الله جل جلاله هدايت کونکى داهل السموات واهل ارض دى اوهغه څوک چي پدې يې تفسيرکوى چي الله روښانونکى دآسمانونواو ځمکي دي دهغي ويناواوداابن مسعود دويناترمينځ توپيرنشته (٤) ﴿مَثَلُ نُورِهِۦ﴾ مثل صفت دنورددہ (دمؤمن بنده په زړه کي) ﴿كَمِشْكَوٰةٍ فِيهَا مِصْبَاحٌ﴾ لکه (روڼه) طاقچه چي په هغى کي يوه بله ډيوه وى) يعني لکه هغه طاقچه چي په دېوال کي روغه شوى اوسورى نلرى دډيوې رڼا په کي راغونډه شوى وى ؛ په التسهيل کي وايي معناداچي دالله دنورصفت په ښکاره والى کي لکه هغه طاقچه غوندى دى چي بشريې په هر ډول ستره توګه تصورکوى چي رڼااوروښنايى پکي دى اوداچي په طاقچه سره يې تشبيه وفرمايله د دې لپاره چي داهغه څه دى چي خلک يې درک کولاى اوپيژندلاى شي (٥) ﴿ٱلْمِصْبَاحُ فِى زُجَاجَةٍ﴾ دغه بله ډيوه په ښيښه کي ﴿ٱلزُّجَاجَةُ كَأَنَّهَا كَوْكَبٌ دُرِّىٌّ﴾ دغه ښيښه (په سبب دهغې رڼاچي پکي ده) ګواکي يوستورى دى روڼ ځليدونکى ﴿يُوقَدُ مِن شَجَرَةٍ مُّبَٰرَكَةٍ﴾ چي بلاوه شي له تېلود وني برکتناکي (زَيْتُونَةٍ) دزيتون (هغه چي الله تعالى ډېري ګټي پکي ايښي دي) ﴿لَّا شَرْقِيَّةٍ وَلَا غَرْبِيَّةٍ﴾ چي نه مشرق طرفته وي نه مغرب طرف ته (بلکه په پراخه ويړه بيديا کي وى چي ګرده (کرۍ ورځ) لمرورباندى ځليږي ترڅويې ميوه ښه پخه اوتيل

---

(١) الطبري ١٨ / ١٠٥ دغه دابن عباس اومجاهدقول چي طبري غوره کړى دى

(٢) القرطبي ١٢ / ٢٥٦

(٣) الحکم لابن عطاء الله السکندري .

(٤) له محاسن التأويل څخه اخيستل شوى دى.

(٥) التسهيل ٣ / ٢٧

بې ډېرپاک وي ابن عباس رضی الله عنه وايي داهغه ونه د ه چې په صحراکې ولاړه وي اودکومې بلې ونې اوغره سيوري وربانديې نه راځي هيڅ څيزهغه نه پټوي نوتيل يې خورابښه رڼه وي (۱) ﴿ يَكَادُ زَيْتُهَا يُضِيٓءُ وَلَوْ لَمْ تَمْسَسْهُ نَارٌ ﴾ نژدې دی تيل دديې چې رڼاوکړي ( له خپله ځانه له ډېر صفاوالی ) اواګرکه نه وي رسيدلې دی ته اور(اوچې کله اور ورته ورسي نوبه څرنګه وي ؟) ﴿ نُّورٌ عَلَىٰ نُورٍ ﴾ دغه رڼاپررڼاده، ځکه رڼاده ډېوې ،پاکې دښيښې اوتيلويوځای شوی اورڼابشپړه شوی ده ﴿ يَهْدِى ٱللَّهُ لِنُورِهِۦ مَن يَشَآءُ ﴾ الله لارښيي نورخپل ته هغه چاته چې اراده وفرمايي ( له بندګانو خپلوچې دخپل نور(قرآن) داتباع توفيق ورکوی) ﴿ وَيَضْرِبُ ٱللَّهُ ٱلْأَمْثَٰلَ لِلنَّاسِ ﴾ اوبيانوی الله مثالونه خلکوته (ددوی له پوهې سره سم ترڅودهغوله رازونو او حکمتونوڅخه پندواخلی ﴿ وَٱللَّهُ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيمٌ ﴾ اوالله په هرڅيزښه عالم دی (چې دخپلوبندګانواومخلوقاتو هيڅ چاره ورڅخه پټه اوالونيا نه ده اوپدې کې وعداو وعيددی طبری وايي دغه مثال دقرآن لپاره الله بيان کړی کله چې دمؤمن په زړه کې وی اوفرمايي چې دالله دنورمثال لکه هغه په ديوال کې تاخچه غوندی دی چې هيڅ درز او چوله نلري ډيوه پکې بل وي اودغه ډيوه دمؤمن په زړه کې دقرآن اوآيتونومثال دی بيافرمايي ﴿ ٱلْمِصْبَاحُ فِى زُجَاجَةٍ ﴾ دغه د مؤمن په زړه کې دقرآن مثال دی چې سينه يې روښانه کړي اوله کفراوشرک څخه يې ژغورلی وی ورپسي راوړي ﴿ ٱلزُّجَاجَةُ كَأَنَّهَا كَوْكَبٌ دُرِّىٌّ ﴾ ښيښه په پاکی اوصفايي کي لکه مرغلره غوندی ستوری دی ﴿ يُوقَدُ مِن شَجَرَةٍ مُّبَٰرَكَةٍ زَيْتُونَةٍ لَّا شَرْقِيَّةٍ وَلَا غَرْبِيَّةٍ ﴾ يعني دغه ډيوه له هغودزيتون له تيلوبليږی چې نه شرقی اونه غربی ده بلکه لمروربانديراځيږي اوپريوزي نوتيل يې بيخی صفااورڼه وي ﴿ يَكَادُ زَيْتُهَا يُضِيٓءُ وَلَوْ لَمْ تَمْسَسْهُ نَارٌ ﴾ يعني نږدی ده چې دغه تيل بې له ډېری پاکی اوصفايي پرته له دې چې اور ورته ورسيږي ځليږی مقصدځنی دادی چې دالله تعالی حجتونه په خپل مخلوق باندی دومره زيات دی کله چې څوک پکې فکرکوی که الله پاک ورته ددې قرآن په رااستولوهم بيان او وضاحت نه وفرمايي هم ځليږي نوهله به څرنګه واضح اوښکاره نه وي چې الله پاک پخپلوآيتونوورته زياته ځلابښلی اوپه بيان يې رڼاخپره کړی ده (۲) کله چې الله پاک خپل هدايت دخپلوبندګانولپاره چې چاته يې اراده شي يادکړنويې ددغه عبادت ځايونه چې مساجداوالله ته دګردې ځمکې غوره ټوټې دی بيان راووړ ويې فرمايل چې: ﴿ فِى بُيُوتٍ أَذِنَ ٱللَّهُ أَن تُرْفَعَ ﴾ (په هغوکورونو(مساجدو) کې چې حکم کړی دی الله چې پورته دې کړل شي ( په بناء ياتعظيم سره ) يعني الله حکم کړ ی دی چې ځانګړی دده په نامه دي آبادشي اوشان دي لوړشي ترڅودروحي شعاعو وړانګولپاره مرکزونه وی ،ابن عباس رضی الله عنه وايي چې مساجد په ځمکه کې

(۱) مختصرابن کثير۲ / ۶۰۲

(۲) طبري په لنډون سره ۱۸ / ۱۱۰

دالله کوټې دي دآسمان اوسیدونکوته داسي ځلېږي لکه چي دځمکي اوسیدونکو ته ستوري ځلېږي (١) ﴿ وَيُذْكَرَ فِيهَا ٱسْمُهُۥ ﴾ اویادوه شي په هغه کي نوم دالله تعالی (په وحدانیت سره او تلاوت دآیتونودده ) ﴿ يُسَبِّحُ لَهُۥ فِيهَا بِٱلْغُدُوِّ وَٱلْءَاصَالِ ﴾ تسبیح وایې دغه الله ته (لمونځ کوی مؤمنان) په دغومسجدونوکي سهاراوبیګا ) ابن عباس رضی الله عنه وایي هره دتسبیح کلمه چي په قرآنکریم کي راوړل شوی معنایی لمونځ دی ﴿ رِجَالٌ لَّا تُلْهِيهِمْ تِجَٰرَةٌ وَلَا بَيْعٌ عَن ذِكْرِ ٱللَّهِ ﴾ (داسي سړی چي نه غافلوی دوی سوداګری اونه بیه پیرودل له ذکره یاده دالله یعني دوی دنیا او دهغې ښائست ښکلا اوپلورل پیرودل دالله له طاعته نه راګرزوی مفسرین کرام وایې چي دغه آیتونه دسوداګرواصحابو رضوان الله علیهم په هکله رانازل شوی چي کله به یی په ښارونو کي پیرودل او پلورل کول نوچي اذان به یی واوریدوسمدستی به یی دالله (جل جلاله) طاعت ته مخه کړه ﴿ وَإِقَامِ ٱلصَّلَوٰةِ وَإِيتَآءِ ٱلزَّكَوٰةِ ﴾ اونه غافلوی دوی له سم قائمولواداکولودلمانځه پخپل وخت کي اوله ورکولو دزکات (فقیرانواوبیوزلوته سره له خپلوشرائطو) ﴿ يَخَافُونَ يَوْمًا تَتَقَلَّبُ فِيهِ ٱلْقُلُوبُ وَٱلْأَبْصَٰرُ ﴾ ویریږي دوی له هغی ورځی چي اوړی را اوړی (مضطرب ) به وی ، په هغی ورځی کي زړونه او سترګي (له ویری) ﴿ لِيَجْزِيَهُمُ ٱللَّهُ أَحْسَنَ مَا عَمِلُوا۟ ﴾ لپاره د دې چي جزاورکړي دوی ته الله ډېره غوره جزادهغوعملونوچي دوی کړي دي یعني په احسان باندي احسان اوپه بدي باندي دعفوې او غفران بدله ورکړي ﴿ وَيَزِيدَهُم مِّن فَضْلِهِۦ ﴾ اوزیات به کړی دوی ته الله له خپله فضله اورحمته هغه څه چي نه سترګو لیدلی ،نه غوږونو اوریدلي اونه دچا په زړه تېر شوي دي ) ﴿ وَٱللَّهُ يَرْزُقُ مَن يَشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴾ اوالله روزی ورکوی هرچاته چي اراده وفرمایی پریمانه بې حسابه روزي، ویل کېږي چي فلانی سړی بې حسابه لګښت کوي معنادا چي زیات لګښت چي دشمیرلو اندازه یی نشی کیدای امام فخر رازی وایې چي دلته دالله په بشپړ قدرت اوبشپړاحسان اوسخاتنبیه راغلی ده څکه الله پاک دوی ته ددوی په طاعاتوسترثواب ورکوی اود دوی دویرې په مقابل کيورباندی فضل اواحسان لوروی (٢) کله چي الله تعالی دمؤمنانو ذکر وفرمایو نو ورپسی یی د بدمرغوکفارو خسران راووړچي ددی لپاره یی دوه مثالونه وفرمایل یویې دهغه دعمل اوکردار لپاره اوبل یی دهغه دعقیدې اوپه توره تیاره کي دلوېدلوپه هکله ﴿ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ أَعْمَٰلُهُمْ كَسَرَابٍۭ بِقِيعَةٍ ﴾ (اوهغه کسان چي کافران شوی دی عملونه ددوی دسراب په شان دی په هوار ډاګ کي ) یعني دکافرانوهغه عملونه اوکړه وړه چي په دنیاکي یی په دې ګومان کول چي دوی ته به په آخرت کي ګټه رسوی دهغه ښوری دی چي په هوارډاګ بیدیاکي لکه رڼی اوبه داسي بریښي اوپه تکنده غرمه کي دتږی لپاره داوبوهیله پیداکوی خوپه حقیقت کي هیڅ هم نه وی ﴿ يَحْسَبُهُ ٱلظَّمْـَٔانُ مَآءً ﴾ چي ګومان کوی

---

(١) التفسیرالکبیر۲۴ / ۳

(٢) الطبري ۱۸ / ۱۱۳

وربانـدی تړی داوبو ﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءَهُۥ لَمۡ يَجِدۡهُ شَيۡـٔٗا ﴾ ترهغه پوری چي راشي هغوته نوونه مومي داسړی هغه چي داوبوگومان پری کړی شوی دی هیڅ شی بلکه یوازی شگی گل سراب وی نوافسوس بی لازیات شي ) ﴿ وَوَجَدَ ٱللَّهَ عِندَهُۥ فَوَفَّىٰهُ حِسَابَهُۥ ﴾ اوبیابه مومي الله (څارونکي) په نزد(دعمل) خپل پس پوره به ورکړی ( الله ) ده ته پوره حساب (جزاء دعمل دده چي کله ومری اوخپل هغه نیک عملونه به بی هیڅ گټه ورته ونه رسوي بلکه گرداوغبارغوندي به له مینځه تللي وي ﴿ وَٱللَّهُ سَرِيعُ ٱلۡحِسَابِ ﴾ اوالله دبرژر(اخیستونکی) دحساب دی څکه یوه محاسبه الله له بلي څخه مشغولولای نشي ) ﴿ أَوۡ كَظُلُمَٰتٖ فِي بَحۡرٖ لُّجِّيّٖ ﴾ (دغه دوهم مثال دی ) یا(عملونه ددوی )په شان دهغوتاریکیو دی په ژوربحرکي (چي ژوروالی یې نه معلومېږي ) ﴿ يَغۡشَىٰهُ مَوۡجٞ مِّن فَوۡقِهِۦ مَوۡجٞ ﴾ چي پټ کړی وی دغه بحرلره یوموج چي دپاسه یې بل موج وی ﴿ مِّن فَوۡقِهِۦ سَحَابٞۚ ﴾ اودپاسه ددغی څپې (موج) وریځ وی (پنده دغه څلورقسمه) ﴿ ظُلُمَٰتُۢ بَعۡضُهَا فَوۡقَ بَعۡضٍ ﴾ تیارې دی چي ځیني ددوی دپاسه دځینونورودی ،قتاده وایې چي کافرپه پنځوتاریکیوکي اوړی رااوړی دنیایی تیاره ده ،کړه اوعمل یې تاریکه ده ،د ننوتلوځای یې تیاره ده ،اودراوتلوځای یې تیاره ده اوبالآخره دورتلواوهستوگنی ځای یې په قیامت کي تیاره ده [1] ﴿ إِذَآ أَخۡرَجَ يَدَهُۥ لَمۡ يَكَدۡ يَرَىٰهَاۗ ﴾ کله چي راوباسی دغه (په تیاروکي پریوتی) لاس خپل نه وي نژدې (دی ) چي ووینی دغه (لاس خپل ) دغه دتمثیل بشپړاوی کوی یعني هغه انسان چي د غه گردی تاریکی لکه دبحردڅپوتاریکی داوریځی تاریکی وربانده راغونده شوی وی چي هغه تر ټولونژدی څیزله زیاتی تاریکي څخه ورځني پټوي اولیدلای یې نشي همداسي کافرانسان دکفراو گمراهي په تیاروکي غوپه وي ﴿ وَمَن لَّمۡ يَجۡعَلِ ٱللَّهُ لَهُۥ نُورٗا فَمَا لَهُۥ مِن نُّورٍ ﴾ (اوهرهغه چي الله ده ته نور رڼا نه وي ورکړې پس نشته ده ته هیڅ رڼا ) یعني څوک چي الله یې دایمان لارښوونه په برخه نکړی اوزړه یې د اسلام په رڼاروښانه نشی نوتل ترتله په ضلالت کي وي دلته الله جل جلاله دکافرلپاره دوه مثالونه راوړل لومړی یې دهغه دنیکوکړومثال چي له سراب سره یې مشابه کړاوبیایې دآیت پای پدغه خوندوره پایله وپسولل چي:

﴿ وَمَن لَّمۡ يَجۡعَلِ ٱللَّهُ لَهُۥ نُورٗا فَمَا لَهُۥ مِن نُّورٍ ﴾ اودادمؤمن په مقابل کي کله چي فرمایلي وو ﴿ نُّورٌ عَلَىٰ نُورٖ ﴾ نودغه تمثیل اوبیان خورانبائسته اوزړه راښکونکی بڼه لری قرآني تعبیر څومره ښکلی اوبسیادي هوکله چي الله تعالی د(مؤمنو )زړونوانوارادجهالودزړونوتیاری بیان کړی ورپسې یې دتوحیددلائل هسي ذکرکړل چي ﴿ أَلَمۡ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ يُسَبِّحُ لَهُۥ مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ وَٱلطَّيۡرُ صَٰٓفَّٰتٖۖ ﴾ ایاته نه وینی ای محمده ! بیشکه الله ته تسبیح وایې هرهغه چي په آسمانونوکي دی او (هر هغه) چي په ځمکه کي دی ) اومرغان هم په داسي حال کي چي خورونکی وی د وزرونوخپلو یعني ای محمده تاته په یقیني علم دانه

---

(۱) التفسیرالکبیر۲۴/۶

ده معلومه چي لوی الله جل جلاله ته ټول دآسمانونو او سېدونکي او د ځمکي بلکه د کائناتو که پیریان دی که پرښتې او که انسانان او مرغان دي دپاکي او تقدس ستاینه کوي ﴿كُلٌّ قَدْ عَلِمَ صَلَاتَهُۥ وَتَسْبِيحَهُۥ﴾ هريو (له دغو مذکورينو چي دی) په تحقيق معلوم دی (الله ته) لمونځ دهغه او تسبيح دهغه يعني هريوه له پرښتو، انسانانو، پيريانانو او مرغانو ته يې د خپل ذات عبادت لاره کرښه او دلمانځه او تسبيح مکلفيت ورښودلی دی ﴿وَٱللَّهُ عَلِيمٌۢ بِمَا يَفْعَلُونَ﴾ او الله ته ښه معلوم دی هغه (اعمال هم) چي دوی يې کوی (له طاعاتو او تسبيحاتو څخه) ﴿وَلِلَّهِ مُلْكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ﴾ (او خاص الله ته دی ملک سلطنت دآسمانونو او دځمکي) يعني الله دکائناتو مالک او متصرف دی ټول مخلوقات يې په ملکيت کي دننه دی په هغوی کي څرنگه چي غواړی هغسی تصرف او تغير راولی هغه زورور الله دی ﴿وَإِلَى ٱللَّهِ ٱلْمَصِيرُ﴾ او الله ته دی بيرته ورتله (دټولو نوبه يې پخپلو اعمالو جزاء ورکړی داهسي يادونه ده چي وعيد پکي نغښتی دی بيا وروسته الله پاک د کائناتو يوې هيښونکي څرگندتيا ته چي دالله جل جلاله په وحدانيت او قدرت دلالت لوی اشاره کوی فرمايي ﴿أَلَمْ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ يُزْجِى سَحَابًا﴾ ايا نه وينی ته ای مخاطبه چي الله بيشکه روانوي وريځې (پخپل قدرت سره چېرته چي يې خوښه شي ټوټه ټوټه.) ﴿ثُمَّ يُؤَلِّفُ بَيْنَهُۥ ثُمَّ يَجْعَلُهُۥ رُكَامًا﴾ بيا يو ځای والي کوي په مينځ ددغو (ټوټو دوريځو) کي بيا يې وگرزوي لاندي باندي (پنډې يو پربل دپاسه) ﴿فَتَرَى ٱلْوَدْقَ يَخْرُجُ مِنْ خِلَٰلِهِۦ﴾ پس وينې به ته (ای انسانه) چي وزی به باران (ددې وريځي له مينځه ﴿وَيُنَزِّلُ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مِن جِبَالٍ فِيهَا مِنۢ بَرَدٍ﴾ اونازلوی (الله) له لوری دآسمانه (له وريځو يا دړليو پشان د) غرونو چي وی په هغو غرونو کي ځيني له ږلی ﴿فَيُصِيبُ بِهِۦ مَن يَشَآءُ﴾ اورسوي (الله) داږلی هغه چاته چي اراده و فرمايې (درسوني يې هغه ته نويې په کښت او ميوه او مالداري کي تاوان ورسوي ) ﴿وَيَصْرِفُهُۥ عَن مَّن يَشَآءُ﴾ اوگرزوی يې له هرهغه چا څخه چي اراده يې (دگرځولو) وفرمايی نو ورته تاوان نه رسوي ، صاوي وايې لکه چي باران له آسمانه اوروی اوپه هغه کي دبندگانو لپاره گټه ده همداسي ږلی اوروي چي پکي نقصان وي نو پاکي ده هغه ذات لره چي آسمان يې دخير او شر دواړو د پيدا ايښت ځای ټاکلی دی (۱) ﴿يَكَادُ سَنَا بَرْقِهِۦ يَذْهَبُ بِٱلْأَبْصَٰرِ﴾ نژدی وی رڼا بريښنا دهغه چي دليدونکي سترگي يوسي، او بصارت يې ورک کړي له زياتي ځلا څخه ﴿يُقَلِّبُ ٱللَّهُ ٱلَّيْلَ وَٱلنَّهَارَ﴾ الله گرځوي شپه او ورځ (په اوږدوالي لنډوالي تياري رو ښنايي يخني اوتودوخي....) ﴿إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَعِبْرَةً لِّأُو۟لِى ٱلْأَبْصَٰرِ﴾ بيشکه په دغو مذکوره شيانو کي خامخا دسترگو او بصارت خاوندانو ته عبرت دی (څکه دوی ور باندي فکر کوي چي څرنگه اوبه، يخني، روښنايي، اوتاريکي له يوه ځيز څخه راوزي

---

(۱) الطبري ۱۸/ ۱۱۲

؟ فسبحان الله القادر على كل شيئ ﴿ وَٱللَّهُ خَلَقَ كُلَّ دَآبَّةٍ مِّن مَّآءٍ ﴾ او الله پيدا کړی دی هر حيوان چي ګرزي (په
ځمکه کي) له اوبونه ،دالله په وحدانيت يې دآسمانونو او ځمکو داوسيدونکو تسبيح دوريځو ګرزول
اوله هغوی څخه دباران اوربنت اوبيا دحيواناتو احوال دليل راوړ.ابن کثيروايې چي الله جل جلاله خپل
بشپړ قدرت سترسلطان اوحاکميت بيانوی کوم چي دټولو مخلوقاتو په هکله چي هرڅومره يې شکلونه
،رنګونه، حرکات اوسکنات سره بيل وي خوداټول له اوبو څخه پنځوي (پيداکوي) (۱) ﴿ فَمِنْهُم مَّن
يَمْشِى عَلَىٰ بَطْنِهِۦ ﴾ ځيني له هغوی هغه دي چي تګ کوي په ګېډه تېر خپل (لکه ماهی اومار) ﴿ وَمِنْهُم مَّن
يَمْشِى عَلَىٰ رِجْلَيْنِ ﴾ اوځيني له هغوی هغه دی چي په دووپښو ځي (لکه انسان اومرغان) ﴿ وَمِنْهُم مَّن يَمْشِى
عَلَىٰٓ أَرْبَعٍ ﴾ او ځيني له هغوی هغه دي چي په څلورو (پښوخپلولکه آس ،اوښ،اونورڅاروی) دروميې تګ
کوي ابوحيان وايې چي هغه يې رومبی يادکړکوم چي قدرت زيات څرګندونکی اوتر ټولوعجيب دی
اوپرته له کومي وسيلې اوپښوتګ کوي اوبياپردووپښو تلونکي ورپسې څلوربول ﴿ يَخْلُقُ ٱللَّهُ مَا يَشَآءُ إِنَّ
ٱللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ﴾ پيداکوي الله (ماسوی له دغو) هرهغه څه چي اراده يې وفرمايې (دخلقت)
بيشکه الله په هرڅيزباندی (چي اراده يې وفرمايې ) ښه قادردی (هيڅوک يې له خپلي ارادی اړولای
اومنع کولای نشي امام فخر رازي وايې پدې پوه شه چي عقلونه دټولوحيواناتوڅخه په خوراکوڅني
حيوان باندي هم بشپړعلم راوستل نشي کولای اوداد پيداکونکي (خالق) په ذات باندي څرګند دليل دی
که چيری چاره دڅلوروطبائعوپه ترکيب سره وای نوبه ټول يوډول ووخوداسي نه ده ددي حيواناتو ځانګړيا
ددوی غړو(اندامونو) عمرونواوبدنونواومرودحکيم اومقتدرذات کاردی سبحان الله عما يشرکون
(۲) ﴿ لَّقَدْ أَنزَلْنَآ ءَايَٰتٍ مُّبَيِّنَٰتٍ ﴾ خامخاپه تحقيق نازل کړی دی موږ آيتونه بيانونکی واضح (د حق
اوهدايت لاري ته ) ﴿ وَٱللَّهُ يَهْدِى مَن يَشَآءُ إِلَىٰ صِرَٰطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴾ اوالله سمه صافه لاره ښيي هرهغه ته چي
اراده وفرمايې (له مخلوق خپل نه ) دهغې لاری سمې صافی (چي حق دين داسلام دی ؛کله چي الله تعالی
دتوحيددلائل وفرمايل نوله نفاق اومنافقينوڅخه يې داسي ويرونه وفرمايله چي: ﴿ وَيَقُولُونَ ءَامَنَّا بِٱللَّهِ
وَبِٱلرَّسُولِ وَأَطَعْنَا ﴾ او وايې دا(منافقان) چي موږ په الله ايمان راوړی دی اودالله په رسول (موايمان راوړی
دی) اوحکم منلی دی موږ(دالله اودرسول الله )﴿ ثُمَّ يَتَوَلَّىٰ فَرِيقٌ مِّنْهُم ﴾ بيا مخ ګرزوي (له اسلامه) يوه
ډله له دوی ﴿ مِّنۢ بَعْدِ ذَٰلِكَ ﴾ وروسته له دې (دايمان اوداطاعت له دعوئ څخه ) ﴿ وَمَآ أُوْلَٰٓئِكَ
بِٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ اونه دي دغه ګرزيدونکي مؤمنان (په حقيقت کي) حسن رحمه الله وايې دغه آيت
دهغومنافقانوپه هکله نازل شوی چي ښکاراووبه يې اسلام اوپه پټه کافران وو ﴿ وَإِذَا دُعُوٓاْ إِلَى ٱللَّهِ

---

(۱) الصاوي على الجلالين ۳ / ۱۳۴
(۲) المختصر۲ / ۲۱۳

﴿ وَرَسُولِهِ ﴾ او هر كله چي وبلل شي د وى الله او رسول (د دغه الله ) ته ﴿ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ ﴾ (د پاره د دى چي حكم وكړى دغه رسول په مينځ د دوى كي ) يعني او كله چي دوى دالله او د رسول الله حكم ته وباله شى ﴿ إِذَا فَرِيقٌ مِّنْهُم مُّعْرِضُونَ ﴾ ناڅاپه يوه ډله له دوى ډډه كونكى وى (له حاضريدلو د رسول الله مجلس ته ) ﴿ وَإِن يَكُن لَّهُمُ الْحَقُّ يَأْتُوا إِلَيْهِ مُذْعِنِينَ ﴾ او كه چيرى دوى ته حق وى (په زعم د دوى ) نو راځى دوى دغه (رسول الله ﷺ) ته گړندى فرمان منونكى (ځكه چي رسول الله به په حق ورته حكم وكړى امام فخررازي وايې دوى به هله اعراض او ډډه كوى چي پوهيږى حق د دوى د مخالف لورى دى او كله چي يې گومان شي حق د دوى په جانب دى بيا پخپله خوښه رادرومي(١) ﴿ أَفِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ أَمِ ارْتَابُوا ﴾ آيا د دوى په زړونو كي رنځ دى (د كفر او نفاق ؟) آيا شكمن دى دوى (په محمدى نبوت) ﴿ أَمْ يَخَافُونَ أَن يَحِيفَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ وَرَسُولُهُ ﴾ آيا وېريږي دوى له دي نه چي الله به پر دوى ظلم وكړي يا به رسول د دغه الله (پر دوى ظلم وكړي په حكم كولو سره استفهام د توبيخ د مبالغې او ذم لپاره دى . ﴿ بَلْ أُولَٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ ﴾ بلكه دوى چي دي هم دوى ظالمان دي (په بشپړه توگه چي د رسول الله صلى الله عليه وسلم له حكم څخه ځنگ كوي او عنادته يې ملا ترلي ده ﴿ إِنَّمَا كَانَ قَوْلَ الْمُؤْمِنِينَ إِذَا دُعُوا إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ أَن يَقُولُوا سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا ﴾ (بيشكه همدا خبره ده چي د مؤمنانو وينا ده كله چي وبلل شي دوى الله او رسول د دغه الله ته د دې لپاره چي حكم وكړى شى په مينځ د دوى كي (په وخت د جگړې كي ) دا چي ووايې وا وريده موږ (ستا خبره ) او ومانو موږ (ستا حكم) يعني پر دوى واجب او لازم دى كله چي يې رسول الله صلى الله عليه وسلم د دوى او د ښمنانو تر مينځ د فيصلى كولو لپاره وبولى چي دوى ژر تر ژره ووايې چي په سرا و سترگو (سمعًا و طاعةً) نو كه چيرى مؤمنان واى همداسي به يې كول طرى وايې چي د لته مقصد اخبار نه دى بلكه د منافقانو تر ټنه او نوروته بيا تأديب دى(٢) ﴿ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴾ او دغه (ويونكي) هم دوى دى برياليان د دواړو جهانو نو په نيكمرغى باندى ) ﴿ وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ ﴾ او هر څوك چي اطاعت وكړى (حكم ومنى ) دالله او د رسول د دغه الله په ټولو كړو وړو كي ) ﴿ وَيَخْشَ اللَّهَ وَيَتَّقْهِ ﴾ او ووېريږي له الله (له سببه د هغو گناهونو چي كړي يې دي ) او ځان وساتي (له غضبه د ده ) او امريې په ځاى او له نواهيو څخه يې ځان وژغوري ) ﴿ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَائِزُونَ ﴾ پس دغه (فرمان منونكى ويريدونكي ) هم دوى دى برى موندونكي (په رضوان او جنت دالله خلاص شوي له دوزخ او عذابه دالله ،وايې چي د روميانو يو عالم چي دا آيت شريف واوريدونو مسلمان شو او وى ويل :چي پدې كي ټول هغه د تورات او انجيل حكمونه راغلى دى.

---

(١) التفسير الكبير ٢٤ / ١٩
(٢) التفسير الكبير ٢٤ /٢٦

بلاغت :

پدی آیتونوکي چي دبدیع اوبلاغت کومی ښکلاوی شته لنډیزیی دادی :

۱ـ دمصدراطلاق په اسم فاعل باندي دمبالغې لپاره لکه : ﴿ ٱللَّهُ نُورُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ ﴾ چي د(منور) په معنادی اوهسی یی وباله لکه چي پخپله نوروی شریف رضی وایې چي دځینوپوهانودتفسیرله مخی په آیت شریف کي استعاره ده اومقصدددوی په نزدداچي الله لارښوونکی دځمکنی اوآسمانی اوسیدونکودی چي ورته څرګنددلائل اوبیانات یې کړي لکه چي په روښنایي اوڅلایوڅوک لاره مومی.

۲ـ تمثیلی تشبیه ﴿ مَثَلُ نُورِهِۦ كَمِشْكَوٰةٍ فِيهَا مِصْبَاحٌ ﴾ دلته یی دالله جل جلاله نورکوم چي دخپل مؤمن بنده په زړه کي یی ایښی له هغی تاخچي سره چي پکي ډیوه په ښیښه کي لګیدلی وی لکه څلانده ستوری غوندی صفااوروښانه بریښی دغه ته ځکه تمثیلی تشبیه وایې چي دشبه وجه له متعددڅخه راایستل شوی اودغه له خوراښکلی تشبیهاتوڅخه ګڼل کیږی.

۳ـ اشتقاقی جناس لکه ﴿ تَتَقَلَّبُ فِيهِ ٱلْقُلُوبُ وَٱلْأَبْصَٰرُ ﴾.

۴ـ اطناب چي دخاص یادونه وروسته له عام څخه راوړی چي دهغه په هکله پاملرنه اودشان لوړتیایی وښیی لکه : ﴿ ذِكْرِ ٱللَّهِ ....وَإِقَامِ ٱلصَّلَوٰةِ ﴾ ځکه لمونځ هم په ذکرالله کي شامل ووخوبیایادونه یی اهتمام دی.

۵ـ تمثیلی تشبیه چي : ﴿ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ أَعْمَٰلُهُمْ كَسَرَابٍۭ بِقِيعَةٍ ﴾ اوهمداسي په دی قول کي چي: ﴿ أَوْ كَظُلُمَٰتٍ فِى بَحْرٍ لُّجِّىٍّ ﴾ اودغه ښائسته تشبیه اوخوندور تمثیل دی .

۶ـ دطباق صنعت چي فرمایی : ﴿ فَيُصِيبُ بِهِۦ وَيَصْرِفُهُۥ ﴾.

۷ـ لطیفه استعاره لکه : ﴿ يُقَلِّبُ ٱللَّهُ ٱلَّيْلَ وَٱلنَّهَارَ ﴾ ځکه دلته دذاتی شپانومادی اوښتون مقصدنه دی بلکه دشپې او ورځی بدلون مراددی .

۸ـ تام جناس چي پدې کلام کي راځی ﴿ يَذْهَبُ بِٱلْأَبْصَٰرِ ....لِّأُو۟لِى ٱلْأَبْصَٰرِ ﴾ له لومړی څخه مراد دسترګوخاوندان اوله دوهم څخه دعقل څښتنان دی .

لطیفه :

ځیني دطبیعت دعلم پوهانو چي مؤمنان هم نه وو دغه آیت واوریدوچي ﴿ أَوْ كَظُلُمَٰتٍ فِى بَحْرٍ لُّجِّىٍّ يَغْشَىٰهُ مَوْجٌ ﴾ نوبیې پوښتنه وکړه چي ایامحمدصلی الله علیه وسلم دبحرسفرکړی وو؟ په ځواب کي ورته ویل شول نه نوهغه عالم وویل چي (اشهدانه رسول الله) زه شاهدی وایم چي هغه په حقه رسول الله دی چاورڅخه پوښتنه وکړه چي څرنګه وپوهیدلی ؟ هغه ورته وویل چي دسیند داډول ستاینه پرته له هغه چاچي ژوندیې په بحراوسیندکي تیرکړی وی دبل چاپه توان کي نشته ځکه هغه څوک چي له سمندرسره یی سروکاروی دسیندخطرات مشکلات اوتیاري یی لیدلی وی اوداچي محمدصلی الله

عليه وسلم د سپيند سفرونه نه دی کړی نوزه وپوهيدم چي دغه دالله جل جلاله کلام دی اوهغه برحقه پيغمبردی .

***

الله تعالى فرمايي:

﴿ وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ لَئِنْ أَمَرْتَهُمْ لَيَخْرُجُنَّ قُل لَّا تُقْسِمُوا طَاعَةٌ مَّعْرُوفَةٌ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴿٥٣﴾ قُلْ أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ فَإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا عَلَيْهِ مَا حُمِّلَ وَعَلَيْكُم مَّا حُمِّلْتُمْ وَإِن تُطِيعُوهُ تَهْتَدُوا وَمَا عَلَى الرَّسُولِ إِلَّا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ ﴿٥٤﴾ وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنكُمْ وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ فِي الْأَرْضِ كَمَا اسْتَخْلَفَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ وَلَيُمَكِّنَنَّ لَهُمْ دِينَهُمُ الَّذِي ارْتَضَىٰ لَهُمْ وَلَيُبَدِّلَنَّهُم مِّن بَعْدِ خَوْفِهِمْ أَمْنًا يَعْبُدُونَنِي لَا يُشْرِكُونَ بِي شَيْئًا وَمَن كَفَرَ بَعْدَ ذَٰلِكَ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ ﴿٥٥﴾ وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴿٥٦﴾ لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا مُعْجِزِينَ فِي الْأَرْضِ وَمَأْوَاهُمُ النَّارُ وَلَبِئْسَ الْمَصِيرُ ﴿٥٧﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لِيَسْتَأْذِنكُمُ الَّذِينَ مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ وَالَّذِينَ لَمْ يَبْلُغُوا الْحُلُمَ مِنكُمْ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ مِّن قَبْلِ صَلَاةِ الْفَجْرِ وَحِينَ تَضَعُونَ ثِيَابَكُم مِّنَ الظَّهِيرَةِ وَمِن بَعْدِ صَلَاةِ الْعِشَاءِ ثَلَاثُ عَوْرَاتٍ لَّكُمْ لَيْسَ عَلَيْكُمْ وَلَا عَلَيْهِمْ جُنَاحٌ بَعْدَهُنَّ طَوَّافُونَ عَلَيْكُم بَعْضُكُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿٥٨﴾ وَإِذَا بَلَغَ الْأَطْفَالُ مِنكُمُ الْحُلُمَ فَلْيَسْتَأْذِنُوا كَمَا اسْتَأْذَنَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمْ آيَاتِهِ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿٥٩﴾ وَالْقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَاءِ اللَّاتِي لَا يَرْجُونَ نِكَاحًا فَلَيْسَ عَلَيْهِنَّ جُنَاحٌ أَن يَضَعْنَ ثِيَابَهُنَّ غَيْرَ مُتَبَرِّجَاتٍ بِزِينَةٍ وَأَن يَسْتَعْفِفْنَ خَيْرٌ لَّهُنَّ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٦٠﴾ لَّيْسَ عَلَى الْأَعْمَىٰ حَرَجٌ وَلَا عَلَى الْأَعْرَجِ حَرَجٌ وَلَا عَلَى الْمَرِيضِ حَرَجٌ وَلَا عَلَىٰ أَنفُسِكُمْ أَن تَأْكُلُوا مِن بُيُوتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ آبَائِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أُمَّهَاتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ إِخْوَانِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أَخَوَاتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أَعْمَامِكُمْ أَوْ بُيُوتِ عَمَّاتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أَخْوَالِكُمْ أَوْ بُيُوتِ خَالَاتِكُمْ أَوْ مَا مَلَكْتُم مَّفَاتِحَهُ أَوْ صَدِيقِكُمْ لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَن تَأْكُلُوا جَمِيعًا أَوْ أَشْتَاتًا فَإِذَا دَخَلْتُم بُيُوتًا فَسَلِّمُوا عَلَىٰ أَنفُسِكُمْ تَحِيَّةً مِّنْ عِندِ اللَّهِ مُبَارَكَةً طَيِّبَةً كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴿٦١﴾ إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَإِذَا كَانُوا مَعَهُ عَلَىٰ أَمْرٍ جَامِعٍ لَّمْ يَذْهَبُوا حَتَّىٰ يَسْتَأْذِنُوهُ إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَأْذِنُونَكَ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ فَإِذَا اسْتَأْذَنُوكَ لِبَعْضِ شَأْنِهِمْ فَأْذَن لِّمَن شِئْتَ مِنْهُمْ وَاسْتَغْفِرْ لَهُمُ اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٦٢﴾ لَّا تَجْعَلُوا دُعَاءَ الرَّسُولِ بَيْنَكُمْ كَدُعَاءِ بَعْضِكُم بَعْضًا قَدْ يَعْلَمُ اللَّهُ الَّذِينَ يَتَسَلَّلُونَ مِنكُمْ لِوَاذًا فَلْيَحْذَرِ الَّذِينَ يُخَالِفُونَ عَنْ أَمْرِهِ

أَن تُصِيبَهُمْ فِتْنَةٌ أَوْ يُصِيبَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٦٣﴾ أَلَآ إِنَّ لِلَّهِ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ قَدْ يَعْلَمُ مَآ أَنتُمْ عَلَيْهِ وَيَوْمَ يُرْجَعُونَ إِلَيْهِ فَيُنَبِّئُهُم بِمَا عَمِلُوا۟ وَٱللَّهُ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيمٌۢ ﴿٦٤﴾ ﴾النور: ٥٣ - ٦٤

## مناسبت :

كله چي الله تعالى دمنافقينواودهغوى دناولى خويونويادونه وكړه وروسى يې هغه څه راوړل كوم چي ددوى په سينواوزړونوكي له كينې ، مكراوفريب څخه خوندي وواوپه دروغوبه يې سخت سخت قسمونه اولوړې اخيستى اودسورت په پاى كي دمنافقانوله خويونوڅخه دځان ژغورنى تحذيراو وېرونه فرمايې:

## لغتونه:

(الحلم ) په خوب كي احتلام ته وايې په قاموس كي وايې چي حلم خوب ته وايه شي اوجمع يې احلام راځى اوپه ضمه سره حُلم بيا احتلام ته چي هغه په خوب كي جماع كول دى ويل كيږى (١) راغب وايې چي حُلم دبلوغ زمانې ته وايې ځكه چي پدې وخت كي خاوندد خپل نفس په كابوكولو قادروى (٢) (القواعد) زړې ناستي له ښځوڅخه دقاعدجمع اوله تاڅخه پرته راځى ځكه دغه په ښځينه ووپسى خانګړى دى لكه (حائض) اويا (طامث) چي هغې مېرمني ته ويل كېږي چي نه دميړه خواهش لري اونه اولادزېږوي (اشتاتا) د(شت) جمع اومتفرق ته ويل كيږى (يتسللون)تسلل په پټه وتلوته وايې (لواذا) په يوڅيز باندى ځان پټولوته وايې چي دوتلوپه وخت كي يې كاروى ترڅوبل څوک يې ونه وينى .

## دنزول سبب :

روايت كيږى چي رسول الله صلى الله عليه وسلم يوانصارى هلک چي مدلج نوميده دغرمې په وخت كي عمربن الخطاب ته ورواستاووچي رسول الله ته يې راوبولى اوكله چي هغه ته ورغى عمررضى الله عنه ويده وو اودروازه يې ور وټكوله وردننه شوعمر رضى الله عنه راويښ شواوپاڅيدوڅه بدن يې لوڅ شونويې وويل زماداخوښه ده چي الله پاک زموږ زامن،ښځى اوغلامان په داسي وختونوكي له راتلواوننوتلوڅخه منع كړى واى اوبيارسول الله صلى الله عليه وسلم ته ورغى كه ګورى چي داآيت نازل شوى دى: ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لِيَسْتَـْٔذِنكُمُ ٱلَّذِينَ مَلَكَتْ أَيْمَٰنُكُمْ ﴾ نوالله تعالى ته برمخى په سجده پريووت اوشكريې پرځاى كړ(٣)

## تفسير :

﴿ وَأَقْسَمُوا۟ بِٱللَّهِ جَهْدَ أَيْمَٰنِهِمْ ﴾ اوقسمونه خورى (منافقان) په الله سخت سخت قسمونه ددوى ﴿ لَئِنْ أَمَرْتَهُمْ لَيَخْرُجُنَّ ﴾ قسم دى خامخاچي كه ته (حكم) امروكړى دوى ته(جهادته په وتلوسره ) نوخامخابه وزى دوى

---

(١) الطبري ١٨/ ١٢٠

(٢) القاموس المحيط

(٣) المفردات للراغب الاصفهاني (٣) تفسيرالالوسي ٦/ ٥٧ ٤ حاشية شيخ زاده على البيضاوي ٣_٤٣٥

دغه (جهاد) ته هرومرو، مقاتل وايي چي كله الله د منافقينو ښکنځل بيان کړل چي دوی د رسول الله حکم ونه مانونو راغلل اورسول الله ته يې وويل که ته موږ ته امروکړي چي له خپلو کورونو ووزو مالونه اوخپلې ښځې پرېږدونو موږ به ووزو او که د جهاد حکم راته وکړې نو موږ به جهاد وکړو نو بيا دا آيت را نازل شو(۱)﴿ قُل لَّا تُقْسِمُوا۟ طَاعَةٌ مَّعْرُوفَةٌ ﴾ وو وايه ای محمده منافقانو ته قسم مه خوری تاسي د دروغو طاعت (مو د الله اورسول سره) معلوم دی (چي يوازی په ژبه او په زړه نه دی په هوينادی او په فعل نه دی) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ خَبِيرٌۢ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴾ بيشکه الله ښه خبردار دی په هغو کارونو چي تاسي يې کوی (هيڅ راز او ستاسي پټ نيت له الله څخه الونيا او پټ نه دی) ﴿ قُلْ أَطِيعُوا۟ ٱللَّهَ وَأَطِيعُوا۟ ٱلرَّسُولَ ﴾ وو وايه ای محمده دوی ته) اطاعت وکړئ (حکم ومنی) تاسي د الله اودرسول الله په اخلاص سره بې له نفاقه اود پيغمبر په حکم منګولی ولګوی هدايت ته يې غاړه کېږدي ﴿ فَإِن تَوَلَّوْا۟ فَإِنَّمَا عَلَيْهِ مَا حُمِّلَ وَعَلَيْكُم مَّا حُمِّلْتُمْ ﴾ پس که مخ وګرزوی تاسي ای خلکو (له طاعته يې) نو بيشکه همدا خبره ده چي دی پر دغه رسول زما بار (د تبليغ) چي پرې اېښودل شوی دی اودی پر تاسي (بار) چي پر تاسي اېښودل شوی دی (او پرې مکلف ياست) ﴿ وَإِن تُطِيعُوهُ تَهْتَدُوا۟ ﴾ او که اطاعت وکړی حکم ومنی تاسي د دغه (رسول الله) نو سمه لاره به ومومی (نيکمرغی ته به ورباندي ورسېږي) ﴿ وَمَا عَلَى ٱلرَّسُولِ إِلَّا ٱلْبَلَـٰغُ ٱلْمُبِينُ ﴾ او نه دی پر (ذمه د) رسول مګر رسونه ښکاره د شرائعو ده چي هغه يې ادا کړی ده او ستاسو مخالفت او سرغړونه ورته زيان نه رسوی هغه خپل امانت له غاړی اړولی دی رسالت يې ابلاغ کړی دی. ﴿ وَعَدَ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مِنكُمْ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّـٰلِحَـٰتِ ﴾ وعده کړي ده الله له هغو کسانو سره چي ايمان يې راوړی دی له تاسي او کړي يې دي ښه (عملونه) يعني هغه مؤمن مخلصان چي له ايمان سره يې صالح عمل هم يوځای کړی دی ﴿ لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ فِى ٱلْأَرْضِ كَمَا ٱسْتَخْلَفَ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ﴾ (چي خامخا به خليفه ګان کړي (الله) دوی په ځمکه کي لکه چي خليفه ګان کړي يې وو هغه کسان چي پخواله دوی نه وو) الله تعالی د ځمکي دميراث وعده ورسره کړي ده او دا چي په ځمکه کي به يې هسي تصرف کونکي ګرځوي څنګه چي پاچهان په خپله پاچهي کي تصرفات کوي لکه چي پخواني مؤمنان يې هم داسي خليفه ګان ګرزولي وو د کفارو هيوادونه يې د دوی په واک کي ورکړي وو مفسرين کرام وايي چي کله رسول الله صلی الله عليه وسلم اوملګري يې مديني منورې ته راغلل نو ټولو عربانو له يوې لينده څخه په غيشو وويشتل نو به دوی له وسلې سره څملاستل او زغره اغوستي به پاڅېدل هغوی به يو بل ته ويل هغه به هم وخت وي چي موږ په بېغمي او امن ويده شو پر ته له يوه الله جل جلاله له بل چا څخه وېرېدونکي نه يو؟! نو بيا دغه آيت شريف نازل شو(۲) او دا هغه ژمنه او وعده وه چي د دغه امت لپاره په ختيز او لوېديز فتح کېدلو سره د هغي ړښتنولي

(۲) زادالمسير ۵۷/۶

څرګنده شوه او په حدیث شریف کې راځي: رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي :(ان الله زوی لی الأرض فرأیت مشارقها ومغاربها وان ملك أمتی سیبلغ مازوی لی منها) ([1]) یعني الله پاک ماته ځمکه راونغاړله اوبیایې ماختیزاولویدیزولیدل زما دامت پاچهي به ګردې ځمکې ته رسیږي ﴿ وَلَيُمَكِّنَنَّ لَهُمْ دِينَهُمُ ٱلَّذِى ٱرْتَضَىٰ لَهُمْ ﴾ اوخامخاثابت قوي به وګرزوي هرومرودوی ته ددوی هغه دین (اسلام) چې غوره کړی یې دی (الله) دوی ته (په ټولو ادیانولو) ﴿ وَلَيُبَدِّلَنَّهُم مِّنۢ بَعْدِ خَوْفِهِمْ أَمْنًا ﴾ اوخامخابدل به ورکړي دوی ته وروسته له وېرې ددوی له دښمنانو امن اواطمینان) یعني حال به یې له وېرې څخه امن ته واړوي لکه بل ځای فرمایي: ﴿ وَءَامَنَهُم مِّنْ خَوْفٍ ﴾ ﴿ يَعْبُدُونَنِى لَا يُشْرِكُونَ بِى شَيْـًٔا ﴾ زما عبادت به کوي اوله ماسره به شریک نه پیداکوي هیڅ څیز؛ دغه استیناف دثنا په توګه دی اولکه داستخلاف لپاره چې علت وي.

﴿ وَمَن كَفَرَ بَعْدَ ذَٰلِكَ فَأُو۟لَـٰٓئِكَ هُمُ ٱلْفَـٰسِقُونَ ﴾ اوهرڅوک چې کافرشوپس له دغولویوانعاماتوپس دغه کسان هم دوی فاسقان دي ، دالله له طاعت څخه وتلي اودالله دامره سرغړونکي دي. ابوالعالیه وایې چې دکفرمعناداچې څوک ددغه نعمت کفران وکړي اومقصد په الله کافرکېدل نه دی. طبري وایې چې دغه آیت له تأویل سره ډېرنژدې دی ځکه چې الله له دغه امت سره دانعام وعده فرمایلې اوپدې آیت کې دالله دمنعم کېدلواخباردی چې وروسته بیافرمایي ﴿ وَمَن كَفَرَ ﴾ یعني چې ددغه نعمت کفران وکړي ﴿ فَأُو۟لَـٰٓئِكَ هُمُ ٱلْفَـٰسِقُونَ ﴾([2]) ﴿ وَأَقِيمُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتُوا۟ ٱلزَّكَوٰةَ ﴾ اوقائموئ تاسي (سم اداکوئ سره له ټولو حقوقو)لمونځ او ورکوئ زکات (په سمه توګه چې دالله دخوښئ سبب شي) ﴿ وَأَطِيعُوا۟ ٱلرَّسُولَ لَعَلَّكُمْ ﴾ اوحکم ومنئ اطاعت وکړئ تاسي درسول دالله په ټولومامور به شیانوکي ښایي تاسي ته چې رحم وکړی شي پرتاسي ﴿ لَا تَحْسَبَنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ مُعْجِزِينَ فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ (په هغوکسانو چې کافران شوي دي ګمان مکوه چې عاجز کونکي (دالله) دي په ځمکه کي) پدې کي درسول الله صلی الله علیه وسلم لپاره تسلیت اوډاډینه او ورته دنصرت اومرستي ژمنه ده یعني ای محمده په هغوکافرانو چې له تاسره یې عنادکړی داسي ګمان مکوه چې دوی پردغه ژوندکي په الله زوروردي بلکه الله هروخت پردوی باندي واکمن دی ﴿ وَمَأْوَىٰهُمُ ٱلنَّارُ ﴾ اوځای دهستوګني ددوی اور(ددوزخ) دی ﴿ وَلَبِئْسَ ٱلْمَصِيرُ ﴾ اوخامخابد ځای دورتلودی دا (دوزخ) ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لِيَسْتَـْٔذِنكُمُ ٱلَّذِينَ مَلَكَتْ أَيْمَـٰنُكُمْ ﴾ ای هغوکسانوچي ایمان یې راوړی دی (ای مؤمنانو) ښایي چې اذن دي وغواړي له تاسي(په وخت دننوتلوکي پرتاسي باندي) هغه (وینځي ، مریان اوخدمتګاران ) چې مالکان شوي وي ښي لاسونه دتاسي ﴿ وَٱلَّذِينَ لَمْ يَبْلُغُوا۟ ٱلْحُلُمَ مِنكُمْ ﴾ اوهغه کسان چې نه وي رسېدلي حدبلوغ (احتلام ) ته له تاسي

---

([1]) رواه مسلم

([2]) الطبري ۱۸/ ۱۴۲

(احرارو) ﴿ثَلَٰثَ مَرَّٰتٍ﴾ دري كرته (په دري وختونو كي ﴿مِّن قَبْلِ صَلَوٰةِ ٱلْفَجْرِ وَحِينَ تَضَعُونَ ثِيَابَكُم مِّنَ ٱلظَّهِيرَةِ وَمِنۢ بَعْدِ صَلَوٰةِ ٱلْعِشَآءِ﴾ پخواله لمانځه دسهاراوپه هغه وخت كي چي كارئ تاسي جامې په وخت دغرمې كي (چي قيلوله كوئ) اوپس له لمانځه دماسخوتن نه (چي دخوب اراده كوئ) ﴿ثَلَٰثُ عَوْرَٰتٍ لَّكُمْ﴾ (دغه) درې وختونه دخلل (پټښېدود) ستردي تاسي ته (ځكه چي عورات پكي ښكاره اولوځوالى پكي غالب وي نوخپلومريانو ته چوپړيانواوماشومانوته پوهنه ور كړئ چي پرته له اجازې تاسي ته دننه درنشي ﴿لَيْسَ عَلَيْكُمْ وَلَا عَلَيْهِمْ جُنَاحٌۢ بَعْدَهُنَّ﴾ نشته پرتاسي اونه پردوى باندي هيڅ ګناه تېرله دغودريو وختونو(چي بې له اجازې ستاسي داوسېدلوځايونوته دننه درشي) ﴿طَوَّٰفُونَ عَلَيْكُم بَعْضُكُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ﴾ دوى ګرزېدونكي دي پرتاسي (په تللو او نتوتلوپاره دخدمت) ځيني ستاسي پرځينونورو. ابوحيان وايې چي معناداچي دوى كولاى شي ګهيخ اوبېګاه تاسي ته پرته له دغووختونودننه درشي اواجازه ونه غواړي(١)﴿كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ ٱللَّهُ لَكُمُ ٱلْءَايَٰتِ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ﴾ همداسي همداسي (لكه دغه بيان)ښكاره بيانوي الله تاسي ته آيتونه (داحكامو) اوالله ښه عالم (په ټولواحوالو دخلګو) ښه حكمت والادى (په تدبير دچارو ددوى) ﴿وَإِذَا بَلَغَ ٱلْأَطْفَٰلُ مِنكُمُ ٱلْحُلُمَ﴾ اوكله چي ورسېدل واړه هلكان ستاسي بلوغ ته (اومكلف وګڼل شول) ﴿فَلْيَسْتَـْٔذِنُوا۟ كَمَا ٱسْتَـْٔذَنَ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ﴾ پس اذن دي وغواړي (په ننوتلو كي پرتاسي باندي لكه چي اذن غوښت هغوكسانو(چي بالغان شوي وو) پخواله دغو(ماشومانو) يعني دوى وپوهوئ چي دننوتلواجازه دي ترلاسه كوي ﴿كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ ٱللَّهُ لَكُمْ ءَايَٰتِهِۦ﴾ همداسي (لكه دغه بيان) ښكاره بيان فرمايي الله تاسي ته آيتونه (د احكامو) خپل ﴿وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ﴾ اوالله ښه عالم (په ټولواحوالو) ډېرحكمت والادى (چي هركارپه تدبيراو مصلحت ترسره كوي ، بيضاوي وايې چي داكلام بې ځكه مكرر راووړ چي د استيذان په هكله تاكيد اومبالغه افاده كړي (٢)﴿وَٱلْقَوَٰعِدُ مِنَ ٱلنِّسَآءِ ٱلَّٰتِى لَا يَرْجُونَ نِكَاحًا﴾ اوزړې ناستي له ښځوڅخه هغه كي دنكاح اميدنلري (ځكه چي بوډاتوب ته رسېدلي اودشهوت پارونكى نلري ﴿فَلَيْسَ عَلَيْهِنَّ جُنَاحٌ أَن يَضَعْنَ ثِيَابَهُنَّ﴾ پس نشته پردوى هيڅ ګناه چي كېږدي (دوى ظاهري) جامې خپلي (لكه چادري اولوپټې اودنارينه ووپه وړاندي رادبره شي خپلي عادتي جامې بې اغوستى اودخلګوپام ځان ته نه اړوي اونه شهوت پاروي ﴿غَيْرَ مُتَبَرِّجَٰتٍۭ بِزِينَةٍ﴾ پدې حال كي چي دښايست خپل ښكاره كونكي نه وي ، ابوحيان وايې دتبرج حقيقت دادى چي هغه څه چي پټول يې لازم وي څرګندشي اوډېرځله بوډۍ

---

(١) البحر ٦/ ٤٧٢
(٢) البيضاوي ٢/ ٦٢

سپین سري وي چي سینګاریې کړی او جمال یې څرګند وي (۱) ﴿ وَأَن يَسْتَعْفِفْنَ خَيْرٌ لَّهُنَّ ﴾ (او داچي دوی ځان وساتي (له ایستلو د ظاهري جامو څخه هم) دوی ته خیر دی) یعني که دوی له بوډاتوب سره سره بیاهم لکه د ځوانانو مېرمنو چادري اولوپټې واغوندي چي په سترکښي مبالغه وکړي د دوی لپاره غوره او د عزت نښه ده الله پاک ته ډېرپاکیزه او خوښ دي ﴿ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴾ او الله ښه اورېدونکی (د ټولو اقوالو) او ښه پوهېدونکی په ټولو احوالو دی ، د خلګو پټ نیتونه او رازونه ورته معلوم دي هر انسان ته د هغه له کړو سره سمه جزا ورکوي په دې کي زېری او تهدید دواړه نغښتي دي ﴿ لَّيْسَ عَلَى الْأَعْمَىٰ حَرَجٌ وَلَا عَلَى الْأَعْرَجِ حَرَجٌ وَلَا عَلَى الْمَرِيضِ حَرَجٌ ﴾ نشته پر ړانده هیڅ مشقت او نه پر ګوډ هیڅ حرج (وبال) او نه پر رنځور هیڅ ملامتي (چي له غزا څخه پاتي شي ځکه عذرونه لري او عاجزان دي) (۲) ﴿ وَلَا عَلَىٰ أَنفُسِكُمْ أَن تَأْكُلُوا مِن بُيُوتِكُمْ ﴾ او نشته پر ځانونو ستاسي هیڅ حرج (کلفت) چي وخورئ تاسي له کورونو خپلو (او له کورونو د مېرمنو خپلو او اولادونو خپلو. بیضاوي وایې چي پدې کي د اولادونو کورونه هم راځي ځکه د زوی کور لکه خپل کور غوندي دی چي رسول الله صلی الله فرمایې: تر ټولو ښه خواړه هغه دي چي سړی یې له خپل کسب نه خوري او زوی هم د سړي خپل کسب دی) (۳) ﴿ أَوْ بُيُوتِ آبَائِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أُمَّهَاتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ إِخْوَانِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أَخَوَاتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أَعْمَامِكُمْ أَوْ بُيُوتِ عَمَّاتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أَخْوَالِكُمْ أَوْ بُيُوتِ خَالَاتِكُمْ ﴾ (یاله کورونو د پلرونو خپلو، یاله کورونو د میندو خپلو، یاله کورونو د ورونو خپلو، یاله کورونو د خوېندو خپلو ، یاله کورونو د ترونو خپلو، یاله کورونو د تروریانو (عمو) خپلو، یاله کورونو د ماماګانو خپلو، یاله کورونو د توریګانو (خالو) خپلو) یعني پدې کي چي تاسي د دغو نومړو له کورونو څخه چي ستاسي خپلوان دي خوراک کوي کوم وبال حرج مشقت او ملامتي نشته، امام رازي وایې چي د دغو کورونو څخه خوراک کول استبذان ته اړتیا نلري ځکه دوی هغه څوک دي چي د خپلوانو په خوړلو یې زړونه خوشحالېږي (۴) ﴿ أَوْ مَا مَلَكْتُم مَّفَاتِحَهُ ﴾ یاله هغو کورونو) چي مالکان شوي یاست تاسي د کلیګانو د هغو (یعني چي تاسو یې وکیلان کړي یاست) عائشه رضی الله عنها فرمایي: چي خلګ به یې له رسول الله صلی الله سره غزا ته تللي او د کورونو کلیګاني به یې خپلو وکیلانو ته ورسپارلې او ورته به یې ویل چي ستاسو خوراک کول لپاره د رته مواجازه ده نو به د غو متصرفینو وکیلانو ویل چي موږ لره نه دی رواچي خوراک ځني وکړو ځکه دوی د زړه له کومي اجازه نه ده راته کړي او موږ ته یې امانت راسپارلی دی بیا دغه آیت

---

(۱) البحر ۲/ ۴۷۳

(۲) دغه د حسن قول او د ابن زید رایه ده او څرګنده وینا ده چي د البحر مؤلف او کشاف هم غوره کړي ده او چابیاویلي چي دغه معذور کسان کولای شي له روغو سره یوځای خوراک وکړي پدې کي هیڅ حرج نشته او دغه وینا امام رازي او طبري غوره کړي

(۳) البیضاوي ۲/ ۲۳

(۴) التفسیر الکبیر ۲۴/ ۳۶

شریف نازل شو ﴿ أَوۡ مَا مَلَكۡتُم مَّفَاتِحَهُۥٓ ﴾ (۱) ﴿ أَوۡ صَدِيقِكُمۡۚ ﴾ یاله (کورونو) ددوستانو خپلویعني کله چي ددوستانو کورنونوته ورشي خوراک کول درته روادي قتاده وايې کله چي دخپل دوست کره ورشي پرته له اجازې په خوړلوملامتي نشته ﴿ لَيۡسَ عَلَيۡكُمۡ جُنَاحٌ أَن تَأۡكُلُواْ جَمِيعًا أَوۡ أَشۡتَاتٗاۚ ﴾ نشته پرتاسي هيڅ ګناه پدې چي خوراک وکړئ (تول) سره يو خای یابېل بېل مفسرین کرام وايې چي دغه آيت دکنانه ديو کلي په هکله رانازل شوی چي هغوی به يوازي خواړه نه خوړل ګرده ورځ به يې انتظارکاوو که به يې څوک ونه موندل چي ورسره خواړه وخوري نوبه يې هيڅ شی نه خوړل اوکله کله چي به ورسره اوښان اوښي وې نوبه يې شيدې ترهغونه څکلې څوپوري چي بل څوک به يې دملګرتياله‌پاره پيداکړی نه وای نوالله جل جلاله ورته خبرورکړچي که څېري سړی يوازي خوراک کوي وبال نلري اوګناه يې نشته ﴿ فَإِذَا دَخَلۡتُم بُيُوتٗا فَسَلِّمُواْ عَلَىٰٓ أَنفُسِكُمۡ ﴾ نوکله چي ننوزی تاسي (دسکونت ) کورونوته پس تاسي پرځانونوخپلوسلام اچوئ (یعني څوک چي هلته وي هغوی ته سلام اچوئ) ﴿ تَحِيَّةٗ مِّنۡ عِندِ ٱللَّهِ مُبَٰرَكَةٗ طَيِّبَةٗۚ ﴾ پېشکشي ده ثابته له (جانبه د ) الله مبارکه طيبه (برکتناکه پاکيزه چي الله دمؤمنوبندګانوله‌پاره ټاکلي ، قرطبي وايې چي څکه يې مبارکه وبلله چي دعاپکي اودميني محبت پيغام دی اوپاکيزه يې پدې وګڼله چي اورېدونکی يې له اورېدلو خونداخلي (۲) ﴿ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ ٱللَّهُ لَكُمُ ٱلۡأٓيَٰتِ لَعَلَّكُمۡ تَعۡقِلُونَ ﴾ همداسي (لکه دابيان) ښکاره الله بيانوي تاسي ته آيتونه (دحکمت اواحکام خپل) ښايې چي تاسي عقل وچلوئ ؛ ابن کثيروايې : کله چي الله تعالی پدې مبارک سورت کي محکم احکام اوشرائع بيان کړل نويې بندګانوته ددې تنبيه ورکړه چي الله دوی لره کافي شافي آيتونه بيانوي څوپکي سوچ وکړي ښايې چي ورباندي پوه شي(۳) ﴿ إِنَّمَا ٱلۡمُؤۡمِنُونَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ﴾ بېشکه (کامل) مؤمنان هغه کسان دي چي ايمان يې راوړی دی پرالله اوپه رسول دالله (په ټينګ ايمان راوړلوسره چي شک اوشبه ورته لاره نلري ) ﴿ وَإِذَا كَانُواْ مَعَهُۥ عَلَىٰٓ أَمۡرٖ جَامِعٖ لَّمۡ يَذۡهَبُواْ حَتَّىٰ يَسۡتَـٔۡذِنُوهُۚ ﴾ اوکله چي وي دوی له دغه (رسول ) سره په کوم کارجمع کونکی (چي په هغه کي دمسلمانانو مصلحت وي) نونه ځي (پخپل سر ) ترهغه پوري چي اذن وغواړي له دغه (رسول الله) نه مفسرين کرام وايې چي دغه آيت دخندق دکيندلوپه وخت کي نازل شو څکه ځيني مؤمنان دضرورت لپاره دتللواجازه اخيسته اومنافقان به پرته له اجازې وتل اوتلل نودا آيت شريف نازل شوچي دمخلصومؤمنانوستاينه وکړي اودمنافقانوبدي ته اشاره وکړي ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَسۡتَـٔۡذِنُونَكَ أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ يُؤۡمِنُونَ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦۚ ﴾ بېشکه هغه کسان چي اذن غواړي له تانه (ای زما رسوله) دوی هغه کسان دي

---

(۱) ابن کثير ۲ / ۲۱۹ المختصر
(۲) القرطبي ۱۲ / ۳۱۹
(۳) ابن کثير ۲ / ۲۲۰

چي كامل ايمان لري پرالله اورسول الله صلى الله عليه وسلم (اومني بې ) دغه دږومبني لپاره تاكيددى ترڅودرسول الله صلى الله عليه وسلم دشان عظمت څرګند كړي يعني هغه كسان چي له تاڅخه دتللواجازه غواړي دوى په رښتيا حقاني مؤمنان دي بيضاوي وايي چي دغه بې بيادمبالغې په توګه راوګرزاووچي هغه كسان چي دوى اجازه غواړي دوى رښتوني مؤمنان دي دغه دلومړني اسلوب عكس اوپوته دى اوپه دې كي دلومړني لپاره تاكيددى چي دالله اورسول الله لفظ پكي راوړل شوى اودغه ددوى دايمان په صحت دليل دى (١) ﴿ فَإِذَا ٱسْتَـْٔذَنُوكَ لِبَعْضِ شَأْنِهِمْ ﴾ پس كله چي دوى له تانه اذن وغواړي (دتللو) لپاره دخپلوځيني كارونو (مهماتو) (٢) ﴿ فَأْذَن لِّمَن شِئْتَ مِنْهُمْ ﴾ پس اذن وركړه هغه چاته چي خوښه خوښه وشي ستاله دوى نه (داذن وركولواوپه هغه كي حكمت اومصلحتويني ) ﴿ وَٱسْتَغْفِرْ لَهُمُ ٱللَّهَ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ (اومغفرت وغواړه ددوى لپاره له الله تعالى بېشكه الله ښه ښونكى (دخطيئاتو ) ډېررحم والادى په انعام داجراوثواب) يعني د دغواستيذان غوښتونكولپاره الله ته دعاوكړه چي عفو اومغفرت ورنصيب كړي كه څه هم استيذان دعذرلپاره وي خوبياهم تقصيردى ځكه چي دنيوي امرته په ديني امر ترجيح وركول دى ﴿ لَّا تَجْعَلُوا۟ دُعَآءَ ٱلرَّسُولِ بَيْنَكُمْ كَدُعَآءِ بَعْضِكُم بَعْضًا ﴾ (مه ګرځوئ (اى مؤمنانو بلنه ) دعادرسول پخپلو منځونوكي په شان ددعا(بلني) دځينوتاسي ځينونونوروته ) يعني تاسوپيغمبرته دده په نامه ناري مه وروهئ لكه چي ځيني ستاسوځينونوروته ناري كوئ بلكه هسي ورته واياست اى نبى الله ، اى رسول الله ترڅودهغه دمقام اوشان تعظيم موكړى وي . ابوحيان وايي : پخپل نامه بلل اوناري كول دكوچيانو دوډ اودستور وونودوى ته امروشوچي درسول الله احترام اوعزت وكړي اوپه ښه غوره نامه بې وبولي يارسول الله اويانبى الله په نامه ورته غږ كړي آيانه ګوري ځيني شړلومؤمنانوبه ورته ويل اى محمده او له دې څخه هغوى منع شول(٣) قتاده وايې چي دوى ته الله جل جلاله درسول الله صلى الله عليه وسلم د تعظيم اواحترام كولوامروفرمايو.

﴿ قَدْ يَعْلَمُ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ يَتَسَلَّلُونَ مِنكُمْ لِوَاذًا ﴾ په تحقيق الله ته معلوم دي هغه كسان چي كراركرارښوى وزي له تاسي پټ دباندي په داسي حال كي چي يوله بله سره ځان پناه كوي اووزي. طبري وايي چي (لواز) دي ته وايي چي ځيني خلګ له ځيني نورو ځان پناه كوي دغه په هغوځان پټوي اوهغه په دغو(٤) ﴿ فَلْيَحْذَرِ ٱلَّذِينَ يُخَالِفُونَ عَنْ أَمْرِهِۦٓ ﴾ پس ودي وېرېږي هغه كسان چي مخالفت كوي له حكمه ددغه (رسول اولاره بې پرېږدي په سنتوبې ستركي پټوي) ﴿ أَن تُصِيبَهُمْ فِتْنَةٌ أَوْ يُصِيبَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾

---

(١) حاشيه شيخ زاده على البيضاوي ٣ / ٤٤٠

(٢) ابن عباس رضى الله عنه وايي چي عمررضى الله عنه له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه دعمرې اداكولواجازه وغوښته اوهغه ته يې اجازه وركړه بيايې ورته وفرمايل (ياابا حفص لاتنسنا من صالح دعائك ).

(٣) البحر ٦ / ٤٧٢

(٤) الطبري ١٨ / ١٣٥

له دې نه چې ورسېږي دوی ته څه فتنه (آفت په دنیا کې) یا ورسېږي دوی ته دردناک عذاب (په آخرت کې) ﴿ أَلَآ إِنَّ لِلَّهِ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ واورئ خبردار اوپوه شئ چې بېشکه خاص الله لره دي هرهغه څه چې په آسمانونو او ځمکو کې دي (خلقاً ملكاً او عبيداً) ﴿ قَدْ يَعْلَمُ مَآ أَنتُمْ عَلَيْهِ ﴾ په تحقيق الله ته معلوم دي هرهغه څه چې تاسي ور باندي یاست (له اخلاصه ایمانه، نفاقه ریاء) ﴿ وَيَوْمَ يُرْجَعُونَ إِلَيْهِ فَيُنَبِّئُهُم بِمَا عَمِلُوا۟ ﴾ (اومعلومه ده الله ته) هغه ورځ چې هغه ته وروستل کېږي (دغه خلق) پس خبردار به کړي (الله) دوی پرهغو عملونو چې دوی کړي دي (له خیراوشره غټ اوواړه سپک اودرانه اوبیا به وریاندي جزا ورکړي) ﴿ وَٱللَّهُ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيمٌۢ ﴾ اوالله په هرڅه باندي ښه عالم دی (ځکه چې ټول یې مخلوق اومملوک دی هیڅ شی ورڅخه پټ نه دی.

**بلاغت:** پدې آیتونو کې چې دبلاغت اوبیان کومې ښېلګې شته لنډیزیې په لاندې ډول دی:

۱- لطیفه استعاره ﴿ جَهْدَ أَيْمَٰنِهِمْ ﴾ دلته یې دغه قسمونه داسې تشبیه کړل چې منافقین خپل ګردکوښښ اوزیارو باسي چې ټینګ اومضبوط وښیې اودوی په وس کې هډو نه وي خودوی خپل ټول توان په کاروي اودغه یې داستعارې په توګه راوړل.

۲- مشاکلت لکه ﴿ عَلَيْهِ مَا حُمِّلَ وَعَلَيْكُم مَّا حُمِّلْتُمْ ﴾ یعني په هغه باندي دتبلیغ چاري اوپر تاسو دتکذیب وبال

۳- دطباق صنعت لکه چې دوېرې اوامن ترمینځ په ﴿ مِّنۢ بَعْدِ خَوْفِهِمْ أَمْنًا ﴾ کې راغلی دی اوهمداسې دټولنې اوتیت پرک په کلماتوکې چې ﴿ جَمِيعًا أَوْ أَشْتَاتًا ﴾ دی.

۴- اطناب چې دحرج کلمه یې مکرر راوړې ترڅو په ذهنونوکې حکم ټینګ کړي.فرمایي: ﴿ لَّيْسَ عَلَى ٱلْأَعْمَىٰ حَرَجٌ وَلَا عَلَى ٱلْأَعْرَجِ حَرَجٌ وَلَا عَلَى ٱلْمَرِيضِ حَرَجٌ ﴾.

۵- دمبالغې صیغې لکه ﴿ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾.

**فائده:**

ځینوسلفوویلي څوک چې پرځان باندي سنت قولا اوفعلا حاکم کړي نوبه یې ژبه په حکمت خوځېږي اوکه څوک دهواهوس حکم پرځان قولاوفعلاومني نوبه په بدعت ګړېږي اوخبري به کوي ځکه چې الله فرمایي ﴿ وَإِن تُطِيعُوهُ تَهْتَدُوا۟ ﴾ (۱).

---

(۱) زادالمسیر ۲/۵۷۱

لطیفه:

یو چاته وویل شول: تا ته څوک ښه ایسي ورور دي، که ملګری دي هغه ورته وویل: چې ملګری مې نه وي ورور مې نه خوښېږي؛ ابن عباس رضی الله عنه وایې ملګری ترخپلوانو نژدې وي آیا نه ګورې چې دوزخیان هسي استغاثه کوي وایې: ﴿ فَمَا لَنَا مِن شَٰفِعِينَ ﴿١٠٠﴾ وَلَا صَدِيقٍ حَمِيمٍ ﴾ اوپه پلرواومیندوېې استغاثه نه ده کړې.

تنبیه:

ځیني عربو داعار اوشرم ګڼلی چې یوازې ډوډۍ وخوري، ورې به خملاستل خویوازې خوراک به یې نه کاوو له حاتم طائي څخه دامشهوره وینا پاتې ده چې (اذاما صنعتِ الزاد فالتمسي له * اکیلافاني لست آکله وحدی) یعني اې میرمنې کله چې دي ډوډۍ تیاره کړه هغې لپاره څوک وګوره چې زه یې یوازې نه خورم دغه دعربو دویارښه اودسخا اوکرم نمونه وه.

دالله په مرسته دالنور سورت تفسیر بشپړ شو.

***

## دالفرقان سورت مکي اواوه اویاآیتونه لري:

### دسورت په وړاندې:

سورت الفرقان مکي سورت اودعقیدې له چاروڅخه رغبېږې همداسې دمشرکانوچې دمحمدي رسالت اوقرآن په باب کومي شبهې اوشکوک په زړه کې ګرزېدل دهغوځواب ورکوي اودقرآنکریم دربښتنولې اومحمدي رسالت دتصدیق په محور راڅرخې اودایمان په بعث اوجزا په عقیده ټینګار کوي ځیني کیسې دپنداخیستلواوعبرت نیولولپاره هم پکې راغلې دي.

* لومړی دغه سورت په قرآنکریم باندې رڼا اچوي اوهغه پېغورونه چې مشرکانوبه دهغه دتکذیب لپاره راوړل څېرې کله به مشرکانو وړباندې دپخوانیوکیسوګمان کاووکله به یې ویل دغه محمدله خپله ځانه جوړکړی چې ځینواهل کتابوهم ورسره مرسته کړې ده دریم کرت به یې ویل چې دغه څرګندي کوډي اوسحرجادو دی نوالله تعالی ددوی دغه باطل ګمانونه اوناروا خیالات تردید کړل اوکوټلي دلائل یې راوړل چې دغه قرآنکریم دالله جل جلاله له لوري رانازل شوی دی، وروسته بیادرسالت موضوع راآخلي هغه چې دبرځله معاندمشرکان پکې غوپه کېدل اوداسې وړاندیزونه به یې کول چې پیغمبربایدچې پرښته وی اوبشرنه وی اوبیابالفرض که چېرې پیغمبربشرهم وای نوباید داسې څوک وای چې دمرتبې اومال خاوندوای کوم چې ښه بډای اودسترشخصیت څښتن وای نه هسې چې یوبې وزله پلارمړی (یتیم) نوالله جل جلاله ددوی دغه اقتراح هم په غوڅه توګه اوپه څرګنددلیل هسې چې دباطل ملاېې ماتوله تردید کړه.

* ورپسې آیتونه دمشرکانویوه ډلګۍ بیانوي چې حق یې وپېژاند او ورته یې غاړه کښېښوده خوبیا وروسته دګمراهې دوزخ ته ورکوزشول اوددوی له ډلې څخه یې (عقبه بن ابي معیط) یادکړهغه چې

اسلام يې راوړ خو بيا د خپل بد مرغه ملګري يعني (أبي بن خلف) په سبب مرتد شو نو قرآن هغه ظالم وګاڼه چې فرمايي: ﴿ وَيَوْمَ يَعَضُّ ٱلظَّالِمُ عَلَىٰ يَدَيْهِ ﴾ او دده ملګرى يې شيطان ونوماوو.

* دسورت په ترڅ کي دځيني انبياوو عليهم السلا م کيسې په اجمالي توګه راغلي او ددوی د قومونو تکذيب خبري او چې پردوی ددوی د سرغړوني په سبب هلاکتونه راغلي بيان شوي دي لکه چې د نوح، عاد، ثمود، او اصحاب الرس او دلوط عليه السلام د قومونو او نورو کافرانو منکرانو خبرو نه دي لکه چې سورت دالله د قدرت او وحدانيت له دلائلو خبري کوي او دالله د صنعت له عجائباتو او د خلقت له آثارو چې په دغه عجيبه کائناتو کي تر ستر ګو کيږي او دالله په عظمت او جلال ګواهي ورکوي پرده پورته کوي.

* دسورت په پای کي الله جل جلاله د (عبادالرحمن) بيان کوي چې الله څومره ښکلي او ستايلي اخلاق ورباندي پيرزو کړي هغه چې دستراجر او جنات النعيم وړ او مستحق يې ګرزولي دي

تسميه او نومول يې:

دې سورت ته ځکه سورت الفرقان ويل شوی چې الله جل جلاله پکي د دغه مجيد کتاب چې پخپل بنده (محمد صلى الله عليه وسلم) بې نازل کړی يادونه کړي او دا په انسانيت باندي يو خلېدونکی نور او روښانه وړانګي دي چې د حق او باطل ترمينځ ورباندي تو پير کيږي نور او تياره جلا کوي ايمان او کفر سره بېلوي نو ځکه ورسره ښايې چې فرقان وبلل شي.

الله تعالى فرمايي:

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ تَبَارَكَ ٱلَّذِى نَزَّلَ ٱلْفُرْقَانَ عَلَىٰ عَبْدِهِۦ لِيَكُونَ لِلْعَٰلَمِينَ نَذِيرًا ﴿١﴾ ٱلَّذِى لَهُۥ مُلْكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَلَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا وَلَمْ يَكُن لَّهُۥ شَرِيكٌ فِى ٱلْمُلْكِ وَخَلَقَ كُلَّ شَىْءٍ فَقَدَّرَهُۥ تَقْدِيرًا ﴿٢﴾ وَٱتَّخَذُوا۟ مِن دُونِهِۦٓ ءَالِهَةً لَّا يَخْلُقُونَ شَيْـًٔا وَهُمْ يُخْلَقُونَ وَلَا يَمْلِكُونَ لِأَنفُسِهِمْ ضَرًّا وَلَا نَفْعًا وَلَا يَمْلِكُونَ مَوْتًا وَلَا حَيَوٰةً وَلَا نُشُورًا ﴿٣﴾ وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ إِنْ هَٰذَآ إِلَّآ إِفْكٌ ٱفْتَرَىٰهُ وَأَعَانَهُۥ عَلَيْهِ قَوْمٌ ءَاخَرُونَ ۖ فَقَدْ جَآءُو ظُلْمًا وَزُورًا ﴿٤﴾ وَقَالُوٓا۟ أَسَٰطِيرُ ٱلْأَوَّلِينَ ٱكْتَتَبَهَا فَهِىَ تُمْلَىٰ عَلَيْهِ بُكْرَةً وَأَصِيلًا ﴿٥﴾ قُلْ أَنزَلَهُ ٱلَّذِى يَعْلَمُ ٱلسِّرَّ فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۚ إِنَّهُۥ كَانَ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿٦﴾ وَقَالُوا۟ مَالِ هَٰذَا ٱلرَّسُولِ يَأْكُلُ ٱلطَّعَامَ وَيَمْشِى فِى ٱلْأَسْوَاقِ ۙ لَوْلَآ أُنزِلَ إِلَيْهِ مَلَكٌ فَيَكُونَ مَعَهُۥ نَذِيرًا ﴿٧﴾ أَوْ يُلْقَىٰٓ إِلَيْهِ كَنزٌ أَوْ تَكُونُ لَهُۥ جَنَّةٌ يَأْكُلُ مِنْهَا ۚ وَقَالَ ٱلظَّٰلِمُونَ إِن تَتَّبِعُونَ إِلَّا رَجُلًا مَّسْحُورًا ﴿٨﴾ ٱنظُرْ كَيْفَ ضَرَبُوا۟ لَكَ ٱلْأَمْثَٰلَ فَضَلُّوا۟ فَلَا يَسْتَطِيعُونَ سَبِيلًا ﴿٩﴾ تَبَارَكَ ٱلَّذِىٓ إِن شَآءَ جَعَلَ لَكَ خَيْرًا مِّن ذَٰلِكَ جَنَّٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ وَيَجْعَل لَّكَ قُصُورًۢا ﴿١٠﴾ بَلْ كَذَّبُوا۟ بِٱلسَّاعَةِ ۖ وَأَعْتَدْنَا لِمَن كَذَّبَ بِٱلسَّاعَةِ سَعِيرًا ﴿١١﴾ إِذَا رَأَتْهُم مِّن مَّكَانٍۭ بَعِيدٍ سَمِعُوا۟ لَهَا تَغَيُّظًا وَزَفِيرًا ﴿١٢﴾ وَإِذَآ أُلْقُوا۟ مِنْهَا مَكَانًا ضَيِّقًا

مُقَرَّنِينَ دَعَوْاْ هُنَالِكَ ثُبُورًا ﴿١٣﴾ لَا تَدْعُواْ ٱلْيَوْمَ ثُبُورًا وَٰحِدًا وَٱدْعُواْ ثُبُورًا كَثِيرًا ﴿١٤﴾ قُلْ أَذَٰلِكَ خَيْرٌ أَمْ جَنَّةُ ٱلْخُلْدِ ٱلَّتِى وُعِدَ ٱلْمُتَّقُونَ ۚ كَانَتْ لَهُمْ جَزَآءً وَمَصِيرًا ﴿١٥﴾ لَّهُمْ فِيهَا مَا يَشَآءُونَ خَٰلِدِينَ ۚ كَانَ عَلَىٰ رَبِّكَ وَعْدًا مَّسْـُٔولًا ﴿١٦﴾ وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ وَمَا يَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ فَيَقُولُ ءَأَنتُمْ أَضْلَلْتُمْ عِبَادِى هَٰٓؤُلَآءِ أَمْ هُمْ ضَلُّواْ ٱلسَّبِيلَ ﴿١٧﴾ قَالُواْ سُبْحَٰنَكَ مَا كَانَ يَنۢبَغِى لَنَآ أَن نَّتَّخِذَ مِن دُونِكَ مِنْ أَوْلِيَآءَ وَلَٰكِن مَّتَّعْتَهُمْ وَءَابَآءَهُمْ حَتَّىٰ نَسُواْ ٱلذِّكْرَ وَكَانُواْ قَوْمًۢا بُورًا ﴿١٨﴾ فَقَدْ كَذَّبُوكُم بِمَا تَقُولُونَ فَمَا تَسْتَطِيعُونَ صَرْفًا وَلَا نَصْرًا ۚ وَمَن يَظْلِم مِّنكُمْ نُذِقْهُ عَذَابًا كَبِيرًا ﴿١٩﴾ وَمَآ أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ مِنَ ٱلْمُرْسَلِينَ إِلَّآ إِنَّهُمْ لَيَأْكُلُونَ ٱلطَّعَامَ وَيَمْشُونَ فِى ٱلْأَسْوَاقِ ۗ وَجَعَلْنَا بَعْضَكُمْ لِبَعْضٍ فِتْنَةً أَتَصْبِرُونَ ۗ وَكَانَ رَبُّكَ بَصِيرًا ﴿٢٠﴾ الفرقان١-٢٠

## لغتونه:

(تبارک) له برکت څخه اخیستل شوی اوزیات خیرته وایې دتمجیداوتعظیم لپاره هم راوړل کېږي (نذیرا) له هلاکت څخه وېرونکی ( نشورا) له مرګه وروسته ژوندي کېدل (مقرنین) په ځنځیرانوتړلیوته وایې (ثبورا) هلاکت (بورا) له بوارڅخه اخیستل شوی هم هلاکت ته وایې ابوعبیده لیکي چې ویل کېږي (رجل بور ) معنایې ده هلاک شوی سړی ځکه چې بوارهلاکت ته وایې (١)

## تفسیر:

﴿ تَبَارَكَ ٱلَّذِى نَزَّلَ ٱلْفُرْقَانَ عَلَىٰ عَبْدِهِۦ لِيَكُونَ لِلْعَٰلَمِينَ نَذِيرًا ﴾ ډېربرکت ناک څښتن دی هغه ذات چې نازل کړی یې دی قرآن په بنده خپل (محمد ) باندي لپاره ددې چې شې ( ای محمده) وېرونکی (ټولو خلګولره دالله له عذابه ) ﴿ ٱلَّذِى لَهُۥ مُلْكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ هغه الله چې خاص هم ده ته دی ملک اوسلطنت دآسمانونو اودځمکي (خلقاملکا اوعبیدا ) ﴿ وَلَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا وَلَمْ يَكُن لَّهُۥ شَرِيكٌ فِى ٱلْمُلْكِ ﴾ اونه یې دی نیولی هیڅ ولد(لکه چې نصاری اویهودان ګمان کوي) اونشته ده ته شریک (ملګری) په ملک سلطنت کي (لکه چې بت پرستان ګمان کوي) ﴿ وَخَلَقَ كُلَّ شَىْءٍ فَقَدَّرَهُۥ تَقْدِيرًا ﴾ اوپیداکړی دی الله هرشی پس اندازه کړی دی هغه (شی ) په اندازه کولو سره، په التسهیل کي وایې چې دخلق معناله عدم څخه وروسته ایجادته وایې أوتقدیرعبارت دی له اتقان اومحکم والي دصنعت نه اوداچې هرمخلوق پخپل مقداراوصنعت ځانګړی شي زمان ، مکان اومصلحت یې وښودل شي اوداسي نور(٢) امام رازي وایې چې الله تعالی خپل ځان په څلورو صفتونوستایه چې هغه دکبریاصفات دي لومړی داچې هغه دآسمانونواوځمکي مالک دی اودغه لکه دده په شتون (موجودوالي) چې تنبیه وي دوهم داچې تل ترتله معبوددی دریم داچې په الوهیت کي منفرد دی څلورم بیاداچې دټولو(ګردو ) شیانو پیدا کونکی

---

(١) القرطبي ١٣/ ٨
(٢) التسهیل ٣/ ٧٤

پنځونکی سره له تدبیراوحکمته دی(۱)﴿ وَٱتَّخَذُواْ مِن دُونِهِۦٓ ءَالِهَةً ﴾ اونیولي دغو (کفارو) بې له الله نورمعبودان (چې بتان دي) ﴿ لَّا يَخۡلُقُونَ شَيۡـًٔا وَهُمۡ يُخۡلَقُونَ ﴾ چې نشي پیدا کولای (دغه معبودان) هیڅ شی حال داچې دوی پخپله پیداکول کېږي (له تېږو سکښتلو او انځورولو څخه نو به څرنګه له الله سره په الوهیت کې شریک شي ؟) ﴿ وَلَا يَمۡلِكُونَ لِأَنفُسِهِمۡ ضَرًّا وَلَا نَفۡعًا ﴾ اونه دي مالکان دپاره دخانونو خپلو دضرر(دفع کولو) اونه دګټې نفعي (رسولو) ﴿ وَلَا يَمۡلِكُونَ مَوۡتًا وَلَا حَيَوٰةً وَلَا نُشُورًا ﴾ اونه دي مالکان په وژلو دچااونه په ژوندي کولودچااونه په بیا ژوندي پورته کولودمړیو(له قبرونو څخه) زمخشري وايې چې مشرکانو دالله دعبادت پرځای دهغه چاعبادت ته مخ کړچې په هیڅ شي هم قادرنه دي اودوی چې په زیان دفع کولواوګټه رسولوتوان نلري چې بندګان یې لاهم وس لري نوبه په بیرته راژوندي کولوڅرنګه قادر وي؟(۲) ﴿ وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓاْ إِنۡ هَٰذَآ إِلَّآ إِفۡكٌ ٱفۡتَرَىٰهُ ﴾ اووایې هغه کسان چې کافران شوي دي چې نه دی داقرآن مګردروغ دي چې له ځانه یې جوړکړي دي دغه (محمد ) ﴿ وَأَعَانَهُۥ عَلَيۡهِ قَوۡمٌ ءَاخَرُونَ ﴾ اوکومک ورسره کړی دی پدې (دروغ جوړولوکي) نورو قومونو(د اهل کتابو ) ﴿ فَقَدۡ جَآءُو ظُلۡمًا وَزُورًا ﴾ (الله فرمایې) په تحقیق راتګ کړی دی دغو(کفارو ) په ظلم اودروغوسره (چې عربي شخصیت دی عربي کلام له عجمي کلام ویونکي څخه زده کړي اوهغه کلام دي په فصاحت کي بیاهومره اوچت وي چې دعربوګردفصحاءاو بلغاء دي ورته ګوته په غاښ حیران وي نوددې مشرکانو خبره یوازي دروغ اوبهتان دی ﴿ وَقَالُوٓاْ أَسَٰطِيرُ ٱلۡأَوَّلِينَ ٱكۡتَتَبَهَا ﴾ اووایې (کفار) داکیسې دي دړومبنیوخلګوچې لیکلي دي هغه (محمد ) پرلیکونکو﴿ فَهِيَ تُمۡلَىٰ عَلَيۡهِ بُكۡرَةً وَأَصِيلًا ﴾ پس هغه لوستل کېږي پرده (چې یادیې کړي) سهاراوبېګاه ابن عباس رضی الله عنه وایې ددغي ویناکونکي نضربن حارث اودهغه ملګري وو اوافک خوراسختو دروغوته وایې (۳)﴿ قُلۡ أَنزَلَهُ ٱلَّذِي يَعۡلَمُ ٱلسِّرَّ فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِۚ ﴾ ووایه ای محمده( دغوکفاروته نه ده داسي بلکه) نازل کړی دی داقرآن هغه (الله) چې عالم دی په هروپټوچې په آسمانونواوپه ځمکه کې دي (هغه علیم اوقدیرذات دی) ﴿ إِنَّهُۥ كَانَ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴾ (بېشکه چې الله ښه مغفرت کونکی دخطیئاتوډېررحم والا(په انعام اواجر دثواب سره) یعني الله ژرتر ژره عذاب نه ورکوي اومهلت یې ورکړی ځکه چې هغه په بندګانودوېر (پراخ) رحمت اومغفرت څښتن دی. ﴿ وَقَالُواْ مَالِ هَٰذَا ٱلرَّسُولِ يَأۡكُلُ ٱلطَّعَامَ وَيَمۡشِي فِي ٱلۡأَسۡوَاقِ ﴾ اووایې دغه کفارچې څه دي دغه رسول ته چې خواړه خوري اوپه بازارونوکي ګرزي (لکه چې موږدمعاش په طلب

---

(۱) التفسیرالکبیر ۲۴ / ۴۲
(۲) الکشاف ۳ / ۱۱۵
(۳) البحر ۶ / ۴۸۱

پسي گرزودغه خونه پاچاوانه پرښته ده څکه پرښتې خوراک نه خوري اوپاچهان په بازارونوکې دارتیاد بشپړولولپاره نه گرزي اوداچې دوی وویل ﴿ مَالِ هَٰذَا الرَّسُولِ ﴾ سره له دې چې دوی خوپه رسالت نه مانودغه خبره يې دملندواواستهزاء لپاره کړي ﴿ لَوْلَا أُنزِلَ إِلَيْهِ مَلَكٌ فَيَكُونَ مَعَهُ نَذِيرًا ﴾ ولې نه نازلاوه شي ده ته يوه پرښته چې پس شي دغه پرښته له دغه رسول سره وېرونکي (کفارولره له دوزخه اوددغه رسول ددعوی تصدیق وکړي ) ﴿ أَوْ يُلْقَىٰ إِلَيْهِ كَنزٌ ﴾ یا(ولې نه) غورځول کېږي ده ته خزانه (له آسمانه چې خپلې ارتیاوې وربانديې ترسره کړي اودمعاش له طلب نه بې راوگرزوي ﴿ أَوْ تَكُونُ لَهُ جَنَّةٌ يَأْكُلُ مِنْهَا ﴾ یا(ولې نه) کېږي ده ته يوباغ چې خوري له (مېووحاصلاتود) هغه نه ﴿ وَقَالَ الظَّالِمُونَ إِن تَتَّبِعُونَ إِلَّا رَجُلًا مَّسْحُورًا ﴾ اوواېي دغه ظالمان (مؤمنانوته) چې متابعت نه کوی تاسي مگردیو سړي چې سحرپرې کول شوی دی (عقل يې کارنکوي نوگمان کوي چې دالله استازی دی ) ﴿ انظُرْ كَيْفَ ضَرَبُوا لَكَ الْأَمْثَالَ فَضَلُّوا ﴾ وگوره (ای محمده) څرنگه بیانوي (تړي دغه معاندان) تاته مثالونه (عجیبه اوشاذ، نادرحالات اوصفات ) پس گمرهان شول ( له هدایت څخه) ﴿ فَلَا يَسْتَطِيعُونَ سَبِيلًا ﴾ پس طاقت نلري دوي حق ته دموندلو دلاري (وروسته له هغه چې ستاپه دروغجن گڼلواوستاله رسالت څخه په انکارکولو کافران شول ، دوی درسول الله صلی الله علیه وسلم لپاره پنځه صفتونه یادکړل اوگمان يې وکړچې همدغه له رسالت سره نه ښايي دوی انگېرله چې دپیغمبربهتري اوفضیلت بایدچې په جسماني اموروي اودغه نهایت بې عقلي اوسفاهت دی نوالله جل جلاله ددوی دغه گمان په دووشیانوباطل کړلومړی داچې درسول الله تعجیب شي چې دوی څرنگه پخپلو خبروکي يوه خوله نه دي کله وايي چې هغه شاعردی کله يې جادوگرگڼي کله بیاوايي لېونی دی تردې چې ددوی دغه عجیبي وېناگاني لکه مثالونه غوندي وگرزېدل اودوهم داچې که الله وغواړي نوخپل استازي اوپیغمبرته ددوی له وړاندیزڅخه بهترڅه ورکړي اودغه مقصدالله په دې قول سره بیانېږي چې ﴿ تَبَارَكَ الَّذِي إِن شَاءَ جَعَلَ لَكَ خَيْرًا مِّن ذَٰلِكَ ﴾ ډېرلوی برکتناک عظیم اوجلیل دی هغه ذات که اراده وفرمايي گرځوي به تاته (په دنیاکي خیراوغوره له هغه (چې دوی یادکړي له دنیوي نعمتونونه) ﴿ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ وَيَجْعَل لَّكَ قُصُورًا ﴾ (داسي) باغونه چې بهېږي له لاندي (دونو )دهغو ویالې اوگرځوي به تاته (په دغو باغونوکې) بنگلې ، یعني نه یوازي یوجنت بلکه جنتونه اوباغونه اوله دې سره سره به بنگلې هم درکړي لوړې ښایسته اوچتې لکه چې دپاچهانوددنیاوي ؛ ضحاک وايي :کله چې مشرکانو رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دلوږې پېغور ورکړنو رسول الله صلی الله علیه وسلم ډېرخفه شواوحضرت جبرئیل علیه السلام ورته ددلاسايني لپاره راغی اوکله چې جبرائیل اونبي علیهما السلام سره خبرې اترې کولې نابېره دآسمان دروازه پرانیستل شوه جبرائیل علیه السلام وویل زېری درکوم ای محمده دغه رضوان دجنتونو واکدار دالله رضایې درته راوړې سلام ورته واچوه نو رسول الله صلی الله علیه وسلم سلام ورواچاوواورضوان وویل : الله تبارک وتعالی تاته خوښه

درکوي چي که غواړي نبی اوپاچاشې اویاهم نبي اوبنده اوله هغه سره توکرۍ لوښي ووچي له روښنایي څخه ځلېدوبیابې وویل دغه دځمکي دخزانو کلیګاني دي نو رسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت جبرئیل ته په داسي توګه وکتل لکه چي ورسره مشوره کوي نوهغه په لاس ورته اشاره وکړه چاچي تواضع کوه رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل بلکه غواړم چي بنده نبي جوړشم اوله هغه وروسته به رسول الله صلی الله علیه وسلم په تکیه وهلي دمرګ ترګړۍ پوري ډوډۍ نه وي خوړلې ([1])ویل بې زه بنده یم دبندګانو په شان خوراک کوم ) ﴿ بَلۡ كَذَّبُواْ بِٱلسَّاعَةِۖ وَأَعۡتَدۡنَا لِمَن كَذَّبَ بِٱلسَّاعَةِ سَعِيرًا ﴾ بلکه نسبت ددروغوکوي (کفار) په قیامت باندي (چي نشته) اوتیارکړی دی موږلپاره دهغه. چاچي نسبت ددروغوکوي په قیامت باندي سخت اور(ددوزخ ) طبري وایې معناداچي دغومشرکانو دالله له لوري دحق پیغام چي تاراوړی دی ددې لپاره ندی تکذیب کړی چي ته خواړه خورې اوپه بازارونوکي ګرزې ! بلکه ددې لپاره بې تکذیب کړی چي دوی پرقیامت ایمان نلري اوهغه څوک چي دقیامت تکذیب کوي موږورته سخت بلېدونکی اورتیارکړی دی([2]) ﴿ إِذَا رَأَتۡهُم مِّن مَّكَانِۭ بَعِيدٖ سَمِعُواْ لَهَا تَغَيُّظٗا وَزَفِيرٗا ﴾ (کله چي ویني (دغه اور) دوی له هغه لیري ځای نه نواوري به دوی (دغه اور) لره خوټکېدل (له ډېره قهره ) اوغوربدل ( له ډېره غضبه ) یعني دوی به دهغه داسي غږاوري لکه چي اېشي اوداسي آوازبه اوري لکه دخره چي (زفیر) وی ابن عباس رضی الله عنه وایې چي کله مجرم داورپه لورکشول کېږي نوبه دوزخ داسي ورته شنهارکوي لکه چي کچراوربشي ووینې او ورته به ناري سورې وهي هرڅوک چي بې واوري هغه به وېرېږي ([3])اوداچي بې وفرمایل: ﴿ مِّن مَّكَانِۭ بَعِيدٖ ﴾ پدې کي لانورزیات هیبت پروت دی ﴿ وَإِذَآ أُلۡقُواْ مِنۡهَا مَكَانٗا ضَيِّقٗا ﴾ اوکله چي وغورځولی شي (کفار) له دوزخ نه په تنګ ځای کي ابن عباس رضی الله عنه وایې په دوی به داسي تنګي راوستلی شي لکه تنګي د(زُخ) په نېزه کي (زُخ) هغه دنېزې په بېخ کي اوسپني ته وایې ﴿ مُّقَرَّنِينَ ﴾ پداسي حال کي چي تړل شوي به وي (لاسونه ددوی په غاړوکي ﴿دَعَوۡاْ هُنَالِكَ ثُبُورٗا ﴾ نوپه دغه ځای بولي دوی هلاک (خپل) اووایې ای زموږهلاکته دوی به دتمناپه ډول هلاکت غواړي ترڅوله دغي سختي څخه بې وژغوري لکه چي وایې ترمرګ سخت هغه دی چي له هغه سره دمرګ تمنااوهیله کېږي ﴿ لَّا تَدۡعُواْ ٱلۡيَوۡمَ ثُبُورٗا وَٰحِدٗا وَٱدۡعُواْ ثُبُورٗا كَثِيرٗا ﴾ مه غواړئ تاسي نن ورځ یو هلاک اووبولئ تاسي هلاکتونه ډېر(ځکه تاسي چي په کوم عذاب اخته یاست هغه ډېرو هلاکتونو غوښتونکی دی اوپدې کي ددوی ناهیلي له دعاقبلېدلواودعذاب له سپکتیاڅخه ده ﴿ قُلۡ أَذَٰلِكَ خَيۡرٌ أَمۡ جَنَّةُ ٱلۡخُلۡدِ ٱلَّتِي وُعِدَ ٱلۡمُتَّقُونَۚ ﴾ ووایه (ای محمده دوی ته د تهکم په ډول ) آیادغه غوره دی یاهغه دهمېشه والي جنت چي له پرهېزګارانو سره بې وعده شوي وه ؛ ابن کثیروایې الله جل

---

([1]) حاشیه شیخ زاده علی البیضاوي ٣ / ٤٤٤

([2]) الطبري ١٨ / ١٤٠

([3]) ابن کثیر ٢ / ٢٢٢

جلاله فرمايي اى محمده داچي مادبدمرغه كسانوحال دركړچي په ګونځي تنده اوسورو ناروېي دوزخ ځان ته غواړي اوهلته په تنګوځايونوكي لاس پښې په ځنځيرونوتړلي خوځېدلاى نشي آيادغه به غوره اوبهتر وي كه هغه تل ترتله جنت چي الله يې له خپلومتقيانو بندګانو سره ژمنه كړي ده؟(١) امام فخر رازي وايي كه څوک پوښتي چي څرنګه داسي ويل كېږي چي عذاب غوره دى كه جنت؟ آيا هوښيار سړى هم داسي وايي چي زهرښه دي كه ګوره (صبراوسكر) خواب داچي دغه پوښتنه دټكولو اوترټلو په وخت كي ښه اېسي لكه چي يوبادار خپل مريي ته مال دولت وركړي اوهغه يې په نتيجه كي سرغړونه پيل كړي نافرماني شروع كړي بيايې بادارښه سخت ووهي او ورته ووايي چي آيادا غوره دى كه هغه نعمتونه؟(٢)

﴿كَانَتۡ لَهُمۡ جَزَآءٗ وَمَصِيرٗا﴾ دى هغه جنت دوى ته جزاء دعمل او ځاى دورتلو ﴿لَّهُمۡ فِيهَا مَا يَشَآءُونَ خَٰلِدِينَۚ كَانَ عَلَىٰ رَبِّكَ وَعۡدٗا مَّسۡـُٔولٗا﴾ شته دوى ته په دغه وخت كي هرڅه چي دوى غواړي (له نعمتونو) حال داچي تل به وي دوى پكي (نه به زوال مومي اونه پرېكړون) دى (دخول د جنت جزاء) وعده كړى شوي (دالله له جانبه) غوښتلي شوي (دمؤمنانوله لوري) ښايي چي وغوښتل شي ځكه داسي غوښتنه ده (يتنافس فيه المتنافسون) اوواجبه وعده ده ﴿وَيَوۡمَ يَحۡشُرُهُمۡ وَمَا يَعۡبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ﴾ اوياد كړه اى محمده هغه ورځ چي راجمع به كړي (الله) دغه (كفاراوبتان) او هغه (باطل) معبودان چي دوى يې عبادت كاوغيرله الله نه (لكه ملائكي اومسيح ,مجاهدوايي چي هغوى عيسى ، عزيراوپرښتې دي ﴿فَيَقُولُ ءَأَنتُمۡ أَضۡلَلۡتُمۡ عِبَادِي هَٰٓؤُلَآءِ﴾ پس وبه وايي (الله دغو معبودانوته) آيا ګمراه كړي وو تاسي بندګان زمادغه (چي مشركان دي) ﴿أَمۡ هُمۡ ضَلُّواْ ٱلسَّبِيلَ﴾ اوكه دوى پخپله لاره وركه كړي وه (اوله خپله ځانه يې ستاسي عبادت كاوو) ﴿قَالُواْ سُبۡحَٰنَكَ﴾ (وبه وايي (معبودان) پاكي ده تالره (اى الله له شريكانو) ﴿مَا كَانَ يَنۢبَغِي لَنَآ أَن نَّتَّخِذَ مِن دُونِكَ مِنۡ أَوۡلِيَآءَ﴾ (نه ښاېېږي مورته داچي ونيسو موږغيرله تانه (اى الله) هيڅ دوستان) يعني موږ لره اوهيچالره چي ستامخلوق دى نه ښايي چي له تاپرته دبل چاعبادت وكړي اوياله تاسره څوک شريک وګني ﴿وَلَٰكِن مَّتَّعۡتَهُمۡ وَءَابَآءَهُمۡ حَتَّىٰ نَسُواْ ٱلذِّكۡرَ﴾ ولاكن ښه معاش (نعمتونه) وركړي ووتادوى ته اوپلرونوددوى ته (چي لازم ووشكريې پرځاى كړي اوپيغمبرانوپه پيغام يې ايمان راوړى واى) ترهغه پوري چي دوى هېركړ پند(كتاب) ستا(دغه ستازيات نعمتونه ددوى داعراض اوناشكري سبب شول) ﴿وَكَانُواْ قَوۡمَۢا بُورٗا﴾ اوووددوى قوم هلاكېدونكى (په حكم ستا) الله تعالى كفارو ته دتوبيخ په ډول فرمايي: ﴿فَقَدۡ كَذَّبُوكُم بِمَا تَقُولُونَ﴾ نوپه تحقيق دروغجنان كړي (معبودانو مو) تاسي (اى مشركانو) په هغه خبره كي چي تاسي ويله (چي داموخدايان دي) ﴿فَمَا تَسۡتَطِيعُونَ صَرۡفٗا وَلَا نَصۡرٗا﴾ پس طاقت نلرى تاسي

---

(١) ابن كثير ٢ / ٢٣٢
(٢) تفسير كبير ٢٤ / ٥٧

دګرخولودعذاب (له خپله ځانه) اونه دمددکولو(له ځانه سره چي له دې بلاوړغورل شي ﴿ وَمَن يَظْلِم مِّنكُمْ نُذِقْهُ عَذَابًا كَبِيرًا ﴾ (اوهرهغه چاچي ظلم وکړله تاسي وبه څکوومونږهغه ته عذاب لوی) یعني اوهرڅوک چي له تاسونه له الله سره شریک ونیسي او پخپل ځان ظلم وکړي مونږبه په آخرت کي سخت عذاب وروڅکو ﴿ وَمَآ أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ مِنَ ٱلْمُرْسَلِينَ إِلَّآ إِنَّهُمْ لَيَأْكُلُونَ ٱلطَّعَامَ وَيَمْشُونَ فِى ٱلْأَسْوَاقِ ﴾ اوندی لیږلی مونږ پخواله تانه (ای محمده هیڅوک) له مرسلانوڅخه (په هیڅ کیفیت) مګر(پدې کیفیت سره چي) بېشکه دوی خامخا خوړل خواړه ،اوګرزېدل دوی په بازارونوکي (لپاره دکسب اوسوداګري همدغه سنت اولاره د پیغمبرانودی نوبیادوی ولي ستالپاره دغه نه مني ؟

اوداګواکي ددوی دهغې ویناځواب دی چي ویل بې: ﴿ مَالِ هَٰذَا ٱلرَّسُولِ يَأْكُلُ ٱلطَّعَامَ وَيَمْشِى فِى ٱلْأَسْوَاقِ ﴾ ﴿ وَجَعَلْنَا بَعْضَكُمْ لِبَعْضٍ فِتْنَةً أَتَصْبِرُونَ ﴾ اوګرځولي دي مونږځیني دتاسودپاره د ځینو نوروازمویښت آیاصبرکوی؟ (ای دابتلاء خاوندانوبلکه صبروکړئ!) یعني بډای اوغني په بېوزله اوفقیرازمویې دمرتبې خاوند په نوکراوروغ په ناروغه ازمویې چي ستاسوزغم اوایمان شکران اوکفران وازمویې حسن رحمه الله وایې چي ړوندوایې که الله وغواړي مابه دفلاني په څېربیناکړي اوبېوزله وایې که الله وغواړي مادفلاني په ډول بډای کړي رنځوروایې که الله وغواړي مادفلاني په دود روغ رمټ کړي ﴿ وَكَانَ رَبُّكَ بَصِيرًا ﴾ اودی رب ستابه لیدونکی (عالم په ټولواحوالودصبرکونکو اوناصبره کسانو دکافرانواودشاکرانوباندي).

**بلاغت:** پدې آیتونوکي چي دبلاغت اوبدیع کوم توکي شته لنډون بې دادی:

۱- دتشریف لپاره نسبت لکه: ﴿ عَبْدِهِۦ ﴾ چي نوم بې دتعظیم لپاره ذکرنکړ.

۲- له دووصفتونوڅخه په یوه باندي اکتفاء کول لکه چي فرمایې: ﴿ لِيَكُونَ لِلْعَٰلَمِينَ نَذِيرًا ﴾ یعني دپاره ددې چي زېری ورکونکي او وېرونکی وي خودلته بې یواځي په وېرونکي اکتفاء وکړه چي له کفاروسره همدا مناسبت لري.

۳- ناقص جناس لکه ﴿ يَخْلُقُونَ ... يُخْلَقُونَ ﴾ ځکه بې ناقص بولي چي په شکل کي سره متغایردي.

۴- طباق لکه چي ﴿ ضَرًّا ... نَفْعًا ﴾ ترمینځ او ﴿ مَوْتًا ... حَيَوٰةً ﴾ ترمابیین دی.

۵- دتهکم اواستهزاء په ډول استفهام لکه: ﴿ مَالِ هَٰذَا ٱلرَّسُولِ يَأْكُلُ ٱلطَّعَامَ ﴾.

۶- تمثیلیه استعاره چي فرمایې: ﴿ سَمِعُوا۟ لَهَا تَغَيُّظًا وَزَفِيرًا ﴾ چي دلته بې دهغه دایشېدلو غږ دقهرجن له غږاوزفیرسره مشابه کړکوم چي دلته بې له ګېډي راوزي اودغه داورپه غرغندو بلېدلو لپاره تمثیل دی چي دقهرجن اوکاوړي له عادت اودود سره سم دي.

لطيفه:

الله تبارک وتعالی پدې قول کې چې فرمايي ﴿ تَبَارَكَ ٱلَّذِىٓ إِن شَآءَ جَعَلَ لَكَ خَيْرًا مِّن ذَٰلِكَ ﴾ پدې باندې تنبيه فرمايلې چې الله پاک خپلوبندګانوته ددوی له مصلحتونوسره سم وېش فرمايي ځينوته دعلوموا ومعارفو دروازې پرانيزي اوددنيادروازې ورباندې وتړي او په ځينونوروبيادروزي دروازې راخلاصې کړي خودعلم اوپوهې له لذت اوخوند څخه يې محروم کړي په الله جل جلاله باندې داعتراض اوتنقيدراوړلوځای نشته ځکه چې همهغه (فعال لمايريد) ذات دی.

***

الله تعالی فرمايي:

﴿ وَقَالَ ٱلَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَآءَنَا لَوْلَآ أُنزِلَ عَلَيْنَا ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ أَوْ نَرَىٰ رَبَّنَا ۗ لَقَدِ ٱسْتَكْبَرُوا۟ فِىٓ أَنفُسِهِمْ وَعَتَوْ عُتُوًّا كَبِيرًا ﴿٢١﴾ يَوْمَ يَرَوْنَ ٱلْمَلَٰٓئِكَةَ لَا بُشْرَىٰ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُجْرِمِينَ وَيَقُولُونَ حِجْرًا مَّحْجُورًا ﴿٢٢﴾ وَقَدِمْنَآ إِلَىٰ مَا عَمِلُوا۟ مِنْ عَمَلٍ فَجَعَلْنَٰهُ هَبَآءً مَّنثُورًا ﴿٢٣﴾ أَصْحَٰبُ ٱلْجَنَّةِ يَوْمَئِذٍ خَيْرٌ مُّسْتَقَرًّا وَأَحْسَنُ مَقِيلًا ﴿٢٤﴾ وَيَوْمَ تَشَقَّقُ ٱلسَّمَآءُ بِٱلْغَمَٰمِ وَنُزِّلَ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ تَنزِيلًا ﴿٢٥﴾ ٱلْمُلْكُ يَوْمَئِذٍ ٱلْحَقُّ لِلرَّحْمَٰنِ ۚ وَكَانَ يَوْمًا عَلَى ٱلْكَٰفِرِينَ عَسِيرًا ﴿٢٦﴾ وَيَوْمَ يَعَضُّ ٱلظَّالِمُ عَلَىٰ يَدَيْهِ يَقُولُ يَٰلَيْتَنِى ٱتَّخَذْتُ مَعَ ٱلرَّسُولِ سَبِيلًا ﴿٢٧﴾ يَٰوَيْلَتَىٰ لَيْتَنِى لَمْ أَتَّخِذْ فُلَانًا خَلِيلًا ﴿٢٨﴾ لَّقَدْ أَضَلَّنِى عَنِ ٱلذِّكْرِ بَعْدَ إِذْ جَآءَنِى ۗ وَكَانَ ٱلشَّيْطَٰنُ لِلْإِنسَٰنِ خَذُولًا ﴿٢٩﴾ وَقَالَ ٱلرَّسُولُ يَٰرَبِّ إِنَّ قَوْمِى ٱتَّخَذُوا۟ هَٰذَا ٱلْقُرْءَانَ مَهْجُورًا ﴿٣٠﴾ وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِىٍّ عَدُوًّا مِّنَ ٱلْمُجْرِمِينَ ۗ وَكَفَىٰ بِرَبِّكَ هَادِيًا وَنَصِيرًا ﴿٣١﴾ وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لَوْلَا نُزِّلَ عَلَيْهِ ٱلْقُرْءَانُ جُمْلَةً وَٰحِدَةً ۚ كَذَٰلِكَ لِنُثَبِّتَ بِهِۦ فُؤَادَكَ ۖ وَرَتَّلْنَٰهُ تَرْتِيلًا ﴿٣٢﴾ وَلَا يَأْتُونَكَ بِمَثَلٍ إِلَّا جِئْنَٰكَ بِٱلْحَقِّ وَأَحْسَنَ تَفْسِيرًا ﴿٣٣﴾ ٱلَّذِينَ يُحْشَرُونَ عَلَىٰ وُجُوهِهِمْ إِلَىٰ جَهَنَّمَ أُو۟لَٰٓئِكَ شَرٌّ مَّكَانًا وَأَضَلُّ سَبِيلًا ﴿٣٤﴾ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْكِتَٰبَ وَجَعَلْنَا مَعَهُۥٓ أَخَاهُ هَٰرُونَ وَزِيرًا ﴿٣٥﴾ فَقُلْنَا ٱذْهَبَآ إِلَى ٱلْقَوْمِ ٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا فَدَمَّرْنَٰهُمْ تَدْمِيرًا ﴿٣٦﴾ وَقَوْمَ نُوحٍ لَّمَّا كَذَّبُوا۟ ٱلرُّسُلَ أَغْرَقْنَٰهُمْ وَجَعَلْنَٰهُمْ لِلنَّاسِ ءَايَةً ۖ وَأَعْتَدْنَا لِلظَّٰلِمِينَ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿٣٧﴾ وَعَادًا وَثَمُودَا۟ وَأَصْحَٰبَ ٱلرَّسِّ وَقُرُونًۢا بَيْنَ ذَٰلِكَ كَثِيرًا ﴿٣٨﴾ وَكُلًّا ضَرَبْنَا لَهُ ٱلْأَمْثَٰلَ ۖ وَكُلًّا تَبَّرْنَا تَتْبِيرًا ﴿٣٩﴾ وَلَقَدْ أَتَوْا۟ عَلَى ٱلْقَرْيَةِ ٱلَّتِىٓ أُمْطِرَتْ مَطَرَ ٱلسَّوْءِ ۚ أَفَلَمْ يَكُونُوا۟ يَرَوْنَهَا ۚ بَلْ كَانُوا۟ لَا يَرْجُونَ نُشُورًا ﴿٤٠﴾ ﴾ الفرقان: ٢١ ــ ٤٠

مناسبت اوتړاو:

کله چې الله تبارک وتعالی دمشرکانوانکارله محمدي نبوت اوقرآن کريم څخه واوراوونووروسته يې ددې څه نوري ګناوې اوجرائم راوړل اوبيايې دځينوانبياووعليهم السلام کيسې اوهغه چې ددوی په امتونوراغلي ووبيان کړل ترڅودرسول الله صلی الله عليه وسلم لپاره ډاډينه اوتسليت وي.

لغتونه:

(حِجرا) دحاء په کسره سره حرام اوممنوع ته وايې (هباء) گرداوغبارابوعبيده وايې داهغه په ورانگه کې خس اوخاشاک دي (منثورا) تيت اوپرک (مقيلا) دغرمې استراحت چې تودوخه زياته وي دغه وخت ته (مقيل) وايې (تبرنا) تتبيردتدميراوتکسيريعني ورانول اوماتول په معنادی زجاج وايې هرڅېزچې مات اوټوټه ټوټه يې کړي (تتبير) دی.

دنزول سبب:

روايت کاوه شي چې يوه ورځ (عقبه بن ابي معيط) چې دأبی بن خلف ) انډيوال اوملگری وو مېلمستياوکړه اوقريش يې وروبلل رسول الله صلی الله عليه وسلم هم په مېلمنوکي ووکله چې ډوډۍ راغله نورسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل زه ستاډوډۍ ترهغونه خورم څوچې پدې شاهدي ونه وايې چې زه دالله رسول يم هغه همداسې شاهدي ولوستله اورسول الله صلی الله عليه وسلم يې ډوډۍ وخوړله کله چې دده ملگري (أبی بن خلف ) ته دغه پېښه بيان شوه هغه راغی اوعقبه ته يې وويل آياته له دين څخه گرزېدلی يې ؟ هغه وويل نه خويوسترسړی راغلی اولوږه يې وکړه چې زماډوډۍ به ونه خوري ترڅوچې زه يې درسالت گواهي ورنکړم نوأبی ورته وويل: زمااوستا ملگرتياترهغونامکن اوحرامه ده څوچې کله محمدووينې اوناړې ورتوکړې په اورمېږ يې پښه کښېږدې اوستغې سپوري ورته ووايې نودغه عقبه دالله دښمن هم هغه څه چې ملگري انډيوال يې ورته ويلي ووترسره کړل اوالله جل جلاله داآيتونه نازل کړل چې ﴿ وَيَوْمَ يَعَضُّ ٱلظَّالِمُ عَلَىٰ يَدَيْهِ يَقُولُ يَٰلَيْتَنِى ٱتَّخَذْتُ مَعَ ٱلرَّسُولِ سَبِيلًا ﴾ دآيت ترپايه [1]

تفسير:

﴿ وَقَالَ ٱلَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَآءَنَا ﴾ اووايې هغه کسان چې زموږدملاقات هيله نلري (اوله عذابه نه وېرېږي څکه قيامت نه مني) ﴿ لَوْلَآ أُنزِلَ عَلَيْنَا ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ ﴾ ولې نه نازلولی شي پرموږباندې پرښتې ؟ (چې موږته دمحمد دپيغمبرې سپيناوی وکړي ) ﴿ أَوْ نَرَىٰ رَبَّنَا ﴾ ياولې نه وينوموږ رب خپل؟ (په ښکاره چې ستاداستازيتوب خبرراکړي) ابوحيان وايې چې دغه گردوړاندېزونه يې دسرغړونې اواستکبارنښې دي که دوی پوهېدای هغه معجزاتې چې رسول الله ورته راوړي وې ببخي کافي وې [2] ﴿ لَقَدِ ٱسْتَكْبَرُوا۟ فِىٓ أَنفُسِهِمْ وَعَتَوْ عُتُوًّا كَبِيرًا ﴾ خامخاپه تحقيق دوی کبرکړيدی په (شان د خپلوځانونوکې (چې داسې ستري خبرې اونامناسب وړانديزونه يې کړي دي) اوتېرشوي دي ( له خپله حده په ظلم اوطغيان کې) په تېرېدلولويوسره (چې وروستې سرحداوپړاوته رسېدلې دي) ﴿ يَوْمَ يَرَوْنَ ٱلْمَلَٰٓئِكَةَ لَا بُشْرَىٰ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُجْرِمِينَ ﴾ هغه ورځ چې ووينې دوی پرښتې (چې ددوی دزنکندن په وخت روح

---

[1] التفسير الكبير ۲۴/۷۵

[2] البحرالمحيط ۶/۴۹۱

کاږي) نه به وي زېرى په دغه ورځ کي لپاره دمجرمانو(چي خوشحال شي بلکه سراسربه ناهيلي اوخسران وي) ﴿ وَيَقُولُونَ حِجْرًا مَّحْجُورًا ﴾ اووبه وايې دوى (ملائکي) چي منع کړى شوى دى (جنت)په منع کېدلو( له تاسي نه) ابن کثيروايي دابه په هغه وخت دځانکندن کي وي چي پرښتې ده ۲ داورزېرى ورکوي اوسايې کاږي داسي وايې: راووزه اى پليتي روح له پليت بدن څخه راووزه دوزخ اودهغه ګرمي اوسموم ته هغه ديحموم سيوري ته؛ روح به په ټول بدن کي وتښتي اونه به راوزي نوبيايي داوسپني په څټکونووهي (په زوربه يې راوباسي) په خلاف دروح دمؤمن مسلمان چي دځکندن په وخت کي به ورته زېرى اوروي چي خوښي اونېکمرغي دي مبارک شه!دهغه به داحال وي ﴿ تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ أَلَّا تَخَافُوا۟ وَلَا تَحْزَنُوا۟ وَأَبْشِرُوا۟ بِٱلْجَنَّةِ ٱلَّتِى كُنتُمْ تُوعَدُونَ ﴾ (۱) ﴿ وَقَدِمْنَآ إِلَىٰ مَا عَمِلُوا۟ مِنْ عَمَلٍ ﴾ اواراده کړي موږهغوشيانوته چي دغوکفاروکړي دي له (نېک) عمل نه (لکه بېوزلانوته خوراک ورکول اوصله رحمي خپلوي پالل چي دوى ګمان کوي دغه يې الله ته ورنږدې کوي ) ﴿ فَجَعَلْنَٰهُ هَبَآءً مَّنثُورًا ﴾ پس وبه ګرځوموږهغه (نېک عمل په شان د ) دوړي تارپه تارکړى شوي (په هواکي څخه چي دغه اعمال دايمان په بنسټ ولاړنه دي طبري وايې معناداچي موږبه يې باطل اعلان کړو ځکه چي دوى دالله لپاره نه دي کړي بلکه دشيطان لپاره يې ترسره کړي دي ، هباء هغه دخاشوذراتوته چي په وړانګه کي ځرګندېږي ويلى شي اومنثوربياتيت اوپرک ته وايې (۲) قرطبي وايې چي الله تبارک وتعالى ددوى عملونه دکفرپه سبب باطل ګڼلي آن ترديې چي لکه ګرداوغبارهيڅ حيثيت نلري(۳)﴿ أَصْحَٰبُ ٱلْجَنَّةِ يَوْمَئِذٍ خَيْرٌ مُّسْتَقَرًّا ﴾ (خاوندان دجنت په دغه ورځ (دقيامت کي) غوره دي له جهته دځاى دهستوګني) کله چي الله تعالى دکفاروحال بيان کړچي په بشپړتاوان اوخسران کي دي ورپسې يې دجنتيانوحال راووړچي هغه به خوراخوشحاله وي چي پدې تنبيه راشي چي ټوله نېکمرغي دالله عز وجل په طاعت اوعبادت کي ده(۴)﴿ وَأَحْسَنُ مَقِيلًا ﴾ اوډېرښه به وي له جهته دځاى دخوب (دقيلولې) چي په تکنده غرمه کي ترسره کېږي ) مؤمنان به په آخرت کي په فردوس اونعيم مقيم کي وي اوکفاربه په پوړيو دجهنم کي عبدالله بن مسعودرضى الله عنه وايې چي دقيامت ورځ به نيمايې ته نه وي رسېدلې چي جنتيان به په جنت کي اودوزخيان به په دوزخ کي قيلوله کوي ﴿ وَيَوْمَ تَشَقَّقُ ٱلسَّمَآءُ بِٱلْغَمَٰمِ ﴾ (اويادکړه (اى محمده!) هغه ورځ دقيامت ) چي ټوټې ټوټې به شي آسمان په وريځوسره ) يعني يادکړه هغه سخته ورځ چي آسمان له وريځي څخه وچوي هغه ورځ چي ګرده فضايې اخيستي اوتوره تياره وي زړونه يې په ليدلوله سختي

---

(۱) ابن کثير۲ / ۲۲۸

(۲) الطبري ۱۹/ ۳

(۳) القرطبي ۱۳/ ۲۲

(۴) دخيرکلمه دلته په خپل باب کي چي دمفاضلې لپاره راځي نه ده بلکه دجنتيانو دحال دبيان لپاره دى چي دوى به په ښه حال اوغوره مآل اوځاى کي وي اودې ته اړتيانشته چي ترکافرانو چي په دنياکي په عيش عشرت کي سرمست وو بهترو ګڼل شي.

تیارې اوزیات ظلمت څخه په غم اوماتم کې ډوبېږي ﴿ وَنُزِّلَ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ تَنزِيلًا ﴾ اونازلې به شي پرښتې په نازلولوسره (اوپه خلګوبه چار چاپېر را تاوشي ) ﴿ ٱلْمُلْكُ يَوْمَئِذٍ ٱلْحَقُّ لِلرَّحْمَٰنِ ﴾ ملک اوکامل سلطنت په دغه ورځ د(قیامت کې ) ثابت دی لپاره درحمن (واحدالقهارذات هغه چې ګردجبابره به یې په وړاندې سرټیټوي په دغه ورځ دبل پاچهي هډونشته لکه چې الله فرمایي ﴿ يَوْمَ هُم بَٰرِزُونَ لَا يَخْفَىٰ عَلَى ٱللَّهِ مِنْهُمْ شَىْءٌ لِّمَنِ ٱلْمُلْكُ ٱلْيَوْمَ لِلَّهِ ٱلْوَٰحِدِ ٱلْقَهَّارِ ﴾ [غافر۱۶] ﴿ وَكَانَ يَوْمًا عَلَى ٱلْكَٰفِرِينَ عَسِيرًا ﴾ اووی به دغه ورځ (دقیامت )پرکفارو ډېره سخته. ابوحیان وایې چې داکلمه چې ﴿ عَلَى ٱلْكَٰفِرِينَ ﴾ ده پدې دلالت کوي چې پرمؤمنانوبه آسانه وي په یوحدیث شریف کې راځي چې دغه ورځ به په مؤمنانوتریوفرضي لمانځه ګذارلوهم لنډه وي چې په دنیاکې به یې کاوو(۱) ﴿ وَيَوْمَ يَعَضُّ ٱلظَّالِمُ عَلَىٰ يَدَيْهِ ﴾ او(یادکړه ای محمده هغه دقیامت ورځ چې خوله به لګوي ظالم پردواړولاسونوخپلو(له ډېره غمه اوحسرته چې په دنیاکې څومره دالله په وړاندې یې ګناه کړې ده اودلاسونوچیچل له پښېماني اوحسرت څخه کنایه ده له ظالم څخه مراد(عقبه بن ابي معیط ) دی لکه چې په شان نزول کې تېرشواودادهرظالم لپاره هم وعیددی ابن کثیروایې چې الله پاک دظالم له ندامت څخه اخبارفرمایې هغه چې درسول الله صلی الله علیه وسلم لاره یې پرې ایښې اوپه نورو(ړندولاروتللی وي کله چې دقیامت ورځ شي نوبه په لاسونوخولې لګوي افسوس به کوي اوکه نزول یې دعقبه په هکله وي یادبل بدمرغه انسان خوداوعیددهرظالم لپاره عام دی (۲) ﴿ يَقُولُ يَٰلَيْتَنِى ٱتَّخَذْتُ مَعَ ٱلرَّسُولِ سَبِيلًا ﴾ وایې به ای کاشکې نیولې مې وای سره له رسول (دالله سره دنجات حقه ) لاره (چې له عذابه یې ژغورلای وای ) ﴿ يَٰوَيْلَتَىٰ لَيْتَنِى لَمْ أَتَّخِذْ فُلَانًا خَلِيلًا ﴾ اوای هلاکه زما ای حسرته کاشکې نه مې وای نیولی فلانکی سړی خپل دوست فلانکی له هغه چاڅخه عبارت دی چې دی یې ګمراهي ته راکاږلی وواوهغه (أبی بن خلف ) وو. قرطبي وایې ځکه یې په کنایه ذکرکړاونوم یې صراحتًا یادنکړترڅوچې هرچاته چې ددغه غوندې عمل کوي شامل شي (۳) ﴿ لَّقَدْ أَضَلَّنِى عَنِ ٱلذِّكْرِ بَعْدَ إِذْ جَآءَنِى ﴾ خامخاپه تحقیق ګمراه کړی وم زه له ذکره پنده د(قرآن ) وروسته له هغه کله چې راغی ماته دغه ذکرچې لاره مې وموندلې اوایمان مې راوړ) الله فرمایي ﴿ وَكَانَ ٱلشَّيْطَٰنُ لِلْإِنسَٰنِ خَذُولًا ﴾ اوانسان لره شیطان غولونکی ښویونکی دی چې ګمراه کوي یې اوکله چې یې وغولوي بیا دمحنت په وخت کې ورڅخه بېزاره شي اوپه دفع کولوکې ورسره مرسته نکوي ﴿ وَقَالَ ٱلرَّسُولُ يَٰرَبِّ إِنَّ قَوْمِى ٱتَّخَذُوا۟ هَٰذَا ٱلْقُرْءَانَ مَهْجُورًا ﴾ (او وویل رسول (دالله محمد ) ای زماربه په تحقیق زماقوم نیولی

---

(۱) ۴۹۵/۲
(۲) مختصرابن کثیر۲ /۲۳۰
(۳) القرطبي ۱۲ /۲۲

دی داقرآن ترک کړی شوی (نه پرې ایمان راوړي نه يې لولي اونه پرې عمل کوي ) کله چي مشرکانو په قرآن کريم باندي زيات پيغورونه وتړل درسول الله صلی الله علیه وسلم زړه خواشینی شواوالله ته يې داسي شکايت پورته کړچي ای ربه دغوقريشوخوقرآن بالكل مهجوراومتروک ګرزولی اوله اعتناء اوالتفاته يې غورځولی دی. مفسرين کرام وايي دلته له دې ويناڅخه مقصود دمشرکانو دويناڅخبارنه دی بلکه مقصود دشکايت تعظيم اودقوم وېرونه ده ځکه کله هم چي انبياء عليهم السلام الله ته پناه وروړي اودخپل قوم شکايت ورته پورته کړي نوبياپې پرقوم عذاب نازلېږي اومهلت نه ورکول کېږي[1]

﴿ وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوًّا مِّنَ ٱلْمُجْرِمِينَ ﴾ اوهمداسي (لکه چي کفارمي ستا دښمنان ګرځولي ) ګرځولي وومونږ(پخواله تانه) دپاره دهرنبي دښمنان له مجرمانو؛ مراددلته درسول الله صلی الله علیه وسلم دلاسا ينه او اطمينان دی ترڅوپه نورو نبيانوپسي اقتداء وکړي ﴿ وَكَفَىٰ بِرَبِّكَ هَادِيًا وَنَصِيرًا ﴾ اوكافي دی رب ستاسمه صافه لیارښوونکی اوښه مدد کونکی (پردښمنانودهغوی باک پروامکوه ) !.

﴿ وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ﴾ اووايې هغه کسان چي کافران شوي دي (دمکې کفار ) ﴿ لَوْلَا نُزِّلَ عَلَيْهِ ٱلْقُرْءَانُ جُمْلَةً وَٰحِدَةً ﴾ ولي نه نازلاوه شی قرآن پردغه (محمد ) ټول يوکرت ؟ ( لکه چي تورات اوانجيل نازل شوی وو ) الله پاک ددوی دچټي اشتباه ګانوداسي ترديدفرمايي ﴿ كَذَٰلِكَ لِنُثَبِّتَ بِهِۦ فُؤَادَكَ ﴾ همداسي لږلږ مونازل کړچي ثابت محکم قوي کړوپه دغه (قرآن)سره ستازړه چي په يادې کړي اوپه غوښتنويې عمل وکړي﴿ وَرَتَّلْنَٰهُ تَرْتِيلًا ﴾ (اولوستلی دی مونږدغه (قرآن پرتا ) ټوټې ټوټې په آرام لوستلوسره) يعني مونږپه ښکلي تفصيل سره جلاکړی دی قتاده وايي چي معنادامونږبيان کړی دی امام رازي وايي ترتيل هغه ته وايې چي ځيني نورپسي په آرام اوکرارسره راشي اوپه غاښونوکي دترتيل معناداچي سره ګوښي ګوښي وي[2] طبري وايي چي ترتيل په قرائت کي ترسل اوتثبت ته وايي معناداچي څه موله څه نور وروسته دروښودڅو چي په يادې کړې [3]﴿ وَلَا يَأْتُونَكَ بِمَثَلٍ إِلَّا جِئْنَٰكَ بِٱلْحَقِّ وَأَحْسَنَ تَفْسِيرًا ﴾ اونه کوي دوی راتله تاته کوم مثل (دليل اوسوال چي پکي ستاکمښت اويادقرآن قدح وي) مګرراوړو مونږتاته (ځواب دهغه) په حق اوښه تفسيربيان سره ؛ بياالله تعالی ددغومشرکانومکذبانود قرآن حال بيانوي فرمايي: ﴿ ٱلَّذِينَ يُحْشَرُونَ عَلَىٰ وُجُوهِهِمْ إِلَىٰ جَهَنَّمَ ﴾ (دوی هغه کسان (دي) چي جمع به کړی شي اوشړل به شي په مخونوخپلو (سرښکته پښې پورته ) ددوزخ لوري ته﴿ أُوْلَٰٓئِكَ شَرٌّ مَّكَانًا وَأَضَلُّ سَبِيلًا ﴾ دغه ټولی بددی له جهته دځايه اوډېر ښوئېدلی دی له جهته دلاري اوګمراهان دي په حديث شريف کي راځي چي: يوځاله رسول الله صلى الله علیه وسلم څخه پوښتنه وکړه چي څرنګه به په قيامت (کافران) په مخونوشړل کېږي نوعليه السلام ورته وويل : هغه ذات چي

---

(¹) حاشيه شيخ زاده علی البيضاوي ٣/ ٤٥١
(²) التفسيرالكبير ٢٤/ ٧٩
(³) الطبري ١٩/ ١٨

دوی بې په پښو روان کړي پدې قادراوتوانادی چې په قیامت کې بې په مخونو روان کړي [1] بیاالله تعالی دانبیاء علیهم السلام کیسې درسول الله دډاډینې اودکفارو دوېروني لپاره یادوي فرمایي:
﴿ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْكِتَٰبَ وَجَعَلْنَا مَعَهُۥٓ أَخَاهُ هَٰرُونَ وَزِيرًا ﴾ او خامخاپه تحقیق موږموسی ته کتاب (تورات) ورکړی وواوګرځولی ووموږله دغه موسی سره ورور دده هارون وزیر(مددګار) ﴿ فَقُلْنَا ٱذْهَبَآ إِلَى ٱلْقَوْمِ ٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا ﴾ پس موږ(دوی ته وویل چې) ولاړشئ دواړه هغه قوم ته چې دروغجن بې شمېرلي دي آیتونه زموږ(چې څرګندي معجزاتي اوښکاره دلائل دي) ﴿ فَدَمَّرْنَٰهُمْ تَدْمِيرًا ﴾ پس هلاک کړل موږفرعونیان په هلاکولوسره (کله چې بې دوی دواړه دروغجنان وګڼل) ﴿ وَقَوْمَ نُوحٍ لَّمَّا كَذَّبُوا۟ ٱلرُّسُلَ أَغْرَقْنَٰهُمْ وَجَعَلْنَٰهُمْ لِلنَّاسِ ءَايَةً ﴾ او(هلاک کړی ووموږ) قوم دنوح کله چې دروغجن وشمېرل دوی رسولان خپل موږغرق کړل دوی اووګرزول موږ دوی لپاره دخلکودلیل (ننبه دعبرت) ابوالسعودوایې داچې پیغمبران بې جمع وبلل ددې لپاره چې دیوه نبي دروغ ګڼل دټولوانبیاوو تکذیب دی ځکه ګرد انبیاء په توحیداواسلام کې اتفاق لري ﴿ وَأَعْتَدْنَا لِلظَّٰلِمِينَ عَذَابًا أَلِيمًا ﴾ اوتیارکړی دی موږدظالمانولپاره دېردردناک عذاب (پرته له هغه عذابه چې په دنیاکي ورکول شوی دی ) ﴿ وَعَادًا وَثَمُودَا۟ وَأَصْحَٰبَ ٱلرَّسِّ ﴾ او(هلاک کړي دي موږ) عادیان اوثمودیان اوخاوندان دکوهي (هغه چې پردوی ونړېدو) بیضاوي وایې چې دکوهي خاوندان هغه ووچې دبتانوعبادت بې کاوو اوالله جل جلاله دوی ته شعیب علیه السلام راواستاواودوی دهغه تکذیب وکړپداسي حال کي چې دکوهي خواوشاغونډاوپنډ وواودغه خام کوهی وو وربانديونړېدو[2] ﴿ وَقُرُونًۢا بَيْنَ ذَٰلِكَ كَثِيرًا ﴾ اونورډېر اهل دزمانې په مینځ ددوی کي (چې یوازي الله ته معلوم اوددغودروغجنانوڅخه ووهغوی موهم هلاک کړل ) ﴿ وَكُلًّا ضَرَبْنَا لَهُ ٱلْأَمْثَٰلَ ﴾ او هریوله دې نه بیان کړي ووموږ ده ته مثالونه (دعبرت اوښکاره دلائل په اقامت دحجت په دوی باندی چې ووېرېږي اوعذربې پاتي نشي) ﴿ وَكُلًّا تَبَّرْنَا تَتْبِيرًا ﴾ اوټول موهلاک کړل په هلاکولوسره(کله چې نصیحتونه بې ونه منل) ﴿ وَلَقَدْ أَتَوْا۟ عَلَى ٱلْقَرْيَةِ ٱلَّتِىٓ أُمْطِرَتْ مَطَرَ ٱلسَّوْءِ ﴾ اوخامخاپه تحقیق تېرشوي دي (تېرېږي دېرځله قریش دشام دسفرونوپه ترځ کي ) پرکلیوښارونودهغوهغه چې اورول شوی ووباران دبدي (دډبرواورېدلوعذاب له آسمانه چې هغه سدوم اودلوط له کلیوڅخه سترکلی وو ﴿ أَفَلَمْ يَكُونُوا۟ يَرَوْنَهَا ﴾ آیاپس نه ووډغه کفارچې لیدلي بې وای هغه (قریه) دغه دوی ته په عبرت نه اخیستلوتوبیخ دی یعني آیادوی پخپلوسفرونوکې هغه کلي نه دي لیدلي؟ کوم چې هغوی دخپلوانبیاووتکذیب کړی وواودالله امرونه بې نه وومنلي ابن عباس وایې

---

[1] أخرجه اصحاب السنن
[2] البیضاوي

چي قریش به دخپلي سوداګري لپاره په دغولاروچي دلوط علیه السلام دهلاک شوي قوم کلي ور تېرېدل لکه چي الله بل ځای فرمايي ﴿ وَإِنَّكُمْ لَتَمُرُّونَ عَلَيْهِم مُّصْبِحِينَ ﴾ (الصافات ۱۳۷] ﴿ بَلْ كَانُوا۟ لَا يَرْجُونَ نُشُورًا ﴾ بلکه وودوی چي نه به يې درلود امید دبیاژوندي راپاځېدلو(په قیامت کي).

بلاغت:

دلته چي دبدیع اوبلاغت کومي ښکلاوي شته لنډون يې دادی:

۱ - ترجی اوهیله چي فرمايي: ﴿ لَوْلَآ أُنزِلَ عَلَيْنَا ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ ﴾ ځکه چي ﴿ لَوْلَآ ﴾ د(هلا) په معنااوهغه دترجی لپاره راځي.

۲ -اشتقاقي جناس ﴿ وَعَتَوْ عُتُوًّا ﴾ او ﴿ حِجْرًا مَّحْجُورًا ﴾ په کلماتوکي.

۳ -دجنس په نفی باندي دمبالغي صنعت لکه: ﴿ لَا بُشْرَىٰ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُجْرِمِينَ ﴾ معنايې داچي په دغه ورځ مجرمانوته زېری نه ورکاوه شي خوله دغي صیغې ځخه چي ﴿ لایبشریومئذ المجرمون ﴾ دی بدلول اوپه نرموري توګه راورل مبالغه افاده کوي.

۴ -بلیغه تشبیه چي الله فرمايي: ﴿ فَجَعَلْنَٰهُ هَبَآءً مَّنثُورًا ﴾ یعني لکه ګرداوغبارچي په هواکي تیت اوګټه نه ځیني اخیستل کېږي نود تشبیه ادات اووجه دشبه حذف شوي بلیغه تشبیه ګڼل کېږي.

۵ -لطیفه کنایه چي په ﴿ يَعَضُّ ٱلظَّالِمُ عَلَىٰ يَدَيْهِ ﴾ کي راغلي اودغه له حسرت اوندامت ځخه کنایه ده لکه چي ﴿ فُلَانًا ﴾ له هغه ګمراه کونکي ملګري ځخه کنایه راغلی دی.

۶ -مجازي اسنادلکه ﴿ شَرٌّ مَّكَانًا ﴾ ځکه دشراوضلال خومکان ته نسبت نه کاوه شي بلکه نسبت داهل مکان لپاره راځي.

لطیفه:

ابن قیم رحمه الله وايې چي دقرآنکریم هجران په څو ډوله دی.

لومړی يې داورېدلوترک کول اوایمان ورباندي نه راوړل دوهم په هغه باندي عمل نه کول دریم دهغه په حکمونوخپلي فیصلي نه کول څلورم دمعناپه لحاظ په هغه باندي تفکراوسوچ نه کول پنځم په هغه باندي دګردوناروغیوچي په زړونوباندي راځي علاج معالجه نه کول چي داټول پدې الهي قول کي راځي چي فرمايي: ﴿ إِنَّ قَوْمِى ٱتَّخَذُوا۟ هَٰذَا ٱلْقُرْءَانَ مَهْجُورًا ﴾ که څه هم ځیني هجراوترک ترځینونورو آسانه اوسپک دی.

***

الله تعالی فرمايي:

﴿ وَإِذَا رَأَوْكَ إِن يَتَّخِذُونَكَ إِلَّا هُزُوًا أَهَٰذَا ٱلَّذِى بَعَثَ ٱللَّهُ رَسُولًا ﴿٤١﴾ إِن كَادَ لَيُضِلُّنَا عَنْ ءَالِهَتِنَا لَوْلَآ أَن صَبَرْنَا عَلَيْهَا ۚ وَسَوْفَ يَعْلَمُونَ حِينَ يَرَوْنَ ٱلْعَذَابَ مَنْ أَضَلُّ سَبِيلًا ﴿٤٢﴾ أَرَءَيْتَ مَنِ ٱتَّخَذَ إِلَٰهَهُۥ هَوَىٰهُ أَفَأَنتَ تَكُونُ عَلَيْهِ وَكِيلًا ﴿٤٣﴾ أَمْ تَحْسَبُ أَنَّ أَكْثَرَهُمْ يَسْمَعُونَ أَوْ يَعْقِلُونَ ۚ إِنْ هُمْ إِلَّا كَٱلْأَنْعَٰمِ ۖ بَلْ هُمْ أَضَلُّ سَبِيلًا ﴿٤٤﴾ أَلَمْ تَرَ إِلَىٰ رَبِّكَ كَيْفَ مَدَّ ٱلظِّلَّ وَلَوْ شَآءَ لَجَعَلَهُۥ سَاكِنًا ثُمَّ جَعَلْنَا ٱلشَّمْسَ عَلَيْهِ دَلِيلًا ﴿٤٥﴾ ثُمَّ قَبَضْنَٰهُ إِلَيْنَا قَبْضًا يَسِيرًا ﴿٤٦﴾ وَهُوَ ٱلَّذِى جَعَلَ لَكُمُ ٱلَّيْلَ لِبَاسًا وَٱلنَّوْمَ سُبَاتًا وَجَعَلَ ٱلنَّهَارَ نُشُورًا ﴿٤٧﴾ وَهُوَ ٱلَّذِىٓ أَرْسَلَ ٱلرِّيَٰحَ بُشْرًۢا بَيْنَ يَدَىْ رَحْمَتِهِۦ ۚ وَأَنزَلْنَا مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً طَهُورًا ﴿٤٨﴾ لِّنُحْـِۧىَ بِهِۦ بَلْدَةً مَّيْتًا وَنُسْقِيَهُۥ مِمَّا خَلَقْنَآ أَنْعَٰمًا وَأَنَاسِىَّ كَثِيرًا ﴿٤٩﴾ وَلَقَدْ صَرَّفْنَٰهُ بَيْنَهُمْ لِيَذَّكَّرُوا۟ فَأَبَىٰٓ أَكْثَرُ ٱلنَّاسِ إِلَّا كُفُورًا ﴿٥٠﴾ وَلَوْ شِئْنَا لَبَعَثْنَا فِى كُلِّ قَرْيَةٍ نَّذِيرًا ﴿٥١﴾ فَلَا تُطِعِ ٱلْكَٰفِرِينَ وَجَٰهِدْهُم بِهِۦ جِهَادًا كَبِيرًا ﴿٥٢﴾ ۞ وَهُوَ ٱلَّذِى مَرَجَ ٱلْبَحْرَيْنِ هَٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ وَهَٰذَا مِلْحٌ أُجَاجٌ وَجَعَلَ بَيْنَهُمَا بَرْزَخًا وَحِجْرًا مَّحْجُورًا ﴿٥٣﴾ وَهُوَ ٱلَّذِى خَلَقَ مِنَ ٱلْمَآءِ بَشَرًا فَجَعَلَهُۥ نَسَبًا وَصِهْرًا ۗ وَكَانَ رَبُّكَ قَدِيرًا ﴿٥٤﴾ وَيَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَا لَا يَنفَعُهُمْ وَلَا يَضُرُّهُمْ ۗ وَكَانَ ٱلْكَافِرُ عَلَىٰ رَبِّهِۦ ظَهِيرًا ﴿٥٥﴾ وَمَآ أَرْسَلْنَٰكَ إِلَّا مُبَشِّرًا وَنَذِيرًا ﴿٥٦﴾ قُلْ مَآ أَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ إِلَّا مَن شَآءَ أَن يَتَّخِذَ إِلَىٰ رَبِّهِۦ سَبِيلًا ﴿٥٧﴾ وَتَوَكَّلْ عَلَى ٱلْحَىِّ ٱلَّذِى لَا يَمُوتُ وَسَبِّحْ بِحَمْدِهِۦ ۚ وَكَفَىٰ بِهِۦ بِذُنُوبِ عِبَادِهِۦ خَبِيرًا ﴿٥٨﴾ ٱلَّذِى خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِى سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ ٱسْتَوَىٰ عَلَى ٱلْعَرْشِ ۚ ٱلرَّحْمَٰنُ فَسْـَٔلْ بِهِۦ خَبِيرًا ﴿٥٩﴾ وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ ٱسْجُدُوا۟ لِلرَّحْمَٰنِ قَالُوا۟ وَمَا ٱلرَّحْمَٰنُ أَنَسْجُدُ لِمَا تَأْمُرُنَا وَزَادَهُمْ نُفُورًا ۩ ﴿٦٠﴾ ﴾ الفرقان: ٤١ ـ ٦٠

مناسبت او تړاو:

کله چي الله تعالی د مشرکانو شکوک او شبهات چي د قرآنکريم او رسول الله په هکله يې درلودل بيان کړل او د هغوی لپاره يې کوتلي دلائل راوړل نو د لته يې د مشرکانو يو بل ډول استهزاء او ملنډي چي په تکذيب سربېره يې په عليه السلام پسي ترلي او ګواکي په دروغجن ګڼلويې اکتفاء نه کوله نوري ملنډي او ريشخندونه يې هم ورباندي وهل يادوي او ورپسي بيا الله تبارک وتعالی پخپل وحدانيت او قدرت دلائل راوړي.

لغتونه:

(سباتا) راحت ته وايي اصل يې له (سبت) څخه اخيستل شوی او هغه قطع ته او پرېکړي ته وايي چي، ديهودانو (سبت) هم له دې څخه اخيستل شوی ځکه پدې ورځ کارونه قطع کوي (نشورا) انتشار او حرکت ته وايي او ورځ هم د کار او کسب لپاره د خپراوي سبب وي (أناسی) د انسی جمع او لکه کراسي چي د کرسي جمع راځي فراء وايي چي: انسی او أناسي د بشر لپاره نوم دی او اصل يې انسان وو بيا يې نون په يا بدل

کړی انسي وګرزېدو (مرج) ورپرې اینبنی ګډ کړی شوي ته ویل کېږي او (أمرمریج) بیامختلط اوګډوډشوي چاري ته وایې (فرات) خوراخوږې خوندوري (أجاج) سختي تروې (برزخا) پرده اوحائل

تفسیر:

﴿وَإِذَا رَأَوْكَ إِن يَتَّخِذُونَكَ إِلَّا هُزُوًا﴾ اوکله چي دوی تاووینې نونه نیسي دوی تامګرخای دمسخرې ﴿أَهَٰذَا ٱلَّذِي بَعَثَ ٱللَّهُ رَسُولًا﴾ آیاداهغه (سړی) دی چي الله (موږته) پیغمبر رالیږلی دی؟ (دغه په توکواومسخروواییې) ﴿إِن كَادَ لَيُضِلُّنَا عَنْ ءَالِهَتِنَا لَوْلَآ أَن صَبَرْنَا عَلَيْهَا﴾ ببشکه چي دی نژدې وو چي خامخاګمراه کړي یې وای موږ له خدایانوزموږ که چیرې موږددوی (په عبادت) صبرنه وای کړی (الله تعالی ددوی په ردکي فرمایې: ﴿وَسَوْفَ يَعْلَمُونَ حِينَ يَرَوْنَ ٱلْعَذَابَ مَنْ أَضَلُّ سَبِيلًا﴾ اوژربه دوی پوه شي کله چي ووینې دوی عذاب (دقیامت ښکاره) چي څوک دی ډېرګمراه له جهته دلارې (آیامحمددی اوکه دوی دي؟ دغه دوعید اوتهدید په توګه الله فرمان صادرکړی دی) ﴿أَرَءَيْتَ مَنِ ٱتَّخَذَ إِلَٰهَهُۥ هَوَىٰهُ﴾ آیاویني خبرېې ته؟ (دمشرکانو دحال څخه تعجب کول دی) په هغه چاچي دوی خپل نفسي خواهش اوهواخدای نیولی دی. ابن عباس رضی الله عنهما وایې دمشرکانویوتن به دډېرې عبادت کاوواوکله چي به یې ترهغې کومه بله ښکلې ډبره وموندله لومړنی به یې وغورځوله اودوهمه به یې په خدایې ونیوله اوعبادت به یې پیل کړ ﴿أَفَأَنتَ تَكُونُ عَلَيْهِ وَكِيلًا﴾ آیاپس ته یې په ده باندې وکیل (ساتونکی چي منع یې کړې له هواهوس خپله بلکه نه یې) ابوحیان وایې چي پدې کي ددوی له ایمان نه راوړلو څخه ناهیلي ده اوعلیه السلام ته ددې اشاره ورکول دي چي ددوی په ایمان نه راوړلو دي نه خواشینی کېږې اوهمداسي ددوی دناپوهي خبرورکول دی چي دوی دخپلو ګټو اوتاوانونوپه پوهېدلوکي ترچارپایانولاهم پاتي راغلي دي (١) ﴿أَمْ تَحْسَبُ أَنَّ أَكْثَرَهُمْ يَسْمَعُونَ أَوْ يَعْقِلُونَ﴾ آیاګمان کوې ته چي په تحقیق ډېرددوی اوري (دلائل) یاعقل چلوي (پوهېږي ستاپه خبرو اومني یې؟) یعني آیاته ګمان کوې چي دغه مشرکین ستاوینادمنلوپه توګه اوري؟ اویاپه هغودلائلواوبراهینوکي عقل چلوي اوورته پاملرنه کوي کوم چي دالله په وحدانیت دلالت کوي اوته ددوی دایمان هیله کوې؟

﴿إِنْ هُمْ إِلَّا كَٱلْأَنْعَٰمِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ سَبِيلًا﴾ نه دي دوی مګرپه شان دچارپایانودي بلکه لادوی ډېرلیرې دي له لارې (دصوابه) څکه چي څاروي خوخپله ورشوته لاره مومي اودخپلوخاوندانوغوښتنوته غاړه ایږدي دهغوی احسان مني مګردغه مشرکان دخپل څښتن حکم نه مني اونه یې نېکي اواحسان پېژني بیاالله تبارک وتعالی پخپل وحدانیت اوبشپړقدرت داسي دلائل راوړي فرمایې ﴿أَلَمْ تَرَ إِلَىٰ رَبِّكَ كَيْفَ مَدَّ ٱلظِّلَّ﴾ آیاندی کتلي تا (قدرت د) رب خپل ته چي څرنګه یې سیوری غځولی دی؟ (ترڅوچي انسان دلمرله سوځونکووړانګوڅخه هغه ته پناه ورورې که چیرې دغه سیوری نه وای نودانسان ژوندبه تریخ

---

(١) البحر ٦/٥٠١

اولمر به يې پوستكى ورداغلى وو ﴿ وَلَوْ شَآءَ لَجَعَلَهُۥ سَاكِنًا ﴾ اوكه يې اراده فرمايلي واى نوخامخا هغه سيوری به يې ولاړ ګرځولی وو (هيڅ لوري ته به نه خوځېدومګردالله په قدرت هغه له يوه ځايه بل ته درومي كله دختيزلوري ته وي اوكله دلويديزخواته كله مخي ته لوېږي اوكله بياشاته ﴿ ثُمَّ جَعَلْنَا ٱلشَّمْسَ عَلَيْهِ دَلِيلًا ﴾ بياوګرزاوومووږلمر (پدې سيوري) دليل (كه چېري دلمروړانګي په اجساموااجرامونه پرېوتلای نوبه دسيوري وجودڅرګندنه وواوددغه سترنعمت آثاربه انسانانوته نه څرګندېدل شيان په اضدادوپېژندل كېږي كه تياره نه واى چابه رڼانه پېژندله اوكه لمرنه واى چابه سيوری نه پېژانده لكه چي وايي: (وانماتعرف الاشيآء باضدادها) ﴿ ثُمَّ قَبَضْنَٰهُ إِلَيْنَا قَبْضًا يَسِيرًا ﴾ بياموږراټول كړوهغه ځان خپل ته په راټولولوآسانوسره (لږلږ ورو ورونه په يوځل ترڅوچي مصلحتونه ګډوډنشي ) ابن عباس رضی الله عنه وايي چي: مقصد له سيوري څخه دسپېده چاودله وخته دلمرترختلوپوري دی (۱)مفسرين كرام وايي چي (ظل) هغه درميانه حال ته چي ديومخ ايزه رڼااوخالصي تيارې ترمينځ وي ويل كېږي اودغه دځمكي په مخ دسپېده داغ له وخته دلمرترختلوپوري وي اوبيادی دلمررڼاله زواله وروسته ترلمرلوېدوپوري ورو ورولږلږ وركوي اوله مينځه يې وړي اودی ته (فئ) وايي په حكيم صانع ذات باندي ددې استدلال وجه داده چي ددغه (ظل) وجود وروسته له (عدم) څخه څرګندوي اوبيايې عدم وروسته له وجودڅخه رادبره كوي په دی دلالت كوي چي څرنګه يې احوال په زياتوالي اوكموالي ويروالي اوراټولېدلوكي تغييركوي هغه هم پدې سبب چي دبندګانولپاره ګټوروي ددې لپاره هرومرو ديوقادرمتعال دتدبيرخاوندحكيم ذات ضرورت شته چي دعلوي اجراموپه خوځولوافلكي اجساموپه ترتيب اوتدبيرپه ښه توګه قادراوتواناوي اودغه پرته له الله رب العالمينه بل څوک نشي كېدای (۲) بياالله تعالی دخپل قدرت آثاروااوپه بندګانوباندي سترونعمتونوته داسي اشاره فرمايي ﴿ وَهُوَ ٱلَّذِى جَعَلَ لَكُمُ ٱلَّيْلَ لِبَاسًا ﴾ اوهم دغه (الله) هغه (ذات دی چي ګرزولي يې ده تاسي ته (په كامل قدرت خپل سره) شپه پوښاک (لكه چي لباس تاسي پټوي همداسي موشپه پټوي (۳) ﴿ وَٱلنَّوْمَ سُبَاتًا ﴾ اوګرځولی يې دی (تاسي ته) خوب آرامي (چي تاسوله خپلوكارونوزګاراوآرام شئ ﴿ وَجَعَلَ ٱلنَّهَارَ نُشُورًا ﴾ اوګرځولي يې ده ورځ وخت دښورېدلوګرځېدلو(لپاره دطلب دمعاش) ﴿ وَهُوَ ٱلَّذِىٓ أَرْسَلَ ٱلرِّيَٰحَ بُشْرًۢا بَيْنَ يَدَىْ رَحْمَتِهِۦ ﴾ اوهم دغه (الله) هغه (ذات) دی چي رالېږلي يې دي بادونه زېري وركونكي دوړاندي درحمت ددغه الله (چي باران دی) ﴿ وَأَنزَلْنَا مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً طَهُورًا ﴾ اونازلي كړي موږ له طرفه دآسمانه اوبه پاكي پاكونكي (چي تاسويې څښئ او وربانديي اودسونه كوی

---

(۱) الطبري ۱۹/۱۲

(۲) دغه وينا له مجاهد څخه رانقل شوي اوډېرمفسرين په همدې لاره تللي دي اووايي چي دغه خوراښكلي حال دی ځكه دجنت ، صفت هم پدې شوی چي فرمايي (ظل ممدود ) اوهغه چي موږوليكل هغه راجح دی ځكه چي معروف سيوری هم هغه دی اودلمرلفظ هم وربانديي دلالت كوي اوداعلامه ابو السعود غوره كړي دي .

(۳) تفسير كبير ۲۴/ ۸۸

جامې مينځى. قرطبي وايې چې ﴿ طَهُورًا ﴾ بناء په طاهر کې دمبالغې لپاره دى يعني پاکې پاکونکې (١)﴿ لِّنُحْـِۧىَ بِهِۦ بَلْدَةً مَّيْتًا ﴾ لپاره ددې چې ژوندي کړو موږ پدې (اوبو) ځمکه مړه وچه ﴿ وَنُسْقِيَهُۥ مِمَّا خَلَقْنَآ أَنْعَٰمًا وَأَنَاسِىَّ كَثِيرًا ﴾ او چې ورو څښو دغه (اوبه) له جملې دهغو شيانو څخه چې پيدا کړي دي موږ له چارپايانو او انسانو ډېرونه (ځکه اوبه دهر ژوندي ساري ارتياده او په تېره بيا خلګ خوراورته محتاج دي ځکه دڅښلو، فصلونو خړوبولو اودحيواناتو اوبه کولو لپاره ورته ارتيالري. امام فخرالاسلام وايې چې (انعام) او(اناسي) يې نکره راوړل ځکه بشري ژوند ددوى دځمکو او حيوانانو په ژوندپوري سم تړلى دى نواکثريت دخلګو او بوته نژدې چې ويالې ، رودونه اودريابونه وي اوسي اودڅښلو لپاره اوبه نلري خوکله چې اورښت وشي اوباران واوري نوځکه الله پاک ﴿ أَنْعَٰمًا وَأَنَاسِىَّ كَثِيرًا ﴾ وفرمايل چې د(فعيل) صيغه لپاره دډېر راڅي اوزښته ډېرېې معنانه ده (٢)﴿ وَلَقَدْ صَرَّفْنَٰهُ بَيْنَهُمْ بَيْنَهُمْ لِيَذَّكَّرُوا۟ ﴾ (اوخامخا په تحقيق په راز رازډولونو موږ داوېشلي دي په مينځ ددوى کې لپاره ددې چې دوى فکر وچلوي ) يعني په تحقيق سره موږ پدې قرآن کې مثالونه بيان کړي دي اوپکې دلائل دي لپاره دفکر کولو(٣)﴿ فَأَبَىٰٓ أَكْثَرُ ٱلنَّاسِ إِلَّا كُفُورًا ﴾ پس منع راوړه زياترو خلګو ليکن له کفران (څخه يې منع نه راوړه) ﴿ وَلَوْ شِئْنَا لَبَعَثْنَا فِى كُلِّ قَرْيَةٍ نَّذِيرًا ﴾ اوکه اراده موفرمايلي واى نوپورته کړي به موږ په هره قريه ښارکې (بېل بېل) وېرونکى ( ستادهوساې لپاره مګرهسې موونکړل اوته مود ټول بشريت لپاره استازى وټاکلې اودغه ستادشان دتعظيم او اجلال لپاره نودغه اجلال په ثبات اودعوت (بلنه)کې له اجتهاد سره يوځاى کړه اودحق اظهار اوڅرګندول ترسره کړه ﴿ فَلَا تُطِعِ ٱلْكَٰفِرِينَ وَجَٰهِدْهُم بِهِۦ جِهَادًا كَبِيرًا ﴾ (نومکوه اطاعت (دغوښتنو) دکافرانو اومجاهده مقابله کوه له دوى سره په دغه (قرآن) په جهاد لوى) يعني ددوى هغه بلنه چې تاته وايې زموږ دخدايانو له عيب ويلو څخه لاس واخله مه منه اوپه دغه قرآنکريم باندې له دوى سره نه ستړې کېدونکې مبارزه کوه ﴿ وَهُوَ ٱلَّذِى مَرَجَ ٱلْبَحْرَيْنِ ﴾ او همدغه (الله) هغه ذات دى (چې په کامل قدرت ) خوشې کړي دي دوه سيندونه څنګ په څنګ (جلاجلا چې يوپه بل نه ګډېږي )﴿ هَٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ وَهَٰذَا مِلْحٌ أُجَاجٌ ﴾ چې دغه خوږدى دېرخوږ تنده ماتونکى او هغه بل ترېودى ښه ترېو(تريخ ته ورته) ﴿ وَجَعَلَ بَيْنَهُمَا بَرْزَخًا ﴾ اوګرځولې دي الله په مينځ ددغو دواړو کې پرده (چې يو په بل نه اوړي)﴿ وَحِجْرًا مَّحْجُورًا ﴾ اوبند چې منع کړى شوى دى (په هغه سره

---

(١) القرطبي ١٣/ ٣٩
(٢) تفسير کبير ٢٤/ ٩١

(٣) په ﴿ صَرَّفْنَٰهُ ﴾ کې ضمير قرآن ته راجع دى که څه هم تېرشوى نه دى ځکه داروښانه دى اوداضميريې هم تاکيد کوي چې ﴿ وَجَٰهِدْهُم بِهِۦ ﴾ چابياويلي چې باران ته راجع دى اودغه ليري بريښي لکه چې په التسهيل کې يې راوړي دي.

ګډېدل دیو په بل کي او یا اغیزه دخوندديوه بل ته. ابن کثیروايي دآیت شریف معنادا چي الله جل جلاله دوه ډوله اوبه پیدا کړي چي یو ډول يې خوږې او بل يې تروې دي خوږې لکه دچینو، رودونو او کوهیو، څاهانو او تروې لکه دلويو دريابونو چي نه بهېږي او ددوی ترمينځ يې څمکه حاجز ګرزولي چي يو يې بل ته تجاوزنه کوي او همدغه دابن جرير غوره دی ([1]) امام رازي وايي چي دلته استدلال وجه داکېدای شي که چېري دغه خوندونه چي خواږه تروه دي په سبب دځمکي یا او بووي نو بایدیو ډول وي او که داسي نه وي نو بيادغه دحکیم اوقادرذات کار دی چي هريو يې په يو معلوم صفت ځانګړی کړی دی ([2]) ﴿ وَهُوَ ٱلَّذِى خَلَقَ مِنَ ٱلْمَآءِ بَشَرًا ﴾ (او هم دغه (الله) هغه (ذات) دی چي انسان يې له اوبو پیدا کړی دی) يعني له نطفي څخه يې اوربدونکی، ليدونکی بشر پنځولی دی ﴿ فَجَعَلَهُۥ نَسَبًا وَصِهْرًا ﴾ (پس ګرزولی يې دی (خاوند دنسب او خسرګنی.) يعني له يوې نطفي څخه يې دوه ډوله پيدا کړي يو يې دنارينه وونسب چي دانسان نسبت ورته کېږي چي پلرونه دي او بله ډله دښځونسب چي دهغوی په خپلوي سخرګنی. پېژندل کېږي نو په نسب باندي يوله بله تعارف حاصلوي او په خسرګنی. باندي مينه او الفت پیدا کېږي او غريب له قريب سره يوځای کېږي تولنه جوړېږي ﴿ وَكَانَ رَبُّكَ قَدِيرًا ﴾ او دی رب ستا ښه قادر چي له يوې نطفي څخه يې نارينه او ښځينه دواړه پيداکړي دي کله چي الله تعالى دتوحيد دلائل شرح کړل بيرته دمشرکانو بدو خويونو ته راو ګرزېدو ويې فرمايل: ﴿ وَيَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَا لَا يَنفَعُهُمْ وَلَا يَضُرُّهُمْ ﴾ او عبادت کوي دامشرکان بې له الله دهغه څه چي نشي رسولی هيڅ قدر نفع دوی ته او نه هيڅ ضرر رسولی شي (دوی ته) يعني هغه جمادات دي نه ويني نه اوري او نه عقل لري ﴿ وَكَانَ ٱلْكَافِرُ عَلَىٰ رَبِّهِۦ ظَهِيرًا ﴾ او دی کافر (په نافرماني) درب خپل مددګار (دشيطان په معصيت درحمان کي) څکه دبتانو عبادت دشيطان مرسته کول دي مجاهد وايي معنادا چي دی شيطان ته دالله په نافرماني کولو او معصيت کي مدد ورکوي ([3]) ﴿ وَمَآ أَرْسَلْنَٰكَ إِلَّا مُبَشِّرًا وَنَذِيرًا ﴾ او نه يې لېږلی مو ږ ته مګر زېری کونکی (مؤمنانو ته په جنت) او وېرونکی (کافرانو) ته په دوزخ ﴿ قُلْ مَآ أَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ ﴾ وو ايه (ای محمده دوی ته!) نه غواړم زه له تاسي پدې پيغام رسونه) هيڅ قدر اجر او مزدوري ﴿ إِلَّا مَن شَآءَ أَن يَتَّخِذَ إِلَىٰ رَبِّهِۦ سَبِيلًا ﴾ مګر (غواړم ايمان راوړل) دهغه چاچي خوښه يې شي داچي ونيسي طرف درب خپل ته لاره (درضا او طاعت نوريې مزدوري په الله پوري دی) ﴿ وَتَوَكَّلْ عَلَى ٱلْحَىِّ ٱلَّذِى لَا يَمُوتُ ﴾ او توکل وکړه په تل ژوندي هغه (الله) چي له سره نه مري (هغه ستاچارجوړونکی مرستندوی او ستاددين په ټولو دينونو غالبونکی دی ﴿ وَسَبِّحْ بِحَمْدِهِۦ ﴾ او تسبيح وو ايه سره له ثنا دده (او په پاکي يې وستايه له

---

([1]) ابن کثير ۲/ ۲۳۵

([2]) التفسير الکبير ۲۴/ ۱۰۱

([3]) الطبري ۱۹/ ۱۷

شريكانواواولادكوم چي كفاروېې ورته نسبت كړى او ورسره نه ښايي) ﴿وَكَفَىٰ بِهِۦ بِذُنُوبِ عِبَادِهِۦ خَبِيرًا﴾ اوبس كافي دى هغه په ګناهونو دبندګانو خپلو ښه خبرداريعني له الله څخه هيڅ شي پټ نه دى.
امام رازي وايي چي داهسي كلمه ده چي دمبالغې لپاره راوړل كېږي لكه چي ويل كېږي (كفى بالعلم جمالا) يعني كافي دى علم له جهته دجمال اوښايست يعني ستالپاره همداكافي دى له همده سره دبل چاحاجت اوارتيانشته چي خبرشي ځكه الله يې په ټولو خبرداردى اوپه جزاوركولويې قادردى په دې كې سخت وعيددى (١) ﴿ٱلَّذِى خَلَقَ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِى سِتَّةِ أَيَّامٍ﴾ (هغه الله چي پيداكړي يې دي آسمانونه اوځمكه اوهغه چي په مينځ ددې دواړوكي دي په(مقدار) دشپږو ورځو) يعني دغه سترذات الله چي ښايي ته وربانديي توكل وكړې هغه ذات دى چي آسمانونه اوځمكي يې سره له پراخي اولوړوالي اوپنډوالي ، اوږدوالي ددنيادشپږ ورځوپه اندازه كي پيداكړي دي ابن جبيروايي چي الله پدې قدرت درلودچي په يوه شېبه كي يې پيداكړي خوخپل مخلوق ته يې ديوكارترسره كول په آرامي اوتثبت وروښود (٢) ﴿ثُمَّ ٱسْتَوَىٰ عَلَى ٱلْعَرْشِ﴾ بيايې استواء وفرمايله پرعرش (پرته له تشبيه اوتعطيل نه هسي هسي استواء چي دالله له جلال سره ښائېږي ﴿ٱلرَّحْمَـٰنُ﴾ (هغه) رحمان (ذوالجود والاحسان دى) ﴿فَسْـَٔلْ بِهِۦ خَبِيرًا﴾ پس وپوښته (له دغه رحمانه) كوم ښه خبرداري چى دالله جلال اورحمت ورته معلوم وى) اوچابياويلي چي ضميرالله ته راجع دى يعني له دغه الله څخه چي دشيانوپه حقائقوعالم دى پوښتنه وكړه چي دچاري په لوړوالي دي خبركړي (٣) ﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ ٱسْجُدُوا۟ لِلرَّحْمَـٰنِ﴾ اوكله چي دوى (مشركانو) ته وويلی شي چي رحمان ته (دعبادت سجده وكړئ! (هغه ذات چي رحمت يې په كائناتوخپوردى) ﴿قَالُوا۟ وَمَا ٱلرَّحْمَـٰنُ﴾ نووايي (مشركان) رحمان څه شېزدى ؟ ؛ دوى داسي استفهام كوي لكه چي نه يې پېژني حال داچي هغه ورته معلوم دى ﴿أَنَسْجُدُ لِمَا تَأْمُرُنَا﴾ آياسجده به كوومونږ هرهغه شيزته چي ته مونږته حكم كوې ؟ (بې له دې چي مونږيې وپېژنو) ﴿وَزَادَهُمْ نُفُورًا﴾ اوزياتوي دغه (وينادوى ته نفرت ،اوله دين څخه ليري والى).

**بلاغت:**

پدې آيتونوكي چي دبلاغت اوبديع كومي ښكلاوي شته لندون يې په لا...ي ډول دى:

١ - دتهكم اواستهزآء لپاره استفهام لكه ﴿أَهَـٰذَا ٱلَّذِى بَعَثَ ٱللَّهُ رَسُولًا﴾ .

٢ - تعجيب لكه چي فرمايي: ﴿أَرَءَيْتَ مَنِ ٱتَّخَذَ إِلَـٰهَهُۥ هَوَىٰهُ﴾ اودلته دوهم مفعول په لومړي دمخه شوى ترڅويې په شان كي اعتناآء اواهتمام شوى وى اصل داچي (اِتخَذَهَوَاهُ اِلهالهُ) دى.

---

(١) التفسيرالكبير٢٤ / ١٠٣

(٢) التفسيرالكبير٢٤ / ١٠٤

(٣) لومړى ويناخرګنده اودوهمه له مجاهدڅخه روايت شوي ده.

٣- بليغه تشبيه چي پدې كلام كي دى ﴿ جَعَلَ لَكُمُ ٱلَّيْلَ لِبَاسًا ﴾ شپه يې گرزولې ستاسو لپاره لباس يعني لكه جامې چي بدن پټوي د تشبيه ادات او د تشبيه وجه حذف شوي نو بليغه تشبيه گڼل كېږي.

٤- لطيفه مقابله چي دليل او نهار او (نوم) او (نشور) ترمينځ راغلي ده چي الله تعالى فرمايي ﴿ جَعَلَ لَكُمُ ٱلَّيْلَ لِبَاسًا وَٱلنَّوْمَ سُبَاتًا وَجَعَلَ ٱلنَّهَارَ نُشُورًا ﴾

٥- بديعه او ښكلي اغلي استعاره لكه په ﴿ بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهِۦ ﴾ كلام كي شته دلته يې لاسونه دهغه څه لپاره چي ديوڅيزپه وړاندي وي استعاره راوړل لكه چي ته وايې دسورت په وړاندي يا د موضوع په وړاندي.

٦- له غيبت څخه تكلم ته التفات چي فرمايي ﴿ وَأَنزَلْنَا مِنَ ٱلسَّمَآءِ ﴾ وروسته له دې ويناچي ﴿ أَرْسَلَ ٱلرِّيَٰحَ ﴾ راغلي دي

٧- لطيفه او باريكه مقابله چي پدې كلام كي راځي ﴿ هَٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ وَهَٰذَا مِلْحٌ أُجَاجٌ ﴾ يعني په خوږوالي كي او ترېووالي كي وروستي حدته رسېدلي

تنبيه:

د (مَيت) او (مَيِّت) چي لومړى په تخفيف او دوهم په تشديدسره دي ترمينځ توپيرداسي دى چي لومړى حقيقي مړي ته وايي او دوهم هغه چي ښايي مړشي الله تعالى فرمايي ﴿ إِنَّكَ مَيِّتٌ وَإِنَّهُم مَّيِّتُونَ ﴾

***

الله تعالى فرمايي:

﴿ تَبَارَكَ ٱلَّذِي جَعَلَ فِي ٱلسَّمَآءِ بُرُوجًا وَجَعَلَ فِيهَا سِرَٰجًا وَقَمَرًا مُّنِيرًا ﴿٦١﴾ وَهُوَ ٱلَّذِي جَعَلَ ٱلَّيْلَ وَٱلنَّهَارَ خِلْفَةً لِّمَنْ أَرَادَ أَن يَذَّكَّرَ أَوْ أَرَادَ شُكُورًا ﴿٦٢﴾ وَعِبَادُ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلَّذِينَ يَمْشُونَ عَلَى ٱلْأَرْضِ هَوْنًا وَإِذَا خَاطَبَهُمُ ٱلْجَٰهِلُونَ قَالُوا۟ سَلَٰمًا ﴿٦٣﴾ وَٱلَّذِينَ يَبِيتُونَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا وَقِيَٰمًا ﴿٦٤﴾ وَٱلَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا ٱصْرِفْ عَنَّا عَذَابَ جَهَنَّمَ إِنَّ عَذَابَهَا كَانَ غَرَامًا ﴿٦٥﴾ إِنَّهَا سَآءَتْ مُسْتَقَرًّا وَمُقَامًا ﴿٦٦﴾ وَٱلَّذِينَ إِذَآ أَنفَقُوا۟ لَمْ يُسْرِفُوا۟ وَلَمْ يَقْتُرُوا۟ وَكَانَ بَيْنَ ذَٰلِكَ قَوَامًا ﴿٦٧﴾ وَٱلَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ ٱللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ وَلَا يَقْتُلُونَ ٱلنَّفْسَ ٱلَّتِي حَرَّمَ ٱللَّهُ إِلَّا بِٱلْحَقِّ وَلَا يَزْنُونَ ۚ وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ يَلْقَ أَثَامًا ﴿٦٨﴾ يُضَٰعَفْ لَهُ ٱلْعَذَابُ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ وَيَخْلُدْ فِيهِۦ مُهَانًا ﴿٦٩﴾ إِلَّا مَن تَابَ وَءَامَنَ وَعَمِلَ عَمَلًا صَٰلِحًا فَأُو۟لَٰٓئِكَ يُبَدِّلُ ٱللَّهُ سَيِّـَٔاتِهِمْ حَسَنَٰتٍ ۗ وَكَانَ ٱللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿٧٠﴾ وَمَن تَابَ وَعَمِلَ صَٰلِحًا فَإِنَّهُۥ يَتُوبُ إِلَى ٱللَّهِ مَتَابًا ﴿٧١﴾ وَٱلَّذِينَ لَا يَشْهَدُونَ ٱلزُّورَ وَإِذَا مَرُّوا۟ بِٱللَّغْوِ مَرُّوا۟ كِرَامًا ﴿٧٢﴾ وَٱلَّذِينَ إِذَا ذُكِّرُوا۟ بِـَٔايَٰتِ رَبِّهِمْ لَمْ يَخِرُّوا۟ عَلَيْهَا صُمًّا وَعُمْيَانًا ﴿٧٣﴾ وَٱلَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا هَبْ لَنَا مِنْ أَزْوَٰجِنَا وَذُرِّيَّٰتِنَا قُرَّةَ أَعْيُنٍ وَٱجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِينَ إِمَامًا ﴿٧٤﴾ أُو۟لَٰٓئِكَ يُجْزَوْنَ ٱلْغُرْفَةَ بِمَا صَبَرُوا۟

وَيُلَقَّوْنَ فِيهَا تَحِيَّةً وَسَلَٰمًا ﴿٧٥﴾ خَٰلِدِينَ فِيهَا حَسُنَتْ مُسْتَقَرًّا وَمُقَامًا ﴿٧٦﴾ قُلْ مَا يَعْبَؤُا۟ بِكُمْ رَبِّى لَوْلَا دُعَآؤُكُمْ فَقَدْ كَذَّبْتُمْ فَسَوْفَ يَكُونُ لِزَامًۢا ﴿٧٧﴾ ﴾ الفرقان: ٦١ – ٧٧

مناسبت اوتړاو:

کله چي الله تعالی دمشرکانو درحمان ذات له عبادت څخه څنګ کول بیان کړل وروسته یې دالله په وحدانیت باندي دکائناتو څرګند دلائل راوړل اودسورت پای یې دالله دسپېڅلو بندګانو په صفتونو چي هغوی یې دجنت وړاولائق ګرزولي وفرمایو.

لغتونه:

(بروجا) دستورومنزلونو ته بروج ځکه وایې چي دغه لکه لوړقصرونه غوندي وي اودغه ځایونه دستورولپاره داسي لکه داوسېدونکولپاره چي ماڼۍ اوقلاګاني وي (غراما) لازم اونه بېلېدونکي پوروړي ته ځکه غریم وایې چي هغه هم دبېلېدلونه وي (الغرفة) په جنت کي ستري درجې ته وایې اوپه لغت کي بالاخانې اولوړي خوني ته وایې (یعبا) پرواکول ابوعبیده وایې چي ددې کلام چي ووایې (ماعبابه) معناداچي (زه وورباندي پروانکوم) یعني وجوداوعدم یې ماته برابردي (عبء) په لغت کي دروندوالي ته وایې (لزاما) تل ترتله ملازم اوهلاګری.

تفسیر:

﴿ تَبَارَكَ ٱلَّذِى جَعَلَ فِى ٱلسَّمَآءِ بُرُوجًا ﴾ (لوی برکتناک دی هغه ذات چي په آسمان کي یې برجونه پیداکړي دي) یعني پاکي اولویې هغه ذات لره دی چي په آسمان کي یې دغه سترروښانه ستوري پیداکړي دي[۱] ﴿ وَجَعَلَ فِيهَا سِرَٰجًا وَقَمَرًا مُّنِيرًا ﴾ (اوپیداکړي یې ده په هغه کي ډېوه (لمر) او سپوږمۍ سپوږمۍ روښانه) یعني ځلېدونکی لمرپه ورځ اورڼاکونکي سپوږمۍ دشپې ﴿ وَهُوَ ٱلَّذِى جَعَلَ ٱلَّيْلَ وَٱلنَّهَارَ خِلْفَةً ﴾ اوهمداالله هغه ذات دی چي ګرزولي یې ده شپه اوورځ پله پسې. طبري وایې چي شپه اوورځ چي یوپه بل پسي راځي نودچاچي کوم کاردورځي نیمګړی شي هغه په شپه کي بشپړوي ﴿ لِّمَنْ أَرَادَ أَن يَذَّكَّرَ أَوْ أَرَادَ شُكُورًا ﴾[۲] دپاره دهغه چاچي اراده لري ددې چي یادکړي (نعمتونه درب او فکروکړي دالله په مصنوعاتوکي) یااراده لري دشکرایستلو ﴿ وَعِبَادُ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلَّذِينَ يَمْشُونَ عَلَى ٱلْأَرْضِ هَوْنًا ﴾ (اوبندګان درحمان هغه کسان دي چي په ځمکه باندي په وروګرزي) دلته اضافت دتشریف لپاره دی یعني هغه بندګان چي الله یې خوښوي اوالله ته په نسبت کولو ښایې اووړدي داهغه کسان دي چي په ځمکه باندي په عزت اووقاردرومي په نازغروراوتکبرتګ نکوي ﴿ وَإِذَا خَاطَبَهُمُ ٱلْجَٰهِلُونَ

---

(۱) مجاهدوایې مرادله بروجو ستوري دي اوابن عباس اوعلی رضی الله عنهماوایې چي مقصددستورومېشت ځایونه دي ابن کثیروایې چي لومړی قول څرګنددی.
(۲) الطبري ۱۹/ ۲۰

﴿ قَالُوا سَلَٰمًا ﴾ اوكله چي خطاب كوي له دوى سره ناپوهان) (په غلطت سره) نووايي ( ورته سلام (خبره مسالمه له گناه اوضرره) حسن وايې چي له هيچاسره له جهله كارنه اخلي اوبل څوک چي له دوى سره له جهله كاراخلي دوى بې زغمي ﴿ وَالَّذِينَ يَبِيتُونَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا وَقِيَٰمًا ﴾ اوبندگان (درحمان) هغه كسان دي چي شپه تېروي خپل پروردگارته سجده كونكي اودرېدونكي ؛ يعني دوى شپه په لمانځه رنوي چي ياسجدې كوي ياپه قيام وي لكه چي الله بل ځاى فرمايي ﴿ كَانُوا قَلِيلًا مِّنَ الَّيْلِ مَا يَهْجَعُونَ ﴾ (الذاريات ١٧ ) امام رازي وايې چي كله يې دمؤمنانو ورځني صفات چي خلگوته تكليف نه رسوي اوپخپله دخلگوتكاليف زغمي وستايل وروسته يې ددوى دشپې صفتونه چي دالله په چوپړ(خدمت) كي لگياوي راوړل(١) ﴿ وَالَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا اصْرِفْ عَنَّا عَذَابَ جَهَنَّمَ ﴾ (اوبندگان درحمان) هغه كسان دي چي وايې اى زموږ ربه وگرزوه له موږڅخه عذاب ددوزخ) يعني الله ته مناجات كوي اودُعاوي كوي چي ددوزخ عذاب ورڅخه دفع كړي ﴿ إِنَّ عَذَابَهَا كَانَ غَرَامًا ﴾ بېشكه عذاب ددغه (دوزخ )لازم دى تل ترتله ﴿ إِنَّهَا سَاءَتْ مُسْتَقَرًّا وَمُقَامًا ﴾ بېشكه دا(دوزخ) بددى له جهته دځاى دقراراوهستوگني. قرطبي وايې ددې معناداچي دغه بدمستقراومقام دى بل داچي دوى سره له طاعته دالله له عذاب څخه وېرېږي(٢) حسن رحمه الله وايې چي دوى دورځي تواضع اودشپې رېړونه گالي څكه چي دجهنم له عذابه وېرېږي ﴿ وَالَّذِينَ إِذَا أَنفَقُوا لَمْ يُسْرِفُوا وَلَمْ يَقْتُرُوا ﴾ او(بندگان درحمان) هغه كسان دي كله چي نفقه وركوي مال لگوي نونه اسراف كوي اونه تنگي (اوبخل) كوي دغه ددوى پنځم صفت دئ معناداچي نه په خوړلو، څښلواواغوستلوكي اسراف كونكي اومبذرين وي اونه هم بخيلان اوكنجوس خلگ ﴿ وَكَانَ بَيْنَ ذَٰلِكَ قَوَامًا ﴾ اووي (دغه ددوى وركړه ) په مينځ ددغه (اسراف اوبخل) كي ميانه حاله، لكه چي الله تعالى بل ځاى فرمايي: ﴿ وَلَا تَجْعَلْ يَدَكَ مَغْلُولَةً إِلَىٰ عُنُقِكَ وَلَا تَبْسُطْهَا كُلَّ الْبَسْطِ ﴾ (الاسرآء ٢٩ ) مجاهدوايې كه دالله په طاعت كي لكه دابي قُبيس غر غوندي مال ولگوي هم اسراف نه دى اوكه يوه پېمانه دالله په معصيت كي ولگوي هم اسراف دى (٣) ﴿ وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ ﴾ او(بندگان درحمان) هغه كسان دي چي نه بولي له الله سره بل معبود(بلكه يوازي دالله عبادت كوي ) ﴿ وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ ﴾ اونه وژني دوى هغه نفس چي الله حرام كړى وى (وژل دهغه) مگرپه حق سره (چي هغه حق قتل كفر وروسته له ايمان اويازنادى وروسته له احصان اويابى په قصاص كي قتل كوي ) ﴿ وَلَا يَزْنُونَ ﴾ اونه كوي دوى زنا(هغه چي تركردوگناهونوناولي ده) ﴿ وَمَن

---

(١) التفسيرالكبير ٢٤ / ١٠٨

(٢) القرطبي ١٣ / ٧٣

(٣) الطبري ١٩ / ٢٣ دغه دهغه چاپه قول چي داسراف معنايې لگول په معصيت كي كړي ده اوهمدې ته څيني مفسرين تللي اوله ابن عباس رضى الله عنهماڅخه هم رانقل شوي دي خولومړنى ويناخرگنده ده.

يَفۡعَلۡ ذَٰلِكَ يَلۡقَ أَثَامٗا ﴾ اوهرچاچي وكړه (يوله دغوسترو مُوبقاتو چي شرک ، قتل اوزناده) نوپيدابه كړي جزاء دګناه خپلي (په آخرت كي اوبيايې دهغه تفسير هسي وفرمايو: ﴿ يُضَٰعَفۡ لَهُ ٱلۡعَذَابُ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ وَيَخۡلُدۡ فِيهِۦ مُهَانًا ﴾ چي دوچندبه كړى شي ده ته عذاب (ددوزخ) په ورځ دقيامت كي (په سبب دشرک اوګناه) اوتل به پاتي وي په دغه (عذاب) كي پداسي حال كي چي خوارذليل اوبې اعتباره به وي ﴿ إِلَّا مَن تَابَ وَءَامَنَ وَعَمِلَ عَمَلٗا صَٰلِحٗا ﴾ مګرهغه چي توبه يې وايستله اوايمان يې راووړ اوعمل يې وكړعمل نېک( په دنيا كي) ﴿ فَأُوْلَٰٓئِكَ يُبَدِّلُ ٱللَّهُ سَيِّـَٔاتِهِمۡ حَسَنَٰتٖۗ ﴾ پس دغه (تائبان) چي دي) بدل به كړي الله ګناهونه ددوى په نېكيوسره؛ په حديث شريف كي راځي : انى لأعلم آخرأهل الجنة دخولا الجنة وآخراهل النارخروجامنها، رجل يؤتى به يوم القيامة فيقال أعرضواعليه صغارذنوبه وارفعواعنه كبارها فتعرض عليه صغارذنوبه فيقال عملتَ يوم كذاوكذا فيقول : نعم لايستطيع أن ينكروهومشفق من كبارذنوبه فيقال له فان لک مكان كل سيئة حسنة فيقول يارب قدعملتُ اشياءً لاأراهاهنا قال : فضحک رسول الله (صلى الله عليه وآله وسلم) حتى بدت نواجذه [۱] رسول الله فرمايي : ماته هغه څوک چي ترټولووروسته به جنت ته ځي اوله دوزخه به راووزي معلوم دئ يوڅوک به په قيامت راوستل شي اووبه ويل شي واړه ګناهونه يې راڅرګنداوغټ ګناهونه يې ليري كړئ نوبه يې صغيره ګناوي مخي ته كښېږدي اوورته وبه وايې چي په فلانۍ ورځ دي هسي، هسي اوهسي كړي دي نوهغه وايې هودمنكرېدلوتوان نلري اوله كبيره ګناهونو څخه وېرېږي نوهغه ته به وويل شي ستاد هري ګناه پرځاى نېكي دركول شوه هغه به وايې اى پروردګاره مانوري ګناوي كړي چي دلته يې نه وينم وايې : چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وخندل ترڅوچي مبارک غاښونه يې څرګندشول. ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ غَفُورٗا رَّحِيمٗا ﴾ اودى الله ښه مغفرت كونكى دېر رحم والا ﴿ وَمَن تَابَ وَعَمِلَ صَٰلِحٗا فَإِنَّهُۥ يَتُوبُ إِلَى ٱللَّهِ مَتَابٗا ﴾ مګرهغه چي توبه وباسي له ګناهونو اونېک عمل وكړي پس بېشكه چي دى رجوع كوي په طرف دالله په ښه رجوع كولوسره (دالله په درباركي به له خوښ كړى شوي كسانوڅخه وي) ﴿ وَٱلَّذِينَ لَا يَشۡهَدُونَ ٱلزُّورَ ﴾ (او(بندګان درحمان) هغه كسان دي چي نه حاضرېږي په باطلوكي ) دغه دعبادالرحمن اووم صفت دى چي دوى په دروغو شاهدي نه وايې هغه شاهدي چي په هغې كي دبندګانو حقوق ضائع كېږي ﴿ وَإِذَا مَرُّواْ بِٱللَّغۡوِ مَرُّواْ كِرَامٗا ﴾ (اوكله چي په چټي (بېكاره) كارتېرېږي نوتېرېږي ځان ساتونكي) يعني كله چي دلهوپر مجالسو، سينما، قمار، موسيقي اونوروچټياتوتېرېږي له هغوڅخه څنګ كوي طبري وايې لغوهر باطل كاراووينااوهغه چي بد ايسى لكه ښكنځا كولوته وايې په ځيني ځايونوكي دعورت يادونه دهغه په نوم لغو اودسندرواورېدل هم قبيح څېزونه دي اودغه ټول دلغوي په مفهوم كي راځي چي لازم دى مسلمان ځني ځان وژغوري

[۱] أخرجه مسلم

([١]) ﴿ وَالَّذِينَ إِذَا ذُكِّرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ ﴾ او(بندګان درحمان) هغه کسان دي کله چي پندورکړل شي دوی ته په آیتونودرب ددوی (په قرآنکریم اوورباندي ووېرول شي) ﴿ لَمْ يَخِرُّوا عَلَيْهَا صُمًّا وَعُمْيَانًا ﴾ نو نه نسکورېږي پرې (لکه) کاڼه اوړانده (بلکه په شنوا غوږونو یې اوري اوپه وېرېدونکي زړونو يې مني ﴿ وَالَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا هَبْ لَنَا مِنْ أَزْوَاجِنَا وَذُرِّيَّاتِنَا قُرَّةَ أَعْيُنٍ ﴾ او(بندګان درحمان) هغه کسان دي چي وايي ای زموږربه وبښه موږته له ښځوزموږڅخه اوله اولادونوزموږڅخه (هغه څوک طاعت کونکي اوستا دخوښي عبادت کونکي چي) زموږدسترګویخوالی پکي راځي ﴿ وَاجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِينَ إِمَامًا ﴾اووګرځوه موږدمتقیانولپاره امام پېشوا(چي راپسی اقتداءکوي اودخیرلاري ته بلونکي او لارښوونکي يو. ابن عباس رضی الله عنهما وايي معناداچي داسي پېشوایان موجورکړه چي دخیرپه کارونوکي راپسې اقتداء کول کېږي ﴿ أُولَٰئِكَ يُجْزَوْنَ الْغُرْفَةَ بِمَا صَبَرُوا ﴾ دغه کسان (چي پدې لوړوصفاتوموصوف دي) جزاء به ورکوله شي دوی ته په هسکومانیو(دجنت) په سبب دهغه چي صبريې کړی وو( دالله په حکمونواوطاعت کولو ) ﴿ وَيُلَقَّوْنَ فِيهَا تَحِيَّةً وَسَلَامًا ﴾ اووابه اچولی شي پردوی په دغه جنت کي تحيه ددعاء اوسلام (دملائکوله خوالکه چي الله تعالی فرمايي ﴿ وَالْمَلَائِكَةُ يَدْخُلُونَ عَلَيْهِم مِّن كُلِّ بَابٍ ﴾ دآيت ترپايه (الرعد٢٣) ﴿ خَالِدِينَ فِيهَا حَسُنَتْ مُسْتَقَرًّا وَمُقَامًا ﴾ همېشه به وي دوی په دغه (جنت) کي (نه به مړه کېږي اونه به له جنت څخه بهرایستل کېږي) ښه دی دغه (جنت) له جهته دځای دقراري اوله جهته دځای دهستوګني (لپاره دمتقیانو مؤمنانو ) ﴿ قُلْ مَا يَعْبَأُ بِكُمْ رَبِّي لَوْلَا دُعَاؤُكُمْ ﴾ روايه( ای محمده دوی ته چي) نه کوي هيڅ پرواه تاسي رب زماکه چېري نه وای دعابلل ستاسي (الله ته) په سختیواوکړاوونوکي) ﴿ فَقَدْ كَذَّبْتُمْ فَسَوْفَ يَكُونُ لِزَامًا ﴾ اوپه تحقيق تکذيب کړی دی تاسي (درسولانواوقرآن ای کفارو ) پس ژربه شي (داعذاب له تاسي سره جزادتکذيب ) لازم(په آخرت کي).

**بلاغت:**

پدې آیتونوکي چي دبلاغت اوبديع څه ښکلاوی شته لندون يې دادی:

١-دتشريف لپاره اضافت لکه ﴿ وَعِبَادُ الرَّحْمَٰنِ ﴾ چي راغلی.

٢-دطباق صنعت چي دسجوداوقيام اواسراف ,تقتيرترمينځ دی لکه چي ﴿ سُجَّدًا وَقِيَامًا ....يُسْرِفُوا وَلَمْ يَقْتُرُوا ﴾ دی.

٣-لطيفه مقابله داهل جنت اواهل نارترمينځ لکه ﴿ حَسُنَتْ مُسْتَقَرًّا وَمُقَامًا ﴾ دجنتيانوپه باب او ﴿ سَاءَتْ مُسْتَقَرًّا وَمُقَامًا ﴾ ددوزخيانو لپاره.

---

([١]) الطبري ٣٢/١٩

۴ - بدیعه استعاره لکه ﴿ لَمْ يَخِرُّوا۟ عَلَيْهَا صُمًّا وَعُمْيَانًا ﴾ یعني دوی له وېرونکو تهدیدونو څخه غافل نشول چي لکه کاڼه او ړانده غوندي شي او دغه له خورا ښو استعاراتو څخه دی.

۵ - کنایه لکه چي ﴿ قُرَّةَ أَعْيُنٍ ﴾ راغلی چي له خوښي څخه کنایه ده لکه همداسي چي ﴿ ٱلْغُرْفَةَ ﴾ د جنت له لوړو پوړیو څخه کنایه ده.

تنبیه:

قرطبي وايي: الله تعالی د (عبادالرحمن) یوولس او څار ښکاره صفتونه کړي چي په هغو کي تحلي او تخلي ده دا صفتونه تواضع، حلم، تهجد، وېره، دا سراف او بخل پرېښودنه او له شرک څخه لیري والی او له زنا او قتل څخه ځان ژغورل، توبه کول او له دروغو ځان ساتل او د مواعظو منل او الله ته په تضرع دعا کول دي بیا الله د دوی ښایسته ثوابونه او په جنت کي لوړي درجي ستایلي لکه چي (غرفه) د دنیا هغه ستراو اوچت لوړ (هسک) مسکن بالاخاني ته وايي.

د الله جل جلاله په مرسته د الفرقان سورت تفسیر بشپړ شو.

## د الشعرآء سورت مکي او دوه سوه اوه ویشت آیتونه لري

د سورت په وړاندي:

سورة شعرآء مکي سورت دی او د دین بنسټیزی چاري لکه توحید، رسالت او بعث څېړي او د نورو مکي سورتونو په شان د عقیدې او د ایمان پرتاداو او بنسټ اهتمام کوي.

* دغه مبارک سورت د قرآنکریم په باب پیل کېږي هغه سپېڅلی کتاب چي الله تعالی د خلکو لپاره لارښود او د ګردو رنځونو لپاره علاج رالېږلی دی او د هغه په وړاندي یې د مشرکانو دریز څرګند کړی چي هغوی د دغه کتاب تکذیب کړی سره له دې چي آیتونه یې ښکاره او برهانونه یې څرګند دي او بیا د انبیاو چي دوی د عناد او تکبر له مخي له قرآنکریم څخه پرته بله معجزه غوښتله

* وروسته بیا د یوې ډلي پیغمبرانو علیهم السلام څخه رغېږي هغه چي الله تعالی د بشریت د لارښووني لپاره رالېږلي و او د حضرت موسی په کیسه یې پیل کوي کوم چي له سرغړونکي فرعون سره یې مقابله وه او څه چي د دوی دواړو ترمینځ سوال او ځواب کېدو او د الله جل جلاله د ذات په هکله یې خبري کولې همداسي د موسی علیه السلام هغه کوتلي دلائل چي د باطل ملایې ماتوله راوړي او همداسي د کیسې په ترڅ کي یې ځیني د پند او نصیحت کړه هم راوړي چي د ایمان او طغیان ترمینځ سترتوپیر بیان کړي.

* له دې نه پس بیا د ابراهیم خلیل الله کیسه رااخلي او د هغه دریځ د خپل پلار او ټبر په هکله چي د بتانو عبادت یې کاووښې او هغه چي ده د خپل ښکلي بیان او غښتلي دلیل په سبب د دوی د عقیدې باطل والی وښوده یې ثابته کړه چي الله جل جلاله واحد لاشریک دی رب العالمین دی د هغه په لاس کي مرګ او ژوند او نفع او ضرر دی.

• بیادمتقیانواومنکرانوحال احوال اوپه آخرت کې دنېکمرغه اوبدمرغانودواړوډلوهستوګنځی اومآل راوړي.

کله چې سورت دانبیاوو علیهم السلام کیسې تعقیبوي چې دنوح ، هود ، صالح ، لوط اوشعیب علیهم السلام کیسې دي نوپه ترڅ کې يې هغه دالله تعالی سنت چې دانبیاوودروغجن ګڼونکي هلاکوي رااخلي اوپه پای کې بیرته دهمدغه سپېڅلي کلام په شان کې داهتمام اوپاملرنې په توګه راګرزي چې تفخیم اوتعظیم يې وښيي اوصدورځای يې بیان کړي فرمايي: ﴿ وَإِنَّهُۥ لَتَنزِيلُ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿١٩٢﴾ نَزَلَ بِهِ ٱلرُّوحُ ٱلْأَمِينُ ﴿١٩٣﴾ عَلَىٰ قَلْبِكَ لِتَكُونَ مِنَ ٱلْمُنذِرِينَ ﴿١٩٤﴾ بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ مُّبِينٍ ﴿١٩٥﴾ ﴾ اوبیادمشرکانوپه افتراګانوباندې ټکونه کوي چې دوی به ویل دغه قرآن شیطانانوراکوزکړی دی پدې سره همداډول دسورت دپیل اوپای دپیلواوتناسق ښکلاله ورایه څرګنده ده.

تسمیه اونومول يې:

دغه سورت ته ځکه سورت شعراء وايې چې الله پاک پکې دشاعرانویادونه کړې اوهغه هم پدې چې مشرکانوبه ویل محمدشاعردی اوځه چې يې راوړي هم شعري کلام دی نوالله ددوی ددغو دروغو اوبهتان تردیدوفرمایل چې ﴿ وَٱلشُّعَرَآءُ يَتَّبِعُهُمُ ٱلْغَاوُۥنَ ﴿٢٢٤﴾ أَلَمْ تَرَ أَنَّهُمْ فِى كُلِّ وَادٍ يَهِيمُونَ ﴿٢٢٥﴾ وَأَنَّهُمْ يَقُولُونَ مَا لَا يَفْعَلُونَ ﴿٢٢٦﴾ ﴾ اوپه همدغه ویناحق ښکاره اوڅرګند شو.

الله تعالی فرمايي:

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ طسٓمٓ ﴿١﴾ تِلْكَ ءَايَٰتُ ٱلْكِتَٰبِ ٱلْمُبِينِ ﴿٢﴾ لَعَلَّكَ بَٰخِعٌ نَّفْسَكَ أَلَّا يَكُونُوا۟ مُؤْمِنِينَ ﴿٣﴾ إِن نَّشَأْ نُنَزِّلْ عَلَيْهِم مِّنَ ٱلسَّمَآءِ ءَايَةً فَظَلَّتْ أَعْنَٰقُهُمْ لَهَا خَٰضِعِينَ ﴿٤﴾ وَمَا يَأْتِيهِم مِّن ذِكْرٍ مِّنَ ٱلرَّحْمَٰنِ مُحْدَثٍ إِلَّا كَانُوا۟ عَنْهُ مُعْرِضِينَ ﴿٥﴾ فَقَدْ كَذَّبُوا۟ فَسَيَأْتِيهِمْ أَنۢبَٰٓؤُا۟ مَا كَانُوا۟ بِهِۦ يَسْتَهْزِءُونَ ﴿٦﴾ أَوَلَمْ يَرَوْا۟ إِلَى ٱلْأَرْضِ كَمْ أَنۢبَتْنَا فِيهَا مِن كُلِّ زَوْجٍ كَرِيمٍ ﴿٧﴾ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَةً وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ ﴿٨﴾ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلرَّحِيمُ ﴿٩﴾ وَإِذْ نَادَىٰ رَبُّكَ مُوسَىٰٓ أَنِ ٱئْتِ ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿١٠﴾ قَوْمَ فِرْعَوْنَ أَلَا يَتَّقُونَ ﴿١١﴾ قَالَ رَبِّ إِنِّىٓ أَخَافُ أَن يُكَذِّبُونِ ﴿١٢﴾ وَيَضِيقُ صَدْرِى وَلَا يَنطَلِقُ لِسَانِى فَأَرْسِلْ إِلَىٰ هَٰرُونَ ﴿١٣﴾ وَلَهُمْ عَلَىَّ ذَنۢبٌ فَأَخَافُ أَن يَقْتُلُونِ ﴿١٤﴾ قَالَ كَلَّا ۖ فَٱذْهَبَا بِـَٔايَٰتِنَآ ۖ إِنَّا مَعَكُم مُّسْتَمِعُونَ ﴿١٥﴾ فَأْتِيَا فِرْعَوْنَ فَقُولَآ إِنَّا رَسُولُ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿١٦﴾ أَنْ أَرْسِلْ مَعَنَا بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ﴿١٧﴾ قَالَ أَلَمْ نُرَبِّكَ فِينَا وَلِيدًا وَلَبِثْتَ فِينَا مِنْ عُمُرِكَ سِنِينَ ﴿١٨﴾ وَفَعَلْتَ فَعْلَتَكَ ٱلَّتِى فَعَلْتَ وَأَنتَ مِنَ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴿١٩﴾ قَالَ فَعَلْتُهَآ إِذًا وَأَنَا۠ مِنَ ٱلضَّآلِّينَ ﴿٢٠﴾ فَفَرَرْتُ مِنكُمْ لَمَّا خِفْتُكُمْ فَوَهَبَ لِى رَبِّى حُكْمًا وَجَعَلَنِى مِنَ ٱلْمُرْسَلِينَ ﴿٢١﴾ وَتِلْكَ نِعْمَةٌ تَمُنُّهَا عَلَىَّ أَنْ عَبَّدتَّ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ﴿٢٢﴾ قَالَ فِرْعَوْنُ وَمَا رَبُّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٢٣﴾ قَالَ رَبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَآ ۖ إِن كُنتُم مُّوقِنِينَ ﴿٢٤﴾ قَالَ لِمَنْ حَوْلَهُۥٓ أَلَا تَسْتَمِعُونَ ﴿٢٥﴾

قَالَ رَبُّكُمْ وَرَبُّ ءَابَآئِكُمُ ٱلْأَوَّلِينَ ﴿۲٦﴾ قَالَ إِنَّ رَسُولَكُمُ ٱلَّذِىٓ أُرْسِلَ إِلَيْكُمْ لَمَجْنُونٌ ﴿۲۷﴾ قَالَ رَبُّ ٱلْمَشْرِقِ وَٱلْمَغْرِبِ وَمَا بَيْنَهُمَآ إِن كُنتُمْ تَعْقِلُونَ ﴿۲۸﴾ قَالَ لَئِنِ ٱتَّخَذْتَ إِلَٰهًا غَيْرِى لَأَجْعَلَنَّكَ مِنَ ٱلْمَسْجُونِينَ ﴿۲۹﴾ قَالَ أَوَلَوْ جِئْتُكَ بِشَىْءٍ مُّبِينٍ ﴿۳۰﴾ قَالَ فَأْتِ بِهِۦٓ إِن كُنتَ مِنَ ٱلصَّٰدِقِينَ ﴿۳۱﴾ فَأَلْقَىٰ عَصَاهُ فَإِذَا هِىَ ثُعْبَانٌ مُّبِينٌ ﴿۳۲﴾ وَنَزَعَ يَدَهُۥ فَإِذَا هِىَ بَيْضَآءُ لِلنَّٰظِرِينَ ﴿۳۳﴾ قَالَ لِلْمَلَإِ حَوْلَهُۥٓ إِنَّ هَٰذَا لَسَٰحِرٌ عَلِيمٌ ﴿۳۴﴾ يُرِيدُ أَن يُخْرِجَكُم مِّنْ أَرْضِكُم بِسِحْرِهِۦ فَمَاذَا تَأْمُرُونَ ﴿۳۵﴾ قَالُوٓا۟ أَرْجِهْ وَأَخَاهُ وَٱبْعَثْ فِى ٱلْمَدَآئِنِ حَٰشِرِينَ ﴿۳٦﴾ يَأْتُوكَ بِكُلِّ سَحَّارٍ عَلِيمٍ ﴿۳۷﴾ فَجُمِعَ ٱلسَّحَرَةُ لِمِيقَٰتِ يَوْمٍ مَّعْلُومٍ ﴿۳۸﴾ وَقِيلَ لِلنَّاسِ هَلْ أَنتُم مُّجْتَمِعُونَ ﴿۳۹﴾ لَعَلَّنَا نَتَّبِعُ ٱلسَّحَرَةَ إِن كَانُوا۟ هُمُ ٱلْغَٰلِبِينَ ﴿۴۰﴾ فَلَمَّا جَآءَ ٱلسَّحَرَةُ قَالُوا۟ لِفِرْعَوْنَ أَئِنَّ لَنَا لَأَجْرًا إِن كُنَّا نَحْنُ ٱلْغَٰلِبِينَ ﴿۴۱﴾ قَالَ نَعَمْ وَإِنَّكُمْ إِذًا لَّمِنَ ٱلْمُقَرَّبِينَ ﴿۴۲﴾ قَالَ لَهُم مُّوسَىٰٓ أَلْقُوا۟ مَآ أَنتُم مُّلْقُونَ ﴿۴۳﴾ فَأَلْقَوْا۟ حِبَالَهُمْ وَعِصِيَّهُمْ وَقَالُوا۟ بِعِزَّةِ فِرْعَوْنَ إِنَّا لَنَحْنُ ٱلْغَٰلِبُونَ ﴿۴۴﴾ فَأَلْقَىٰ مُوسَىٰ عَصَاهُ فَإِذَا هِىَ تَلْقَفُ مَا يَأْفِكُونَ ﴿۴۵﴾ فَأُلْقِىَ ٱلسَّحَرَةُ سَٰجِدِينَ ﴿۴٦﴾ قَالُوٓا۟ ءَامَنَّا بِرَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿۴۷﴾ رَبِّ مُوسَىٰ وَهَٰرُونَ ﴿۴۸﴾ قَالَ ءَامَنتُمْ لَهُۥ قَبْلَ أَنْ ءَاذَنَ لَكُمْ ۖ إِنَّهُۥ لَكَبِيرُكُمُ ٱلَّذِى عَلَّمَكُمُ ٱلسِّحْرَ فَلَسَوْفَ تَعْلَمُونَ ۚ لَأُقَطِّعَنَّ أَيْدِيَكُمْ وَأَرْجُلَكُم مِّنْ خِلَٰفٍ وَلَأُصَلِّبَنَّكُمْ أَجْمَعِينَ ﴿۴۹﴾ قَالُوا۟ لَا ضَيْرَ ۖ إِنَّآ إِلَىٰ رَبِّنَا مُنقَلِبُونَ ﴿۵۰﴾ إِنَّا نَطْمَعُ أَن يَغْفِرَ لَنَا رَبُّنَا خَطَٰيَٰنَآ أَن كُنَّآ أَوَّلَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴿۵۱﴾ ﴾

الشعراء: ۱ - ۵۱

## لغتونه:

(باخع) هلاکونکی (بخع) اصلا دمذبوح وروستی مری پریکولوته وایي (فعلتک) (فَعلة) دفاپه زورسره دکرت لپاره راځي (تلقف) ترستوني تېرولوته وایي (یافکون) له افک څخه اوهغه دروغوته وایي (لاضیر) ضیراوضرپه یوه معنادی یعني تاوان نشته جوهري وایي چي (ضارة) یضورة (ضیرا) معناداچي ورته یې ضرروررساوو (منقلبون) راګرزېدونکي (من خلاف) یعني داندامونوترمینځ به دغوڅولوپه وخت کي یودبل په خلاف پرېکوي چي ښی لاس اوکینه پښه به غوڅوي.

## تفسیر:

﴿ طسٓمٓ ﴾ دغه دقرآنکریم اعجازته اشارِه ده چي داکلام له داسي هجائي توروڅخه جوړشوی دی[1] ﴿ تِلْكَ ءَايَٰتُ ٱلْكِتَٰبِ ٱلْمُبِينِ ﴾ دا(آیتونه ددې سورت) آیتونه دي دکتاب ښکاره کونکي (چي څوک ورته فکراوتأمل کوي اعجاز یې څرګنددی) ﴿ لَعَلَّكَ بَٰخِعٌ نَّفْسَكَ أَلَّا يَكُونُوا۟ مُؤْمِنِينَ ﴾ ښایې چي ته دخپل ځان هلاکونکی یې پدې چي دوی نه مؤمنان کېږي ؛ پدې کي درسول الله صلی الله علیه وسلم لپاره تسلیت اوډاډینه ده ترڅوددوی په ایمان نه راوړلوخفه نشي ﴿ إِن نَّشَأْ نُنَزِّلْ عَلَيْهِم مِّنَ ٱلسَّمَآءِ ءَايَةً ﴾ که موږاراده وفرمایونوبه پردوی دآسمان له لوري یودلیل (دقدرت) نازل کړو(چي په زوره دوی اسلام ته

---

[1] وګوره هغه څه چي موږپدې هکله دالبقره سورت په پیل کي لیکلي په هغه کي بسنه اوکفایت دی.

رامات کړي ﴿ فَظَلَّتْ أَعْنَٰقُهُمْ لَهَا خَٰضِعِينَ ﴾ پس شي به ورمېږونه ددوی هغه (دليل دقدرت ته ) غاړه
اېښودونکي (په زور اوجبرسره مګرموږهسي نه کووځکه چي دايمان راوړل اختياري دی جبري
اواضطراري نه دی صاوي وايي معناداچي ته ددوی دايمان په نه راوړلومه خوابدی کېږه که
موږوغواړوپه زوره هم ايمان ورباندي راوړلای شوچي کومه معجزه به راواستووااوپه زړونوبه يې
اغيزوکړي اوپه زوره به ايمان راوړي خودددوی بدمرغي ازلي ده نوددوی په کفرخواشيني مه کوه
(١)﴿ وَمَا يَأْتِيهِم مِّن ذِكْرٍ مِّنَ الرَّحْمَٰنِ مُحْدَثٍ ﴾ (اونه راځي دوی ته هيڅ ذکرپندوعظ له (لوري) درحمان نوی)
يعني دغوکفاروته يوځه دقرآن اووحی څخه په نزول (٢) کي وخت په وخت نوی نه راځي ﴿ إِلَّا كَانُوا عَنْهُ
مُعْرِضِينَ ﴾ مګروي دوی له هغه (پند ) څخه مخ ګرزونکي (اووربانديي ملنډي وهونکي چي هيڅ سوچ
اوفکرپکي نه کوي چي څومره پندونه پکي خوندي دي ﴿ فَقَدْ كَذَّبُوا فَسَيَأْتِيهِمْ أَنۢبَٰٓؤُا مَا كَانُوا بِهِۦ
يَسْتَهْزِءُونَ ﴾ (پس په تحقيق تکذيب وکړدوی (دهغه ذکر) پس ژربه راشي دوی ته عواقب حقائق دهغه
(څېز) چي وودوی په هغه باندي به يې مسخرې کولې) يعني دوی په مخ اړولوکي وروستي بريدته
رسېدلي وو نوژردی چي دوی ته به ددروغجنوګڼونکواوملنډي وهونکوعاقبت اوانجام راشي وروسته
بياالله تعالی دخپل سلطان عظمت اوپه مخلوقاتواومصنوعاتوکي سترقدرت ته هغه چي په وحدانيت
اوبشپړقدرت يې دلالت کوي اشاره فرمايي چي ﴿ أَوَلَمْ يَرَوْا إِلَى ٱلْأَرْضِ كَمْ أَنۢبَتْنَا فِيهَا مِن كُلِّ زَوْجٍ كَرِيمٍ ﴾
آيادوی ځمکي ته نه ګوري چي موږ(په خپل حکمت بالغه سره ) څومره زرغونه کړي ده په دغه ځمکه کي
له هرډول (جنس څخه) ګياه ښه کثيرالمنافع؛ استفهام دتوبيخ لپاره دی ځکه دوی عبرت پرې اېښی دی
﴿ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَةً ﴾ بېشکه پدې (انبات (زرغونولو) کي) بېشکه نښه ده (دالله د وحدانيت
اوقدرت)﴿ وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ ﴾ اونه دي زياتره ددوی مؤمنان (دالله په علم کي ځکه چي سره له
څرګندودلائلوبياهم دوی په کفرباندي استمرارکوي اوپښې يې خرلي وي) ﴿ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ ٱلْعَزِيزُ
ٱلرَّحِيمُ ﴾ اوبېشکه رب ستاخامخاهمدی ښه قوي غالب (قادرپه غچ اخيستلوله ګناه ګارانو څخه)
مهربان (په هغه چاچي توبه ګارشي اورجوع وکړي. امام رازي وايي چي( عزيز ) يې ځکه په (رحيم ) دمخه
يادکړچي ښايې داسي به ويل کېږي چي الله ددوی له عذابولوڅخه په رحم تېرېدونکی دی ځکه چي توان
يې نلري نودغه شبه يې ترديدکړه اوعزيزيې چي دغالب قوي په معنادی لومړی ذکرکړاوله دې سره سره
الله جل جلاله پخپلوبندګانومهربان اورحيم هم دی ځکه کله چي رحمت له بشپړقدرت سره ملګری وي

(١) حاشية الصاوي على الجلالين ٣ / ١٢٧
(٢) دمحدث معناپه نزول کي نوي اوکه دانه وی نودالله کلام خوپه حدوث باندي نه موصوف کېږي لکه چي مخلوق هم نه ګڼل کېږي

د پرېږدای او بنه اغېزمن وي(١) ﴿ وَإِذْ نَادَىٰ رَبُّكَ مُوسَىٰٓ ﴾ او (یادکړه) هغه وخت چي ستا رب موسی ته غږوکړ) يعني ای محمده دغو مکذبينو څنګ کونکو ته چي ستا دقوم دي هغه دموسی عليه السلام مأموريت ورپه يادکړه کله چي الله دطورپه ښي اړخ کي ورته وفرمايل چي فرعون او دهغه تبرته ولاړشه ﴿ أَنِ ٱئْتِ ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ داسي چي ورشه هغه قوم ته چي ظالمان دي (په کفراوګناهونو اوبني اسرائيل يې مريان کړي دي) ﴿ قَوْمَ فِرْعَوْنَ ﴾ (يعني) قوم دفرعون ته (دغه عطف بيان دی لکه چي ظالمان اود فرعون قوم يووي ﴿ أَلَا يَتَّقُونَ ﴾ آيا دوی نه وېرېږي (له الله) پدې کي ددوی دستري دښمني اوزيات ظلم څخه تعجب نغښتی دی ﴿ قَالَ رَبِّ إِنِّيٓ أَخَافُ أَن يُكَذِّبُونِ ﴾ وويل موسی ای زمار به بېشکه زه له دې وېرېږم چي (دوی به ماته) نسبت ددروغوکړی (درسالت په هکله ) ﴿ وَيَضِيقُ صَدْرِي ﴾ او(بل) تنګېږي سينه (ددوی له تکذيبه) ﴿ وَلَا يَنطَلِقُ لِسَانِي ﴾ او(بل) نه چلېږي ژبه زما(د رسالت دپيغام رسولو په باب په بشپړه توګه ) ﴿ فَأَرْسِلْ إِلَىٰ هَٰرُونَ ﴾ پس ولېږه هارون ته (جبريل) چي راسره د رسالت په تبليغ کي مرسته وکړي. مفسرين کرام وايي چي موسی عليه السلام دمرستندوی هيله ددريو عذرونو په وجه وکړه يوداچي له تکذيب څخه وېرېږي اوسينه يې تنګېږي اوژبه يې نه چلېږي ، تکذيب دزړه تنګسيا راولي اودزړه تنګسيا په ژبه اغېزه کوي په ځانګړي توګه کله چي دچا په ژبه کي څه بندش هم وي لکه چي الله فرمايي ﴿ وَٱحْلُلْ عُقْدَةً مِّن لِّسَانِي يَفْقَهُوا۟ قَوْلِي ﴾ (طه ۲۷ ۲۸ ) اوبيا بل عذرزياتوي فرمايي ﴿ وَلَهُمْ عَلَيَّ ذَنۢبٌ فَأَخَافُ أَن يَقْتُلُونِ ﴾ او(بل) شته دوی لره پرما(دعوه ديوې ) ګناه پس وېرېږم له دې نه چي ما به مړکړي (څکه چي قبطي مي وژلی وو) ﴿ قَالَ كَلَّا ۖ ﴾ وفرمايل (الله موسی ته) نه ده داسي (مه دارېږه له سره دي وژلی نشي) قرطبي وايي چي پدې کي ردع اوزجردی چي ښځي داسي ګمان مکوه! په الله جل جلاله باوراوټينګ يقين ولره له دوی څخه هرګوره مه وېرېږه دوی تا هيڅکله هم نشي وژلای (٢) ﴿ فَٱذْهَبَا بِـَٔايَٰتِنَآ ۖ ﴾ پس لاړشئ تاسي دواړه (ته اوهارون) په ښکاره وو معجزوزما ﴿ إِنَّا مَعَكُم مُّسْتَمِعُونَ ﴾ (بېشکه موږ له تاسي سره اورېدونکي يو ) يعني موږ له تاسي سره مرستندويان يوڅه چي تاسي وايا ست موږيې اورواوڅه چي تاسي ته ځواب درکاوه شي هم اورو ددوی لپاره يې دجمعي صيغه (معكم) دتعظيم اودرناوي په توګه استعمال کړه (٣) ﴿ فَأْتِيَا فِرْعَوْنَ فَقُولَآ إِنَّا رَسُولُ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ پس دواړه فرعون ته ورشئ ! نوووايئ بېشکه هريوزموږ استازی درب العالمين يو(چي تا ته

---

(١) التفسير الكبير ۲۴ / ۱۲۰
(٢) القرطبي ۱۳ / ۹۲
(٣) دغه خبره سيبويه رحمه الله رااېستلي او البحر المحيط تفسير رانقل کړي ده ۷ / ۸

دلاربنوونې بلنه درکړو) ﴿ أَنْ أَرْسِلْ مَعَنَا بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ﴾ داچې ولېږه ته (اى فرعونه) له موږسره بني اسرائيل( هغوى له خپل چوپړاو مريتوب څخه خوشې اوآزادکړه چې له موږ سره شام ته ولاړشي) ﴿ قَالَ أَلَمْ نُرَبِّكَ فِينَا وَلِيدًا ﴾ (نو وويل(فرعون موسى ته) آياموږدتاروزنه نده کړې په (کورونو) خپلو کې؟ پداسې حال کې چې ورو کى هلک وې !) په کلام کې حذف راغلى چې معناورباندې دلالت کوي تقديريې داچې موسى عليه السلام رسالت ورته ابلاغ کړنوفرعون پدې وخت کې موسى عليه السلام ته وويل: آياته زموږپه کورونو کې ماشوم نه يې روزل شوى؟ پدې ويناسره فرعون په موسى عليه السلام باندې احسان باروي اوهغه سپک ګڼي لکه چې ورته وايي آياته هغه نه يې چې موږورو کى وروزلې اودرسره مونېکې وکړې نودغه غوښتنه له څه وخته پيل شوه؟ ا﴿ وَلَبِثْتَ فِينَا مِنْ عُمُرِكَ سِنِينَ ﴾ اوتېرکړې روتاپه موږکې له خپله عمره يوڅوکاله( چې موږدرسره احسان کاووستاروزنه اوپالنه موکوله؛ مقاتل رحمه الله وايي چې دغه دېرش کاله وخت وو) ﴿ وَفَعَلْتَ فَعْلَتَكَ ٱلَّتِى فَعَلْتَ ﴾ اوبل کړې وو تاکار خپل هغه کارچې تاکړى وو(يعني ددې روزنې په بدله کې تازموږد نعمت کفران وکړاوقبطي دې راوواژه اوداسې تعبيريې په کارکړددې لپاره چې دغه پېښه ورته وښيې هغه چې دقبطي وژل دى) ﴿ وَأَنتَ مِنَ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴾ حال داچې ته له ناشکرانوڅخه يې (ځکه چې زموږاحسان دې هېرکړابن عباس رضى الله عنه وايي مرادله کفرڅخه دنعمت کفران دى ځکه فرعون ته دانه وه معلومه چې کفرڅه دى(١) ﴿ قَالَ فَعَلْتُهَآ إِذًا وَأَنَا۠ مِنَ ٱلضَّآلِّينَ ﴾ ووېل (موسى فرعون ته) چې کړى وومادغه کارپه هغه وخت کې چې زه له خطاکارانوڅخه وم (ځکه مادده دوژلوقصدنه لارواوهغه ته مې ادب ورښودل ؛ دلته دموسى عليه السلام اراده له ضلال څخه ګمراهي نه ده ځکه هغه خوله ورکتوبه معصوم ووابن عباس رضى الله عنهماوايي چې ﴿ مِنَ ٱلضَّآلِّينَ ﴾ معنا(من الجاهلين) دې يعني زه نه پوهېدم (چې هغه به مري) ﴿ فَفَرَرْتُ مِنكُمْ لَمَّا خِفْتُكُمْ ﴾ (پس زه له تاسي وتښتېدم کله چې زه له تاسي ووېرېدم) يعني زه مدين ته له تاسوڅخه وتښتېدم کله چې پخپل ځان ووېرېدم چې تاسي به ماووژنى اوپه هغه څه به مې ونيسى چې زه يې ورنه يم ﴿ فَوَهَبَ لِى رَبِّى حُكْمًا ﴾ پس زمارب ماته حکم وبانبه (نبوت) اوحکمت يې راکړ) ﴿ وَجَعَلَنِى مِنَ ٱلْمُرْسَلِينَ ﴾ اوزه يې وګرزولم دغه (الله) له پيغمبرانو څخه(نوکه ايمان راوړې سلامت به شې اوکه انکاروکړې هلاک به شې)﴿ وَتِلْكَ نِعْمَةٌ تَمُنُّهَا عَلَىَّ أَنْ عَبَّدتَّ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ﴾ (او(آيا) دغه (تربيت) يونعمت دى چې پرمايې احسان کوى ؟ چې بني اسرائيل دې مريونه کړي وو) يعني ته څرنګه په ماباندې دروزنې

---

(١) حسن رحمه الله وايي چې مقصديې دادى چې ته زماپه الوهيت کافريې طبري دابن عباس رضى ويناته چې ناشکري ده ترجيح ورکړې اوهغه څرګنده هم دى.

نعمت احسان باروې چې زماقوم بني اسرائيل دي مريونه کړي وودغه خونعمت نه بلکه عذاب دی(١) ابن کثيروايي چې معناداچې هغه احسان اوزمارورنه دي کړي دغه دهغه عذاب اوبدي په پرتله چې گردتېردبني اسرائيلوته دي رسولی اودوی دي نوکران اومرييونه کړي ووهيڅ هم نه دی آيايوه تن ته ستااحسان رسول پدې ارزي چې گردقوم ته يې ربړونه اوتکليفونه رسوې؟(٢) طبري وايي معناداده آيا ته پرمااحسان باروې ددې چې بني اسرائيل دي مريونه اوچوپړيان کړي وو؟(٣) ﴿قَالَ فِرۡعَوۡنُ وَمَا رَبُّ ٱلۡعَٰلَمِينَ﴾ اوويل فرعون موسی ته اوڅه شېزدی رب دعالميانو؟) فرعون په غرور اوتکبرسره وويل چې هغه څوک دی؟چې ته درب العلمين گمان وربانددي کوې آياهلته له ماپرته بل الله هم شته؟ ځکه هغه د پيداکونکي الله ذات له شتون څخه انکارکاوواوخپل قوم ته به يې ويل: ﴿مَا عَلِمۡتُ لَكُم مِّنۡ إِلَٰهٍ غَيۡرِي﴾ ﴿قَالَ رَبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ وَمَا بَيۡنَهُمَآ﴾ وويل( موسی فرعون ته) چې رب العالمين رب دآسمانونواودځمکي اودهغو گردوشيانودی چې په مينځ ددغودواړوکي دی ( که بحرونه اوسيندونه ياصحراوي اوډاگونه يأوني اوغرونه ، يانباتات اومېوې دي ، يانورعجيبه مخلوقات دټولوپيداکونکی او ورکوونکی په هغوی کي متصرف الله رب العالمين دی ﴿إِن كُنتُم مُّوقِنِينَ﴾ که چېري بی تاسي يقين کونکي ؟ (نو دغه څرگند واقعيت دی) ﴿قَالَ لِمَنۡ حَوۡلَهُۥٓ أَلَا تَسۡتَمِعُونَ﴾ وويل(فرعون) بياهغو(مشرانو )ته چې له ده چارپېروو (په ملنډواواستهزآء سره) چې آيانه اوری تاسي؟ (دده خواب تاسي تعجب نکوی زه له ده څخه دالله له حقيقت نه پوښتنه کوم اودی يې په صفاتوځواب راکوي) نوموسی عليه السلام په ځواب کي تفصيل راووړاودليل يې ورزيات کړچې: ﴿قَالَ رَبُّكُمۡ وَرَبُّ ءَابَآئِكُمُ ٱلۡأَوَّلِينَ﴾ وويل (بياموسی فرعون ته چې رب العلمين ) رب ستاسي دی اورب دپلرونودتاسي دی چې ړومبي وو) يعني رب العلمين ستاسوپيداکونکی او ستاسودپلرونوچې پخواووپيداکونکی دی ستاسووجود د قادرمتعال ذات په وجوددليل دی دلته يې له عام تعريف اوپېژندني څخه خاص تعريف ته مخه کړه ځکه دځان پېژندل دآفاقوترپېژندنه نژدې دی اوپه پوهېدلوکي داپېژندنه خورارڼه اوروښانه ده. ﴿وَفِيٓ أَنفُسِكُمۡۚ أَفَلَا تُبۡصِرُونَ﴾ نودلته فرعون ته قهرورغی اوموسی عليه السلام يې په لېونتوب تورن کړ وې ويل: ﴿قَالَ إِنَّ رَسُولَكُمُ ٱلَّذِيٓ أُرۡسِلَ إِلَيۡكُمۡ لَمَجۡنُونٞ﴾ (وويل (فرعون) ببشکه دغه رسول ستاسي چې تاسوته لېږلی شوی دی خامخالېونی دی)په استهزآء اوملنډوېې رسول وباله اوهمداسي يې داستازيتوب نسبت دوی ته وکړځکه يې ځان ځني ويوست چې په نسبت يې شرم کاوو اودغه يې په دې اړوندوويل چې زه يوڅه ورته وايم دی بل څه ځواب راکوي موسی عليه السلام يې دملنډوپرواونکړه

---

(١) داهغه معناده چې مقاتل کړي ده.
(٢) مختصرابن کثير٢ / ٢٤٥
(٣) الطبري١٩ / ٤٣

اوپه دریم تعریف یې چې تردویم ډېرواضح اوڅرګند وو وستایو ﴿ قَالَ رَبُّ ٱلۡمَشۡرِقِ وَٱلۡمَغۡرِبِ وَمَا بَيۡنَهُمَآۖ إِن كُنتُمۡ تَعۡقِلُونَ ﴾ وویل( بیا موسی فرعون ته چې رب العالمین) رب د مشرق او(رب د ) مغرب او(رب د ) هغو(ټولو ) شیانو دی چې په مینځ د دغو کې دی که چېرې یی تاسې چې عقل کولای شی ) یعني الله هغه ذات دی چې لمرله ختیز څخه راخېژوي اوپه لوېدیزېې پټوي داهغه څه دي چې هوښیار اولېونی یې هره ورځ ویني نو ځکه یې وفرمایل: ﴿إِن كُنتُمۡ تَعۡقِلُونَ ﴾ که چیرې یاست تاسې چې عقل چلوی ،یعني که تاسوعقل درلودلای نوبه پدې پوهېدلي وای چې پدې باندي پرته له الله جل جلاله بل څوک قادرنه دی داهسې دلیل دی چې دباطل ملاماتوي لکه چې ابراهیم علیه السلام نمرود ته وویل: ﴿ قَالَ إِبۡرَٰهِـۧمُ فَإِنَّ ٱللَّهَ يَأۡتِي بِٱلشَّمۡسِ مِنَ ٱلۡمَشۡرِقِ فَأۡتِ بِهَا مِنَ ٱلۡمَغۡرِبِ فَبُهِتَ ٱلَّذِي كَفَرَۗ ﴾ اوکله چې دفرعون دلیل نیمه خوانیمګړی شونو یې لوبي ته مخه کړه اودنیولو ، وهلو ټکولو منطق یې خپل کړ چې ﴿ قَالَ لَئِنِ ٱتَّخَذۡتَ إِلَٰهًا غَيۡرِي لَأَجۡعَلَنَّكَ مِنَ ٱلۡمَسۡجُونِينَ ﴾ وویل (فرعون موسی ته) قسم دی که له ما پرته بل خدای دي ونیونو خامخا وبه ګرزومه تازه له بندیانو څخه ؛ مفسرین کرام وایې چې دفرعون ځېلخانه داسې وېرونکې وه چې بندي به یې دځمکې په تل سمڅه کې یوازي وتاړو چې نه به یې څوک لیدل اونه به یې دچا آواز اورېدل ترڅو به ومړ ځکه یې ونه ویل چې (لأسجننک ) بلکه ویې ویل چې ﴿ لَأَجۡعَلَنَّكَ مِنَ ٱلۡمَسۡجُونِينَ ﴾ ځکه ځېلخانه یې تروژلواوقتل سخته وه . په التسهیل نومي کتاب کې وایې کله چې فرعون دالله په هکله ځپله ناپوهي څرګنده کړه اوویې ویل: ﴿ وَمَا رَبُّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴾ نوموسی علیه السلام ځواب ورکړچې ﴿ قَالَ رَبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ ﴾ هغه وویل: ﴿ أَلَا تَسۡتَمِعُونَ ﴾ تعجب اواستهزآء یې کوله موسی علیه السلام ددلیل په وړاندي کولو ورته وویل: ﴿ رَبُّكُمۡ وَرَبُّ ءَابَآئِكُمُ ٱلۡأَوَّلِينَ ﴾ ځکه دانسان خپل وجوداود پلرونوترهر څه هوښیارانو ته نژدې اوښکاره دی چې په خالق باندي دلیل کېدای شي اوکله چې دغه دلیل ورته وځلېدوفرعون ځنې مخ واړاوو اوموسی علیه السلام یې په لېونتوب تورن کړنه یوازي تورن بلکه ملنډې اوورېشخند یې هم ورباندي وتپل چې ویې ویل ﴿ إِنَّ رَسُولَكُمُ ٱلَّذِيٓ أُرۡسِلَ إِلَيۡكُمۡ لَمَجۡنُونٞ ﴾ نوموسی علیه السلام هم ددلیل په زیاتوالي کې ورته وویل ﴿ رَبُّ ٱلۡمَشۡرِقِ وَٱلۡمَغۡرِبِ ﴾ ځکه دلمر راختل اوډوبېدل دوې داسې پېښې دي چې هیڅوک ترې انکارنشي کولای اونه یې څوک پخپله له الله پرته دتوان لرلودعوی کولای شي اوکله چې په فرعون دلیل ودرېدونوبې دلوبې اونیولولاره غوره کړه اوپه بندي کولوبې هغه ووېراوو دلته موسی علیه السلام په معجزه راوړلوباندي دلیل جوړوي اوپه لطف اومهرباني یې ددې لپاره یادوي چې ګوندي ایمان راوړي وایې: ﴿ قَالَ أَوَلَوۡ جِئۡتُكَ بِشَيۡءٖ مُّبِينٖ ﴾ وویل (موسی فرعون ته) آیا(مابندي کوې ) که څه هم زه تاته یوښکاره شی دلیل راوړم؟ (چې زما دریښتنولي شاهدي وایې ) ﴿ قَالَ فَأۡتِ بِهِۦٓ إِن كُنتَ مِنَ ٱلصَّٰدِقِينَ ﴾ وویل( فرعون موسی ته) پس راوړه هغه

(ښکاره دليل چي ته وايې ) که يې ته له رښتياويونکو(پخپله دعوی کي) ﴿ فَأَلْقَىٰ عَصَاهُ فَإِذَا هِىَ ثُعْبَانٌ مُّبِينٌ ﴾ پس وغورځوله (موسی) عصا خپله چي نابيره وه هغه په دې وخت کي يوښامارښکاره(چي ستروجوداوو ازه خوله يې لرله) ﴿ وَنَزَعَ يَدَهُۥ فَإِذَا هِىَ بَيْضَآءُ لِلنَّـٰظِرِينَ ﴾ اوراوه يې ايست لاس خپل (له ډنډ ګرېوانه) پس ناڅاپه دغه لاس ووتک سپين کتونکيو ته (دلمرپه شان ځلېدوچي سترګي يې په لګېدلونه توانېدې اوافق يې روښانه کاوو) ﴿ قَالَ لِلْمَلَإِ حَوْلَهُۥٓ إِنَّ هَـٰذَا لَسَـٰحِرٌ عَلِيمٌ ﴾ نوويل (فرعون) دقوم اشرافوته چي چاپېره له ده وو بېشکه خامخادغه کوډګردی ډېرپوه (په کوډوکي دلته يې وغوښتل دخپلواشرافواوقوم په سترګوکي خاوري ورودوروي نوبې موسی عليه السلام ته کوډګر ووايوترڅوچي معجزه يې په قوم باندي اغېزمنه نشي ﴿ يُرِيدُ أَن يُخْرِجَكُم مِّنْ أَرْضِكُم بِسِحْرِهِۦ ﴾ اراده لري دی چي وباسي تاسي له ځمکي ستاسي په کوډوخپلو ﴿ فَمَاذَا تَأْمُرُونَ ﴾ پس تاسي څه حکم (مشوره) ماته راکوی ؟ !(دده په هکله چي ورسره څه وکړم؟؛ کله چي فرعون دغه کوټلي معجزه اوبرهان وليدنوپخپل تېرووېرېدوچي هسي نه پلوي يې پيل کړي نوبې ددوی مشورې غوښتني ته غاړه کښېښوده وروسته له هغه چي دغرور او لويي په نيلي سپور وواوپه استبداداوخپلمخي به يې هره چاره غوڅوله ﴿ قَالُوٓا۟ أَرْجِهْ وَأَخَاهُ ﴾ وويل: (مشرانو) تاخيرورکړه (کازد) موسی او ورورده ته ﴿ وَٱبْعَثْ فِى ٱلْمَدَآئِنِ حَـٰشِرِينَ ﴾ اوولېږه په ښارونوکي ماسلان(محصلان را ټولونکی) ﴿ يَأْتُوكَ بِكُلِّ سَحَّارٍ عَلِيمٍ ﴾ چي راولي تاته هرښه کوډګرښه پوه هوښيار دکوډوپه هکله ؛ ابن کثيروايې دغه دالله تسخيروو ترڅوخلګ په يوډګرکي سره راغونډکي اودالله تعالی دقدرت نښانې اودلائل ورته په رڼاورځ اوروڼ ميدان روښانه کړي ([1]) ﴿ فَجُمِعَ ٱلسَّحَرَةُ لِمِيقَـٰتِ يَوْمٍ مَّعْلُومٍ ﴾ پس راټول کړل شول ساحران وعدې دورځي معلومي ته (چي دجشن ورځ وه هغه چي موسی عليه السلام معلومه کړې وه ترڅوچي حق څرګنداوباطل دخلګوپه وړاندي له مينځه لاړشي لکه چي الله فرمايي: ﴿ قَالَ مَوْعِدُكُمْ يَوْمُ ٱلزِّينَةِ وَأَن يُحْشَرَ ٱلنَّاسُ ضُحًى ﴾ (طه ۵۹ ) ﴿ وَقِيلَ لِلنَّاسِ هَلْ أَنتُم مُّجْتَمِعُونَ لَعَلَّنَا نَتَّبِعُ ٱلسَّحَرَةَ إِن كَانُوا۟ هُمُ ٱلْغَـٰلِبِينَ ﴾ اوويل شول پاره دخلګوچي آيايې تاسي يوځای کېدونکي (دغې معلومي ورځي ته بلکه ګردسره راټول شی!) ښايي چي موږمتابعت وکړو(ددين د ) ساحرانو که چېري دوی (پرموسی) غالبان (بريالي) شول ﴿ فَلَمَّا جَآءَ ٱلسَّحَرَةُ قَالُوا۟ لِفِرْعَوْنَ أَئِنَّ لَنَا لَأَجْرًا إِن كُنَّا نَحْنُ ٱلْغَـٰلِبِينَ ﴾ پس کله چي راغلل کوډګران وويل دوی فرعون ته آيا په تحقيق موږته به څه مزدوري وي که موږشو(پرې) بريالیان؟ !) (آياموږته به څه مال دولت اوانعام راکول شي ؟) ﴿ قَالَ نَعَمْ وَإِنَّكُمْ إِذًا لَّمِنَ ٱلْمُقَرَّبِينَ ﴾ وويل(فرعون کوډګرانوته) هوتاسي ته اجرشته اوسربېره پردې) بېشکه چي تاسي په دغه وخت کي خامخا(زما ) له نژدېکانواومستشارانو څخه ياست ﴿ قَالَ لَهُم

---

([1]) ابن کثير۲ / ۲۴۲المختصر

ثُمَّ ﴿ أَلْقُوا۟ مَآ أَنتُم مُّلْقُونَ ﴾ (وويل دغو (کودګرانو) ته موسی وغورځوئ تاسي هرهغه څېزچي تاسي (يې) غورځونکي يې) په کلام کي حذف ايجازراغلی چي دکلام سياق ورباندي دلالت کوي تقديريې داچي دوی موسی عليه السلام ته وويل چي يابه يې ته خپل څېزغورځوې اويابې موږغورځوولکه چي په الاعراف کي يې يادونه شوي نوبياموسی عليه السلام ورته وويل چي: ﴿ أَلْقُوا۟ مَآ أَنتُم مُّلْقُونَ ﴾ يعني څه چي غواړی د هغه غورځول پيل کړئ زه درڅخه هډونه وېرېږم دغه يې پدې وويل چي دالله په نصرت اومرسته يې ټينګ باوردرلودل اودحق داظهار لپاره يې وسيله ګرزوله ﴿ فَأَلْقَوْا۟ حِبَالَهُمْ وَعِصِيَّهُمْ وَقَالُوا۟ بِعِزَّةِ فِرْعَوْنَ إِنَّا لَنَحْنُ ٱلْغَٰلِبُونَ ﴾ پس وغورځول (کودګرانو) پړي خپل اوهمساګاني خپلي اوويې ويل په عزت (عظمت اوسلطان) دفرعون بېشکه موږخامخاغالبان يو ﴿ فَأَلْقَىٰ مُوسَىٰ عَصَاهُ فَإِذَا هِىَ تَلْقَفُ مَا يَأْفِكُونَ ﴾ (بيا وغورځوله موسی همساخپله پس ناڅاپه هغې ترستوني تېرکړل هغه (ماران) چي دوی په دروغو جوړکړي وو) يعني موسی عليه السلام خپله لکړه وغورځوله اوسترښامارشواوهغه پړي اورسۍ يې ښوی تېري کړلې هغه چي دوی دخلګوپه نظرماران جوړکړي ووچي سره ښوربدل اوښتل رااوښتل اوداچي (افک) يې وستايل مبالغه ده ﴿ فَأُلْقِىَ ٱلسَّحَرَةُ سَٰجِدِينَ ﴾ پس وغورځول شول پرمخي ساحران سجده کونکي (رب العالمين ته) کله چي يې دغه هيښونکی دليل اوڅرګنده معجزه وليدله .

﴿ قَالُوٓا۟ ءَامَنَّا بِرَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ رَبِّ مُوسَىٰ وَهَٰرُونَ ﴾ (وويل (ساحرانو) ايمان راوړی دی موږپه رب دعالميانوپالونکي دموسی اوهارون (عليهما السلام) يعني دوی دسجدې سره داسي وويل چي موږپه زورور الله ايمان راوړی هغه چي موسی اوهارون موږهغه ته بولي؛ طبري وايې : کله چي کودګرانوته داڅرګنده شوه چي کوم څه چي موسی راوړي هغه حق معجزه ده کوډي نه دي اوپرهغه باندي پرته له الله هغه چي ځمکي اوآسمانونه يې پيداکړي بل څوک وس نلري نوپرمخي په سجده پرېوتل اوداسي يې وويل موږپه هغه رب العالمين ايمان راوړی کوم چي موسی اوهارون موږهغه عبادت کولوته بولي دفرعون اودهغه دمشرانو دلاري متابعت نه کوو(۱) ﴿ قَالَ ءَامَنتُمْ لَهُۥ قَبْلَ أَنْ ءَاذَنَ لَكُمْ ﴾ وويل دفرعون ساحرانوته) آيا ايمان راوړتاسي په دغه (موسی) پخواله هغه چي زه اجازه درکړم تاسي ته ؟) يعني مخکښي تردې چي له ماڅخه اجازه واخلی تاسوايمان راووړ؟ ﴿ إِنَّهُۥ لَكَبِيرُكُمُ ٱلَّذِى عَلَّمَكُمُ ٱلسِّحْرَ ﴾ بېشکه دغه موسی خامخاستاسي داسي مشردی چي تاسي ته يې سحرښودلی دی ؛ تاسي ورسره موافقت کړی چي دی بريالی شي . فرعون په دغه وينابانديي خپل قوم غولاوو چي هسي نه دوی داسي وانګېري چي کودګرانوپه (شعوري) پوهېدلي توګه ايمان راوړی دی چي ورته حق څرګندشو. ابن کثيروايې : چي دا هغسي مکابره ده چي هرڅوک يې په باطل والي پوهېږي ځکه دوی خوله دې ورځي پخواهيڅکله هم ورسره ليدلي نه وونوڅرنګه به ددوی دکوډواستاذوي چي دوی ته يې دغه کار

(۱) الطبري ۱۹/ ۴۲

ورښودلی وي؟ ([1]) بيا يې هغوته اخطار وکړچې ﴿ فَلَسَوْفَ تَعْلَمُونَ ﴾ پس ژر خامخا به وپوهېږئ (چې زه ستاسي دايمان په راوړلو تاسي ته څرنګه عذاب دروينم) ﴿ لَأُقَطِّعَنَّ أَيْدِيَكُمْ وَأَرْجُلَكُم مِّنْ خِلَٰفٍ ﴾ خامخا زه به ستاسي لاسونه پرې کړم اوپښې ستاسي سره مخالفي دښي لاس اوکيڼه پښه يادډې برعکس ﴿ وَلَأُصَلِّبَنَّكُمْ أَجْمَعِينَ ﴾ اوخامخا به تاسي ټول ځوړند کړم دونو په ښاخونو ترمرګه ) تاسي ټول ﴿ قَالُوا۟ لَا ضَيْرَ ۖ إِنَّآ إِلَىٰ رَبِّنَا مُنقَلِبُونَ ﴾ ووېل (کوم ګرو) نشته ضررمونږ ته پدې کې چې بېشکه مونږ خپل رب ته بيرته ورتلونکي يو (دهغه څخه دغفران هيله من يو) ﴿ إِنَّا نَطْمَعُ أَن يَغْفِرَ لَنَا رَبُّنَا خَطَٰيَٰنَآ ﴾ (اوبل څه چې) بېشکه مونږ هيله لرودې چې وبښي مونږ ته رب زمونږ ګناهونه زمونږ (چې ترايمان پخوامو کړي دي اوعذاب رانکړي) ﴿ أَن كُنَّآ أَوَّلَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ له جهته ددې چې مونږ رومبی ايمان راوړونکي يو (په دغو حاضرينوکي).

**بلاغت:**

پدې آيتونو کې دبديع اوبلاغت دغه ښکلاوي شته چې لنډ بزيې په لاندې ډول دی:

۱- لطيفه کنايه چې فرمايي ﴿ فَظَلَّتْ أَعْنَٰقُهُمْ لَهَا خَٰضِعِينَ ﴾ دلته يې هغه ذلت اوخواري چې وروسته له عزت اوکبرياور پېښېږي په خضوع سره کنايه راوړه.

۲- پدې کلام کې چې الله تعالی فرمايي: ﴿ فَسَيَأْتِيهِمْ أَنۢبَٰٓؤُا۟ مَا كَانُوا۟ بِهِۦ يَسْتَهْزِءُونَ ﴾ وعيداوتهديد شته

۳- توبيخ چې پدې کلام کې نغښتی دی ﴿ أَوَلَمْ يَرَوْا۟ إِلَى ٱلْأَرْضِ ﴾ استفهام دلته توبيخي دی چې ولي دعبرت په کتلوورته نه ګوري؟.

۴- لطيفه مقابله چې د ﴿ وَيَضِيقُ صَدْرِى وَلَا يَنطَلِقُ لِسَانِى ﴾ ترمينځ راغلي ده.

۵- اشتقاقي جناس لکه چې فرمايي ﴿ رَسُولُ ...فَأَرْسِلْ ﴾

۶- ناقص جناس لکه چې د ﴿ وَفَعَلْتَ فَعْلَتَكَ ﴾ ترمينځ شتون لري ددواړو کلماتوتوري سره يوشان خو په شکل کې سره بېل دي . نودغه ته غيرتام جناس ويل کېږي.

۷- ايجاز بالحذف چې پدې کلام کې راځي ﴿ قَالَ أَلَمْ نُرَبِّكَ فِينَا وَلِيدًا ﴾ په دغه ځای چې پرحذف باندې سياق دلالت کوي هغه داچې دوی دواړه فرعون ته راغلل اوهمدغه يې ورته وويل نوفرعون موسی ته په ځواب کې پورتنی خبره وکړه چې ﴿ أَلَمْ نُرَبِّكَ ﴾ همدارنګه پدې کلام کې چې: ﴿ فَأَرْسِلْ إِلَىٰ هَٰرُونَ ﴾ زمخشري وايي په اصل کې داچې (أرسل جبريل الى هارون وأجعله نبيا) يعني جبريل هارون ته

---

([1]) الكشاف ۳ / ۲۳۸

واستوه اوهغه نبي وته که زمامله ترور باندي وکړه اومې مي ور باندي غښتلی کړه خودغه تفصیل یې خوراپه ښه ډول لنډ او رانغاړلی دی(١)

٨- د تعجب صيغه چي فرمايي: ﴿أَلَا تَسْتَمِعُونَ﴾.

٩- تاكيد په (إنّ) او(لام) سره څكه چي اورېدونكي شكمن اومترددي نوپه دې هكله وايي: ﴿إِنَّ رَسُولَكُمُ ٱلَّذِىٓ أُرْسِلَ إِلَيْكُمْ لَمَجْنُونٌ﴾ اوددې په ډول د كوډگرانوهغه وينا هم ده چي د مناظرې په پيل كي يې كړي ده ﴿إِنَّا لَنَحْنُ ٱلْغَٰلِبُونَ﴾ اودغه د علم بيان له څانگړتياوو څخه دی.

١٠- طباق چي د ﴿ٱلْمَشْرِقِ وَٱلْمَغْرِبِ﴾ ترمينځ دی اوبيا د فواصلو موافقت چي خوندوره سجع جوړوي دا گرد د بديع او بيان ښكلاوي دي.

لطيفه:

كه څوك پوښتنه كوي چي څرنگه موسی عليه السلام د مناظرې په پيل كي فرعون اودهغه تبرته وويل: چي ﴿إِن كُنتُم مُّوقِنِينَ﴾ اوبيايې وفرمايل چي ﴿إِن كُنتُمْ تَعْقِلُونَ﴾ خواب دا چي په لومړي ځل يې ورسره نرمښت وكړچي گوندي وي دوی ايمان راوړونكي خوكله چي يې د دوی سرغړونه او عناد وليد نوورته يې توبيخ وكړچي ﴿إِن كُنتُمْ تَعْقِلُونَ﴾ ورته وويل اودغه خبره يې د فرعون ددې وينا په وړاندي وكړه چي هغه د مغالطې په توگه قوم ته په خطاب كي وويل: چي ﴿إِنَّ رَسُولَكُمُ ٱلَّذِىٓ أُرْسِلَ إِلَيْكُمْ لَمَجْنُونٌ﴾ نوهله موسی عليه السلام د حكمت لاره غوره كړه.

***

الله تعالى فرمايي:

﴿ ۞ وَأَوْحَيْنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰٓ أَنْ أَسْرِ بِعِبَادِىٓ إِنَّكُم مُّتَّبَعُونَ ﴿٥٢﴾ فَأَرْسَلَ فِرْعَوْنُ فِى ٱلْمَدَآئِنِ حَٰشِرِينَ ﴿٥٣﴾ إِنَّ هَٰٓؤُلَآءِ لَشِرْذِمَةٌ قَلِيلُونَ ﴿٥٤﴾ وَإِنَّهُمْ لَنَا لَغَآئِظُونَ ﴿٥٥﴾ وَإِنَّا لَجَمِيعٌ حَٰذِرُونَ ﴿٥٦﴾ فَأَخْرَجْنَٰهُم مِّن جَنَّٰتٍ وَعُيُونٍ ﴿٥٧﴾ وَكُنُوزٍ وَمَقَامٍ كَرِيمٍ ﴿٥٨﴾ كَذَٰلِكَ وَأَوْرَثْنَٰهَا بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ﴿٥٩﴾ فَأَتْبَعُوهُم مُّشْرِقِينَ ﴿٦٠﴾ فَلَمَّا تَرَٰٓءَا ٱلْجَمْعَانِ قَالَ أَصْحَٰبُ مُوسَىٰٓ إِنَّا لَمُدْرَكُونَ ﴿٦١﴾ قَالَ كَلَّآ ۖ إِنَّ مَعِىَ رَبِّى سَيَهْدِينِ ﴿٦٢﴾ فَأَوْحَيْنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰٓ أَنِ ٱضْرِب بِّعَصَاكَ ٱلْبَحْرَ ۖ فَٱنفَلَقَ فَكَانَ كُلُّ فِرْقٍ كَٱلطَّوْدِ ٱلْعَظِيمِ ﴿٦٣﴾ وَأَزْلَفْنَا ثَمَّ ٱلْءَاخَرِينَ ﴿٦٤﴾ وَأَنجَيْنَا مُوسَىٰ وَمَن مَّعَهُۥٓ أَجْمَعِينَ ﴿٦٥﴾ ثُمَّ أَغْرَقْنَا ٱلْءَاخَرِينَ ﴿٦٦﴾ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَةً ۖ وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ ﴿٦٧﴾ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلرَّحِيمُ ﴿٦٨﴾ وَٱتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ إِبْرَٰهِيمَ ﴿٦٩﴾ إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ وَقَوْمِهِۦ مَا تَعْبُدُونَ ﴿٧٠﴾ قَالُوا۟ نَعْبُدُ أَصْنَامًا فَنَظَلُّ لَهَا عَٰكِفِينَ ﴿٧١﴾ قَالَ هَلْ يَسْمَعُونَكُمْ إِذْ تَدْعُونَ ﴿٧٢﴾ أَوْ يَنفَعُونَكُمْ أَوْ يَضُرُّونَ ﴿٧٣﴾ قَالُوا۟ بَلْ وَجَدْنَآ ءَابَآءَنَا كَذَٰلِكَ يَفْعَلُونَ ﴿٧٤﴾ قَالَ أَفَرَءَيْتُم مَّا كُنتُمْ تَعْبُدُونَ ﴿٧٥﴾ أَنتُمْ وَءَابَآؤُكُمُ ٱلْأَقْدَمُونَ ﴿٧٦﴾

(١) الكشاف ٣ / ٢٣٨

فَإِنَّهُمْ عَدُوٌّ لِّيٓ إِلَّا رَبَّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٧٧﴾ ٱلَّذِى خَلَقَنِى فَهُوَ يَهْدِينِ ﴿٧٨﴾ وَٱلَّذِى هُوَ يُطْعِمُنِى وَيَسْقِينِ ﴿٧٩﴾ وَإِذَا مَرِضْتُ فَهُوَ يَشْفِينِ ﴿٨٠﴾ وَٱلَّذِى يُمِيتُنِى ثُمَّ يُحْيِينِ ﴿٨١﴾ وَٱلَّذِىٓ أَطْمَعُ أَن يَغْفِرَ لِى خَطِيٓـَٔتِى يَوْمَ ٱلدِّينِ ﴿٨٢﴾ رَبِّ هَبْ لِى حُكْمًا وَأَلْحِقْنِى بِٱلصَّٰلِحِينَ ﴿٨٣﴾ وَٱجْعَل لِّى لِسَانَ صِدْقٍ فِى ٱلْءَاخِرِينَ ﴿٨٤﴾ وَٱجْعَلْنِى مِن وَرَثَةِ جَنَّةِ ٱلنَّعِيمِ ﴿٨٥﴾ وَٱغْفِرْ لِأَبِىٓ إِنَّهُۥ كَانَ مِنَ ٱلضَّآلِّينَ ﴿٨٦﴾ وَلَا تُخْزِنِى يَوْمَ يُبْعَثُونَ ﴿٨٧﴾ يَوْمَ لَا يَنفَعُ مَالٌ وَلَا بَنُونَ ﴿٨٨﴾ إِلَّا مَنْ أَتَى ٱللَّهَ بِقَلْبٍ سَلِيمٍ ﴿٨٩﴾ وَأُزْلِفَتِ ٱلْجَنَّةُ لِلْمُتَّقِينَ ﴿٩٠﴾ وَبُرِّزَتِ ٱلْجَحِيمُ لِلْغَاوِينَ ﴿٩١﴾ وَقِيلَ لَهُمْ أَيْنَ مَا كُنتُمْ تَعْبُدُونَ ﴿٩٢﴾ مِن دُونِ ٱللَّهِ هَلْ يَنصُرُونَكُمْ أَوْ يَنتَصِرُونَ ﴿٩٣﴾ فَكُبْكِبُوا۟ فِيهَا هُمْ وَٱلْغَاوُۥنَ ﴿٩٤﴾ وَجُنُودُ إِبْلِيسَ أَجْمَعُونَ ﴿٩٥﴾ قَالُوا۟ وَهُمْ فِيهَا يَخْتَصِمُونَ ﴿٩٦﴾ تَٱللَّهِ إِن كُنَّا لَفِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴿٩٧﴾ إِذْ نُسَوِّيكُم بِرَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٩٨﴾ وَمَآ أَضَلَّنَآ إِلَّا ٱلْمُجْرِمُونَ ﴿٩٩﴾ فَمَا لَنَا مِن شَٰفِعِينَ ﴿١٠٠﴾ وَلَا صَدِيقٍ حَمِيمٍ ﴿١٠١﴾ فَلَوْ أَنَّ لَنَا كَرَّةً فَنَكُونَ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴿١٠٢﴾ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَةً وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ ﴿١٠٣﴾ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلرَّحِيمُ ﴿١٠٤﴾ الشعراء: ٥٢ ـ ١٠٤

## مناسبت اوتړاو:

الله تبارک وتعالى پدې سورت کي اوه کيسې يادي کړي چي لومړۍ يې دموسى اوهارون دوهمه دابراهيم ، دريمه دنوح ، څلورمه دهود ، پنځمه دصالح ، شپږمه دلوط ، اوومه دشعيب عليهم صلوات الله وسلامه اودغه ګردي کيسې درسول الله دډاډيني اوتسليت لپاره دي چي هغه به له مشرکانوڅخه ډول ډول کړاوونه اومشکلات ليدل همداسي آيتونه لاتراوسه پوري دموسى عليه السلام په هکله غږېږي (اوراتلونکي کړۍ دپخوانۍ لړۍ ده).

## لغتونه:

(أسرى) دشپې تګ ته ويل کېږي څوک چي دورځي تګ کوي (اسرى) نه بلل کېږي (شرذمة) سپکه سپانده ټولۍ اوجمع يې (شراذم) دي جوهري وايې (شرذمة) له خلګوڅخه يوه ټولۍ اوله شي څخه يوه ټوټه بلل کېږي ([1]) (ازلفنا) موږنژدې کړ،له همدې څخه دي چي الله فرمايې (وازلفت الجنة للمتقين) (فكبكبوا) (كبكب الشئ) ددې معناداچي يوپه بل مخ اړولى شوي ؛ ابن عطيه وايې چي دغه د(كب) مضاعف دى اوجمهورهم دغسي وايې چي ددې مثال لکه (صر) او(صرصر) داسي دى زمخشري وايې چي (كبكبة) له (كب) څخه تکراردى څکه نولفظي تکرارېې په معنوي باندي دلالت کوي لکه چي په دوزخ کي وارپه وارپرمخ غورځولى کېږي څوېې تل ته ورسېږي ([2]) (حميم) ګران دوست هغه چي ستامهم هغه ته مهم وي (كرة) پلا،پيره اوبل ځل راګرزېدل.

---

([1]) التفسيرالكبير ٢٤ / ١٤٠

([2]) الكشاف ٣ / ٢٥٣

تفسير:

﴿ وَأَوۡحَيۡنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰٓ أَنۡ أَسۡرِ بِعِبَادِيٓ ﴾ اوحکم ولېږ و موږ موسی ته داچي دشپې بوزه زمابندګان د بحر لورته) څکه يې بندګان ونومول چي په موسی عليه السلام يې ايمان راوړی وو[١]) ﴿ إِنَّكُم مُّتَّبَعُونَ ﴾ بېشکه چي په تاسي پسي به راشي (فرعون سره له لښکروچي بيرته مومصرته راستانه کړي اوومو وژني) ﴿ فَأَرۡسَلَ فِرۡعَوۡنُ فِي ٱلۡمَدَآئِنِ حَٰشِرِينَ ﴾ پس ولېږل فرعون په ښارونوکي ماسلان(محصلان) راټولونکي (اوحکم يې وکړچي له ګردوښارونولښکري راغوندي کړي دوی ته يې وويل: ﴿ إِنَّ هَٰٓؤُلَآءِ لَشِرۡذِمَةٞ قَلِيلُونَ ﴾ (بېشکه دغه (بني اسرائيل) يوه لږکۍ ډله ده ) طبري وايې چي بني اسرائيل شپږلکه اويازره کسان وو[٢]) خوده لږکۍ وګڼله څکه دده ترلښکروخورالږوو ﴿ وَإِنَّهُمۡ لَنَا لَغَآئِظُونَ ﴾ اوبېشکه چي دغوموږخورين کړي يو(داسي کارونه کوي چي موږتنګوي اوغصه راولي ) ﴿ وَإِنَّا لَجَمِيعٌ حَٰذِرُونَ ﴾ اوبېشکه موږخامخا ټول (مجرب، محتاط اوله دوی څخه ) په وېره کي يو) يعني موږهغه څوک يوچي زموږدود دستور بيداري اوپه امورو کي احتياط کول دي. زمخشري وايې چي داهغه عذرونه دي چي فرعون يې خپل ټبرته وايې ترڅوهغه ګمان ورباندي ونکړي چي شوکت اوسلطان يې مات شوی دی (٣)

الله پاک فرمايي: ﴿ فَأَخۡرَجۡنَٰهُم مِّن جَنَّٰتٖ وَعُيُونٖ ﴾ پس وايستل موږدغه (فرعونيان) اوقوم يې ) له باغونواوله چينو(روانو ) ﴿ وَكُنُوزٖ وَمَقَامٖ كَرِيمٖ ﴾ (اوله خزانو اوښو عمده ځايونونه) يعني دوی موله هغومالونوچي دوی خزانه کړي ووسره اوسپين زريې خوندي کړي وواوله ښايسته دنګومانيواو خوندوروبنګلوموراوايستل ﴿ كَذَٰلِكَ وَأَوۡرَثۡنَٰهَا بَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ ﴾ همداسي وکړه (موږ له قبطيانوسره ) اوپه ميراث مووركړل دغه (شيان) بني اسرائيلوته (وروسته له ډوبېدلودفرعون اولښکرويې) ﴿ فَأَتۡبَعُوهُم مُّشۡرِقِينَ ﴾ پس ورووسته (له سبطيانو ) ولاړل دغه (قبطيان او ورسېدل ) هغوی ته په لمرختوکي ﴿ فَلَمَّا تَرَٰٓءَا ٱلۡجَمۡعَانِ ﴾ پس کله چي دغودواړولښکروسره وليدل مراداله دغودواړوډلوڅخه دفرعون او موسی ډله ده ﴿ قَالَ أَصۡحَٰبُ مُوسَىٰٓ إِنَّا لَمُدۡرَكُونَ ﴾ (وويل ملګرودموسی چي بېشکه خامخاموږموندل شوي(نيول شوي يو ) يعني موږونيول شوفرعون اولښکري يې پسي راورسېدې اوس به مو ووژني دايې هلته وويل چي کله يې فرعون اولښکري وليدې چي ورته رانژدې شول نوفرعون يې له شاوبحريې دمخه ووڅکه بدګمانه شول ﴿ قَالَ كَلَّآۖ ﴾ وويل موسی (سبطيانوته) چي داسي نه ده هسي مه واياست چي ونيول شوولـه سره به فرعون تاسوته ونه رسي ﴿ إِنَّ مَعِيَ رَبِّي سَيَهۡدِينِ ﴾ بېشکه له ماسره زمارب دی (په ژغورنه

---

(١) القرطبي ١٣/ ١٠٠
(٢) الطبري ١٩/ ٤٢
(٣) الکشاف ٣ / ٢٤٨

اومد دسره ) ژربه وبښيي ماته (لاره دخلاصون اونجات ) امام رازي وايي دوى يې په دووځېزونوقوي كړل
يوداچي پروردګاريې ملګرى دى اودغه دساتني اوتكفّل ضمانت كوي دوهم داچي ﴿ سَيَهْدِينِ ﴾ ماته به
دژغورنى لاره پرانيزي اوكله چي يې دخلاصون لاره وروښيي اودښمن يې هلاک كړي همدغه وروستنى
برى دى (۱)﴿ فَأَوْحَيْنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰٓ أَنِ ٱضْرِب بِّعَصَاكَ ٱلْبَحْرَ ﴾ پس وحى (حكم) وكړموږموسى ته داسي چي
پخپلي همسابحروو هه ﴿ فَٱنفَلَقَ ﴾ پس وچاوېدوبحر(دوولس توټې) ﴿ فَكَانَ كُلُّ فِرْقٍ كَٱلطَّوْدِ ٱلْعَظِيمِ ﴾
پس شوه هره برخه (يوه جلاټوټه) هسكه اوچته لكه هسک اوږدغر؛ ابن عباس رضى الله عنه وايي چي
دوولس لاري پكي جوړي شوې چي هرټبرته ګوښې لاره وه (۲)﴿ وَأَزْلَفْنَا ثَمَّ ٱلْـَٔاخَرِينَ ﴾ بيارانژدې كړل
موږ دغه ځاى ته هغه نور (فرعونيان چي سيندته راګډشول په بني اسرائيلو پسي يې څغستل ﴿ وَأَنجَيْنَا
مُوسَىٰ وَمَن مَّعَهُۥٓ أَجْمَعِينَ ﴾ اونجات وركړموږ موسى ته اوهغو كسانو مؤمنانو ) ته چي له ده سره ووټولوته
﴿ ثُمَّ أَغْرَقْنَا ٱلْـَٔاخَرِينَ ﴾ بياموږغرق كړل هغه نور (فرعونيان) مفسرين كرام وايي چي كله
بحروچاوديدونوالله دموسى اودهغه دقوم لپاره دوولس وچي لاري پكي پرانستې اوبه لكه غرغوندي
لوړي څپې څپې ودرېدې اوكله چي موسى عليه السلام اوقوم يې پوري وتل اوفرعون اولښكري يې په
بشپړه توګه بحرته رانوتې الله بحرته حكم وكړچي وربانديي راشي هغسي وشول اوټول يومخ ايزه پكي
غرق شول د موسى عليه السلام څني ملګروداسي انګېرله چي فرعون به نه وي هلاک شوى نوهغه ووچي
دبحرڅنډي ته اوبو راوغېژاوو چي ګردخلګ يې ننداره وكړي ﴿ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَـَٔايَةً ﴾ بېشكه په دغه
(غرقېدلود فرعونيانو كي ) خامخادليل (دعبرت اوقدرت زموږ) دى (چي څرنګه الله تعالى خپل اولياء
ژغوري اوخپل دښمنان څپي (هلاكوي) ﴿ وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ ﴾ (اونه ووزياتره ددوى (مؤمنان)
يعني سره له ليدلو كتلو دداسي سترودليلونو زياتره انسانان بياهم ايمان نه راوړي پدې كي درسول الله
صلى الله عليه وسلم لپاره ډاډينه اودكفارو لپاره تهديدپټ دى ﴿ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلرَّحِيمُ ﴾ او
بېشكه خامخا پروردګار ستاخامخاهمدى دى ښه زورور(كسات اخيستونكى له دښمنانو ) ښه رحم والا
( ژغورونكى داولياآوو ) ﴿ وَٱتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ إِبْرَٰهِيمَ ﴾ او ولوله (اى محمده پدغوكفارودمكې) خبر
(كيسه) دابراهيم (هغه چي خوراستره اومهمه ده دغه دابراهيم عليه السلام دكيسي پيل دى (۳) ﴿ إِذْ

(۱) التفسيرالكبير ۲۴ / ۱۳۷
(۲) مختصرابن كثير ۳ / ۲۴۹
(۳) امام رازي رحمه الله وايي چي لومړى دسورت په پيل كي الله دخپل پيغمبرخواشيني دخپل قوم په كفرونودله بيايې دموسى عليه السلام كيسه ورته بيان كړه چي همداسي محنت هغه ته هم رسېدلى وو.وروسې يې دابراهيم عليه السلام كېسه راوړه ترڅومحمدصلى الله عليه وسلم وپوهېږي چي دابراهيم عليه السلام غم اوخواشيني پدې هكله ترده لانوره هم زياته وه خكه ترګردوستره ازموينه دابراهيم عليه السلام وه چي خپل قوم اوپلاريې په اوركي ليدل اونه يې شوكولاى هغوى وژغوري مګرداچي دعاوي ورته وكړي اوتنبيه يې كړي. تفسير كبير ۲۴ / ۱۴۲

لِأَبِيهِ وَقَوْمِهِۦ مَا تَعْبُدُونَ ﴾ کله چي يې خپل پلاراو قوم ته وويل چي دځه شي عبادت کوی؟؛ ددې پوښتنه يې ترې وکړه سره له دې چي پوهېدو هغوی دځه شي عبادت کوي ددې لپاره چي ددوی دعقلونو خام والی ښکاره شي اودليل ورباندي قائم کړي ﴿ قَالُوا۟ نَعْبُدُ أَصْنَامًا فَنَظَلُّ لَهَا عَـٰكِفِينَ ﴾ نوو ويل دوی موږ دبتانو عبادت کوو پس چي همېشه اوسو دوی ته نژدې کيناستونکي . دغه يې دوياړ اوخوښي په توګه وويل دابس ووچي ويلي يې وای موږ دبتانو عبادت کوو خودوی دخپل ښکلي کار وياړ هم وښود ﴿ قَالَ هَلْ يَسْمَعُونَكُمْ إِذْ تَدْعُونَ ﴾ ( وويل (ابراهيم) آيا اوري دغه (بُتان بلنه) دتاسو کله چي يې تاسي بولی) دغه يې توبيخ اوچوپولولپاره ورته وويل چي آيا کله چي تاسي هغوی ته پناه وروړی اودعاوي ورته کوی هغه يې اوري ؟! ﴿ أَوْ يَنفَعُونَكُمْ أَوْ يَضُرُّونَ ﴾ (آياځه ګټه رسوي تاسي ته اويا تاوان دررسوي ) کله چي يې عبادت کوی اوياکله چي يې عبادت ونکړی ، يادامعناچي آيادوی تاسي ته کومه ګټه دررسوي اوکوم تاوان درڅخه دفع کوي ؟! ﴿ قَالُوا۟ بَلْ وَجَدْنَآ ءَابَآءَنَا كَذَٰلِكَ يَفْعَلُونَ ﴾ ( وويل (کفارو ) بلکه موږ خپل پلرونه موندلي دي چي همداسي به يې کول (نوموږ همداسي کوو. ابوالسعودوايې چي دوی پدې قانع شول چي دابتان خونه ګټه رسوي اونه تاوان نو مجبور شول چي حقيقت ښکاره کړي چي دوی پدې هکله کوم علمي سندنلري يوازي د پلرونوتقليد کوي اودغه ددليل نه لرلويوه نښه ده[1] ﴿ قَالَ أَفَرَءَيْتُم مَّا كُنتُمْ تَعْبُدُونَ أَنتُمْ وَءَابَآؤُكُمُ ٱلْأَقْدَمُونَ ﴾ ( وويل: (ابراهيم) آيا پس وينی تاسي (پوهېږی) هرهغه څه چي تاسي يې عبادت کوی او پلرونوستاسي چي پخواتېر شوي دي (ددوی عبادت کاوو ) ﴿ فَإِنَّهُمْ عَدُوٌّ لِّىٓ إِلَّا رَبَّ ٱلْعَـٰلَمِينَ ﴾ پس بېشکه چي دغه (بتان) دښمنان زما دي پرته له رب العالمينه) يعني زه ددغو بُتانوعبادت نه کوم يوازي درب العالمين عبادت کوم هغه زما په دنيااوآخرت کي کار جوړونکی دی ؛ خپل ځان ته يې ددښمني څکه نسبت وکړچي دوی ته تعريض وشي اودغه په نصيحت کي ترتصريح لاوړاندي اوأبلغ دی ﴿ ٱلَّذِى خَلَقَنِى فَهُوَ يَهْدِينِ ﴾ هغه رب چي زه يې پيدا کړی يم هم دی سمه صافه لاره ماته ښيي ،دغه بُتان هيڅ هم نه دی ﴿ وَٱلَّذِى هُوَ يُطْعِمُنِى وَيَسْقِينِ ﴾ (اوهغه رب زمادی چي همدی خواړه خوروي پرمااو اوبه (اونور) څښوي پرما ) هغه پيداکونکی روزي رسان ذات دی چي له وريځي څخه باران اوروي اوبيااورباندي ډول ډول غلې داني زرغونوي چي دبندګانولپاره روزي شي ﴿ وَإِذَا مَرِضْتُ فَهُوَ يَشْفِينِ ﴾ (او(هغه رب) چي رنځورشم پس همدی شفا راکوي) ؛ له ده پرته هيڅوک دشفاورکولوورتشته اوداچي درنځوري نسبت يې ځان ته وکړدادب مراعات دی که داسي نه وي نورنځوري اوروغتياخو ګرددالله له لوري دی نو په کلام کي يې حسن ادب استعمال کړ ﴿ وَٱلَّذِى يُمِيتُنِى ثُمَّ يُحْيِينِ ﴾ (اوهغه (رب) چي مړکوي مي بيابه مي ژوندی کوي) يعني له ده بغيرهيڅوک دمرګ

---

[1] ابوالسعود۴ / ۱۰۹

اوژوندواکدار نشته ﴿ وَٱلَّذِىٓ أَطۡمَعُ أَن يَغۡفِرَ لِى خَطِيٓـَٔتِى يَوۡمَ ٱلدِّينِ ﴾ او هغه (رب) چي هيله (تمه) لرم ددې چي مغفرت وکړي ماته خطاز ما په ورځ د جزاء کي (کله چي خلګو ته د اعمالو جزاګاني ورکول کيږي دهغه وړاو پراخ رحمت ته اميد واريم پدې کي امت ته ښوونه او تعليم دی چي پخپلو ګناهونو اقرار وکړي اومغفرت يې وغواړي ﴿ رَبِّ هَبۡ لِى حُكۡمًا وَأَلۡحِقۡنِى بِٱلصَّٰلِحِينَ ﴾ ای ربه زما ماته حکم وبښه (يعني فهم ، حکمت اوعلم راکړه ) او پيوست مي کړه له صالحانو سره (دهغوی په ټولی کي مي وګڼه) ﴿ وَٱجۡعَل لِّى لِسَانَ صِدۡقٍ فِى ٱلۡأٓخِرِينَ ﴾ اووګرزوه ماته ژبه د صدق (اودثنا او ښکنامي آوازه) په وروستنيو خلګو کي (ترقيامته) چي زما ياد کيږي او خلګ راپسي اقتداء کوي (١) ابن عباس رضی الله عنه وايې چي پدی دامتونو اجتماع ده چي هر امت په هغه ( ابراهيم عليه السلام) منګولي لګوي اوورپسي اقتداء کوي ، درناوی يې ساتي. ﴿ وَٱجۡعَلۡنِى مِن وَرَثَةِ جَنَّةِ ٱلنَّعِيمِ ﴾ اوومي ګرزوه له وارثانو د جنت د نعمتونو ﴿ وَٱغۡفِرۡ لِأَبِىٓ ﴾ اوبښنه وکړه زما پلار ته ( ايمان ته يې رهبري کړه ) ﴿ إِنَّهُۥ كَانَ مِنَ ٱلضَّآلِّينَ ﴾ بېشکه چي دی وو له ګمراهانو. صاوي وايې چي الله پاک دابراهيم عليه السلام ګردي دُعاګاني ومنلې يوازي دپلار دبښنې دعاېې مستجابه نکړه (٢) قرطبي وايې چي پلاريې ورسره ژمنه کړې وه چي ورباندي ايمان به راوړي نو ځکه يې ورته بښنه وغوښته اوکله چي ورته څرګنده شوه پلاريې پخپله وعده وفانکوي نوترې بېزاره شو.(٣) ﴿ وَلَا تُخۡزِنِى يَوۡمَ يُبۡعَثُونَ ﴾ اومه مي شرموه په هغه ورځ کي چي ژوندی راپاڅولی شي (دحساب اوجزالپاره پدې کي دده تواضع معلوميږي چي دالله دعظمت په وړاندي يې څرګندوي که نه الله پاک پخپله دهغه ثناداسي وايې ﴿ إِنَّ إِبۡرَٰهِيمَ كَانَ أُمَّةً .... ﴾ دآيت ترپايه ﴿ يَوۡمَ لَا يَنفَعُ مَالٌ وَلَا بَنُونَ ﴾ په هغه ورځ چي ګټه نه رسوي مال اونه (نفع رسوي) زامن (هيڅ چاته) ﴿ إِلَّا مَنۡ أَتَى ٱللَّهَ بِقَلۡبٍ سَلِيمٍ ﴾ مګرهغه چاته چي الله ته په سلامت زړه راغلي دي (له کفره، نفاقه، حسد او کينې څخه تردې ځايه دابراهيم خليل عليه السلام دعاګاني بشپړي شوې بيا الله تعالی وفرمايل: ﴿ وَأُزۡلِفَتِ ٱلۡجَنَّةُ لِلۡمُتَّقِينَ ﴾ اونژدې به کړی شي جنت پرهېزګارانو ته (چي ورننوزي . طبري وايې چي داهغه کسان دي چي دالله له عذابه يې ځانونه په طاعاتو ژغورلي وي (٤) ﴿ وَبُرِّزَتِ ٱلۡجَحِيمُ لِلۡغَاوِينَ ﴾ اوښکاره به کړی شي دوزخ ګمراهانو ته (چي دسربه سترګو يې ووينې نو مؤمنان به جنت وينې چي مسرت اوخوښي يې زياته شي او ګمراهان به دوزخ ووينې چي غم اوحسرت يې پيدا شي ﴿ وَقِيلَ لَهُمۡ ﴾ اووبه ويل شي دوی (مجرمينو ) ته د توبيخ اوتقريع په توګه)

---

(١) ځيني علماوو ويلي چي په آيت شريف کي د ښکنامي دګټلو مستحب والی څرګند دی ځکه چي هغه دوهم ژوند دی لکه چي وايې: (قدمات قوم وهم فی الناس احياء )يعني ځيني خلګ خو وفات شوي مګربيا هم په نوم سره ژوندي دي.
(٢) الصاوی علی الجلالين ٣ / ١٧٥
(٣) القرطبي ١٣/ ١١۴
(۴) الطبري ١٩/ ۵۵

﴿أَيْنَ مَا كُنتُمْ تَعْبُدُونَ﴾ چېرته دي هغه معبودان ستاسي بې له الله چي تاسو به پرته له الله ددوی عبادت کاوو (لکه بُتان اوشریکان؟) ﴿هَلْ يَنصُرُونَكُمْ أَوْ يَنتَصِرُونَ﴾ آیاله تاسي سره مدد کوي (چي دالله له عذابه موږ ژغوري) یاخه مدد کوي دوی له خپله ځانه سره ؟(چي له ځانه بې دفع کړي بلکه نه بې شي کولای دغه ټول توبیخ اوترټنه ده ﴿فَكُبْكِبُوا فِيهَا﴾ پس وبه غورځولی شي (سرپه څېړی په دوزخ) کي. مجاهد وایې دوی به نسکورپه دوزخ کي واچولی شي . طبري وایې معنایې داچي یودبل دپاسه به پرمخي سره وغورځول شي (¹) ﴿هُمْ وَالْغَاوُونَ﴾ دوی (بتان) اومشرکان ، عابدان اومعبودان لکه چي داآیت ﴿إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ﴾ الانبیاء ۹۸ ) ﴿وَجُنُودُ إِبْلِيسَ أَجْمَعُونَ﴾ اولښکرد ابلیس ټول (عابدان اومعبودان له پېریانو او انسانانو څخه) ﴿قَالُوا وَهُمْ فِيهَا يَخْتَصِمُونَ﴾ وبه وایې دوی (عابدان معبودانوته) حال داچي دوی به په دوزخ کي سره جګړې کوي ﴿تَاللَّهِ إِن كُنَّا لَفِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ﴾ قسم دی په الله چي بېشکه شان دادی چي موږوو خامخاپه ښکاره ګمراهي کي ( له حقه ډېرلري وو ) ﴿إِذْ نُسَوِّيكُم بِرَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ کله چي موږتاسي برابرولی (په عبادت کي ) له رب (پالونکي) دعالمیانو سره ﴿وَمَا أَضَلَّنَا إِلَّا الْمُجْرِمُونَ﴾ اونه وو ګمراه کړي موږ مګرهم دغو مجرمانو (مشرانو چي موږته یې ګناهونه اوکفرښایسته کړي وو) ﴿فَمَا لَنَا مِن شَافِعِينَ﴾ پس نشته موږته له سره له شفاعتګر(چي په دغه ورځ کي موپه کارشي) ﴿وَلَا صَدِيقٍ حَمِيمٍ﴾ اونه کوم دوست مخلص (چي دالله له عذابه موږ ژغوري) ﴿فَلَوْ أَنَّ لَنَا كَرَّةً﴾ پس (کاشکي) که وي موږته یو کرت (بیرته ) تګ دنیاته ) ﴿فَنَكُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ﴾ پس شوي به وو موږ له مؤمنانو(نېک عملونه به موکول الله به مومنل ) ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً﴾ بېشکه په دغه (کیسه دابراهیم اوقوم کي یې) خامخالوی عبرت دی (عاقلانوته) چي سترګور وي پندترې واخلي) ﴿وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ﴾ اونه وو زیاتره ددوی مؤمنان ﴿وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ﴾ اوبېشکه رب ستاهم هغه غالب قوي دی (په کسات اخیستلوله (دښمنانو) ډېررحم والادی (په خپلو اولیاوو باندي ).

بلاغت:

پدې آیتونو کي دبلاغت اوبدیع څه ښکلاوي شته لنډیزیې دادی:

۱-ایجازبالحذف چي فرمایې ﴿فَانفَلَقَ﴾ چي تقدیریې دادی چي بحریې وواهو بیاوچودل.

---

(¹) پورتنی مرجع.

۲ - مرسله مجمله تشبیه پدې کلام کې ﴿ كَٱلطَّوۡدِ ٱلۡعَظِيمِ ﴾ لکه غرپه تینګ والي اوچتوالي کې ادات د تشبیه ذکرشوی خو وجه د شبه حذف شوي نو مرسله مجمله تشبیه بلل کېږي

۳ - د طباق صنعت چې د ﴿ يَنفَعُونَكُمۡ... أَوۡ يَضُرُّونَ ﴾ او ﴿ يُمِيتُنِي .... يُحۡيِينِ ﴾ ترمینځ دی.

۴ - د ادب مراعات چې پدې کلام کې له ورايه ښکاري ﴿ وَإِذَا مَرِضۡتُ فَهُوَ يَشۡفِينِ ﴾ داسې يې ونه ويل چې کله مې هغه رنځور کړي ؛ بلکه ويې ويل چې کله رنځور شم دغه يې له الله تبارک وتعالی سره د ادب رعايت وکړ څکه د شر نسبت الله ته د ادب له مخې نه کول په کار دی که څه هم شفا او رنځ دواړه د الله له لوري دي.

۵ - لطیفه استعاره پدې کلام کې چې ﴿ وَٱجۡعَل لِّي لِسَانَ صِدۡقٖ ﴾ دلته يې ژبه د ښکلي ثنا لپاره استعاره کړې ده.

۶ - خوندوره مقابله لکه چې فرمايي ﴿ وَبُرِّزَتِ ٱلۡجَحِيمُ لِلۡغَاوِينَ ﴾ د دې وينا په مقابل کې چې ﴿ وَأُزۡلِفَتِ ٱلۡجَنَّةُ لِلۡمُتَّقِينَ ﴾ دی.

۷ - د فواصلو مراعات چې د آيتونو په پای کې دی لکه: ﴿ لِلۡمُتَّقِينَ .... لِلۡغَاوِينَ.... ضَلَٰلٖ مُّبِينٍ ﴾ چې دغه حسینه سجع او د بيان ښکلا او جمال زياتوي.

تنبيه:

روايت کېږي چې ابراهيم عليه السلام به د قيامت په ورځ له خپل پلار آزر سره مخامخ شي د آزر مخ به ګرد جن لوغړن وي ابراهيم عليه السلام به ورته وايي آيا مانه درته ويل چې زما څخه سرغړونه مکړه؟ پلار به يې وايي نن ورځ ستا خبره منم. ابراهيم عليه السلام به ووايي ای ربه تا راسره وعده کړې چې زه به دې په د قيامت په ورځ نه شرموم نو تر دې به لوړه شرمندګي کومه وي چې پلار مې پدې حال وي الله تعالیٰ جل جلاله به وفرمايي ما په کافرانو باندې جنت حرام کړی دی او بيا به ابراهيم عليه السلام ته ووايي: د پښې لاندې ته دې وګوره او چې وګوري نو به يو لړلی (ضبع) نرحیوان ووینې او هغه به تر پښو ونيول شي په اور کې به وغورځول شي. رواه البخاري.

***

الله تعالی فرمايي:

﴿ كَذَّبَتۡ قَوۡمُ نُوحٍ ٱلۡمُرۡسَلِينَ (١٠٥) إِذۡ قَالَ لَهُمۡ أَخُوهُمۡ نُوحٌ أَلَا تَتَّقُونَ (١٠٦) إِنِّي لَكُمۡ رَسُولٌ أَمِينٞ (١٠٧) فَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَأَطِيعُونِ (١٠٨) وَمَآ أَسۡـَٔلُكُمۡ عَلَيۡهِ مِنۡ أَجۡرٍۖ إِنۡ أَجۡرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ (١٠٩) فَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَأَطِيعُونِ (١١٠) ۞ قَالُوٓاْ أَنُؤۡمِنُ لَكَ وَٱتَّبَعَكَ ٱلۡأَرۡذَلُونَ (١١١) قَالَ وَمَا عِلۡمِي بِمَا كَانُواْ يَعۡمَلُونَ (١١٢) إِنۡ حِسَابُهُمۡ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّيۖ لَوۡ تَشۡعُرُونَ (١١٣) وَمَآ أَنَا۠ بِطَارِدِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ (١١٤) إِنۡ أَنَا۠ إِلَّا نَذِيرٞ مُّبِينٞ (١١٥) قَالُواْ لَئِن لَّمۡ تَنتَهِ يَٰنُوحُ لَتَكُونَنَّ مِنَ ٱلۡمَرۡجُومِينَ (١١٦) قَالَ رَبِّ إِنَّ قَوۡمِي كَذَّبُونِ (١١٧) فَٱفۡتَحۡ بَيۡنِي وَبَيۡنَهُمۡ فَتۡحٗا وَنَجِّنِي وَمَن مَّعِيَ مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ (١١٨) فَأَنجَيۡنَٰهُ وَمَن مَّعَهُۥ فِي ٱلۡفُلۡكِ ٱلۡمَشۡحُونِ (١١٩) ثُمَّ

أَغْرَقْنَا بَعْدُ الْبَاقِينَ ﴿١٢٠﴾ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ ﴿١٢١﴾ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ ﴿١٢٢﴾ كَذَّبَتْ عَادٌ
الْمُرْسَلِينَ ﴿١٢٣﴾ إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوهُمْ هُودٌ أَلَا تَتَّقُونَ ﴿١٢٤﴾ إِنِّي لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ ﴿١٢٥﴾ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴿١٢٦﴾ وَمَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ
مِنْ أَجْرٍ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿١٢٧﴾ أَتَبْنُونَ بِكُلِّ رِيعٍ آيَةً تَعْبَثُونَ ﴿١٢٨﴾ وَتَتَّخِذُونَ مَصَانِعَ لَعَلَّكُمْ تَخْلُدُونَ
﴿١٢٩﴾ وَإِذَا بَطَشْتُم بَطَشْتُمْ جَبَّارِينَ ﴿١٣٠﴾ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴿١٣١﴾ وَاتَّقُوا الَّذِي أَمَدَّكُم بِمَا تَعْلَمُونَ ﴿١٣٢﴾ أَمَدَّكُم بِأَنْعَامٍ
وَبَنِينَ ﴿١٣٣﴾ وَجَنَّاتٍ وَعُيُونٍ ﴿١٣٤﴾ إِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ﴿١٣٥﴾ قَالُوا سَوَاءٌ عَلَيْنَا أَوَعَظْتَ أَمْ لَمْ تَكُن مِّنَ
الْوَاعِظِينَ ﴿١٣٦﴾ إِنْ هَٰذَا إِلَّا خُلُقُ الْأَوَّلِينَ ﴿١٣٧﴾ وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِينَ ﴿١٣٨﴾ فَكَذَّبُوهُ فَأَهْلَكْنَاهُمْ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً وَمَا كَانَ
أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ ﴿١٣٩﴾ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ ﴿١٤٠﴾ كَذَّبَتْ ثَمُودُ الْمُرْسَلِينَ ﴿١٤١﴾ إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوهُمْ صَالِحٌ أَلَا تَتَّقُونَ
﴿١٤٢﴾ إِنِّي لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ ﴿١٤٣﴾ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴿١٤٤﴾ وَمَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿١٤٥﴾
أَتُتْرَكُونَ فِي مَا هَاهُنَا آمِنِينَ ﴿١٤٦﴾ فِي جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ ﴿١٤٧﴾ وَزُرُوعٍ وَنَخْلٍ طَلْعُهَا هَضِيمٌ ﴿١٤٨﴾ وَتَنْحِتُونَ مِنَ الْجِبَالِ
بُيُوتًا فَارِهِينَ ﴿١٤٩﴾ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴿١٥٠﴾ وَلَا تُطِيعُوا أَمْرَ الْمُسْرِفِينَ ﴿١٥١﴾ الَّذِينَ يُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ وَلَا يُصْلِحُونَ ﴿١٥٢﴾
قَالُوا إِنَّمَا أَنتَ مِنَ الْمُسَحَّرِينَ ﴿١٥٣﴾ مَا أَنتَ إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا فَأْتِ بِآيَةٍ إِن كُنتَ مِنَ الصَّادِقِينَ ﴿١٥٤﴾ قَالَ هَٰذِهِ نَاقَةٌ لَّهَا
شِرْبٌ وَلَكُمْ شِرْبُ يَوْمٍ مَّعْلُومٍ ﴿١٥٥﴾ وَلَا تَمَسُّوهَا بِسُوءٍ فَيَأْخُذَكُمْ عَذَابُ يَوْمٍ عَظِيمٍ ﴿١٥٦﴾ فَعَقَرُوهَا فَأَصْبَحُوا نَادِمِينَ ﴿١٥٧﴾
فَأَخَذَهُمُ الْعَذَابُ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ ﴿١٥٨﴾ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ ﴿١٥٩﴾ كَذَّبَتْ
قَوْمُ لُوطٍ الْمُرْسَلِينَ ﴿١٦٠﴾ إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوهُمْ لُوطٌ أَلَا تَتَّقُونَ ﴿١٦١﴾ إِنِّي لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ ﴿١٦٢﴾ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴿١٦٣﴾ وَمَا
أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿١٦٤﴾ أَتَأْتُونَ الذُّكْرَانَ مِنَ الْعَالَمِينَ ﴿١٦٥﴾ وَتَذَرُونَ مَا خَلَقَ لَكُمْ
رَبُّكُم مِّنْ أَزْوَاجِكُم بَلْ أَنتُمْ قَوْمٌ عَادُونَ ﴿١٦٦﴾ قَالُوا لَئِن لَّمْ تَنتَهِ يَا لُوطُ لَتَكُونَنَّ مِنَ الْمُخْرَجِينَ ﴿١٦٧﴾ قَالَ إِنِّي لِعَمَلِكُم مِّنَ
الْقَالِينَ ﴿١٦٨﴾ رَبِّ نَجِّنِي وَأَهْلِي مِمَّا يَعْمَلُونَ ﴿١٦٩﴾ فَنَجَّيْنَاهُ وَأَهْلَهُ أَجْمَعِينَ ﴿١٧٠﴾ إِلَّا عَجُوزًا فِي الْغَابِرِينَ ﴿١٧١﴾ ثُمَّ دَمَّرْنَا الْآخَرِينَ
﴿١٧٢﴾ وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهِم مَّطَرًا فَسَاءَ مَطَرُ الْمُنذَرِينَ ﴿١٧٣﴾ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ ﴿١٧٤﴾ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ
الرَّحِيمُ ﴿١٧٥﴾ كَذَّبَ أَصْحَابُ لْـَٔيْكَةِ الْمُرْسَلِينَ ﴿١٧٦﴾ إِذْ قَالَ لَهُمْ شُعَيْبٌ أَلَا تَتَّقُونَ ﴿١٧٧﴾ إِنِّي لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ ﴿١٧٨﴾ فَاتَّقُوا اللَّهَ
وَأَطِيعُونِ ﴿١٧٩﴾ وَمَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿١٨٠﴾ ۞ أَوْفُوا الْكَيْلَ وَلَا تَكُونُوا مِنَ الْمُخْسِرِينَ
﴿١٨١﴾ وَزِنُوا بِالْقِسْطَاسِ الْمُسْتَقِيمِ ﴿١٨٢﴾ وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ أَشْيَاءَهُمْ وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ ﴿١٨٣﴾ وَاتَّقُوا الَّذِي
خَلَقَكُمْ وَالْجِبِلَّةَ الْأَوَّلِينَ ﴿١٨٤﴾ قَالُوا إِنَّمَا أَنتَ مِنَ الْمُسَحَّرِينَ ﴿١٨٥﴾ وَمَا أَنتَ إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا وَإِن نَّظُنُّكَ لَمِنَ الْكَاذِبِينَ
﴿١٨٦﴾ فَأَسْقِطْ عَلَيْنَا كِسَفًا مِّنَ السَّمَاءِ إِن كُنتَ مِنَ الصَّادِقِينَ ﴿١٨٧﴾ قَالَ رَبِّي أَعْلَمُ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴿١٨٨﴾ فَكَذَّبُوهُ

فَأَخَذَهُمْ عَذَابُ يَوْمِ ٱلظُّلَّةِ إِنَّهُۥ كَانَ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ﴿١٨٩﴾ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ ﴿١٩٠﴾ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلرَّحِيمُ ﴿١٩١﴾ ﴾ الشعراء: ١٠٥ - ١٩١

## مناسبت اوتړاو:

کله چي الله پاک خپل پيغمبرته دموسی اوابراهيم عليهما السلام کيسې واورولې وروسته بيې دحضرت نوح ، هود ، صالح ، لوط اوشعيب عليهم السلام کيسې راوړې اوپدې ګردوکي درسول الله صلی الله عليه وسلم لپاره تسليت اوډاډينه ده چي کوم څه له خپله قومه وررسېږي نوروانبياووهم دغه ترخه ليدلي دي اوبل دالله سنت څرګندوي چي مکذبينوته څرنګه عذاب ورکوي ؟!

## لغتونه:

(المشحون) ډک لکه چي وايي کښتی (بېړۍ) ډکه شوه کله چي بيې له خلګو څاروواوغلوډکه بارکړي (ريع) هغه څه چي له ځمکي لوړاولياري ته وايي (مصانع) مرادځيني برجونه دي لکه چي ابن عباس رضی الله عنه وايي (بطشتم) بطش په زور اوقهرسره نيولوته وايي (الجبلة) خوی خاصيت اوهروي وايي چي (الجبلة والجبل) دغه دزيات شمېرجمع ده لکه چي الله فرمايي ﴿ وَلَقَدْ أَضَلَّ مِنكُمْ جِبِلًّا كَثِيرًا ﴾ يعني ډېرخلګ اوويل کېږي (جبل فلان علی کذا ) يعني هغه په داسي خوی پيداشوی دی (کسفا) دکسفة جمع اوټوټې ته ويل کېږي.

## تفسير:

﴿ كَذَّبَتْ قَوْمُ نُوحٍ ٱلْمُرْسَلِينَ ﴾ نسبت ددروغووکړقوم دنوح رسولانوته ؛ اوداچي مرسلين بيې وفرمايل ځکه څوک چي ديوه پيغمبرتکذيب وکړي لکه چي دټولوبيې کړی وي ﴿ إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوهُمْ نُوحٌ ﴾ کله چي وويل دوی ته ورور(قومي )ددوی ,نوح ته بيې ورور وواي‌وهغه چي په دين کي بيې ورور وي . زمخشري وايي دغه دعربوويناده لکه چي وايي ای دبني تميم وروره يعني ای دبني تميم سړيه ﴿ أَلَا تَتَّقُونَ ﴾ آيانه وېرېږئ (له عذابه دالله چي دبتانوعبادت کوی؟) ﴿ إِنِّي لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ ﴾ بېشکه چي زه يم تاسي ته استازی امانتګر(په نصيحت کي نه دروغ وايم اونه خيانت کونکی يم ) ﴿ فَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴾ پس تاسي له الله ووېرېږئ اوزمااطاعت وکړئ ﴿ وَمَآ أَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ ﴾ اونه غواړم زه له تاسي په دغه (تبليغ ) هيڅ مزدوري ﴿ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ ندی اجرزمامګرپرپالونکي دعالميانودی ﴿ فَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴾ پس تاسي له الله ووېرېږئ اوزماحکم ومنئ دغه بيې ځکه تکرار راووړچي دچاري په اهميت باندي خبرداری ورکړي اوتاکيد بيې وشي ﴿ قَالُوٓا۟ أَنُؤْمِنُ لَكَ وَٱتَّبَعَكَ ٱلْأَرْذَلُونَ ﴾ وويل (کفارو ) آياايمان په تاراوړو( ای نوح لکه چي ته وايې) حال داچي ستامتابعت رذيلانو (بېوزلانو)کړی دی . بيضاوي وايي دغه پخپله ددوی ناپوهي اوبېعقلي ښکاره کوي چي دوی مال دولت ته دومره ارزښت ورکړچي

دبېوزلانو په سبب يې دنوح بلنه اومتابعت ونه مانو(١)﴿ قَالَ وَمَا عِلۡمِي بِمَا كَانُواْ يَعۡمَلُونَ ﴾ (وويل نوح) اونشته زما علم په هغه څه چي دوی يې کوي ) يعني زه ددې مکلفيت نلرم چي ددوی پټ رازونه وسپړم چي آيادوی په اخلاص اوکه دکومي هيلي اوطمعي لپاره پرما ايمان راوړی دی؟ قرطبي وايي لکه چي دوی داسي انګېرله چي دغوبېوزلانو خوپرتاباندي ددې لپاره چي دمال اوعزت هيله من دي ايمان راوړی دی نوحضرت نوح په ځواب کي ورته وويل چي زه ددوی په باطن څه خبريم اوماته ددوی ظاهري ايمان راوړل قبول دي (٢)﴿ إِنۡ حِسَابُهُمۡ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّيۖ لَوۡ تَشۡعُرُونَ ﴾ (ندی حساب ددوی مګرپه پالونکي زمادی که تاسو پوهېږی ) يعني ددوی حساب اوجزا پخپله الله ورکوي هغه په پټورازونو اودزړونو په نيتونو خبردی که تاسي پدې پوهېږی ﴿ وَمَآ أَنَا۠ بِطَارِدِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴾ (اوزه نه يم شړونکی دمؤمنانو له خپله مجلسه ) يعني زه دغه بېوزله مؤمنان له خانه نه ليري کوم اونه يې له مجلسه شړم. ابوحيان وايي داسي معلومېږي چي دوی ورڅخه دغه مطالبه اوغوښتنه کړي وي لکه چي قريشو سردارانوله رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه غوښتنه کوله چي بېوزله مسلمانان دي له مجلسه وشړي (٣)﴿ إِنۡ أَنَا۠ إِلَّا نَذِيرٞ مُّبِينٞ ﴾ نه يم زه مګرښکاره وېرونکی يم (کفاروته دالله له عذابه اوقهر څخه نوڅوک چي زمامتابعت اوپيروي وکړي هغه نجات وموند هغه که عزت من مالداروي اوکه خواروي که لوړوي اوکه ټيټ ﴿ قَالُواْ لَئِن لَّمۡ تَنتَهِ يَٰنُوحُ لَتَكُونَنَّ مِنَ ٱلۡمَرۡجُومِينَ ﴾ وويل(کفارو ) چي خامخاکه ته وانه وښتې ای نوح (له دغوويناووڅخه ) خامخاشې به ته هرومرو له ويشتل شويو(په کاڼو ) هغه يې په داسي وژلوچي په کاڼوويشتلوترسره کېږي وېراوونوپدې وخت کي نوح عليه السلام ببخي ناهيلی اومايوس شوچي دغه خلګ خلاصون نشي موندلای نويې ووېل : ﴿ قَالَ رَبِّ إِنَّ قَوۡمِي كَذَّبُونِ ﴾ وويل نوح ای زماربه بېشکه چي زماقوم زه دروغجن وبللم (ايمان يې راباندي نه راووړ)﴿ فَٱفۡتَحۡ بَيۡنِي وَبَيۡنَهُمۡ فَتۡحٗا ﴾ پس حکم وفرمايه په مينځ زما اوددوی کي په يوډول حکم (چي ته غواړې) اوپخپله عادلانه فيصله صادره کړه) ﴿ وَنَجِّنِي وَمَن مَّعِيَ مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴿١١٨﴾ فَأَنجَيۡنَٰهُ وَمَن مَّعَهُۥ فِي ٱلۡفُلۡكِ ٱلۡمَشۡحُونِ ﴾ او وژغوری ما اوهغه چي له ماسره دی له مؤمنانو څخه پس نجات ورکړمونږدغه (نوح) ته اوهرهغه ته چي له دغه (نوح) سره ووپه هغه بېړۍ کي چي ډکه وه (په نارينه وو ، ښځينه وواوحيواناتو﴿ ثُمَّ أَغۡرَقۡنَا بَعۡدُ ٱلۡبَاقِينَ ﴾ بياغرق کړو موږ وروسته له (نجاته دبېړۍ ) نور(قوم دنوح) ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأٓيَةٗۖ ﴾ بېشکه په دغه کي خامخا لويه نښه ده (دعبرت چي څوک سوچ اوفکرکوي) ﴿ وَمَا كَانَ أَكۡثَرُهُم مُّؤۡمِنِينَ ﴾ اونه ووزياتره ددوی مؤمنان ﴿ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ ٱلۡعَزِيزُ ٱلرَّحِيمُ ﴾ اوبېشکه رب ستاخامخاهم دی ښه غالب زورور، رحم والادی (په بندګانوچي سمدستي يې نه عذابوي

(١) البيضاوي ٢/ ٧٢

(٢) القرطبي ١٣/ ١٢٠

(٣) البحر ٧/ ٣٢

وروسته الله تعالى دهودعليه السلام كيسه پيل كوي فرمايې : ﴿ كَذَّبَتْ عَادٌ الْمُرْسَلِينَ ﴾ نسبت ددروغوكړى ووعاديانورسولانوته ؛ څرنګه چې دوى دهودعليه السلام تكذيب كړى وواودېوه پيغمبرتكذيب دګردوانبياووتكذيب دى ﴿ إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوهُمْ هُودٌ أَلَا تَتَّقُونَ ﴾ كله چې وويل دوى ته (قومي) وروردوى هودچې آيانه وېرېږى (دالله له عذاب اوكسات څخه چې له هغه پرته دبل چاعبادت كوى ؟) ﴿ إِنِّي لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ ﴾ بېشكه زه يم تاسي ته رسول امانتګر(په وحى اودېني نصيحت كې) ﴿ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴾ نوووېرېږئ تاسي له الله اوزمااطاعت وكړئ (په شرعي چاروكي) ﴿ وَمَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴾ اونه غواړم زه له تاسي نه پردغه تبليغ باندي له تاسي هيڅ اجرمزدوري نه دى اجرزمامګرپه پالونكي دعالميانودى. ددې لپاره يې دغه مكرر راوړل چې پدې تنبيه راشي چې دپيغمبرانوبلنه اودعوت يودى ﴿ أَتَبْنُونَ بِكُلِّ رِيعٍ آيَةً تَعْبَثُونَ ﴾ (آياجوړوى تاسي پر هرهسک ځاى (لويه لاره) نښه هسک(چې كښېنى) استفهام انكاري دى يعني تاسي سره دانه ښايې.
ابن كثيروايې چې (ربع) معنالوړاوچت ځاى دى اودوى به په لويولاروستروځايونو بناوي كولې چې ددوى دقوت څرګندونه وكړي اودغه به مجردعبث اولهوكاروڅخه نوددوى پيغمبر بد وګاڼه چې دوخت ضائع كول اودځان ستوماني اوسترياده چې نه په دنياكي ګټه‌لري اونه هم په آخرت كي (١) ﴿ وَتَتَّخِذُونَ مَصَانِعَ لَعَلَّكُمْ تَخْلُدُونَ ﴾ اوجوړوى پاخه ځايونه (بلډنګونه) ښايي چې تاسي به تل اوسېږى (په دنياكي چې نه به مړه كېږى ؟) ﴿ وَإِذَا بَطَشْتُمْ بَطَشْتُمْ جَبَّارِينَ ﴾ اوكله چې لاس اچوى تاسي چاته منګولي لګوى. په جبراوظلم سره چې مهرباني اورحمت نلرى. دغه يې ځكه بدوګڼل چې دغه دظالمانو اوجابرانوخوى دى . امام فخررازي وايې چې ددوى يې درې صفتونه راوړل يوداچې لوړ ځايونه ودانوي چې دغه دأسراف اولويي نښه ده دوهم ټينګ اوپاخه برجونه جوړل چې دغه بيادخلود اوبقا علامه ده اودريم دظالمانواوجابرانودود، دستور چې دادخپلمخي اواستبدادنښه ده اودغه ګردپه دې دلالت كوي چې پردوى باندي ددنيامينه راګرزېدلي وه اودوى يومخ ايزه پکي ډوب وواوله بندګي څخه ښځي وتلي ووچې دربوبيت ددعوې ترسرحده رسېدلي وه) اوددنيامحبت دهري ګناه پيلامه ده (٢) ﴿ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴾ نو ووېرېږئ تاسي له الله څخه اوتاسي زمااطاعت وكړئ (په شرعيه اموروكي) بيا وروسته يې دالله هغه جل جلاله نعمتونه ورپه يادكړل چې) ﴿ وَاتَّقُوا الَّذِي أَمَدَّكُمْ بِمَا تَعْلَمُونَ ﴾

اوووېرېږئ له هغه الله چې احسان مددګاري يې كړي ده له تاسي سره په هغه څېز چې پرې پوهېږى (له نعمتونواوخيراتونوڅخه) ﴿ أَمَدَّكُمْ بِأَنْعَامٍ وَبَنِينَ وَجَنَّاتٍ وَعُيُونٍ ﴾ (اوووېرېږئ تاسي له هغه الله) چې احسان مددګاري يې فرمايلي ده پرتاسي (په دركولو) دمواشيو (څاروو) زامنواو باغونواوچينو (او نورو

---

(١) مختصرابن كثير٣ / ٢٠٣

(٢) التفسيرالكبير٢٤ / ١٥٧

نعمتونو چي بنايي تاسو يې شکر پرځای کړی او پر تاسي لازم دي چي عبادت يې وکړی ) ﴿ إِنِّيٓ أَخَافُ عَلَيۡكُمۡ عَذَابَ يَوۡمٍ عَظِيمٖ ﴾ بېشکه چي زه وېرېږم پر تاسي له عذابه دورځي ډېري لويي (دقيامت که تاسو ددغو نعمتونو شکران ونکړاو شرک او کفر مو غوره کړدهغي ورځي عذاب به موونيسي چي هلته دډېره هيبته ماشومان بوډاګان کېږي. دوی يې دالله لوري ته په ترغيب او ترهيب سره راوبلل او په پنداو وېرونه يې تبليغ ورته وکړچي ددوی ځواب داوو ﴿ قَالُواْ سَوَآءٌ عَلَيۡنَآ أَوَعَظۡتَ أَمۡ لَمۡ تَكُن مِّنَ ٱلۡوَٰعِظِينَ ﴾ وويل (دوی عاديانو هودته) برابره (خبره) ده پرموږباندي آياپند راکړې (ته موږته ) ياکه نه يې ته له پندراکونکيو (يعني ستاپندرا کول او نه راکول موږته برابردي موږ ستاپه ويناڅه پروانه کوو او نه له هغه څه چي کوويې راګرزېدونکي يو. ابوحيان وايې چي دده وينا ته يې دملنډوپه ژبه وعظ ووايا او ورته يې ځرګنده کړه چي موږ ورباندي پروانلرو ځکه دوی هغه رښتيا نه ګڼله او داسي باوريې کاووچي کوم څه (هودعليه السلام ) وايې هغه دروغجن دی (۱) ﴿ إِنۡ هَٰذَآ إِلَّا خُلُقُ ٱلۡأَوَّلِينَ ﴾ نه دی دغه (چي تاراوړي) مګرد پخوانيو ځرافات (دروغ) دي ﴿ وَمَا نَحۡنُ بِمُعَذَّبِينَ ﴾ او نه يو موږ چي په عذاب به کړی شو يعني نه حساب کتاب او نه بعث او عذاب شته ﴿ فَكَذَّبُوهُ فَأَهۡلَكۡنَٰهُمۡۚ ﴾ پس تکذيب وکړ (عاديانو ) ددغه (هود ) پس هلاک کړل موږ دغو (عايانو ) لره (په سخت باداوسېلۍ باندي ابن کثيروايې چي دوی يې په خوراسخت ګرندي سوړباداوسېلۍ باندي وځپل او هلاک کړل اودوی له خپله جنسه سره په وړعذاب اخته شول ځکه دوی زښته زيات سرکښه وونو په همدې سرکښه سېلۍ مخ شول چي هرڅه به يې له بېخه ايستل کله چي به پردوی باندی راغی له ځمکي به يې اوچت کړل اوله هواڅخه به يې سرپه ځېړی راوغورځول اودسرماغزه به يې په يو بل لوري وپاشل (۲) ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأٓيَةٗۖ ﴾ بېشکه په دغه (اهلاک دعاديانو کي) خامخالويه نښه (دعبرت او پند ) ده ﴿ وَمَا كَانَ أَكۡثَرُهُم مُّؤۡمِنِينَ ﴾ او نه ووزياتره ددوی مؤمنان (سره له دې چي دقدرت نښاني يې ليدلې) ﴿ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ ٱلۡعَزِيزُ ٱلرَّحِيمُ ﴾ او بېشکه رب ستا (اې محمده) هم دی ښه غالب قوي دی (په کسات اخيستلو له دښمنانو ) ډېر رحم والادی (په مؤمنانو باندي) وروسته بيادصالح عليه السلام کيسه داسي پيل کوي فرمايي ﴿ كَذَّبَتۡ ثَمُودُ ٱلۡمُرۡسَلِينَ ﴾ (نسبت ددروغو کړی وو ثموديانو رسولانو ته) يعني دوی د خپل نبي صالح عليه السلام تکذيب کړی او څوک چي ديو پيغمبر تکذيب وکړي دګردو يې کړی دی ﴿ إِذۡ قَالَ لَهُمۡ أَخُوهُمۡ صَٰلِحٌ أَلَا تَتَّقُونَ ﴾ کله چي وويل دوی ته (قومي) ورور ددوی صالح چي ايا تاسي (دالله له عذابه) نه وېرېږی؟! چي دبل چا عبادت کوی ) ﴿ إِنِّي لَكُمۡ رَسُولٌ أَمِينٞ فَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَأَطِيعُونِ وَمَآ أَسۡـَٔلُكُمۡ عَلَيۡهِ مِنۡ أَجۡرٍۖ إِنۡ أَجۡرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴾ بېشکه زه تاسي ته

---

(۱) البحر ۷/ ۳۳

(۲) مختصر ابن کثير په لنډدول ۲/ ۲۵۴

امانتگررسول یم نو تاسي له الله وویرېږئ او اطاعت وکړئ زما (په شرعیه امورو کي) اونه غواړم زه له تاسي څخه پردغه (تبلیغ) هیڅ اجراونه دی اجرزما مگرپه رب العالمین دی. ددغو آیتونو په تکرار راوړل ددې تنبیه ورکوي چي دانبیاوو علیهم السلام دعوت یو دی څکه هراستازی خپل قوم دخپل رسالت له مقصد څخه خبروي چي همدا دبشریت په گټه دی ﴿ أَتُتْرَكُونَ فِي مَا هَٰهُنَآ ءَامِنِينَ ﴾ آیا پرې به ښودل شی تاسي ؟ (بلکه نه پرېښودل کېږی) ) په هغو نعمتونو کي چي په دې دنیاکي دي (تاسي ته) په امان (له آفته) چي مرگ دی ) یعني آیا ستاسو پروردگار به موپه دې دنیاکي تل ترتله په نعمتونو کي بېغمه پرېږدي ؟! نه هیڅکله نه. ابن عباس رضی الله عنه وايې چي دوی خورازیات اوږده عمرونه لرل چي مانی به یې د دوی له اوږده عمرسره روغي نه پاتي کېدلې او قرطبي وايې چي پردې وینا باندي دالله جل جلاله داقول هم شاهدي ورکوي چي ﴿ وَٱسْتَعْمَرَكُمْ فِيهَا ﴾ نو صالح علیه السلام دوی ته توبیخ او ترټنه ورکړه او ورته یې وویل چي آیا تاسو گمان کوی په دنیاکي به تل ترتله اوسی[۱] ﴿ فِي جَنَّٰتٍ وَعُيُونٍ وَزُرُوعٍ وَنَخْلٍ طَلْعُهَا هَضِيمٌ ﴾ په باغونو کي او په چینو کي او په کښتونو (فصلونو) کي او په خرماگانو کي چي (شگوفه میوه) یې پسته وي ؛ آیا پدې ټولو کي به بې حسابه او بې جزا پرېښودلی شی ؟ مفسرین کرام وايې چي دثمودیانو څمکو ډېرباغونه ،او به او خرماوي درلودې نو صالح علیه السلام دوی ته ددغو نعمتونو یادونه وکړه (هضیم) معنا نرمه او باریکه حضرت عکرمة ښودلي ده او ابن عباس رضی الله عنه وايې چي هغه پخه او رسېدلي ته وايې[۲] ﴿ وَتَنْحِتُونَ مِنَ ٱلْجِبَالِ بُيُوتًا فَٰرِهِينَ ﴾ (او کېنئ (جوړوئ) تاسي له غرونو څخه پدغه حال کي چي ماهران یاست په دغه توږلو سره) یعني تاسو په غرونو کي په تکبراوغرور کورونه جوړوئ چي اوسېدلو ته یې اړهم نه یاست . امام رازي رحمه الله وايې چي دآیت شریف ظاهري بڼه پدې دلالت کوي چي (دهود) علیه السلام دقوم غالب اوزیاتره دخیالي خوندونو او ملذاتو پیروي وه چي هغه استعلاء ، بقاء اوزبردستي وه اودصالح علیه السلام دقوم زیاتره اوغالب دحسي خوندونو او لذتونوغوښتنه وه چي هغه دخوړلو ،څښلو شیان او ښایسته دنگي اوچتي داوسېدلو ماڼی وې[۳] صاوي وایې چي ددوی عمرونه اوږده وو نوددوی کورونه اودهغو باموڼه دېوالونه به ددوی ترمړیني دمخه ونړېدل څکه دوی هر یو به له درې سوه کاله نیولي تر یوزر کاله پوري ژوند درلود[۴] ﴿ فَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴾ نو وویرېږئ تاسي له (عذابه) دالله او زما اطاعت وکړئ (په شرعیه أمورو کي چي کله زه نصحیت درته کوم ) ﴿ وَلَا تُطِيعُوٓا۟ أَمْرَ ٱلْمُسْرِفِينَ ﴾ اومه منئ تاسي خبره دا سراف کونکو (مجرمانو) ﴿ ٱلَّذِينَ يُفْسِدُونَ فِي ٱلْأَرْضِ وَلَا يُصْلِحُونَ ﴾ هغه مسرفان چي فساد کوي په څمکه کي او

---

[۱] القرطبي ۱۳ / ۱۲۷

[۲] قرطبي دهضیم دمعنا په هکله دولس قوله راوړي دي ۱۳ / ۱۲۸

[۳] تفسیر کبیر ۲۴ / ۱۵۹

[۴] حاشیة الصاوی علی الجلالین ۳ / ۱۷۹

اصلاح نه کوي. طبري وايي داهغه نه ګوني تولی دي چي الله داسي ستايلي فرمايي ﴿ وَكَانَ فِى ٱلْمَدِينَةِ تِسْعَةُ رَهْطٍ يُفْسِدُونَ فِى ٱلْأَرْضِ وَلَا يُصْلِحُونَ ﴾ [1]) ﴿ قَالُوٓاْ إِنَّمَآ أَنتَ مِنَ ٱلْمُسَحَّرِينَ ﴾ نوووېل (ثمودیانو) بېشکه هم داخبره ده چي ته له (هغو کسانو څخه يې چي) ډېري کوډي وربانديشوي وي (او عقل يې بېخي له مينځه تللی وي. مفسرين کرام وايي چي مسحّر: مسحور مبالغه ده ﴿ مَآ أَنتَ إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا ﴾ نه يې ته مګر يو بشر (انسان) زموږ په شان (نو څرنګه ګمان کوې چي ته پيغمبر يې؟) ﴿ فَأْتِ بِـَٔايَةٍ إِن كُنتَ مِنَ ٱلصَّـٰدِقِينَ ﴾ (که ته بياهم اصرارلرې دخپل رسالت) نوراوړه څه معجزه که يې له رښتياويونکو څخه؟) ﴿ قَالَ هَـٰذِهِۦ نَاقَةٌ ﴾ ووېل (صالح عليه السلام) دااوښه ده (معجزه دنبوت زماستاسي له غوښتني سره سم چي دالله په قدرت له کرکټي کاڼي څخه راوزي. مفسرين کرام وايي: دوی ورانديز وکړچي بلاربه اوښه دي له دې ګټي کاڼي څخه راووزي اوددوی په وړاندي دي جونګی وزېږوي نوحضرت صالح عليه السلام چورتمن (متفکر) کښېناست چي جبريل عليه السلام ورته راغی ورته ويل يې دوه رکعته لمونځ وګذاره اوبيادا اوښي دراوتلو سوال وکړه هغسي يې وکړل اوښه راووتله اوددوی په مخ کي يې جونګی وزېږاووا وهلته چوشوه نوصالح عليه السلام ورته ووېل: دغه ده اوښه [2]) ﴿ لَّهَا شِرْبٌ وَلَكُمْ شِرْبُ يَوْمٍ مَّعْلُومٍ ﴾ دې ته برخه (داوبو) ده او تاسي ته برخه (داوبوده) دورځي معلومي. قتاده وايي: کله چي به داوښي داوبو ورځ وه ګردي اوبه به يې وڅښلې اوسبا به بياد دوی داوبودڅښلو وار وودغه يوه بله معجزه وه ﴿ وَلَا تَمَسُّوهَا بِسُوٓءٍ فَيَأْخُذَكُمْ عَذَابُ يَوْمٍ عَظِيمٍ ﴾ اومه رسوئ تاسي دې (اوښي) ته هيڅ ضرر (که نه) پس وبه نيسي تاسي لره عذاب دلويې ورځي (لوی عذاب) يعني هغه مه وژنئ اومه يې وهئ که نه دداسي ستري ورځي سترعذاب به درته راشي چي تعبيرېې نشي کېدای. ابن کثيروايي چي دوی ته يې دالله دعذاب خبرورکړچي په اوښه دي غرض نلري اوهمداسي څه وخت اوښه واوسېدله اوبه يې څښلې، واښه اوپاڼي يې خوړلې اوددوی به يې له شيدو څخه ګټه اخيستله چي دومره شيدي به يې ځيني لوشلې چي دڅښلو اوبه کېدلو لپاره به يې بېخي بسنه کوله ترڅوچي موده اوږده شوه اوددوی بدمرغه کسان سره يوځای اودهغې دوژلو پرېکړه يې وکړه[3]) ﴿ فَعَقَرُوهَا فَأَصْبَحُواْ نَـٰدِمِينَ ﴾ (پس زخمي مړه کړه (ثموديانو) دا(اوښه) پس وګرزېدل پښېمانه) يعني هغه يې په غشو وويشتله اوويې وژله دغه بدمرغه قاتل (قُدار بن سالف) وو چي ددوی په خوښه يې ووژله. فخررازي وايي: ددوی پښېماني دتوبې لپاره نه وه بلکه دعذاب له وېري پښېمانه ښکارېدل[4]) ﴿ فَأَخَذَهُمُ

---

[1]) الطبري ١٩ / ٢٣
[2]) شيخ زاده على البيضاوي ٣ / ٤٧٧
[3]) مختصر ابن كثير ٢ / ٦٥٢
[4]) الرازي ٢٤ / ٤٩

﴿ٱلْعَذَابُ﴾ پس ونیول دوی (موعود) عذاب (اوهلاک شول چي هغه چیغه وه اوددوی زړونه یې وچاودل مړه شول څمکه ورباندي زلزله شوه له آسمانه ورباندي کاڼي واورېدل اویو مخ ایزه گرده ووژل شول ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً﴾ بېشکه پدې کي خامخالوی (دلیل د قدرت دی (چي څوک پوهه لري اوسوچ کوي) ﴿وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلرَّحِيمُ﴾ (اونه ووزیاتره ددوی مؤمنان اوبېشکه رب ستاخامخاهم دی دی ښه غالب ، قوي ډېررحم والا ) ددې تفسیرپخواتېرشوی دی اووروسته الله دلوط علیه السلام کیسه داسي پیلوي ﴿كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوطٍ ٱلْمُرْسَلِينَ﴾ نسبت ددروغوکړی قوم دلوط رسولانوته(یعني دلوط علیه السلام یې تکذیب کړی وو) ﴿إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوهُمْ لُوطٌ أَلَا تَتَّقُونَ﴾ کله چي وویل دوی ته (نوعي) ورورددوی لوط آیانه وېرېږئ تاسي (له عذابه دالله په عبادت کولودبل چا؟) ﴿إِنِّي لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ فَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَأَطِيعُونِ﴾ بېشکه زه چي یم تاسي ته رسول یم امانتگرنوله الله ووېرېږئ اوزما اطاعت وکړئ (په شرعیه أمورو کي) ﴿وَمَآ أَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ ۖ إِنْ أَجْرِىَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ ٱلْعَـٰلَمِينَ﴾ اونه غواړم زه تاسي څخه پرغه تبلیغ باندي هیڅ اجر، ندی اجرزما مگرپه رب العالمین دی دغه بعینه همغه پخواني کلماتي دي چي حضراتو، صالح ، هوداونوح علیهم السلام ویلي دی اوداڅرگندوي چي دانبیاووبلنه یوه اومقصد، موخه یې هم یوه ده اومنشاء یې آسماني وحی ده وروسته لوط علیه السلام ورته زیاته کړه چي ﴿أَتَأْتُونَ ٱلذُّكْرَانَ مِنَ ٱلْعَـٰلَمِينَ﴾ آیاراتګ کوئ تاسي (په لواطت کولو) نارینه ووته له خلگودغه استفهام دانکار، توبیخ اوټکوني لپاره دی یعنی آیاتاسودغه کارکوی اوله گردو خلگوڅخه موخانگرتیاخپله کړي ؟ ﴿وَتَذَرُونَ مَا خَلَقَ لَكُمْ رَبُّكُم مِّنْ أَزْوَٰجِكُم﴾ اوپرېږدی تاسي هغه چي پیداکړي دي تاسي ته رب ستاسي له ښځوستاسو. مجاهد وایې :معناداچي تاسودمېرمنو(فروج) پرې ایښي اودنارینه وو(أدبار) ته مومخه کړي ده (١)﴿بَلْ أَنتُمْ قَوْمٌ عَادُونَ﴾ بلکه تاسي چي یې یوقوم له حده تېرېدونکي یاست (په جرم اوگناه کي لومړی یې د نارینه وو په لواطت کولوترټل اوبیایې ترهغه زیات وټکول چي لکه ورته وایې تاسودانسانیت له سرحدڅخه وتلي اوترحیوانیت موخان اړولی دی چي داسي نارواکارونه کوی څکه چي حیوان نارینه لاهم په بل نارینه حیوان باندي دغه کارنکوي څان ترې ژغوري ﴿قَالُوا۟ لَئِن لَّمْ تَنتَهِ يَـٰلُوطُ لَتَكُونَنَّ مِنَ ٱلْمُخْرَجِينَ﴾ وویل (قوم دلوط) که وانه وښتې ای لوطه (له دې خبروچي دغه کارغندې) نوخامخاشې به ته له ایستل شویو (زموږله ښاره لکه چي نورموهم شړلي دي هغه ته یې په ایستلواوشړلواخطار ورکړ ﴿قَالَ إِنِّى لِعَمَلِكُم مِّنَ ٱلْقَالِينَ﴾ وویل (لوط) بېشکه زه له دې (بد) عمله ستاسي سره له بغض کونکیویم (اوځني بېزاره یم) ﴿رَبِّ نَجِّنِى وَأَهْلِى مِمَّا يَعْمَلُونَ﴾ (ای زماربه نجات راکړه ماته اوزما اهل ته له (عذابه د) هغوکارونوڅخه چي (خلگ) یې کوي) الله فرمایي: ﴿فَنَجَّيْنَـٰهُ

(١) زاد المسیر ٦/ ١٤٠

وَأَهۡلَهُۥٓ أَجۡمَعِينَ ۝ إِلَّا عَجُوزٗا فِي ٱلۡغَٰبِرِينَ ﴾ پس نجات ورکړمو ده ته (لوط) ته او اهل دده ټولو ته (مګر نجات مو ورنکړ) يوې بوډۍ ښځې ته چې په جمله دپاتې کېدونکو کې وه (په عذاب کې) ابن کثير وايې چې مراد له بوډۍ ښځه دده مېرمن وه ځکه هغه ناکاره بوډۍ وه کله چې الله جل جلاله لوط عليه السلام ته دښپې د تللو امروکړ هغه ناکاره بوډۍ همداسې له کافرانو سره يو ځای هلاکه شوه (۱) ﴿ ثُمَّ دَمَّرۡنَا ٱلۡأٓخَرِينَ ﴾ بيا هلاک کړل مونږ هغه نور (په سخت هلاکت چې په ځمکه ننوتل) او کاڼي تېږې ورباندې راو اوروېدل ﴿ وَأَمۡطَرۡنَا عَلَيۡهِم مَّطَرٗاۖ ﴾ او ومووراوو پردوی باندې باران (دکاڼو) ﴿ فَسَآءَ مَطَرُ ٱلۡمُنذَرِينَ ﴾ پس بد باران وو د وېرول شوو (باران ددوی، چې کله دوی خپل پيغمبر په عذاب وېرولي وو خو دوی نسبت د دروغو ورته کاوو) ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأٓيَةٗۖ ﴾ بېشکه په دغه کې لوی عبرت او دليل د قدرت دی (پوهانو لره) ﴿ وَمَا كَانَ أَكۡثَرُهُم مُّؤۡمِنِينَ ۝ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ ٱلۡعَزِيزُ ٱلرَّحِيمُ ﴾ او نه وو زياتره ددوی مؤمنان او بېشکه رب ستاهم خامخا هم دی ښه غالب دی ډېر رحم والادی. بيا ورپسې الله تعالی د حضرت شعيب عليه السلام کيسه داسې شروع کوي فرمايي: ﴿ كَذَّبَ أَصۡحَٰبُ لۡـَٔيۡكَةِ ٱلۡمُرۡسَلِينَ ﴾ نسبت د دروغو کړی وو خاوندانو د ځنګل پيغمبرانو ته) يعني د مدين خلکو د شعيب عليه السلام تکذيب کړی وو. طبري وايې چې (أيكة) ګڼ ځنګل او ونو ته وايې چې يو په بل باندې تاو راتاو وي او دغه د مدين خلک وو (۲) ﴿ إِذۡ قَالَ لَهُمۡ شُعَيۡبٌ أَلَا تَتَّقُونَ ۝ إِنِّي لَكُمۡ رَسُولٌ أَمِينٞ ۝ فَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَأَطِيعُونِ ۝ وَمَآ أَسۡـَٔلُكُمۡ عَلَيۡهِ مِنۡ أَجۡرٍۖ إِنۡ أَجۡرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴾ کله چې دوی ته وويل شعيب چې آيا نه وېرېږی له عذابه د الله (په شرک خپل) بېشکه زه چې يم تاسې ته امانتګر رسول يم نو تاسې له الله و وېرېږئ او زما اطاعت وکړئ (په شرعيه أموروکې) او نه غواړم زه له تاسې څخه پر دغه (تبليغ) هيڅ مزدوري ندی اجر زما مګر په رب العالمين دی ﴿ أَوۡفُواْ ٱلۡكَيۡلَ ﴾ تاسو پېمانه پوره ورکوئ (او تول سم کوئ) ﴿ وَلَا تَكُونُواْ مِنَ ٱلۡمُخۡسِرِينَ ﴾ او مه کېږئ له کمو ورکونکيو څخه په تول او پېمانه کې) ﴿ وَزِنُواْ بِٱلۡقِسۡطَاسِ ٱلۡمُسۡتَقِيمِ ﴾ او تول کوئ تاسې په تله برابره ﴿ وَلَا تَبۡخَسُواْ ٱلنَّاسَ أَشۡيَآءَهُمۡ ﴾ او مه کموئ خلکو ته شيان ددوی (په هيڅ څيز کې ددوی حقوق مه ستنوئ چې غصب ظلم او ناروا يې خورئ ﴿ وَلَا تَعۡثَوۡاْ فِي ٱلۡأَرۡضِ مُفۡسِدِينَ ﴾ (او مه ګرزئ تاسې په ځمکه کې پداسې حال کې چې فساد کونکې ياست) يعني په ځمکه کې ډول ډول فساد (لکه لارې وهل، شوکول، ډاکه اچول، په زوره له خلکو مال دولت لوټول مه کوئ ﴿ وَٱتَّقُواْ ٱلَّذِي خَلَقَكُمۡ وَٱلۡجِبِلَّةَ ٱلۡأَوَّلِينَ ﴾ او و وېرېږئ له همغه (الله) څخه چې تاسې يې پيدا کړي ياست او ړومبني خلک. مجاهد وايي چې د (الجبلة) معنا مخلوق او مقصد ځنې پخواني أمتونه دي (۳) ﴿ قَالُوٓاْ إِنَّمَآ أَنتَ مِنَ

---

(۱) ابن كثير ۳ / ۲۵۷
(۲) الطبري ۱۹/ ۶۵
(۳) الطبري ۱۹/ ۶۶

ٱلْمُسَحَّرِينَ ﴾ وويل دوی (أصحاب الایکة) بېشکه هم داخبره ده چي ته يې له سحرکړی شوونه (چي له ډېره سحره دي عقل مغلوب شوی دی) ﴿ وَمَآ أَنتَ إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا ﴾ اونه يې ته مګر يوبشرانسان يې زموږپه شان (پيغمبرنه يې ) ﴿ وَإِن نَّظُنُّكَ لَمِنَ ٱلْكَٰذِبِينَ ﴾ اوبېشکه شان دادی چي موږپرتاګمان کوو خامخاچي ته يې (له جملې) ددروغجنانو (پخپله دعوی کي ای شعيبه ! موږته دروغ وايې چي زه نبي يم ) ﴿ فَأَسْقِطْ عَلَيْنَا كِسَفًا مِّنَ ٱلسَّمَآءِ إِن كُنتَ مِنَ ٱلصَّٰدِقِينَ ﴾ پس راوغورځوه پرموږ يوه ټوټه له آسمانه که يې ته له رښتنيو (پخپله دعوی درسالت کي. امام رازي وايي دغه وړانديزېې ځکه وکړچي دابې محال ګڼله اوګمان يې کاووچي که دغه ونشي نودروغ به يې جوت اوښکاره شي[1]) نوپدې وخت کي شعيب عليه السلام ورته وويل: ﴿ قَالَ رَبِّيٓ أَعْلَمُ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴾ وويل: ( شعيب) زمارب ښه عالم دی په هغوکارونوچي تاسي يې کوی (که يې تاسي ددې وړ نوبه الله جزا درکړي اوالله به پرتاسوظالم نه وي اوکه دبل ډول عذاب مستحق ياست داهم دالله جل جلاله ترمشيت اوارادې پوري تړلي خبره ده بيا الله فرمايي ﴿ فَكَذَّبُوهُ فَأَخَذَهُمْ عَذَابُ يَوْمِ ٱلظُّلَّةِ ﴾ نونسبت ددروغووکړدغو(دځنګل خاوندانو) هغه (شعيب) ته نوونيول دوی عذاب دورځي دسيوري (هغه وريځ وه په دوی يې سيوری وغوړاوو. مفسرين کرام وايي الله پاک سخته ګرمي اوتودوخه ورباندي راوستله چي ددوی نفس تنګ شواوله خپلو کورونوبهرراووتل صحراته يې مخه کړه نوالله يوه وريځ ورته پيداکړه چي دسايوان په شان يې لمرځخه ورباندي سيوری وکړنودوی څه يخني احساس کړه اويوبل ته يې دراغوندېدلوناړې کړي کله چي ګردترډې وريځي لاندي راټول شول الله ورباندي اور راواستاوو اوټول يې وسوځول اودغه خوراسترعذاب ووځکه الله فرمايي ﴿ إِنَّهُۥ كَانَ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ﴾ بېشکه دغه (عذاب) وودورځي دېري لويې (په شدت اوهيبت کي) ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأٓيَةً وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ ﴾ بېشکه چي په دغه (عذاب دأصحاب الأيکة) کي لوی دليل دقدرت اوعبرت دی اونه وواکثره ددوی مؤمنان ﴿ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلرَّحِيمُ ﴾ اوبېشکه رب ستاهم دی دی ښه قوي ،غالب ، ډېررحم والا. تردې ځايه پوري داووکيسوپای ته رسېدل دي کومي چي الله تعالی پيغمبرصلی الله عليه وسلم ته وحی کړي ترڅوچي دخپل قوم په اسلام راوړلوکي ډېره تلوسه اوحرص ونکړي دده تمه يې ترې وشکوله اوافسوس حسرت يې دفع کړلکه چي دسورت په پيل کي يې فرمايلي وو ﴿ لَعَلَّكَ بَٰخِعٌ نَّفْسَكَ أَلَّا يَكُونُوا۟ مُؤْمِنِينَ ﴾ نوپدې کي درسول الله صلی الله عليه وسلم لپاره ډاډينه اوتسلاده او دهغه دغم اوخواشيني سپکول دي اوداچي دهري کيسې په پای کي يې په تکراري توګه داآيت شريف راووړ چي: ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأٓيَةً وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ

---

([1]) التفسيرالکبير۲۴ / ۱۷۴

﴿ ٱلْعَزِيزُ ٱلرَّحِيمُ ﴾ ترڅوچي دغه په عبرت کی خوراوخاراوښکاره وي اوڅوک چي زړه اوسترګي لري دهغوی لپاره ښه آګاهي اوتنبيه شي

بلاغت:

پدې آيتونوکي چي دبلاغت اوبديع کومي ښکلاوي شته لنديزيې دادی:

١- دکل راوړل اواراده دجزء تري کول لکه ﴿ كَذَّبَتْ قَوْمُ نُوحٍ ٱلْمُرْسَلِينَ ﴾ مرادله مرسلينوڅخه نوح اوداچي دجمع په صيغه يې ذکرکړمقصديې دهغه درناوی اوتعظيم دی اوپدې تنبيه ورکوي چي څوک ديوه پيغمبرتکذيب وکړي ګواکي دګردوانبياووتکذيب يې کړی دی.

٢- انکاري استفهام لکه داچي ﴿ قَالُوٓا۟ أَنُؤْمِنُ لَكَ وَٱتَّبَعَكَ ٱلْأَرْذَلُونَ ﴾.

٣- لطيفه اغلی استعاره چي فرمايې ﴿ فَٱفْتَحْ بَيْنِى وَبَيْنَهُمْ فَتْحًا ﴾ يعني زمااوددوی ترمينځ عادلانه حکم صادرکړه دلته يې فتاح دحاکم لپاره استعاره کړی اوفتح خلاصون يې دحکم لپاره خکه چي حکم هم پېچلي چاري خلاصوي اوپرانيزي نوپدې کی تبعيه استعاره ده.

٤- دطباق صنعت لکه ﴿ يُفْسِدُونَ ... وَلَا يُصْلِحُونَ ﴾.

٥- غيرتام جناس لکه ﴿ قَالَ ... ٱلْقَالِينَ ﴾ چي لومړی له قول څخه اودوهم له قلي څخه اخيستل شوی چي کرکي ، بغض اونفرت ته وايي.

٦- داطناب صنعت پدې کلام کي چي ﴿ أَوْفُوا۟ ٱلْكَيْلَ وَلَا تَكُونُوا۟ مِنَ ٱلْمُخْسِرِينَ ﴾ خکه چي سم تول کول پخپل ذات کي له تاوان څخه منع کېدل دي اودلته داطناب ګټه زيات تحذيردی چي عدوان اودښمني بايدونکړل شي.

٧ - دمبالغې صنعت هغه هم پدې قول کي چي ﴿ إِنَّمَآ أَنتَ مِنَ ٱلْمُسَحَّرِينَ ﴾ سحرله مسحورڅخه مبالغه ده.

٨ - دفواصلوتوافق اويورنګه والی چي دآيتونودپيل مراعات وکړی شي لکه ﴿ يُفْسِدُونَ ... وَلَا يُصْلِحُونَ ... ٱلْأَرْذَلُونَ ﴾ اونور.

***

الله تعالیٰ فرمايي:

﴿ وَإِنَّهُۥ لَتَنزِيلُ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿١٩٢﴾ نَزَلَ بِهِ ٱلرُّوحُ ٱلْأَمِينُ ﴿١٩٣﴾ عَلَىٰ قَلْبِكَ لِتَكُونَ مِنَ ٱلْمُنذِرِينَ ﴿١٩٤﴾ بِلِسَانٍ عَرَبِىٍّ مُّبِينٍ ﴿١٩٥﴾ وَإِنَّهُۥ لَفِى زُبُرِ ٱلْأَوَّلِينَ ﴿١٩٦﴾ أَوَلَمْ يَكُن لَّهُمْ ءَايَةً أَن يَعْلَمَهُۥ عُلَمَٰٓؤُا۟ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ﴿١٩٧﴾ وَلَوْ نَزَّلْنَٰهُ عَلَىٰ بَعْضِ ٱلْأَعْجَمِينَ ﴿١٩٨﴾ فَقَرَأَهُۥ عَلَيْهِم مَّا كَانُوا۟ بِهِۦ مُؤْمِنِينَ ﴿١٩٩﴾ كَذَٰلِكَ سَلَكْنَٰهُ فِى قُلُوبِ ٱلْمُجْرِمِينَ ﴿٢٠٠﴾ لَا يُؤْمِنُونَ بِهِۦ حَتَّىٰ يَرَوُا۟ ٱلْعَذَابَ ٱلْأَلِيمَ ﴿٢٠١﴾ فَيَأْتِيَهُم بَغْتَةً وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴿٢٠٢﴾ فَيَقُولُوا۟ هَلْ نَحْنُ مُنظَرُونَ ﴿٢٠٣﴾ أَفَبِعَذَابِنَا يَسْتَعْجِلُونَ ﴿٢٠٤﴾

أَفَرَءَيْتَ إِن مَّتَّعْنَٰهُمْ سِنِينَ ﴿٢٠٥﴾ ثُمَّ جَآءَهُم مَّا كَانُوا۟ يُوعَدُونَ ﴿٢٠٦﴾ مَآ أَغْنَىٰ عَنْهُم مَّا كَانُوا۟ يُمَتَّعُونَ ﴿٢٠٧﴾ وَمَآ أَهْلَكْنَا مِن قَرْيَةٍ إِلَّا لَهَا مُنذِرُونَ ﴿٢٠٨﴾ ذِكْرَىٰ وَمَا كُنَّا ظَٰلِمِينَ ﴿٢٠٩﴾ وَمَا تَنَزَّلَتْ بِهِ ٱلشَّيَٰطِينُ ﴿٢١٠﴾ وَمَا يَنۢبَغِى لَهُمْ وَمَا يَسْتَطِيعُونَ ﴿٢١١﴾ إِنَّهُمْ عَنِ ٱلسَّمْعِ لَمَعْزُولُونَ ﴿٢١٢﴾ فَلَا تَدْعُ مَعَ ٱللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ فَتَكُونَ مِنَ ٱلْمُعَذَّبِينَ ﴿٢١٣﴾ وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ ٱلْأَقْرَبِينَ ﴿٢١٤﴾ وَٱخْفِضْ جَنَاحَكَ لِمَنِ ٱتَّبَعَكَ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴿٢١٥﴾ فَإِنْ عَصَوْكَ فَقُلْ إِنِّى بَرِىٓءٌ مِّمَّا تَعْمَلُونَ ﴿٢١٦﴾ وَتَوَكَّلْ عَلَى ٱلْعَزِيزِ ٱلرَّحِيمِ ﴿٢١٧﴾ ٱلَّذِى يَرَىٰكَ حِينَ تَقُومُ ﴿٢١٨﴾ وَتَقَلُّبَكَ فِى ٱلسَّٰجِدِينَ ﴿٢١٩﴾ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ ﴿٢٢٠﴾ هَلْ أُنَبِّئُكُمْ عَلَىٰ مَن تَنَزَّلُ ٱلشَّيَٰطِينُ ﴿٢٢١﴾ تَنَزَّلُ عَلَىٰ كُلِّ أَفَّاكٍ أَثِيمٍ ﴿٢٢٢﴾ يُلْقُونَ ٱلسَّمْعَ وَأَكْثَرُهُمْ كَٰذِبُونَ ﴿٢٢٣﴾ وَٱلشُّعَرَآءُ يَتَّبِعُهُمُ ٱلْغَاوُۥنَ ﴿٢٢٤﴾ أَلَمْ تَرَ أَنَّهُمْ فِى كُلِّ وَادٍ يَهِيمُونَ ﴿٢٢٥﴾ وَأَنَّهُمْ يَقُولُونَ مَا لَا يَفْعَلُونَ ﴿٢٢٦﴾ إِلَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ وَذَكَرُوا۟ ٱللَّهَ كَثِيرًا وَٱنتَصَرُوا۟ مِنۢ بَعْدِ مَا ظُلِمُوا۟ ۗ وَسَيَعْلَمُ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوٓا۟ أَىَّ مُنقَلَبٍ يَنقَلِبُونَ ﴿٢٢٧﴾ ﴾ الشعراء: ١٩٢ ـ ٢٢٧

## مناسبت او تړاو:

کله چي الله تعالی خپل پيغمبرته دانبياوو عليهم السلام کيسې واورولې ورپسې يې هغه څه راوړل چي دده په نبوت دلالت کوي چي هغه دهغه عليه السلام په زړه باندي ددغه معجز قرآن کريم نزول دی

## لغتونه

(زبر) دزبور جمع لکه چي (رسل) د رسول جمع راځي او دزبور معنا کتاب دی (الأعجمين) دأعجمي جمع او هغه چاته ويل کېږي چي عربي نه ورځي نو ويل کېږي هغه أعجمي دی يعني فصيح عربي نشي ويلای که څه هم په خته عرب وي او کله چي وويل شي هغه (عجمي) دی نو معناداچي هغه غيرعرب دی که څه هم فصاحت درلودونکی وي (بغتة) نابيره ناڅاپه (منظرون) مهلت ورکول شوی (أفاك) دروغجن (منقلب) مصيراو دورتلو ځای ته وايې.

## تفسير:

﴿ وَإِنَّهُۥ لَتَنزِيلُ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ (اوبېشکه دغه قرآن خامخانازل کړی شوی دی (له طرفه د) رب العالمين) يعني دغه معجز قرآن درب الارباب له لوري نازل کړی شوی دی ﴿ نَزَلَ بِهِ ٱلرُّوحُ ٱلْأَمِينُ ﴾ (نازل کړی شويدی په دغه قرآن سره روح امانتگر) يعني راوړی دی دا قرآن دآسمان امين حضرت جبرائيل عليه السلام ﴿ عَلَىٰ قَلْبِكَ لِتَكُونَ مِنَ ٱلْمُنذِرِينَ ﴾ (په زړه ستاباندي چي شې ته له وېرېدونکيو) يعنی ستاپه زړه باندي يې نازل کړچي يادېې کړې او ورباندي مکذبين ووېروې ﴿ بِلِسَانٍ عَرَبِىٍّ مُّبِينٍ ﴾ (په ژبه ښکاره عربي سره) چي فصيح قريشي ژبه ده ترڅودوی ته کوم عذرپاتي نشي اوونه وايې چي دهغه کلام فائده اوګټه څه ده چي موږ ورباندي نه پوهېږو؟. ابن کثيروايې معناداچي ددې لپاره يې په فصيح عربي چي کامله اوشامله ژبه ده نازل کړچي څرګنداوواضح بيان اودعذرله مينځه وړونکی او دليل قائمونکی وي

﴿ وَإِنَّهُۥ لَفِى زُبُرِ ٱلْأَوَّلِينَ ﴾ بېشکه (يادونه د) دغه (قرآن) په کتابونو د لومړنيو کي شته ﴿ أَوَلَمْ يَكُن لَّهُمْ ءَايَةً ﴾ آيانه دی دغو (کفارو) ته دليل (په حقانيت) دقرآن استفهام د توبيخ اوتقريع لپاره دی ﴿ أَن يَعْلَمَهُۥ عُلَمَٰٓؤُا۟ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ﴾ چي پوهېږي پردغه (قرآن) علمآء دبني اسرائيلو. چي دوی دقرآن په هکله پخپلو کتابونو کي مومي لکه عبدالله بن سلام اوامثال يې ﴿ وَلَوْ نَزَّلْنَٰهُ عَلَىٰ بَعْضِ ٱلْأَعْجَمِينَ ﴾ اوکه نازل کړی وای دغه قرآن موږ پر بعض عجميانو باندي(هغه چي دعربي په ګړېدلو توان نلري ﴿ فَقَرَأَهُۥ عَلَيْهِم مَّا كَانُوا۟ بِهِۦ مُؤْمِنِينَ ﴾ (پس لوستلی وای هغوی دغه (قرآن) پر دوی (کفارو) نونه به وودوی پر ده باندي ايمان راوړونکي ) يعني که چېري دغه معجزقرآن بيادغو خلګو دمکي کفاروته په صحيح اوفصيح قرائت لوستلی وای اودقرائت اعجاز دمقرؤ له اعجاز سره يوځای شوی هم وای دوی به ورباندي ايمان نه وو راوړی ځکه چي دوی خوراسرغړونکي اومستکبرين دي([2]) ﴿ كَذَٰلِكَ سَلَكْنَٰهُ فِى قُلُوبِ ٱلْمُجْرِمِينَ ﴾ (همداسي ننې ايستلی دی موږ دا قرآن ) په زړونو دمشرکانو کي) يعني دغه قرآن موږ دمشرکانو په زړونو کي ننې ايستلی دی چي هغه اوري اوورباندي پوهېږي فصاحت اوبلاغت يې پېژني اعجازيې ورته ښکاره دی خو بيا هم ايمان نه راوړي اوترې انکار کوي ﴿ لَا يُؤْمِنُونَ بِهِۦ ﴾ نه راوړي دوی ايمان په دي (قرآن سره له اعجازه يې) ﴿ حَتَّىٰ يَرَوُا۟ ٱلْعَذَابَ ٱلْأَلِيمَ ﴾ ترهغه پوري چي ويني دوی دردناک عذاب (بيابه ايمان راوړي اوهلته به ايمان راوړل ګټه نه رسوي ﴿ فَيَأْتِيَهُم بَغْتَةً ﴾ پس رابه شي دغه (عذاب) يوناڅاپه ﴿ وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴾ حال داچي دوی به نه پوهېږي (په راتلو به يې خبر نه وي) ﴿ فَيَقُولُوا۟ هَلْ نَحْنُ مُنظَرُونَ ﴾ پس وايي به دوی آيا يو موږ چي انتظار راته کاوه شي ؟. دغه به دافسوس اوحسرت لپاره وايي چي ايمان يې نشته دمهلت هيله اوآرزو به کوي ترڅو ايمان راوړي ﴿ أَفَبِعَذَابِنَا يَسْتَعْجِلُونَ ﴾ آيا په راتلو دعذاب زموږ کي دوی تلوار کوي. دلته استفهام دانکار اوتوبيخ لپاره دی چي څرنګه دغه مشرکان په بېړه دعذاب غوښتنه کوي ؟ اووايي چي ﴿ ٱئْتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴾ اوحال دادی چي دعذاب دراتلو په وخت کي بيادډيل او مهلت غوښتونکي وي ﴿ أَفَرَءَيْتَ إِن مَّتَّعْنَٰهُمْ سِنِينَ ﴾ آيا پس ويني ته خبر راکړه ماته که چېري نفع ورکړو موږدوی ته څو کاله) ﴿ ثُمَّ جَآءَهُم مَّا كَانُوا۟ يُوعَدُونَ ﴾ بيا راشي دوی ته هغه (عذاب) چي وودوی چي وعده يې کړی شوی وه (له دوی سره) ﴿ مَآ أَغْنَىٰ عَنْهُم مَّا كَانُوا۟ يُمَتَّعُونَ ﴾ نو نه

---

([1]) مختصرابن کثير ۲/ ۲۹۵

([2]) په التسهيل کتاب کي وايي چي دآيت شريف معنادا چي که دغه قرآن په عجمي (ګونګي)نازل شوی اوبيايې پردوی لوستلی وای دوی به له ډېره عناده ورباندي ايمان نه وو راوړی اوپدې کي درسول الله صلی الله عليه وسلم لپاره تسليت دی چي دليل خوراښکاره دی خودوی ايمان نه راوړي. ۳/ ۹۰

دفع کوی له دوی نه عذاب هغه شی چي وو دوی چي نفع ورکولی شوه دوی ته (په هغه باندی) یعني دوی ته به تېر کالونه په دغه وخت کي څه ګټه ورسوي ؟ آیا هغه خوندونه او نعمتونه به دغم لیري کولو او عذاب دفع کولو لپاره ورته ګټه ورسوي؟ ﴿ وَمَآ أَهۡلَكۡنَا مِن قَرۡيَةٍ إِلَّا لَهَا مُنذِرُونَ ﴾ (او وندي هلاک کړي موږ هیڅ کلي (ښار) مګر چي لېږلي وو هغه ښارته وېرونکي) یعني هیڅ قوم او امت موندي هلاک کړي مګر وروسته له هغه چي دلیل موورباندي درولي او پیغمبران موورته را استولي ووچي دوی بې وېرول او زبری بې ورکاوو ﴿ ذِكۡرَىٰ ﴾ (ترخو ددوی هلاک) پند او عبرت (شي لپاره د نورو چي ددوی په شان بیا نور سرغړونه او عصیان ونکړي ﴿ وَمَا كُنَّا ظَٰلِمِينَ ﴾ اونه وو موږ ظالمان (په هلاکولو ددوی کي) ځکه پردوی مو دلیل درولی او عذر ورته پاتي نه وو وروسته بیا الله تبارک وتعالی کله چي دقرآن کریم اعجاز او دمحمد صلی الله علیه وسلم درسالت په ربښتنولي یې تنبیه وفرمایله دکفارو هغه ګمانونه بې چي دغه قرآن ګواکي دپېریانانو او شیطانانو له خوا راوړل کېږي تردید کړل چي ﴿ وَمَا تَنَزَّلَتۡ بِهِ ٱلشَّيَٰطِينُ ﴾ اونه دی راوړی دا قرآن شیطانانو (بلکه روح الأمین راوړی دی) ﴿ وَمَا يَنۢبَغِي لَهُمۡ وَمَا يَسۡتَطِيعُونَ ﴾ اونه ښائېږي دوی ته دغه راوړل ) او طاقت او قدرت نلري (هیڅکله هم چي رابې وړي ) ﴿ إِنَّهُمۡ عَنِ ٱلسَّمۡعِ لَمَعۡزُولُونَ ﴾ بېشکه دغه شیطانان له اورېدلو (د پرښتو دکلام نه) خامخا برطرف منع کړی شوي دي ( له هغه راهیسي چي رسول الله صلی الله علیه وسلم مبعوث شوی دوی بیاله استراق السمع څخه ممنوع ګرزېدلي دي . ابن کثیر وایې : الله جل جلاله داوښودله چي له درې وجوهاتو دا امتناع راغلي یو دا چي دوی لره نه ښایي ځکه ددوی خوی او خاصیت خو فساد دی او دخلګو ګمراه کول دي او دغه کلام سراسر نور ، هدایت او ستر برهان دی دوهم داکه ورسره ښائېدلای هم به یې ونشوای کولای ځکه دغه کلام الله پخپل حفظ کي محفوظ او خوندي ګرزولی دی دریم داکه ورسره ښائېدلای او هم یې کولای شوای خو بیا هم دهغه دموندلو او راوړلو وس یې نشته چي ورور سېږي ځکه دوی له دغه کارنه بېخي بند کړی شوي او معزول (ګوښه شوي) چي قرآن دي واوري ځکه چي آسمان په ساتندویانو او لمبې غورځونکو ستورو ډک شوی دی نو هیڅ شیطان دیو توري داورېدلو توان هم نلري ترڅو چي اشتباه واقع نشي([1]) ﴿ فَلَا تَدۡعُ مَعَ ٱللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ ﴾ (پس مه بوله ته له الله سره بل معبود ) خطاب رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دی او مراد ځني امت دی ﴿ فَتَكُونَ مِنَ ٱلۡمُعَذَّبِينَ ﴾ (که دي داسي وکړل ) پس شې به ته له عذاب ورکړل شو یو څخه . ابن عباس رضی الله عنه وایې چي الله پدې وینا سره بل خوک وېروي وایې چي ته ترټولو خلګو پرما باندي عزتمن او اکرم یې خو که له ما پرته دبل چا عبادت دي وکړ او مرو به عذاب در کړم ([2]) بیا الله تعالی رسول الله ته دتبلیغ رسولو حکم کوي چي ﴿ وَأَنذِرۡ عَشِيرَتَكَ ٱلۡأَقۡرَبِينَ ﴾ او وېروه (له عذابه ای محمده ) هغه خپلوان دتا چي ډېر درته نژدې دي روایت کېږي چي کله دغه آیت نازل شو چي

---

([1]) ابن کثیر ۲ / ۲۶۰

([2]) زاد المسیر ۲ / ۱۴۷

﴿ وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ ٱلْأَقْرَبِينَ ﴾ رسول الله صلى الله عليه وسلم ودرېدواوويې ويل: اى دقريشوټولى له الله جل جلاله څخه ځان وپېرى زه له تاسو څخه هيڅ الهي عذاب نشم دفع كولاى اى دعبدمناف زامنوزه له تاسو څخه دالهي عذاب هيڅ دفع نشم كولاى ، اى دعبدالمطلب زويه زه له تاڅخه دالله دعذاب دفع كولاى نشم اى (صفية) درسول الله تروري زه له تاڅخه هيڅ عذاب دفع كولاى نشم اى فاطمې دمحمدلوري ! څه چي غواړې الله ته سوال وكړه زه له تاڅخه دالله عذاب هيڅ هم نشم گرزولاى (١) مفسرين كرام وايې اوداچي رسول الله ته يې دخپلوخپلوانوپه وړولوترهرچاړومبى امروكړددې لپاره چي څوك هسي گمان ونكړي چي له خپلوانو سره به مهرباني اونرمي كوي كله چي پخپل ځان اوخپلوخپلوانوتينگاروكړي نوبيابه يې خبره گټه وره اووينابه يې پرځاى وي ﴿ وَٱخْفِضْ جَنَاحَكَ لِمَنِ ٱتَّبَعَكَ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ اوښكته كړه وزرخپل (نرمي وكړه هغه چاته چي ستامتابعت يې كړى دى له مؤمنانو﴿ فَإِنْ عَصَوْكَ فَقُلْ إِنِّى بَرِىٓءٌ مِّمَّا تَعْمَلُونَ ﴾ پس كه نافرماني وكړي (دوى له تانه) پس ووايه ته (اى محمده دوى ته) بېشكه زه بېزاره يم له هغه (عملونو) چي تاسي يې كوى. ابوحيان وايې څرنگه چي په وېرونه اوانذارباندي طاعت اوعصيان مرتب دى نوپردواړووېش داسي راغى چي: څوك ستامتابعت كوي مؤمنان دي وزر ورته ښكته كړه ورسره تواضع كوه اوڅوك چي دي حكم نه مني ، سرغړوي له هغه اوله اعمالوڅخه يې بېزاره شه (٢) ﴿ وَتَوَكَّلْ عَلَى ٱلْعَزِيزِ ٱلرَّحِيمِ ﴾ اوتوكل وكړه (په ټولومهماتوكي) پرښه قوي ، غالب (ذات چي دښمنان دي وځپي) دېر رحم والا (ذات چي تاورباندي بريالى كړي) ﴿ ٱلَّذِى يَرَىٰكَ حِينَ تَقُومُ ﴾ هغه (الله) چي تاويني كله چي پاڅېږې (يوازي له ځايه ، ياله مجلسه . ابن عباس رضى الله عنه وايې چي معناداكله چي ته لمانځه ته پاڅېږې ) ﴿ وَتَقَلُّبَكَ فِى ٱلسَّٰجِدِينَ ﴾ اوهم (ويني ) گرزېدل اوښتل راواوښتل ستا (په صف ) دساجدينو ( راكعينواوقيام كونكو ) كي(٣) معناداچي الله تاهم يوازي ويني اوهم په ټولى اوجماعت كي ﴿ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ ﴾ بېشكه دغه (الله) همدى دى ښه اورېدونكى (چي ته څه وايې) ښه علم والا (په هغه چي ته يې پټوې ) ﴿ هَلْ أُنَبِّئُكُمْ عَلَىٰ مَن تَنَزَّلُ ٱلشَّيَٰطِينُ ﴾ آياخبردركړم زه تاسي ته (اى مشركانو ) پرهغو (خلگو ) چي كوزېږي شيطانان (ورباندي )؟ دغه ددوى دهغي خبري ترديددى چي ويل يې بېشكه خبره داده شيطانان ورته قرآن راوړي ﴿ تَنَزَّلُ عَلَىٰ كُلِّ أَفَّاكٍ أَثِيمٍ ﴾ كوزېږي (شيطانان) په هرډېردروغجن دېرگنهگار (باندي نه په هغه چاچي هغه دعدنان داولادې سرداردى) ﴿ يُلْقُونَ ٱلسَّمْعَ وَأَكْثَرُهُمْ كَٰذِبُونَ ﴾ چي ږدي (دا شيطانان) غوږ خبرودپرښتوته ) اواكثره ددوى دروغجنان دي په هغه ويناوكي (چي كاهنانوته يې راوړي . په حديث شريف كي راځي چي:

---

(١) أخرجه الشيخان

(٢) البحر ٧/ ٤٢

(٣) اودغه دابن جرير طبري غوره ده اوچابياويلي چي مراد ختي دانبياووپه اصلابوكي دده اوښتل راواوښتل دى.

داهسي حقه ويناده چي شيطانان يې غلاكوي اوبيايې د خپل دوست په غوږكي ورځخوي داسي لکه د چرګ (قرقره) نوورسره تريوسل زيات دروغ ګډ کړي (۱) زمخشري وايې چي د ﴿ يُلْقُونَ ٱلسَّمْعَ ﴾ څخه هغه شيطانان مراددي چي ترپخواله ويشتلود ستوروبه دوی هغه غيبي خبري د پرښتوواورېدلې اوبيابه يې خپلو کاهنانو دوستانوته رالېږدولي اوزياتره ددوی به دروغ ويونکي ووچي کاهنانوته به يې داسي څه ويل چي اورېدلي به يې نه وو بيا الله پاک دهغه ګمان چي دوی به ويل محمد شاعردی ترديدفرمايې:

﴿ وَٱلشُّعَرَآءُ يَتَّبِعُهُمُ ٱلْغَاوُۥنَ ﴾ او(کافران) شاعران متابعت کوي ددوی ناپوهان (بې لاري اوناسم خلګ يې متابعت کوي ) ﴿ أَلَمْ تَرَ أَنَّهُمْ فِى كُلِّ وَادٍ يَهِيمُونَ ﴾ (آيانه وينې ته چي بېشکه دوی په هري کندي اوهري پندي د(خبري) کي سرګردانه ګرځي ) يعني ای اورېدونکي هوښياره ته نه ګورې چي دوی څرنګه په مدح اوهجاء کي هره لاره لټوي يوځل ديوځېز صفت کوي وروسته له هغه چي بدي يې ويلي وي بياديوچاعظمت اولوبې بيانوي وروسته له هغه چي سپک يې ګڼلی وي. طبري وايې چي داهغه متل دی چي الله ددوی لپاره بيان کړی چي دوی څرنګه په ناحقه ديوشي بوواروغيبت کوي اوبيايې صفت ته ملاوتړي ديوچاپه ناروا صفت کوي اودبل بياپه ناحقه بدي وايې (۲) ﴿ وَأَنَّهُمْ يَقُولُونَ مَا لَا يَفْعَلُونَ ﴾ (اوبېشکه دغه (شاعران ) هغه څه وايې چي دوی يې نه کوي ) يعني ځان ته دهغه شي نسبت کوي چي هيڅکله يې کړی نه وي. ابوحيان وايې چي الله دشاعرانو هغه حال ستايې چي له نبوت څخه بېل دی ځکه ددوی متابعت بې لاري کسان کوي اوددوی داخوی دی چي ديوشي غيبت اوصفت دواړه کوي اوهغه څه وايې چي کړی يې نه وي اودغه دنبوت له حاله بالکل مخالف دی ځکه نبوت هغه يوازنی لاره ده چي سم په لاره خلګ يې غوره کوي (۳) وروسته الله جل جلاله استثناء داسي فرمايې: ﴿ إِلَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ ﴾ مګر(نه دي مذموم) هغه شاعران چي ايمان يې راوړی د ی اوکړي يې دي ښه عملونه ﴿ وَذَكَرُوا۟ ٱللَّهَ كَثِيرًا ﴾ اويادوي دوی الله ډېر(يعني شعراو شاعري دالله له ياده نه وي راګرزولي اونه يې تول ژونداوخاصيت شعروي ) ﴿ وَٱنتَصَرُوا۟ مِنۢ بَعْدِ مَا ظُلِمُوا۟ ﴾ اوبدل اخلي (له کفاروپه هجوه بيانولو ددوی وروسته له هغه چي ظلم پردوی کړل شوی وي (يعني داسلام دنصرت لپاره اوله حق څخه په دفاع کولوترانې ليکي) ﴿ وَسَيَعْلَمُ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوٓا۟ ﴾ (اوژربه پوه شي هغه کسان چي ظلم يې کړی دی ) دغه دهرظالم په هکله عام وعيددی چي له هيبته يې زړونه چوي يعني ژردی چي هرظالم اودالله دبلني اودعوت معانداو سرغړونکی چي پکي بې لاري شاعران هم دي وبه پوهېږي ﴿ أَىَّ مُنقَلَبٍ يَنقَلِبُونَ ﴾ چي کوم ځای ته به بېرته لاړشي د دوی هستوګنځی به چېرته جوړشي ؟ ددوی دورتلوځای عذاب اواوردی اوخورابدځای ته به لاړشي.

---

(۱) رواه البخاري
(۲) الطبري ۱۹/ ۷۸
(۳) البحر ۷/ ۴۹

بلاغت:

پدې آيتونو کې دبلاغت اوبديع محسنات شته چې داسې يې لنډوو:

١- تأکيد په (انّ) او(لام) سره راغلی دی چې فرمايي ﴿ وَإِنَّهُۥ لَتَنزِيلُ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ ځکه چې دلته کلام له هغو مخاطبينو سره دی چې دقرآنکريم په صحت کې شک لري نوپه څومؤکداتو سره دکلام تأکيد مناسب وو.

٢- استفهام دتوبيخ اوتبکيت لپاره لکه ﴿ أَفَبِعَذَابِنَا يَسْتَعْجِلُونَ ﴾.

٣- اشتقاقي جناس چې فرمايي ﴿ يَعْلَمَهُۥ عُلَمَٰٓؤُا۟ ﴾.

٤- مرسل مجازپدې کلام کې ﴿ وَمَآ أَهْلَكْنَا مِن قَرْيَةٍ ﴾ چې مراد اهل قريه ده.

٥- دپاروني اوهڅوني أسلوب لکه داچې ﴿ فَلَا تَدْعُ مَعَ ٱللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ ﴾ خطاب رسول الله ته دی ځکه چې دهغه اخلاص اوتقوی ترهرچالوړه وه.

٦- تصريحي استعاره پدې کلام کې چې ﴿ وَٱخْفِضْ جَنَاحَكَ لِمَنِ ٱتَّبَعَكَ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ تواضع اونرمي يې دمرغانوله وزره سره تشبيه کړه کله چې دکوزېدلواراده لري نويې په مشبه باندې دکښته کېدلونوم دمکنيې استعارې په ترڅ کې کښېښود ځکه يې تصريحي استعاره بللای شو.

٧- دمبالغې صيغې لکه ﴿ أَفَّاكٍ أَثِيمٍ ﴾ چې فعال اوفعيل له مبالغې څخه دی معنايې زيات دروغجن اوزيات ګنهګاردی.

٨- دطباق صنعت لکه د﴿ يَقُولُونَ ﴾ او﴿ يَفْعَلُونَ ﴾ ترمينځ اوهمداسې د﴿ وَٱنتَصَرُوا۟ ﴾ او﴿ ظُلِمُوا۟ ﴾ ترمينځ دی.

٩- تمثيلي ښکلې استعاره لکه چې پدې کلام کې راغلي ﴿ فِى كُلِّ وَادٍ يَهِيمُونَ ﴾ دوی يې چې له سمې لارې ګوښه شوي اوپه مدح اوهجاء کې يومخ ايزه لاهوشوي لکه په صحراکې لالهاند اوسرګردان غوندې تمثيل کوي هغه چې نه پوهېږي په کومه درومي اوله کومه راځي نودغه ښکلې، باريکه اوخوندوره استعاره ده.

١٠- اشتقاقي جناس لکه داچې ﴿ مُنقَلَبٍ ..... يَنقَلِبُونَ ﴾.

١١- دفواصلومراعات چې دکلام په جمال اوښايست کې ستررول لوبوي لکه ﴿ يَهِيمُونَ ..... يَنقَلِبُونَ يَقُولُونَ ..... يَفْعَلُونَ ﴾

لطيفه:

ويل كېږي چي عمربن عبدالعزيزبه چي سهارراپاځېدو ږېره به يې په موټ کي ونيوله اودغه آيت شريف به يې لوست ﴿ أَفَرَءَيْتَ إِن مَّتَّعْنَـٰهُمْ سِنِينَ ثُمَّ جَآءَهُم مَّا كَانُوا۟ يُوعَدُونَ مَآ أَغْنَىٰ عَنْهُم مَّا كَانُوا۟ يُمَتَّعُونَ ﴾ بيابه يې وژړل.

**تنبيه:**

شعرله هغې جملې څخه دی چي ښه يې ښه اوبدیې بددي اوداچي الله تعالی شعرغندلی ځکه چي پکي دېرافراط ، تفريط وي کله خوصفت په غلواوله اندازې تېرېدلوکوي اوکله بياپه ذم کي اغراق اوتجاوزکوي آن تردې چي ترټولوبې زړه (جبان) به ترعنتره له مخي کړي اوترټولوبخيل به ترحاتم طائي په سخاکي لوړ وګڼي کله به په بې ګناه سړي باندي دفسق اوفجورپېټی بارکړي اوکله به بيافاسق ته دفضيلت پګړۍ ورپه سرکړي يوځل به يوڅوک آسمان ته وخېژوي اوکله چي بياورته په غصه شي له ډاګه به يې وولي اوکندي ته به يې وغورځوي دغه دډېروشاعرانوڅخه ليدلي شوي پېښې دي مګرخوهغه چي الله تعالی استثناء کړي دي.

شاعريوځل په خوږه ژبه اوسحرآمېزه کلام اودبيان په قوت ديوشي صفت اومدح کوي ، کله بې بياغندي هغه څه چي ماپدې باب له خپلواستاذانواورېدلي دېرباريک اوستايلي بې دادي چي شاعران دعسلوپه باب داسي وايي:

تقول هذامجاج النحل تمدحه * وان تعب قلت ذاقئ الزنابير

وايي به چي دغه دشاتودمچۍ ښکلي ناړې دي * اوچي عيب يې کوی وايي به ،دادغومبسوقئ دی

مدحاً وذمّاً وماجاوزت وصفهما * سحرالبيان يری الظلمآء کالنور

په صفت اوبدې کي چي ستاينه يې په سحري بيان له حده ووزي اوتاريکي لکه رڼاداسي بولي

**لطيفه:**

وايي چي فرزدق يووخت دسليمان بن عبدالملک په وړاندي شعروايواوپه شعرکي دپېغلوصفت راغی چي فرزدق وويل: فبتن کانهن مصرعات * وبتُّ أفض اغلاق الختام

هسي ويدې وې لکه چي بې هوښه وې اومابياترلي غوټې خلاصولې. سليمان بن عبدالملک ورته وويل: پرتاباندي حدلازم شوفرزدق ورته وويل ای امېرالمؤمنينه ! الله جل جلاله له ماڅخه حدنړولی دی چي فرمايي: ﴿ أَلَمْ تَرَ أَنَّهُمْ فِى كُلِّ وَادٍ يَهِيمُونَ وَأَنَّهُمْ يَقُولُونَ مَا لَا يَفْعَلُونَ ﴾ نويې هغه ته ښنه وکړه ([1])

دالله تعالی په مرسته دالشعرآء دسورت تفسيربشپړشو

***

([1]) الکشاف ٣ / ٢٧١

## دالنمل سورت مکي دی او درې نوي آيتونه لري.

### دسورت په وړاندي:

دالنمل سورت له مکي سورتونو څخه يو دی چي دعقيدي له بنسټه لکه توحيد، رسالت اوبعث څخه غږېږي دغه يو دهغو دريو سورتونو څخه دی چي پرله پسې نازل شوي او په مصحف شريف کي همداسي پرله پسې ايښودل شوی چي هغه: الشعرآء، النمل او القصص دی اونژدې ددريو سروتګلاره هم يوه وي چي درومبنيو خلګو له کيسو څخه پند او عبرت اخيستل وي.

* پدې سورت کي دقرآنکريم دمعجزې چي ترقيامته به تلپاتي وي يادونه شوي اودابې په ډاګه کړي چي دغه کتاب دعليم، حکيم ذات له لوري نازل شوی دی اوبيابې په لنډه توګه دانبياوو کيسې راوړي اوځيني يې په تفصيل هم بيان کړي دي چي پدې لړکي په لنډډول دموسی عليه السلام کيسه، دصالح عليه السلام اودلوط عليه السلام کيسې راغلي اوداچي دوی ته دخپلو قومونو له لوري څومره عذابونه رسېدلي اوبياپرهغوی باندي کله چي له الهي بلني اودعوت څخه يې غاړه غړولې اودانبياوو عليهم السلام تکذيب يې کړی ووځرنګه عذابونه راغلي دي بيان شوي.

* بيا په تفصيلي ډول دداود عليه السلام اودهغه دزوی سليمان عليه السلام کيسه راوړي چي الله څومره لوړنعمتونه ورباندي لوروللي اوځرنګه يې ايمان اونبوت يوځای وربانديپېرزوکړي وو وروسته دسليمان عليه السلام کيسه رااخلي چي دسباله ملکه بلقيس سره يې پېژندګلوي شوي وه.

* په دې کيسه کي دزورورواودجاه اوسلطان خاوندانولره له معناډک پيغام نغښتی دی چي سليمان عليه السلام خپله پادشاهي دالهي دعوت اوبلني لپاره وسيله کړه هيڅ ظالم باچااوکافر حکمران يې پرېنښودمګرالله جل جلاله ته يې راوباله همداسي يې له بلقيس سره وکړل ترڅوچي دبتانوعبادت يې پرېښوداوله خپلولښکريانوسره دالله دعوت ته يې غاړه کېښښوده ايمان يې راووړ.

* بيا په سورت کي دالله په وجوداووحدانيت باندي دلائل راځي چي دالله په مخلوق اوعجيبه صنعت کي يې ليدلای شوهمداسي ځيني هيبت ناکي پېښي اوحيرانونکي واقعات چي خلک به يې دقيامت په ورځ ګوري راوړي چي هلته به بياخلګ په دووډلوو ېشل کېږي يوه ډله نېکمرغه مؤمنان او بله بدمرغه کفارچي پرمخي به په اورکي لوېږي.

### تسميه اونومول يې:

ځکه يې دالنمل سورت بولي چي دهغې ښځينه مېږي چي خپل ټبرته يې دسليمان اولښکريانو يادونه وکړه اوبيايې سليمان عليه السلام ته عذر وړاندي کړکيسه پکې ده نوسليمان عليه السلام دهغې په خبره وپوهېدو موسکی شواوبيايې دالله شکراداکړ چي دومره لوی نعمت يې وربانديکړی اوپدې کي دحيوان په علم سترډليل اوداچي دغه الهي الهام دی راځي.

الله تعالی فرمايي: بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ طسٓ تِلْكَ ءَايَٰتُ ٱلْقُرْءَانِ وَكِتَابٍ مُّبِينٍ ۝١ هُدًى وَبُشْرَىٰ لِلْمُؤْمِنِينَ ۝٢ ٱلَّذِينَ يُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ وَيُؤْتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ وَهُم بِٱلْءَاخِرَةِ هُمْ يُوقِنُونَ ۝٣ إِنَّ ٱلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِٱلْءَاخِرَةِ زَيَّنَّا لَهُمْ أَعْمَٰلَهُمْ فَهُمْ يَعْمَهُونَ ۝٤ أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ

لهم سوء العذاب وهم في الآخرة هم الأخسرون (٥) وإنك لتلقى القرآن من لدن حكيم عليم (٦) إذ قال موسى لأهله إني آنست نارا سآتيكم منها بخبر أو آتيكم بشهاب قبس لعلكم تصطلون (٧) فلما جاءها نودي أن بورك من في النار ومن حولها وسبحان الله رب العالمين (٨) يا موسى إنه أنا الله العزيز الحكيم (٩) وألق عصاك فلما رآها تهتز كأنها جان ولى مدبرا ولم يعقب يا موسى لا تخف إني لا يخاف لدي المرسلون (١٠) إلا من ظلم ثم بدل حسنا بعد سوء فإني غفور رحيم (١١) وأدخل يدك في جيبك تخرج بيضاء من غير سوء في تسع آيات إلى فرعون وقومه إنهم كانوا قوما فاسقين (١٢) فلما جاءتهم آياتنا مبصرة قالوا هذا سحر مبين (١٣) وجحدوا بها واستيقنتها أنفسهم ظلما وعلوا فانظر كيف كان عاقبة المفسدين (١٤) ولقد آتينا داوود وسليمان علما وقالا الحمد لله الذي فضلنا على كثير من عباده المؤمنين (١٥) وورث سليمان داوود وقال يا أيها الناس علمنا منطق الطير وأوتينا من كل شيء إن هذا لهو الفضل المبين (١٦) وحشر لسليمان جنوده من الجن والإنس والطير فهم يوزعون (١٧) حتى إذا أتوا على واد النمل قالت نملة يا أيها النمل ادخلوا مساكنكم لا يحطمنكم سليمان وجنوده وهم لا يشعرون (١٨) فتبسم ضاحكا من قولها وقال رب أوزعني أن أشكر نعمتك التي أنعمت علي وعلى والدي وأن أعمل صالحا ترضاه وأدخلني برحمتك في عبادك الصالحين (١٩) } النمل: ١ – ١٩

لغتونه:

(يعمهون) حيران، لالهاندهغه چي لارورکی اومترددوي(قبس) سکروټه لمبه (تصطلون) له يخني څخه ځان تودول (بورک) له برکت څخه اخيستل شوی اوپه مال ، ځان کي ودي اونماته دُعاده عرب وايي: بارک الله ، بارک فيک ، بارک لک، بارک عليک خلورلغات دي (يوزعون) دوزع اصل منع اوراګرزولوته ويل کيږي لکه چي عثمان رضی الله عنه وايي (ان الله ليزع بالسلطان مالايزع بالقرآن) الله په حکم اوپاچهي هغه څه منع کوي کوم چي په قرآن نه منع کيږي (يعني دسوټي په زورهغه څه ترسره کيږي چي په وعظ اوپند ممکن نه وي).

تفسير:

{ طسٓ } له مقطعاتو حروفو او تورو څخه ګڼل کيږي چي دقرآنکريم په اعجازدلالت وکړي اوپدې هکله ويناتيره شوي ده ([1]){ تلك آيات القرآن } داآيتونه (نازل شوي پرتااى محمده !) آيتونه دقرآن (معجزبيان اوساطع برهان) { وكتاب مبين } اوښکاره بيانونکی کتاب دی (چي څوک پکي سوچ اوفکرکوي الله پکي څرګنداحکام بيان کړي اوخلګوته يې دهدايت ذريعه ګرزولی دی { هدى وبشرى

([1]) ددغي ويناتفصيل اوڅيړنه دالبقره سورت په پيل کي لوستلای شي.

﴿ لِلْمُؤْمِنِينَ ﴾ دغه (قرآن) سمه صافه لاره ښوونکی دی (ټول جهان ته) اوزېری ورکونکی دی مؤمنانو ته (په نعمتونو) ﴿ ٱلَّذِينَ يُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ وَيُؤْتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ ﴾ هغه مؤمنان )چي اداکوي لمونځونه (سم له ټولو حقوقو سره) اوورکوي زکات دمالونوخپلو (پخپله خوښه) ﴿ وَهُم بِٱلْءَاخِرَةِ هُمْ يُوقِنُونَ ﴾ اودوی په ورځي آخري (چي قيامت دی) همدوی يقين کونکي دي (چي اروموبه راځي هيڅ شی شک اوشبه پکي نشته دغه اعتراضيه جمله ده اولکه چي داسي وايي همدغه مؤمنان چي نېک عملونه کوي همدوی دآخرت په راتلويقين کوي نوګواکي هيڅاهم دآخرت په راتلوپه سمه توګه يقين نشته مګردغوکسانو چي ايمان اوصالح اعمال يې يوله بله سره ملګري کړي ځکه دعاقبت څخه وېره دوی دتکاليفو ترسره کولوته اړباسي (١) ابوحيان وايي څرنګه چي ﴿ يُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ وَيُؤْتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ ﴾ هغه څه ووچي په مکررو وختونوکي به اداکېدل نوصله يې فعل راووړاوداچي ايمان مستقراوثابت وي نويې اسميه جمله راوړه اوتاکيد يې دضميرپه تکرار وفرمايلوچي ﴿ وَهُم بِٱلْءَاخِرَةِ هُمْ يُوقِنُونَ ﴾ اودمبتدا خبريې فعل ځکه راووړچي په تل ترتله کېدلودلالت وکړي (٢) کله چي الله تبارک وتعالى دمؤمنانوهغوچي په آخرت يقين اوباورکونکي دي صفات راوړل ورپسې يې دمنکرانوصّفات هغوی چي دآخرت تکذيب کوي هسي بيان کړل چي: ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِٱلْءَاخِرَةِ ﴾ بېشکه هغه کسان چي ايمان نه راوړي په ورځي آخري (قيامت) ﴿ زَيَّنَّا لَهُمْ أَعْمَٰلَهُمْ ﴾ ښايسته کړي دي موږدوی ته (قبيحه) عملونه ددوی (چي دوی ته ښه برېښي. امام رازي وايي چي مقصدله تزئين څخه ددوی په زړونوکي داسي پوهه پيداکول دي چي همداعملونه دي چي ګټه لري اوخوندترې اخيستل کېږي اوپدې نه پوهېدل دي چي همدغه (قبيحه) عملونه تاوان لري اوآفتونه پکې دي (٣) ﴿ فَهُمْ يَعْمَهُونَ ﴾ پس دوی حيران سرګردانه دي ښه اوبدنشی سره بېلولای ) ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ لَهُمْ سُوٓءُ ٱلْعَذَابِ ﴾ داهم هغه کسان دي چي مقرردی دوی ته ډېربدعذاب (په دنياکي چي وژل کېږي بندياڼېږي اوشړل کېږي ﴿ وَهُمْ فِى ٱلْءَاخِرَةِ هُمُ ٱلْأَخْسَرُونَ ﴾ اودوی په آخرت کي هم دوی زيانکاران دي (چي تل ترتله به په اوراوځولنو کي په دوزخ کي اوسي ﴿ وَإِنَّكَ لَتُلَقَّى ٱلْقُرْءَانَ مِن لَّدُنْ حَكِيمٍ عَلِيمٍ ﴾ اوبېشکه تاته (ای محمده!) در ښوول کېږي قرآن له نزده دښه حکمت والا، ښه علم والا ذات څخه چي الله تعالى دی د خلګود چارو تدبيرکونکی اوپه نېکمرغي اومصلحتونويې پوهېدونکی دی. زمخشري وايي چي پدې آيت شريف کي تمهيددی دهغه څه لپاره چي وروسته به يې الله تعالى دکيسوپه ترڅ کي بيانوي اودالله دعلم دقائق اودحکمت لطائف پکي راځي (٤) ﴿ إِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِأَهْلِهِۦٓ إِنِّىٓ ءَانَسْتُ نَارًا ﴾

---

(١) التفسيرالکبير ٢٤ / ١٧٨

(٢) البحر ٧ / ٥٣

(٣) التفسيرالکبير ٢٤ / ١٧٩

(٤) الکشاف ٣ / ٢٧٥

(یاد کړه ای محمده ! ) هغه وخت چي وویل: موسی خپلي مېرمني ته بېشکه چي ما یواور ولید (له لیري) مفسرین کرام وايي چي کله موسی علیه السلام له مدین څخه دمصرپه لوري لاروی ووتکه توره دیخني شپه وه لاره ئني ورکه شوه او مېرمني يې دولادت (زچگي) دردونه ګالل ﴿ سَـَٔاتِيكُم مِّنْهَا بِخَبَرٍ ﴾ ژر به راورم له دې ځایه (اوره ) خبر(دلاري چي هلته ورسېږم ) ﴿ أَوْ ءَاتِيكُم بِشِهَابٍ قَبَسٍ ﴾ یابه راورم تاسي ته لمبه لګولي (په سرد پلتې یالرګي) ﴿ لَّعَلَّكُمْ تَصْطَلُونَ ﴾ دپاره ددې چي تاسي تاوده شی( په هغه اور) ﴿ فَلَمَّا جَآءَهَا ﴾ پس کله چي راغی (دغه موسی ) هغه (اورته) که ګوري دعظمت عجیبه منظردی چي په زرغونه ونه کي اوربلېږي اورلاپسي په غرغندو کېږي اوونه لاپسي زرغونېږي تازه کېږي اوچي پاس يې وکتل نوځلاېې ترآسمانه رسېږي. ابن عباس رضی الله عنه وايي : اورنه وو بلکه ځلاوه چي وړانګي يې بلېدلې ([1]) نوموسی علیه السلام په تعجب کي تم شو او ودرېدو چي علوي غږوشو ﴿ نُودِىَ أَنۢ بُورِكَ مَن فِى ٱلنَّارِ وَمَنْ حَوْلَهَا ﴾ غږ وکړشو داسي چي برکتناک کړی شوی دی هغه چي په دغه اورکي دی اوهغه چي له دغه اوره چاپېردی (چي پرښتې دي) یعني دطوردغره له لوري داسي غږوشوچي ته برکتناک يې ای موسی اوستاچاپېر پرښتې برکتناکي دي . ابن عباس رضی الله عنه وايي د ﴿ بُورِكَ ﴾ معناتقدیس اوسپېڅلتیاده او ﴿ وَمَنْ حَوْلَهَا ﴾ ملائکي اوپرښتې دي ابوحیان وايي چي په غږپیل کولو دموسی علیه السلام لپاره تبشیر(د خوښي زېری) اوتأنیس (ألفت نیول) وواودغه ښائېدل چي دغه دمبارکي مراتب وړاندي شي څکه خوراستره چاره پېښېدونکي وه هغه چي دالله جل جلاله له موسی علیه السلام سره خبري کېدل اوهغه په نبوت غوره کول اوګمارل وو. ([2]) ﴿ وَسُبْحَـٰنَ ٱللَّهِ رَبِّ ٱلْعَـٰلَمِينَ ﴾ اوپاکي ده الله ته چي پالونکی دعالمیانو دی (هغه ذات چي له مخلوقاتو څخه هیڅ څېزله ده سره په صفاتو ، افعالو اوذات کي مشابه نشته ) ﴿ يَـٰمُوسَىٰٓ إِنَّهُۥٓ أَنَا ٱللَّهُ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ ﴾ یاموسی شان دادی چي زه یم الله ښه غالب ، قوي (زورور) ښه حکمت والا(چي هرڅه په حکمت او مصلحت سره کوم) ﴿ وَأَلْقِ عَصَاكَ ﴾ اووغورځوه خپله همساپه پخواني کلام باندي عطف دي یعني اوغږوشو چي لکړه دي واچوه ترڅوپخپله خپله معجزه ووینې او ورسره روږدی شې ﴿ فَلَمَّا رَءَاهَا تَهْتَزُّ كَأَنَّهَا جَآنٌّ ﴾ پس کله چي ولیدله (موسی همسا ) خپله چي خوځېدله ګواکي دغه (همسا ) سپین څغستونکی ماردی (چي ګړندی خوځېږي ) ﴿ وَلَّىٰ مُدْبِرًا وَلَمْ يُعَقِّبْ ﴾ نومخ يې وګرزاوو په شاتلونکی اوبیرته را ونه ګرزېدو( چي وېرېدلی وومجاهدوايي د ﴿ وَلَمْ يُعَقِّبْ ﴾ معنا(لم یرجع) دی اوقتاده وايي چي معنا داچي بیرته يې ونه کتل اوهغه څه چي بشرته پداسي لیدلو رسېږي ده ته هم ورسېدل چي خورا هیښونکی ، هیبتناک حالت يې ولیدچي له همسايې

---

([1]) الکشاف ٣/٢٧٥

([2]) البحرالمحیط ٧/٥٢

مارجوړشو خکه نو الله تعالی ورته غږ کړ ﴿ يَـٰمُوسَىٰ لَا تَخَفۡ إِنِّي لَا يَخَافُ لَدَيَّ ٱلۡمُرۡسَلُونَ ﴾ ای موسی مه وېرېږه (خکه ته زما په حضورکي يې اوڅوک چي زما په وړاندي وي هغه په امن کي وي) بېشکه زه چي يم نه وېرېږي زما په نزد مرسلان) (يعني ته زما پيغمبر يې اوڅوک چي زه د پيغمبري لپاره غوره کړم هغوی له ما پرته له هيڅ شي څخه نه وېرېږي. ابن جوزي وايي چي الله ورته تنبيه ورکړه چي کله الله تعالی يو څوک په نبوت باندي له عذابه په امن کړي نه ښايي چي هغه دي بيا له ماره ووېرېږي([1]) ﴿ إِلَّا مَن ظَلَمَ ثُمَّ بَدَّلَ حُسۡنَۢا بَعۡدَ سُوٓءٖ ﴾ لېکن هغه څوک چي ظلم يې کړی وي (په خپل ځان ) بيا بدل راوړي نېکي وروسته له بدي. دغه استثناء منقطع دی يعنی له مرسلانو پرته چي کله يو څوک پخپل ځان ظلم وکړي نو هغه وېرېږي مگر نه هغه چي توبه وکاږي او بد عمل په نېک عمل باندي بدل کړي ﴿ فَإِنِّي غَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴾ پس بېشکه زه ښه ښېونکی يم (دگناهونو زما رحمت پراخ او مغفرت مي زيات دی. ابن کثير وايې چي پدې کي د بشريت لپاره سترزېری دی هغه دا چي که يو څوک بد عمل کوي او بيا توبه گارشي الله ته رجوع وکړي الله يې توبه مني لکه چي بل ځای فرمايي ﴿ وَإِنِّي لَغَفَّارٞ لِّمَن تَابَ وَءَامَنَ وَعَمِلَ صَٰلِحٗا ثُمَّ ٱهۡتَدَىٰ ﴾ (طه ۸۲ )([2]) ﴿ وَأَدۡخِلۡ يَدَكَ فِي جَيۡبِكَ تَخۡرُجۡ بَيۡضَآءَ مِنۡ غَيۡرِ سُوٓءٖۖ ﴾ اوننني باسه خپل لاس په گرېوان خپل کی نو وبه وزي تک سپين بې له کومه عيبه. دغه يوه بله معجزه وه چي د الله تعالی په سترقدرت يې گواهي ورکوله چي لاس به يې د برېښنا په ډول ځلېدو ﴿ فِي تِسۡعِ ءَايَٰتٍ إِلَىٰ فِرۡعَوۡنَ وَقَوۡمِهِۦٓۚ ﴾ (يعني دغه دوې معجزې چي همسا او لاس دی ( په ضمن د ) نهو معجزاتو (ستاکي نوورشه) فرعون او قوم دده ته ﴿ إِنَّهُمۡ كَانُواْ قَوۡمٗا فَٰسِقِينَ ﴾ بېشکه دوی دې يو قوم فاسقان (له طاعته اولاهو شوی په کفر او ضلالت کي) ﴿ فَلَمَّا جَآءَتۡهُمۡ ءَايَٰتُنَا مُبۡصِرَةٗ ﴾ نو کله چي راغلل دوی( فرعونيانو ) ته آيتونه (معجزې) زموږ روښانه ﴿ قَالُواْ هَٰذَا سِحۡرٞ مُّبِينٞ ﴾ نو وويل دوی چي دغه ښکاره کوډي دی ﴿ وَجَحَدُواْ بِهَا ﴾ او منکران شول دوی پردغو (آيتونو معجزاتو خارق العاده پېښو ) ﴿ وَٱسۡتَيۡقَنَتۡهَآ أَنفُسُهُمۡ ظُلۡمٗا وَعُلُوّٗاۚ ﴾ حال دا چي يقين کړی وو پردغو معجزاتو ځانونو ددوی (چي حق او د الله له جانبه دی کوډي نه دي ) ﴿ ظُلۡمٗا وَعُلُوّٗاۚ ﴾ (لېکن انکار ترې وکړ دوی) له جهته د ظلم او سرکښي. له منلو د حق څخه او تردې به لوړ ظلم څه وي ؟ چي يو څوک تېنگ باور لري چي دغه د الله له لوري راغلی معجزې دي خو بيا هم له کبره او غروره هغه په کوډو نوموي نو ځکه الله فرمايي ﴿ فَٱنظُرۡ كَيۡفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلۡمُفۡسِدِينَ ﴾ پس وگوره څرنگه وه آخره خاتمه د مفسدانو(چي په دنيا کي غرق شول او په آخرت کي به په اورسوځي. ابن کثير وايي چي د کلام فحوی داسي ده لکه چي ورته ويل کېږي ای د محمد تکذيب کونکو وېرېږئ ! چي تاسوته به هم هغه څه چي دوی ته رسېدلي اورمرو در ورسېږي څکه

---

([1]) زاد المسير ٦/ ١٥٢

([2]) مختصر ابن کثير ۲/ ٦٦٧

محمد مصطفي صلى الله عليه وسلم ترموسى عليه السلام اشرف اواعظم دى اوبرهان يې دموسى عليه السلام تربرهان زوروردى (١) ﴿ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا دَاوُۥدَ وَسُلَيْمَٰنَ عِلْمًا ﴾ اوخامخاپه تحقيق وركړى وموږ داؤدته اوسليمان ته (پراخ) علم (اوپوهه ددنيااو دين ) دغه په دې مبارك سورت كي دوهمه كيسه ده اومعناداچي قسم دى موږ داؤد اوسليما ن ته ددنيااوآخرت نېكمرغي يوځاى وركړي وې طبري وايې چي مرادله علمه څخه دمرغانواوځارويو په ژبه پوهېدل اونورڅه دي چي الله دوى ته وربښودلي وو(٢) ﴿ وَقَالَا ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ ٱلَّذِى فَضَّلَنَا عَلَىٰ كَثِيرٍ مِّنْ عِبَادِهِ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ اودواړوويل چي ټولي ثناوي (اوصفتونه) الله لره دي هغه چي مشرتيايې راكړى ده موږته په ډېروله (هغو) بندګانوخپلوچي مؤمنان دي) يعني دواړودالله شكراوحمدووايو:حمداً لله وشكراً لله ،په دى چي موږته يې نبوت ، علم اوتابع كېدل (تسخير) دانس اوجن راكړى اوپه نوروموٴمنانويې بهترګرزولي يو ﴿ وَوَرِثَ سُلَيْمَٰنُ دَاوُۥدَ ﴾ اوميراث واخيست سليمان (نبوت ، علم اوپاچهي ) له داودنه (پرته له نورو زامنويې ) كلبي وايې چي دداودعليه السلام نولس زامن ووخوددوى له ډلي نبوت ، علم اوپاچهي سليمان عليه السلام ته ورسېده اوكه چېري دمال دولت ميراث واى نوګرده به پكي برابروو(٣) ﴿ وَقَالَ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ عُلِّمْنَا مَنطِقَ ٱلطَّيْرِ ﴾ (نو(سليمان) وويل: اى خلكوموږته دالوتونكو مرغانوخبري ښودل شوي دي ) دغه تحديث بالنعمة بولي چي ويې ويل: اى خلكوموږته الله دمرغانواوځارويوخبري راښودلي اوداإكرام يې راكړى دى ﴿ وَأُوتِينَا مِن كُلِّ شَىْءٍ ﴾ اوراكړي يې دي موږته له هرڅېزڅخه (هغه چي انبيااواو پاچهانو ته وركاوه شي ) ﴿ إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ ٱلْفَضْلُ ٱلْمُبِينُ ﴾ بېشكه دغه (عطآء) همدغه ښكاره فضيلت دى (چي الله موږته رنګارنګ نعمتونه راكړي دي دغه يې دشكراوحمدپه توګه وويل لوړتيااوكبريايې مقصدنه وه ﴿ وَحُشِرَ لِسُلَيْمَٰنَ جُنُودُهُۥ مِنَ ٱلْجِنِّ وَٱلْإِنسِ وَٱلطَّيْرِ ﴾ اوجمع كړل شوې دسليمان لپاره لښكري دده له پېريانواو(له) انسانانواو(له) مرغانو ) يعني دده ګردي لښكري ده ته راغونډي شوې چي ديوسترمارش په توګه پېريان، انسانان اومرغان چي ترټولودمخه سليمان عليه السلام په عظمت اوسترهيبت كي وو رهي شول ﴿ فَهُمْ يُوزَعُونَ ﴾ نودوى به له ړومبي كېدلو(پرسليمان عليه السلام باندي) منع كېدلو. ابن عباس رضى الله عنه وايې په هرټولګي يې يوكتونكى مراقب ګمارلى ووچي ړومبي په وروستي راوګرزوي ترڅوچي په مسير اوتګلاره كي ورباندي دمخه نشي لكه چي دنړى پاچهان همداسي كوي چي نظم اودسپلين وساتل شي ﴿ حَتَّىٰٓ إِذَآ أَتَوْا۟ عَلَىٰ وَادِ ٱلنَّمْلِ ﴾ آن ترهغه پوري چي راغلل دوى (شام ته) پركنده دمېږيانو ﴿ قَالَتْ نَمْلَةٌ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّمْلُ ٱدْخُلُوا۟ مَسَٰكِنَكُمْ ﴾ نووويل يوې مېږي (چي مشره وه ) اى

(١) ابن كثيرمختصر٢ /٦٦٧
(٢) الطبري ١٩ -٨٧
(٣) القرطبي ١٣ /١٦٤

مېږیانو نتوزئ خپلو هستو گنخیو ته ! دوی ته یې د هوښیارانو خطاب وکړ ځکه دد ې غوښتنه داسي وه چي دهوښیارانو غوندې هلته ځان پټ کړی، چي داسي نه چي ﴿ لَا يَحْطِمَنَّكُمْ سُلَيْمَٰنُ وَجُنُودُهُۥ وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴾ چي مات اوچپت پیت مونکړي هرومرو سليمان اودده لښکري حال داچي دوی به نه وي خبر (په دي پايمال کېدلو ستاسي دوی بې پوخل ووېرول اوبیایې عذروواپوځکه هغه پوهېدله چي سلیمان علیه السلام مهربان پیغمبردی قصداً داسي نکوي ؛ نو سلیمان علیه السلام دد ې وینا اورېدله او وریاندي پوه شوویې خندل ﴿ فَتَبَسَّمَ ضَاحِكًا مِّن قَوْلِهَا ﴾ نو تبسم وکړ (سلیمان) په دغه حال کې چي خنداکونکی وو(ځکه چي مېږي دده اودلښکرو صفت ثنا وویله چې ﴿ وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴾ نو دغه دده تقوی اوله حیواناتوسره ترحم څرگنداوو ، بیایې وویل ﴿ وَقَالَ رَبِّ أَوْزِعْنِىٓ أَنْ أَشْكُرَ نِعْمَتَكَ ٱلَّتِىٓ أَنْعَمْتَ عَلَىَّ وَعَلَىٰ وَٰلِدَىَّ ﴾ او وویل سلیمان ای زمار به الهام وکړه ماته داچي شکروکړم دنعمت ستاهغه چي انعام دي کړی پرمااوپرمور اوپلار زما ﴿ وَأَنْ أَعْمَلَ صَٰلِحًا تَرْضَىٰهُ ﴾ اوبل داچي زه نېک عمل کوم چي ته یې خوښوې) یعني الهي ماته ستاد خوښي دعمل کولوتوفیق راکړه چي تاته مي نږدې کاندي ﴿ وَأَدْخِلْنِى بِرَحْمَتِكَ فِى عِبَادِكَ ٱلصَّٰلِحِينَ ﴾ اوگډ کړه ماپخپل رحمت سره په هغوخپلوصالحو بندگانوکي) یعني ماجنت ته چي د رحمت ځای دی له خپلو نېکوبندگانوسره دننه کړه.

بلاغت:

پدې آیتونوکي چي دبدیع اوبیان کومي ښکلاوي دي لنډ یزیې دادی.

۱- نږدې ته دلیري اشاره کول لکه ﴿ تِلْكَ ءَايَٰتُ ٱلْقُرْءَانِ ﴾ لپاره دد ې چي دفضل اوشرف لیري مرتبه یې څرگنده کړي.

۲- تنکیردتفخیم اوتعظیم لپاره لکه ﴿ وَكِتَابٍ مُّبِينٍ ﴾ یعني دسترشان اولوړ قدرخاوند کتاب دی.

۳- مصدرداسم فاعل پرځای راوړل چي مبالغه افاده کړي لکه ﴿ هُدًى وَبُشْرَىٰ ﴾ چي په اصل کي (هادیًا ومبشرًا) دی.

۴- دضمیرمکررراوړل چي حصراوځانگړتیا (اختصاص) وښیي لکه داچي ﴿ وَهُم بِٱلْءَاخِرَةِ هُمْ يُوقِنُونَ ﴾ بل داچي ﴿ وَهُمْ فِى ٱلْءَاخِرَةِ هُمُ ٱلْأَخْسَرُونَ ﴾ اودد ې دوو جملو ترمینځ ډېره ښایسته مقابله هم راغلې ده.

۵- تاکید په (إنّ) او(لام) سره لکه ﴿ وَإِنَّكَ لَتُلَقَّى ٱلْقُرْءَانَ ﴾ ځکه چي دقرآنکریم دسموالي په هکله شککین موجودوو.

٦- ایجازبالحذف لکه چي فرمايي ﴿ وَأَلْقِ عَصَاكَ فَلَمَّا رَءَاهَا تَهْتَزُّ ﴾ دلته يې هغه جمله حذف کړې چې (فألقاها) ده او دغه دجملې دسياق په دلالت کولو معلومېږي.

٧- دطباق صنعت چي د ﴿ حُسْنًا بَعْدَ سُوٓءٍ ﴾ او ﴿ وَلَّىٰ مُدْبِرًا وَلَمْ يُعَقِّبْ ﴾ ترمينځ راغلی دی.

٨- استعاره چي الله فرمايي: ﴿ ءَايَـٰتُنَا مُبْصِرَةً ﴾ دابصار لفظ يې دڅرګندوالي اوبيان لپاره راوړی څکه چي په دواړو سترګو انسان دشيانو ليدل کتل کوي

٩- مرسله مجمله تشبيه لکه ﴿ كَأَنَّهَا جَآنٌّ ﴾ دلته يې دتشبيه توری ادات ذکرکړی او وجه دشبه يې حذف کړي نومجمله مرسله تشبيه ده.

١٠- حسن الاعتذار پدې ويناکي چي ﴿ وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴾ دی.

**لطيفه:**

ځيني علماء کرامو دغه آيت شريف چي فرمايي ﴿ قَالَتْ نَمْلَةٌ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّمْلُ ٱدْخُلُوا۟ مَسَـٰكِنَكُمْ ﴾ دقرآنکريم له عجائباتو ګڼلي هغه داسي چي هغې د(يا) په لفظ نداء وکړه په (أيها) يې تنبيه وښوده او په ﴿ ٱلنَّمْلُ ﴾ يې تعيين وکړه په ﴿ ٱدْخُلُوا۟ ﴾ يې حکم صادرکړه په ﴿ مَسَـٰكِنَكُمْ ﴾ يې هستوګن ځايونه ورپه ګوته کړل په ﴿ لَا يَحْطِمَنَّكُمْ ﴾ يې ووېرول ﴿ سُلَيْمَـٰنُ ﴾ يې په تخصيص يادکړ ﴿ وَجُنُودُهُۥ ﴾ يې په تعميم اداکړه په ﴿ وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴾ يې عذر وړاندي کړ. سبحان الله څومره پوهه اوذکاوت خاوند مېږی وو؟

•••

الله تعالى فرمايي:

﴿ وَتَفَقَّدَ ٱلطَّيْرَ فَقَالَ مَا لِىَ لَآ أَرَى ٱلْهُدْهُدَ أَمْ كَانَ مِنَ ٱلْغَآئِبِينَ ﴿٢٠﴾ لَأُعَذِّبَنَّهُۥ عَذَابًا شَدِيدًا أَوْ لَأَا۟ذْبَحَنَّهُۥٓ أَوْ لَيَأْتِيَنِّى بِسُلْطَـٰنٍ مُّبِينٍ ﴿٢١﴾ فَمَكَثَ غَيْرَ بَعِيدٍ فَقَالَ أَحَطتُ بِمَا لَمْ تُحِطْ بِهِۦ وَجِئْتُكَ مِن سَبَإٍۭ بِنَبَإٍ يَقِينٍ ﴿٢٢﴾ إِنِّى وَجَدتُّ ٱمْرَأَةً تَمْلِكُهُمْ وَأُوتِيَتْ مِن كُلِّ شَىْءٍ وَلَهَا عَرْشٌ عَظِيمٌ ﴿٢٣﴾ وَجَدتُّهَا وَقَوْمَهَا يَسْجُدُونَ لِلشَّمْسِ مِن دُونِ ٱللَّهِ وَزَيَّنَ لَهُمُ ٱلشَّيْطَـٰنُ أَعْمَـٰلَهُمْ فَصَدَّهُمْ عَنِ ٱلسَّبِيلِ فَهُمْ لَا يَهْتَدُونَ ﴿٢٤﴾ أَلَّا يَسْجُدُوا۟ لِلَّهِ ٱلَّذِى يُخْرِجُ ٱلْخَبْءَ فِى ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَيَعْلَمُ مَا تُخْفُونَ وَمَا تُعْلِنُونَ ﴿٢٥﴾ ٱللَّهُ لَآ إِلَـٰهَ إِلَّا هُوَ رَبُّ ٱلْعَرْشِ ٱلْعَظِيمِ ۩ ﴿٢٦﴾ ۞ قَالَ سَنَنظُرُ أَصَدَقْتَ أَمْ كُنتَ مِنَ ٱلْكَـٰذِبِينَ ﴿٢٧﴾ ٱذْهَب بِّكِتَـٰبِى هَـٰذَا فَأَلْقِهْ إِلَيْهِمْ ثُمَّ تَوَلَّ عَنْهُمْ فَٱنظُرْ مَاذَا يَرْجِعُونَ ﴿٢٨﴾ قَالَتْ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلْمَلَؤُا۟ إِنِّىٓ أُلْقِىَ إِلَىَّ كِتَـٰبٌ كَرِيمٌ ﴿٢٩﴾ إِنَّهُۥ مِن سُلَيْمَـٰنَ وَإِنَّهُۥ بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَـٰنِ ٱلرَّحِيمِ ﴿٣٠﴾ أَلَّا تَعْلُوا۟ عَلَىَّ وَأْتُونِى مُسْلِمِينَ ﴿٣١﴾ قَالَتْ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلْمَلَؤُا۟ أَفْتُونِى فِىٓ أَمْرِى مَا كُنتُ قَاطِعَةً أَمْرًا حَتَّىٰ تَشْهَدُونِ ﴿٣٢﴾ قَالُوا۟ نَحْنُ أُو۟لُوا۟ قُوَّةٍ وَأُو۟لُوا۟ بَأْسٍ شَدِيدٍ وَٱلْأَمْرُ إِلَيْكِ فَٱنظُرِى مَاذَا تَأْمُرِينَ ﴿٣٣﴾ قَالَتْ إِنَّ ٱلْمُلُوكَ إِذَا دَخَلُوا۟ قَرْيَةً أَفْسَدُوهَا وَجَعَلُوٓا۟ أَعِزَّةَ

أَهْلِهَا أَذِلَّةً وَكَذَٰلِكَ يَفْعَلُونَ ﴿٣٤﴾ وَإِنِّي مُرْسِلَةٌ إِلَيْهِم بِهَدِيَّةٍ فَنَاظِرَةٌ بِمَ يَرْجِعُ الْمُرْسَلُونَ ﴿٣٥﴾ فَلَمَّا جَاءَ سُلَيْمَانَ قَالَ أَتُمِدُّونَنِ بِمَالٍ فَمَا آتَانِيَ اللَّهُ خَيْرٌ مِّمَّا آتَاكُم بَلْ أَنتُم بِهَدِيَّتِكُمْ تَفْرَحُونَ ﴿٣٦﴾ ارْجِعْ إِلَيْهِمْ فَلَنَأْتِيَنَّهُم بِجُنُودٍ لَّا قِبَلَ لَهُم بِهَا وَلَنُخْرِجَنَّهُم مِّنْهَا أَذِلَّةً وَهُمْ صَاغِرُونَ ﴿٣٧﴾ قَالَ يَا أَيُّهَا الْمَلَأُ أَيُّكُمْ يَأْتِينِي بِعَرْشِهَا قَبْلَ أَن يَأْتُونِي مُسْلِمِينَ ﴿٣٨﴾ قَالَ عِفْرِيتٌ مِّنَ الْجِنِّ أَنَا آتِيكَ بِهِ قَبْلَ أَن تَقُومَ مِن مَّقَامِكَ وَإِنِّي عَلَيْهِ لَقَوِيٌّ أَمِينٌ ﴿٣٩﴾ قَالَ الَّذِي عِندَهُ عِلْمٌ مِّنَ الْكِتَابِ أَنَا آتِيكَ بِهِ قَبْلَ أَن يَرْتَدَّ إِلَيْكَ طَرْفُكَ فَلَمَّا رَآهُ مُسْتَقِرًّا عِندَهُ قَالَ هَٰذَا مِن فَضْلِ رَبِّي لِيَبْلُوَنِي أَأَشْكُرُ أَمْ أَكْفُرُ وَمَن شَكَرَ فَإِنَّمَا يَشْكُرُ لِنَفْسِهِ وَمَن كَفَرَ فَإِنَّ رَبِّي غَنِيٌّ كَرِيمٌ ﴿٤٠﴾ قَالَ نَكِّرُوا لَهَا عَرْشَهَا نَنظُرْ أَتَهْتَدِي أَمْ تَكُونُ مِنَ الَّذِينَ لَا يَهْتَدُونَ ﴿٤١﴾ فَلَمَّا جَاءَتْ قِيلَ أَهَٰكَذَا عَرْشُكِ قَالَتْ كَأَنَّهُ هُوَ وَأُوتِينَا الْعِلْمَ مِن قَبْلِهَا وَكُنَّا مُسْلِمِينَ ﴿٤٢﴾ وَصَدَّهَا مَا كَانَت تَّعْبُدُ مِن دُونِ اللَّهِ إِنَّهَا كَانَتْ مِن قَوْمٍ كَافِرِينَ ﴿٤٣﴾ قِيلَ لَهَا ادْخُلِي الصَّرْحَ فَلَمَّا رَأَتْهُ حَسِبَتْهُ لُجَّةً وَكَشَفَتْ عَن سَاقَيْهَا قَالَ إِنَّهُ صَرْحٌ مُّمَرَّدٌ مِّن قَوَارِيرَ قَالَتْ رَبِّ إِنِّي ظَلَمْتُ نَفْسِي وَأَسْلَمْتُ مَعَ سُلَيْمَانَ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿٤٤﴾ النمل: ٢٠ ـ ٤٤

## مناسبت او تړاو:

لاتراوسه پوري آيتونه دسليمان او داؤدعليهماالسلام څخه غږېږي هغه چي الله پاچهي اونبوت دواړه وربانډي لوروليي ووانسانان اوپېريانان بې ورته اېل اوتابع ګرزولي وودمرغانوپه ژبه بې پوهولي وواودلته بياآيتونه له بلقيس سره چي دسباملکه وه دهغه عليه السلام کيسه راآخلي اوهغه عجائبات چي دد ې کيسې په اوږدو کي پېښ شوي ذکر کوي(١)

## لغتونه:

(تفقد) هغه چي ورک شوی وي دهغه لټول (الخبء) پټ شی (صاغرون) ذليل سپک سپانده (عفريت) هغه سرکښ اوزورور (دېو) دپېريانو اوانسانانو.پليت ناولی.دوکه باز(الصرح) مانۍ ,قصر اوهره لوړه بنا(صرح) ګڼلای شي لکه چي دفرعون په هکله راځي ﴿ وَقَالَ فِرْعَوْنُ يَا هَامَانُ ابْنِ لِي صَرْحًا لَّعَلِّي أَبْلُغُ الْأَسْبَابَ ﴾ (غافر٣٦) (ممرّد) ښوی اوله دې څخه امردهم دی هغه زلمی ، زلمی چي دېره بې نه وي راغلي اوهغه ونه چي ښې نه لري ورته ويل کېږي (شجرة مردآء) (قوارير) د(قارورة) جمع اوښيښې ته وايي.

## تفسير:

﴿ وَتَفَقَّدَ الطَّيْرَ فَقَالَ مَا لِيَ لَا أَرَى الْهُدْهُدَ ﴾ اولټونه بې وکړه دمرغانو(هدهدبې ونه مونده) نووېي ويل څه مانع دی مالره چي زه هُدهُدنه وينم (دلته ؟ مفسرين کرام وايي چي مرغان به په سفرکي ورسره ملګري تلل اوپخپلو وزرونو به بې په سليمان عليه السلام باندي سيوری کاوونو کله چي سليمان عليه السلام دمېريانوله ښارڅخه روان شوپه يوه شاړه ځمکه کي ښکته شولښکريان تږي شول

---

(١) يوه عجيبه داچي پاچهان عادتاله نارينه ووڅخه تاکل کېږي ښځي له پاچهي سره نه ښايي اوددې وينا تائيدپه حديث شريف کي هم راځي چي (لن يفلح القوم ولّوا أمرهم إمرأة ) اودغه دفطرت منطق دی.

اوداوبوغوښتنه يې وکړه اوهُدهُد به دوی ته اوبه ورښودلې اوکله چې به يې ورته وښودلې چې دلته اوبه شته نوبه دېوانو، پېريانوهغه ځای وکيندل اوځېرې کړېيا به چينې راوبهېدلې نوپه دغه ورځ يې هُدهُدولټاووغيرحاضروو بيايې وويل چې زه يې نه وينم ؟﴿ أَمْ كَانَ مِنَ ٱلْغَآئِبِينَ ﴾ بلکه دی (هغه) له غيرحاضرانو؛أم دلته منقطعه دی اود(بل)په معناراځي يعني هغه زمايې اجازې تللی دی ﴿ لَأُعَذِّبَنَّهُۥ عَذَابًا شَدِيدًا أَوْ لَأَاْذْبَحَنَّهُۥٓ أَوْ لَيَأْتِيَنِّى بِسُلْطَٰنٍ مُّبِينٍ ﴾ خامخاعذاب به ورکړم زه هرومروده ته سخت عذاب(بندي به يې کړم ، يابه ښکې او وزرورو شکوم) يابه يې ذبح کړم اويابه خامخادی ماته راوړي (ددې غائب کېدلو ) ښکاره دليل (چې دده عذروښيي) ﴿ فَمَكَثَ غَيْرَ بَعِيدٍ ﴾ پس ځنډ وکړ (هُدهُد ) لږ زمانه (ژرراغی سليمان ته) ﴿ فَقَالَ أَحَطتُ بِمَا لَمْ تُحِطْ بِهِۦ ﴾ پس وويل (هدهد سليمان ته) احاطه وکړه ماپه هغه څه (پوره پرې خبرشوی يم ) چې تااحاطه نه ده کړې (پرې خبرنه يې )په هغه ﴿ وَجِئْتُكَ مِن سَبَإٍۭ بِنَبَإٍ يَقِينٍ ﴾ (اوراغلی يم زه تاته له سباڅخه په يقيني خبره سره ) يعني زه تاته ديمن له سباښارڅخه يومهم ستراوريښتونی خبردرکوم چې ﴿ إِنِّى وَجَدتُّ ٱمْرَأَةً تَمْلِكُهُمْ ﴾ : بېشکه چې ماوموندله يوه ښځه چې پاچهي يې کوله پردغه (أهل دسبأ اوهغوی ددې دحکمونومنلوته غاړه ايښې وه ﴿ وَأُوتِيَتْ مِن كُلِّ شَيْءٍ ﴾ او ورکړل شوی وودغې ښځې ته له هرڅېزڅخه (هغه چې پاچهانوته له مال ، دولت ، وسلې اواسبابولښکروورکولی شي ﴿ وَلَهَا عَرْشٌ عَظِيمٌ ﴾اوددې ډېرلوی تخت دی(چې په ملغلرواوياقوتوپوښلی دی ؛ قتاده وايې : چې عرش يې دسروزرو وو اوپښې يې دملغلروچې په لؤلؤ ښايسته کړی شوی وې. طبري وايې چې: دلته يې عظيم وستايه مقصديې دهغه قدراواهميت دی يعني خوراقدرمن اوبا اهميته تخت دی هسې نه چې پراخ اوپلن دی څکه نوابن عباس (رضی الله عنه) وايې چې د﴿ عَرْشٌ عَظِيمٌ ﴾ معناداچې ښايسته روغ اوقېمتي جوړدی چې عرش يې دسروزرواو پښې يې دجواهرواولؤلؤوي ([1]) بيايې تردې ستري چارې ته اشاره وکړه ويې ويل : ﴿ وَجَدتُّهَا وَقَوْمَهَا يَسْجُدُونَ لِلشَّمْسِ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ ومې موندله دغه ښځه اوددې قوم چې لمرته به يې سجدې کولې بې له الله (دوی مجوسيان وودواحدالأحدذات عبادت يې پرې ايښی وو ) ﴿ وَزَيَّنَ لَهُمُ ٱلشَّيْطَٰنُ أَعْمَٰلَهُمْ ﴾ او ښايسته کړي دي دوی ته شيطان عملونه ددوی (چې پرته له الله لمرته سجدې لګوي) ﴿ فَصَدَّهُمْ عَنِ ٱلسَّبِيلِ ﴾ پس منع کړي دي (شيطان) دوی له سمې صافې لارې څخه (دحق اوصواب) ﴿ فَهُمْ لَا يَهْتَدُونَ ﴾ پس دوی نه مومي سمه صافه لار(څکه چې شيطان ښويولي دي الله ته لاره نشي موندلای ) وروسته بياهُدهُدپه

([1]) الطبري ۱۹/۹۲

تعجب سره وويل: ﴿ أَلَّا يَسْجُدُوا۟ لِلَّهِ ٱلَّذِى يُخْرِجُ ٱلْخَبْءَ فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ (چي دوی نه کوي سجده الله ته هغه چي راباسي (ښکاره کوي پټ شيزونه په آسمانونوکي اوپه ځمکه کي) يعني آيادوی لمرته سجده کوي اوهغه ذات چي عظيم خالق الله تعالی دی اوپټ شيزونه ښکتني اوپورتني ورته معلوم دي هغه ته سجده نه کوي؟ (١) ﴿ وَيَعْلَمُ مَا تُخْفُونَ وَمَا تُعْلِنُونَ ﴾ اوهغه (الله) چي ورمعلوم دی هرهغه شيزچي پټوی يې تاسي (په زړونوخپلو کي) اوهرهغه شيزچي ښکاروی يې تاسي (په ژبوخپلو) ﴿ ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ رَبُّ ٱلْعَرْشِ ٱلْعَظِيمِ ﴾ الله (هغه ذات دی) چي نشته هيڅ لائق دعبادت مګريوازي هم دی دی خاوندی دعرش دډېرلوی ) يعني هغه ذات چي په عظمت اوجلال کي متفرداودسترعرش خاوندی دعبادت وړدی چي ورته سجده وکړی شي اوعرش يې ځکه په ځانګړي توګه يادکړچي هغه ترګردومخلوقاتوستر دی تردې ځايه پوري دهدهد خبري پای ته ورسېدې ﴿ قَالَ سَنَنظُرُ أَصَدَقْتَ أَمْ كُنتَ مِنَ ٱلْكَٰذِبِينَ ﴾ نووويل (سليمان) ژربه وګوروآياتا رښتيا ويلي دي (ای هدهده!) اوکه ته يې له دروغ ويونکو؟!؛ ابن الجوزي وايې چي پدې سبب يې په خبره شکمن شوچي هغه نه ګڼله دبل چادي هم پاچهي وي بيايې مکتوب وليکه اوپخپل مهريې ټاپه کړو هدهدته يې ورکړاو ورته ويل يې: ﴿ ٱذْهَب بِّكِتَٰبِى هَٰذَا فَأَلْقِهْ إِلَيْهِمْ ﴾ يوسه ته (ای هدهده زمادا ليک اووغورځوه هغه دوی (ملکې اولښکرو) ته ﴿ ثُمَّ تَوَلَّ عَنْهُمْ ﴾ بيا(پټ نژدې ودرېږه) له دوی څخه مخ جارباسه ﴿ فَٱنظُرْ مَاذَا يَرْجِعُونَ ﴾ پس وګوره (له ورايه) چي په څه ځواب دوی رجوع کوي؟. مفسرين کرام وايې چي هدهد کتاب واخيست اوبلقيس اوقوم ته يې وروور په سرېې تاوراتاوشو او بيايې مکتوب دهغې په څنګ کي وغورځاوو ﴿ قَالَتْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْمَلَؤُا۟ إِنِّىٓ أُلْقِىَ إِلَىَّ كِتَٰبٌ كَرِيمٌ إِنَّهُۥ مِن سُلَيْمَٰنَ وَإِنَّهُۥ بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ ﴾ وويل: (بلقيس) چي ای اشرافو ښېشکه زه چي يم راغورځول شوی دی ماته يومکتوب (ليک) عزتناک ښېشکه دغه (ليک) دسليمان (له لوري راغلی) دی اوښېشکه (مضمون ددې ليک دادی چي پيلېږي) په نامه دالله چي خورامهربان دډېررحم والادی) يعني قوم ته يې وويل: چي ماته يوعزتمن ليک دسليمان له لوري راغلی اوچي هغه يې پرانست پکي داسي ووچي ﴿ بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ ﴾ اودغه يوله شرافته ډکه پيلامه وه چي الله ته يې دربوبيت اعلان کاووادالله توحيداودهغه امرمنلوته يې بلنه ورکوله ﴿ أَلَّا تَعْلُوا۟ عَلَىَّ وَأْتُونِى مُسْلِمِينَ ﴾ (مقصدمي دادی) چي لويي (اوکبر) مه کوئ پرما اوراځي تاسي ماته مسلمانان غاړه اېښودونکي (الله ته) يعني پرماباندي لويي مکوئ لکه چي پاچهان يې کوي ماته طائعين راشئ دغه دسفيان وينا

---

(١) داهغه څه دي چي زماپه ذهن کي دآيت شريف دمعناپه هکله راځي اوښکاري چي دقرآني نص دپوهېدلوروح ته هم ورنژدې دي ځکه چي ځای، ځای دتعجب اوانکاردی يوازي اخباراوتحديث مقصدنه دی هغه چي مفسرين کرام وايې چي (لا) زائده ده اومعنادا چي دوی دالله لوري ته سجدې کولوته لاره نه مومي اويادا چي معنايې داچي ای خلکوسجده وکړئ الله ته ... اريانورغيرظاهردي. والله أعلم (صابوني).

اوعبدالله بن عبا س رضی الله عنهما وايي چې معنادا ده موحدين راشئ ﴿ قَالَتْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْمَلَؤُا۟ أَفْتُونِى فِىٓ أَمْرِى ﴾ وويل (بلقيس) چي ای اشرافوماته مشوره راکړئ په دغه کارزماکي ﴿ مَا كُنتُ قَاطِعَةً أَمْرًا حَتَّىٰ تَشْهَدُونِ ﴾ زه فيصله کونکي نه يم دکوم کارترڅوچي حاضرشی تاسي ماته (مشوره راکړی!) ﴿ قَالُوا۟ نَحْنُ أُو۟لُوا۟ قُوَّةٍ وَأُو۟لُوا۟ بَأْسٍ شَدِيدٍ ﴾ وويل: دغو(اشرافو) چي موږخاوندان دزور يواوخاوندان يود سخت جنګ ﴿ وَٱلْأَمْرُ إِلَيْكِ فَٱنظُرِى مَاذَا تَأْمُرِينَ ﴾ اوامر(حکم اختيار) تاته دی پس وګوره (ای ملکې) چي دڅه شي حکم کوې ته (چي موږيې ومنو) ددوی دغه خبره پدې دلالت کوي چي خورايې تابع وو. قرطبي وايي چي هغې له حسن ادب څخه کاروا خيست اوله خپله قومه سره يې مشوره ګډه کړه چي په هره چاره کي ددوی خبري ته غوږ نيسي نوقوم هم داسي چلندورسره وکړچي ددې سترګي يخي اوزړه يې داده شي چي ستاقوم اولښکر خودزور اوسخت جنګ ازمويل شوی دی خوبياهم تولي چاري تاته سپارل شوي اودغه له ګردوڅخه ښه مرکه وه ([1]) حسن بصري رحمه الله وايي چي دوی خپلي چاري هغې پندې ښځي ته چي غولانځي يې خوځېدلې وسپارلې اوچي کله يې خپله ويناورته وکړه نوهغه تردوی په رايه اوپوهه کي خوراغښتلي وه ﴿ قَالَتْ إِنَّ ٱلْمُلُوكَ إِذَا دَخَلُوا۟ قَرْيَةً أَفْسَدُوهَا ﴾ نوو ويل: (بلقيس چي په جنګ کي خيرنشته) بېشکه پاچهان هرکله چي ننوزي په کوم کلي (ښار) (په زوراوقهر) دوی هغـــه ښارخرابوي ﴿ وَجَعَلُوٓا۟ أَعِزَّةَ أَهْلِهَآ أَذِلَّةً ﴾ اوګرزوي معززمشران ددې ښارذليل (بنديان وژلي اوشړلي) ﴿ وَكَذَٰلِكَ يَفْعَلُونَ ﴾ اوهمداسي دوی کوي (نودمسالمت اوسولې لاره يې غوره کړه ويې ويل: ﴿ وَإِنِّى مُرْسِلَةٌ إِلَيْهِم بِهَدِيَّةٍ فَنَاظِرَةٌۢ بِمَ يَرْجِعُ ٱلْمُرْسَلُونَ ﴾ اوبېشکه زه دوی ته لېږونکي يم (قاصد) سره له (ستره) سوغاته پس بيازه کتونکي يم چي په څه حال بيرته راځي دغه لېږل شوی ؟ ( چي آياپېشکشي مني اوکه يې بيرته ردوي. قتاده وايي: په کفراواسلام کي څومره هوښياره وه هغې ته معلومه وه چي هديه دخلګودزړونوپه اېل کولوکي څومره اغېزمنه وي ابن عباس رضی الله عنه وايي چي دې خپل قوم ته وويل: که يې هديه واخيستله نوپاچادی دنياغواړي ورسره وجنګېږئ اوکه يې هديه نه غوښتله نوبيانبي اوپيغمبردی رښتونی دی دهغه متابعت وکړئ ([2]) ﴿ فَلَمَّا جَآءَ سُلَيْمَٰنَ قَالَ أَتُمِدُّونَنِ بِمَالٍ ﴾ پس کله چي راغی قاصد (بلقيس) سليمان ته نوو ويل (سليمان په ناخوښي) آيامدګاري (مرسته) کوی تاسي له ماسره په مال (چي تاسوپه خپل کفراوشرک کي پرېږدم ؟!) ﴿ فَمَآ ءَاتَىٰنِۦَ ٱللَّهُ خَيْرٌ مِّمَّآ ءَاتَىٰكُم ﴾ پس هغه څيزچي راکړی دی ماته الله (له نبوت ، علم اوسلطنت) دېرغوره دی له هغه څه نه چي الله تاسي ته درکړی دی (دژوندانه له زېنت اوښکلاڅخه ماته ستاسودسوغات هيڅ اړتيانشته ) ﴿ بَلْ أَنتُم بِهَدِيَّتِكُمْ تَفْرَحُونَ ﴾ بلکه تاسي په دې خپله هديه (پېشکشي ) خوشحالېږي (ځکه تاسوهغه څوک ياست چي ددنياپه مال

---

([1]) القرطبي ۱۹۴/۱۳
([2]) مختصرابن کثير ۲۷۱/۲

دولت دېرېدلوويارۍ اوبيايې دپلاوي مشرته وويل: ﴿ ٱرۡجِعۡ إِلَيۡهِمۡ فَلَنَأۡتِيَنَّهُم بِجُنُودٖ لَّا قِبَلَ لَهُم بِهَا ﴾ (اى قاصده) بيرته ورشه دوى ته (سره له خپله سوغاته) قسم دى وربه شوموږ دوى سره له (داسي زورورو لښكرو چي نه وي هيڅ طاقت دمقابلې دوى ته له هغولښكروسره ﴿ وَلَنُخۡرِجَنَّهُم مِّنۡهَآ أَذِلَّةٗ وَهُمۡ صَٰغِرُونَ ﴾ اوخامخا(كه دوى رانشي) وبه باسودوى له دغه (ښاراوپاچهي نه) په داسې حال كي چي بې عزته اوخواربه وي ابن عباس رضى الله عنه وايې كله چي دبلقيس ايلچي (قاصد) دسليمان عليه السلام څخه بيرته هغې ته ورستون شواوهغې ته يې بشپړحال ووايونودې وويل پوه شوم چي دغه پاچانه دى اوموږيې دمقابلې توان نلرو اوسليمان عليه السلام ته يې پيغام واستاوچي زه سره له خپلوقومي مشرانودرځم چي وګورم چي ته څوك اوكوم دين ته بلنه راكوې ؟ اوبيايې په دوولس زره قوماندانانوكي يوخاى دغه لورته ور روانه شوه ([1]) ﴿ قَالَ يَٰٓأَيُّهَا ٱلۡمَلَؤُاْ أَيُّكُمۡ يَأۡتِينِي بِعَرۡشِهَا قَبۡلَ أَن يَأۡتُونِي مُسۡلِمِينَ ﴾ وويل (سليمان) اى (زماددربار) اشرافوكوم يوله تاسي به ماته راوړي تخت ددې (بلقيسې) پخواله هغه چي راځي دوې ماته (رارسېږي) مسلمانان غاړه اېښودونكي الله ته)؟ بيضاوي وايې چي مقصديې داووهغې ته ځيني هغه عجائبات وروښيي چي الله جل جلاله هغه عليه السلام ورباندي ځانګړى كړى ووترڅودده دنبوت په رڼښتنولي دلالت وكړي اودهغې پوهه وازمويي چي كله يې تخت ورته سره له څه بدلونه وښيي چي آياهغه يې پېژني اوكه نه ؟ ([2]) ﴿ قَالَ عِفۡرِيتٞ مِّنَ ٱلۡجِنِّ أَنَا۠ ءَاتِيكَ بِهِۦ قَبۡلَ أَن تَقُومَ مِن مَّقَامِكَۖ ﴾ وويل يوزورور سخت قوي له قومه دپېريانوچي زه به تاته راوړم داتخت پخواله هغه چي ته له دې خپله ځايه پاڅېږې (چي هغه دحكم وخت اومجلس وو چي له سهاره به بياترماسپښين پوري هره ورځ دائرېدومقصديې داووچي زه به يې په نيمه ورځ كي درته راورسوم ﴿ وَإِنِّي عَلَيۡهِ لَقَوِيٌّ أَمِينٞ ﴾ اوبېشكه زه پردغه راوړلوددې تخت خامخاقوي (زورور) امانتكريم (چي په جواهراتواوزېوراتو كي به يې خيانت نه كوم) ﴿ قَالَ ٱلَّذِي عِندَهُۥ عِلۡمٞ مِّنَ ٱلۡكِتَٰبِ أَنَا۠ ءَاتِيكَ بِهِۦ قَبۡلَ أَن يَرۡتَدَّ إِلَيۡكَ طَرۡفُكَۚ ﴾ وويل: هغه سړي چي دده له كتابه يوعلم وو(اسم اعظم يې زده وو) زه به راوړم داتخت پخواله هغه چي بيا را ګرزي تاته سترګه ستا(چي يوڅه ته ګورې) مفسرين كرام وايې: چي دغه سړى (آصف بن برخيا) دصديقينوله ډلي اواسم اعظم ورته معلوم ووهغه چي چاته معلوم وي او ورباندي دُعاوكړي دُعايې منل كېږي همدى ووچي دبلقيس شاهي تخت يې راحاضركړاودسترګوپه رپ كي يې دراوړلوتابيا وكړه ﴿ فَلَمَّا رَءَاهُ مُسۡتَقِرًّا عِندَهُۥ قَالَ هَٰذَا مِن فَضۡلِ رَبِّي ﴾ نوكله چي سليمان دغه (تخت) قرارپروت په خپل نزد وليدو نوويې ويل دغه (ژرراوړل دتخت) له فضله (احسانه) درب زمادى (پرماباندي) ﴿ لِيَبۡلُوَنِيٓ ءَأَشۡكُرُ أَمۡ أَكۡفُرُۖ ﴾ دپاره ددې چي ماوازمويي آيازه شكركوم (پرنعمتونودده) يا ناشكري (كفران) كوم ؟ (دنعمتويې) ﴿ وَمَن شَكَرَ فَإِنَّمَا

---

([1]) حاشيه شيخ زاده على البيضاوي ٣ / ٤٩٣

([2]) البيضاوي ٢ / ٨٣

﴿ يَشْكُرُ لِنَفْسِهِۦ ﴾ اوهرڅوک چې شکر کوي پس بېشکه هم دا خبره ده چې شکر کوي دخپل ځان لپاره (چې پرې دنعمتونو دوام او تزئيد کېږي چې الله فرمايي ﴿ لَئِن شَكَرْتُمْ لَأَزِيدَنَّكُمْ ﴾ ﴿ وَمَن كَفَرَ فَإِنَّ رَبِّي غَنِيٌّ كَرِيمٌ ﴾ اوهرڅوک چې ناشکري وکړي (کفران کوي) نوبېشکه چې پروردګارزما بې پروادی (له شکره اوله ده نه) کرم والادی چې سخاوت کوي کفران والاوو ته هم نعمتونه ورکوي.. اوکله چې دسبادملکې دراتلووخت نژدې شونوبې دتخت ځيني نښې نښانې بدلې کړې چې هغه وازمويې ﴿ قَالَ نَكِّرُوا لَهَا عَرْشَهَا نَنظُرْ أَتَهْتَدِيٓ أَمْ تَكُونُ مِنَ ٱلَّذِينَ لَا يَهْتَدُونَ ﴾ وويل (سليمان) چې تاسي ناآشنا(اوپه بل شان اوشکل کړئ لکه چې انسان کله ځان ناآشناتمثيلوي) ددې تخت چې وګوروآيا پېژني يې ياکېږي له هغه چاچې نه يې پېژني ؟ پدې سره يې ددې دذکاوت اوعقل امتحان مقصدوو ﴿ فَلَمَّا جَآءَتْ قِيلَ أَهَٰكَذَا عَرْشُكِ ﴾ اوکله چې (بلقيس) راغله ورته وويل شول چې آيا ستاتخت هم داسي دی (لکه داچې وينې يې )هغې وويل لکه چې داهم هغه دی.(هغې ته يې داسي ونه ويل چې آيادا ستاتخت دی ؟ ترڅو دهغې لپاره تلقين نه شي) هغې هم په ځواب دغه له هغه سره نژدې اومشابه وګڼل اوهسي يې ونه ويل چې هودغه دی اويادا چې دغه نه دی اودغه دهغې بشپړذکاوت اوپوره پوهه ښکاره کوي (¹) ﴿ قَالَتْ كَأَنَّهُۥ هُوَ ۚ وَأُوتِينَا ٱلْعِلْمَ مِن قَبْلِهَا وَكُنَّا مُسْلِمِينَ ﴾ (اوراکړل شوی وموږته علم (په قدرت دالله اوالله جل جلاله باندي ) ترپخواله دې ښځي اوموږمسلمانان وو ترپخواله دې ښځي اوموږ مسلمانان ووترپخواله دې (نوموږتردې په علم اواسلام کي خورا مخکښ يودغه سليمان عليه السلام د(تحديث بالنعمة) په توګه وويل (²) ﴿ وَصَدَّهَا مَا كَانَت تَّعْبُدُ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ اودامنع کړه (له ايمان راوړلو ) هغه څيزچې عبادت يې کاووغيرله الله (چې دسپوږمۍ اولمرعبادت وو ﴿ إِنَّهَا كَانَتْ مِن قَوْمٍ كَٰفِرِينَ ﴾ بېشکه چې داوه (پخوا ) له هغه قومه چې کافران وو ﴿ قِيلَ لَهَا ٱدْخُلِى ٱلصَّرْحَ ﴾ وويل شودغې (بلقيس)ته چې ننوزه دې بنګلې ته ﴿ فَلَمَّا رَأَتْهُ حَسِبَتْهُ لُجَّةً وَكَشَفَتْ عَن سَاقَيْهَا ﴾ پس کله چې وليده (بلقيس) دا شيشه) نوګمان يې پرې وکړ ژورو اوبواوپورته يې کړه(پايڅه)له دواړوپنډيو خپلو(چې پرې ګډه-شي) ﴿ قَالَ إِنَّهُۥ صَرْحٌ مُّمَرَّدٌ مِّن قَوَارِيرَ ﴾ نووويل (سليمان) بېشکه (دغه اوبه نه دي) يوه بنګله ده چې په ځمکه هواره ښوی جوړه شوي (له ښيښې صافي) ﴿ قَالَتْ رَبِّ إِنِّى ظَلَمْتُ نَفْسِى وَأَسْلَمْتُ مَعَ سُلَيْمَٰنَ ﴾ وويل(بلقيس) ای زماربه بېشکه ماظلم کړی دی پرځان خپل(چې شرک مي کاوواواسلام مي راوړی دی سره له سليمانه ﴿ لِلَّهِ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ خاص هغه الله ته چې رب دعالميانودی؛ نودسليمان عليه السلام تابع شوه اوپه اسلام کي داخله مؤمنه شوه ابن

---

(¹) ابن کثير ۲ / ۲۷۳

(²) دغه دصابوني رحمه الله تفسيردی اوځينو مفسرينو دغه دبلقيس ويناګڼلي ده اودراتلونکي ايت تفسير هم دمؤلف رايه ده (ژباړن).

كښيروايې چي دسليمان عليه السلام مقصدپدې كي چي داهسي سترقصراوبنګله يې له ښيښې څخه پداسي غوره توګه جوړوله داووترڅوبلقيس ته دخپل زور اوسلطان عظمت ور وښيي اوكله چي هغې دغه جلال اوالهي ورکړه اوتمكن وليدواوودده حالت يې وكوت سمدلاسه يې دالله حكم ته غاړه كښېښوده اوپدې پوه شوه چي دغه بېشكه حزتمن پيغمبراوسترپاچادى نويې پر الله تبارک وتعالى ايمان راووړ(١) په اسلام مشرفه شوه.

بلاغت:

پدې آيتونوكي چي دبديع اوبيان كومي ښكلاوي شته لنډيزيې په لاندي ډول دى:

١-دتعجب أسلوب لكه ﴿ مَالِيَ لَآ أَرَى ٱلۡهُدۡهُدَ ﴾ ؟.

٢-مكررتاكيدلكه داچي ﴿ لَأُعَذِّبَنَّهُۥ ... أَوۡ لَأَاْذۡبَحَنَّهُۥٓ ...أَوۡ لَيَأۡتِيَنِّي ﴾ دامردټينګ والي لپاره.

٣-دسلب طباق لكه ﴿ أَحَطتُ بِمَا لَمۡ تُحِطۡ بِهِۦ ﴾ او ﴿ أَتَهۡتَدِيٓ ... لَا يَهۡتَدُونَ ﴾ .

۴-باريک دجناس صنعت چي فرمايې ﴿ وَجِئۡتُكَ مِن سَبَإِۭ بِنَبَإٖ يَقِينٍ ﴾ اودې ته ناقص جناس ويل كېږي څكه چي څيني توري يې بدل دي(٢) .

۵-لفظي طباق لكه: ﴿ تُخۡفُونَ ... تُعۡلِنُونَ ﴾ اوهمداسي ﴿ ءَأَشۡكُرُ أَمۡ أَكۡفُرُ ﴾ .

٦-معنوي طباق لكه ﴿ أَصَدَقۡتَ أَمۡ كُنتَ مِنَ ٱلۡكَٰذِبِينَ ﴾ دبيان علماء وايې چي دغه طباق تر لفظي ډېرأبلغ اوغوره دى څكه چي له فعل څخه اسم ته عدول پكي راغلى چي ثبات افاده كړي كه چېري يې ويلي واى چي (أصدقت أم كذبت) نودغه معنابه يې نه وه اداكړي څكه چي هغه كله ناكله پدې خبره كي دروغ وايې خوبياپه نوروكي دروغ نه وايې اوچي داسي يې وويل: ﴿ أَمۡ كُنتَ مِنَ ٱلۡكَٰذِبِينَ ﴾ نوداكلام هسي افاده كوي چي كه چېري ددروغجنوله ډلي څخه وي نوبياارومرودروغجن دى اعتباروربانډي نشي كېداى.

٧-اشقاقي جناس لكه ﴿ تَقُومَ مِن مَّقَامِكَۖ ﴾ اوهمدارنګه ﴿ وَأَسۡلَمۡتُ مَعَ سُلَيۡمَٰنَ ﴾ .

٨ - دتشبيه صنعت لكه ﴿ كَأَنَّهُۥ هُوَۚ ﴾ يعني لكه چي همدازماتخت دى په شكل اووصف كي هماغسي دى اودې ته مرسله مجمله تشبيه وايې.

٩-بديعه استعاره چي پدې كلام كي راغي: ﴿ قَبۡلَ أَن يَرۡتَدَّ إِلَيۡكَ طَرۡفُكَۚ ﴾ دغه دتخت ګرندي راوسول يې دسترګوله رپ سره مشابه كړل اودغه په چسپاندي اوتلواره كي خورابنه تشبيه ده اوددې مثال لكه

---

(١) مختصر٢ / ٢٧۴

(٢) دكشاف مؤلف وايې چي داپدې شرط دكلام له ښكلاووګڼل كېږي چي بې تكلفه وي اوهغه څوک يې چي كلام په جوهرپوهېږي استعمال كړي اوپه آيت كي په خورابنكلي ډول لفظاً اومعنىٰ راغلي دي آيانه ګورې كه چېري د(بنبأ) پرځاى (بخبر) راغلى واى معنابه سمه وه لكن هغه اهميت چي په (نبأ ) كي شته هغه به نه وو راغلى چي هغه له حاله سره موافق اودمقصدتكى دى.

﴿ وَمَآ أَمۡرُ ٱلسَّاعَةِ إِلَّا كَلَمۡحِ ٱلۡبَصَرِ أَوۡ هُوَ أَقۡرَبُۚ ﴾ دی (النحل ٧٧) نو دزښته زيات ګرندیتوب لپاره يې دسترګو رپ (سترګي رااړول) استعاره کړل(١).

١٠ – دفواصلو موافقت چي په ډېرو آيتونو کي ترسترګو کېږي او دغه په اغېزکي خوراوتلی رول لري لکه ﴿ أَمۡ كَانَ مِنَ ٱلۡغَآئِبِينَ ...وَجِئۡتُكَ مِن سَبَإِۭ بِنَبَإٖ يَقِينٍ ... أَوۡ لَيَأۡتِيَنِّي بِسُلۡطَٰنٖ مُّبِينٍ ﴾ اوداسي نور.

لطيفه:

ځيني علماوو دالله جل جلاله له دې ويناڅخه چي ﴿ وَتَفَقَّدَ ٱلطَّيۡرَ ﴾ دی دارااېستلي چي په پاچاباندي لازم دی چي دخپل رعيت پوښتنه ،ګروېرنه،لټونه وکړي همداسي بايد ملګری دملګروحال احوال واخلي.

***

–الله تعالى فرمايي:

﴿ وَلَقَدۡ أَرۡسَلۡنَآ إِلَىٰ ثَمُودَ أَخَاهُمۡ صَٰلِحًا أَنِ ٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ فَإِذَا هُمۡ فَرِيقَانِ يَخۡتَصِمُونَ ﴿٤٥﴾ قَالَ يَٰقَوۡمِ لِمَ تَسۡتَعۡجِلُونَ بِٱلسَّيِّئَةِ قَبۡلَ ٱلۡحَسَنَةِۖ لَوۡلَا تَسۡتَغۡفِرُونَ ٱللَّهَ لَعَلَّكُمۡ تُرۡحَمُونَ ﴿٤٦﴾ قَالُواْ ٱطَّيَّرۡنَا بِكَ وَبِمَن مَّعَكَۚ قَالَ طَٰٓئِرُكُمۡ عِندَ ٱللَّهِۖ بَلۡ أَنتُمۡ قَوۡمٞ تُفۡتَنُونَ ﴿٤٧﴾ وَكَانَ فِي ٱلۡمَدِينَةِ تِسۡعَةُ رَهۡطٖ يُفۡسِدُونَ فِي ٱلۡأَرۡضِ وَلَا يُصۡلِحُونَ ﴿٤٨﴾ قَالُواْ تَقَاسَمُواْ بِٱللَّهِ لَنُبَيِّتَنَّهُۥ وَأَهۡلَهُۥ ثُمَّ لَنَقُولَنَّ لِوَلِيِّهِۦ مَا شَهِدۡنَا مَهۡلِكَ أَهۡلِهِۦ وَإِنَّا لَصَٰدِقُونَ ﴿٤٩﴾ وَمَكَرُواْ مَكۡرٗا وَمَكَرۡنَا مَكۡرٗا وَهُمۡ لَا يَشۡعُرُونَ ﴿٥٠﴾ فَٱنظُرۡ كَيۡفَ كَانَ عَٰقِبَةُ مَكۡرِهِمۡ أَنَّا دَمَّرۡنَٰهُمۡ وَقَوۡمَهُمۡ أَجۡمَعِينَ ﴿٥١﴾ فَتِلۡكَ بُيُوتُهُمۡ خَاوِيَةَۢ بِمَا ظَلَمُوٓاْۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأٓيَةٗ لِّقَوۡمٖ يَعۡلَمُونَ ﴿٥٢﴾ وَأَنجَيۡنَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَكَانُواْ يَتَّقُونَ ﴿٥٣﴾ وَلُوطًا إِذۡ قَالَ لِقَوۡمِهِۦٓ أَتَأۡتُونَ ٱلۡفَٰحِشَةَ وَأَنتُمۡ تُبۡصِرُونَ ﴿٥٤﴾ أَئِنَّكُمۡ لَتَأۡتُونَ ٱلرِّجَالَ شَهۡوَةٗ مِّن دُونِ ٱلنِّسَآءِۚ بَلۡ أَنتُمۡ قَوۡمٞ تَجۡهَلُونَ ﴿٥٥﴾ ۞ فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوۡمِهِۦٓ إِلَّآ أَن قَالُوٓاْ أَخۡرِجُوٓاْ ءَالَ لُوطٖ مِّن قَرۡيَتِكُمۡۖ إِنَّهُمۡ أُنَاسٞ يَتَطَهَّرُونَ ﴿٥٦﴾ فَأَنجَيۡنَٰهُ وَأَهۡلَهُۥٓ إِلَّا ٱمۡرَأَتَهُۥ قَدَّرۡنَٰهَا مِنَ ٱلۡغَٰبِرِينَ ﴿٥٧﴾ وَأَمۡطَرۡنَا عَلَيۡهِم مَّطَرٗاۖ فَسَآءَ مَطَرُ ٱلۡمُنذَرِينَ ﴿٥٨﴾ قُلِ ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ وَسَلَٰمٌ عَلَىٰ عِبَادِهِ ٱلَّذِينَ ٱصۡطَفَىٰٓۗ ءَآللَّهُ خَيۡرٌ أَمَّا يُشۡرِكُونَ ﴿٥٩﴾ أَمَّنۡ خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضَ وَأَنزَلَ لَكُم مِّنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءٗ فَأَنۢبَتۡنَا بِهِۦ حَدَآئِقَ ذَاتَ بَهۡجَةٖ مَّا كَانَ لَكُمۡ أَن تُنۢبِتُواْ شَجَرَهَآۗ أَءِلَٰهٞ مَّعَ ٱللَّهِۚ بَلۡ هُمۡ قَوۡمٞ يَعۡدِلُونَ ﴿٦٠﴾ أَمَّن جَعَلَ ٱلۡأَرۡضَ قَرَارٗا وَجَعَلَ خِلَٰلَهَآ أَنۡهَٰرٗا وَجَعَلَ لَهَا رَوَٰسِيَ وَجَعَلَ بَيۡنَ ٱلۡبَحۡرَيۡنِ حَاجِزًاۗ أَءِلَٰهٞ مَّعَ ٱللَّهِۚ بَلۡ أَكۡثَرُهُمۡ لَا يَعۡلَمُونَ ﴿٦١﴾ أَمَّن

يُجِيبُ ٱلْمُضْطَرَّ إِذَا دَعَاهُ وَيَكْشِفُ ٱلسُّوٓءَ وَيَجْعَلُكُمْ خُلَفَآءَ ٱلْأَرْضِ أَءِلَٰهٌ مَّعَ ٱللَّهِ قَلِيلًا مَّا تَذَكَّرُونَ ﴿٦٢﴾ أَمَّن يَهْدِيكُمْ فِى ظُلُمَٰتِ ٱلْبَرِّ وَٱلْبَحْرِ وَمَن يُرْسِلُ ٱلرِّيَٰحَ بُشْرًۢا بَيْنَ يَدَىْ رَحْمَتِهِۦٓ أَءِلَٰهٌ مَّعَ ٱللَّهِ تَعَٰلَى ٱللَّهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴿٦٣﴾ أَمَّن يَبْدَؤُا۟ ٱلْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُۥ وَمَن يَرْزُقُكُم مِّنَ ٱلسَّمَآءِ وَٱلْأَرْضِ أَءِلَٰهٌ مَّعَ ٱللَّهِ قُلْ هَاتُوا۟ بُرْهَٰنَكُمْ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴿٦٤﴾ قُل لَّا يَعْلَمُ مَن فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ٱلْغَيْبَ إِلَّا ٱللَّهُ وَمَا يَشْعُرُونَ أَيَّانَ يُبْعَثُونَ ﴿٦٥﴾ بَلِ ٱدَّٰرَكَ عِلْمُهُمْ فِى ٱلْءَاخِرَةِ بَلْ هُمْ فِى شَكٍّ مِّنْهَا بَلْ هُم مِّنْهَا عَمُونَ ﴿٦٦﴾ ﴾ النمل: ٤٥ ـ ٦٦

مناسبت اوترړاو:

کله چي الله دسورت په پیل کي دموسی علیه السلا م کیسه ذکرکړه اوبیایې دداؤداوسلیمان علیهما السلام کیسه راوړه چي غرائب اوعجائب یې لرل نودلته یې دصالح علیه السلام اوورپسې دلوط علیه السلام کیسې راوړې چي په دې ګردوکیسوکي مقصد پند اووعظ دی اودالله دسنت بیان دی چي څرنګه یې دانبیاوو دروغجن ګڼونکي هلاک کړي بیاپدې پسي دالله په وحدانیت ، علم اوقدرت باندي دلائل ذکرکوي

لغتونه:

(اطيرنا) له تطیرڅخه اخیستل شوی اوبدفالي نیولوته وایې زجاج وایې چي اصل یې (تطیرنا) وواوبیایې (تا) په (طآء) کي مدغم کړه اوالف یې ددې لپاره راوړچي (طآء) ساکن وه.(خاوية) خالي اوکله چي وویل شي (خوی النجم) یعني ستوری ولوېدو (الفاحشة) د ډېربدفعل (حدائق) دحديقة جمع اوهغه باغ ته ویل کېږي چي چاپېرد ېوال ولري فرآء وایې حديقة هغه بڼ ته وایې چي دېوال ولري اوکه دېوال یې نه لرل هغه ته بوستان وایې[1](قرار) ځای دقراراوآرام (حاجزا) ددووڅېزونوترمينځ فاصل اوجلاکونکی.

تفسیر:

﴿ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَآ إِلَىٰ ثَمُودَ أَخَاهُمْ صَٰلِحًا أَنِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ ﴾ او(قسم دی)په تحقیق لېږلی وومونږ ثمودیانوته(قومي) ورورددوی صالح (چي ووایه ثمودیانوته ) داسي چي تاسي خاص دالله عبادت کوئ ؛

دلته یې لام دمحذوف قسم ځواب دی یعني (والله لقدارسلنا ) ﴿ فَإِذَا هُمْ فَرِيقَانِ يَخْتَصِمُونَ ﴾ پس ناڅاپه دوې ډلي وې (مؤمن اوکافر) چي یوله بله يې سره جګړې کولې (په دين کي. مجاهدوايې چي دغه دوې ډلي دمؤمنانواوکافرانووې چي ددين په چاروکي یوله بله په جګړو بوخت ووا و ﴿ يَخْتَصِمُونَ ﴾ يې دجمعي په صیغه دمعناپه لحاظ راوړی دی ﴿ قَالَ يَٰقَوْمِ لِمَ تَسْتَعْجِلُونَ بِٱلسَّيِّئَةِ قَبْلَ ٱلْحَسَنَةِ ﴾ وویل(صالح) ای زماقومه ولي جلتي کوی تاسي په بدي (یعني نزول دعذاب ) پخواله نېکي (له رحمته؟ یعني ولي په تلواره عذاب غواړی اورحمت ولي نه غواړی دغه یې په پسته ژبه اومهرباني ورته وویل

[1] القرطبي

﴿لَوْلَا تَسْتَغْفِرُونَ اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ﴾ ولي تاسي له الله مغفرت نه غواړی (په شرک چي توبه
موومني) دپاره ددې چي پرتاسي رحم وشي ؛ مفسرين كرام وايي چي كافرانو به له ډېره انكاره ويل: ای
صالحه! دالله عذاب راوله نوهغه ورته وويل: چي ولي دعذاب تر راتلو دمخه استغفار نه غواړی څكه چي
دخير ژرغوښتنه دبدي ترژرغوښتلو بهتره او ښه ده ﴿قَالُوا اطَّيَّرْنَا بِكَ وَبِمَن مَّعَكَ﴾ وويل: ثمود يانو چي
بدفالي مونيولي پرتا او پر هغه چا چي له تاسره دي (له مؤمنانو) څكه چي ستاسي له شامته پر موږ باندي
بلاوي راغلي دي؛ پر موږ دوی سخته كاختي او لوږه مسلطه وه ﴿قَالَ طَائِرُكُمْ عِندَ اللَّهِ﴾ (وويل: (صالح) چي
ستاسي بدفالي دالله په نزدده) يعني ستاسي سرنوشت دالله په يد قدرت كي دی كه خير او كه شر دی
دغه دالله په حكم او فيصله راځي كه الله وغواړي روزي دركوي او كه وغواړي لوږه درباندي راولي. كله
چي بې په پسته ژبه او نرمه وينا له دوی سره خبري اتري وكړې هغوی په ځواب كي غلظت او شدل والی
خپل كړچي دا ستاله شامته او ستا دملګرو راپېښه ده نو دلته ورته صالح عليه السلام وويل: چي دغه
ستاسو دخپلو كړو وړو پايله ده زما او مؤمنانو له سببه نه ده درته رسېدلي ﴿بَلْ أَنتُمْ قَوْمٌ تُفْتَنُونَ﴾ بلكه
يی تاسي يو قوم چي مفتون كېږی يعني تاسي ته شيطان وسوسه دراچوي او تاسي دهغه له خوابې لاري
كېږی چي هغه څه واياست چي واياست يې ﴿وَكَانَ فِي الْمَدِينَةِ تِسْعَةُ رَهْطٍ﴾ او وه په ښار (دثمود يانو كي
چي حِجروه) نه تنه (غټ شرير ددوی دا شرافو زامن) ضحاك وايي چي دغه نه تنه د ښار لويان او مشران وو
﴿يُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ وَلَا يُصْلِحُونَ﴾ چي فساد به يې كاوو په ځمكه (دحجر) كي (خلك به يې ځورول
په هره وسيله او بانه باندي. ابن عباس رضی الله عنه وايي: دوی هغه كسان دي چي او ښه يې ووژله
﴿قَالُوا تَقَاسَمُوا بِاللَّهِ لَنُبَيِّتَنَّهُ وَأَهْلَهُ﴾ (وويل: (ثمود يانو) حال دا چي قسمونه يې په الله خوړلي ووچي
خامخا دشپې به ولو بېرو پردغه (صالح) او (أهل دده (او وژنو به يې) يعني ځينو ددوی ځينو ورته وويل
چي په الله لوړه وكړئ چي صالح او دده اهل به دشپې وژنو ﴿ثُمَّ لَنَقُولَنَّ لِوَلِيِّهِ مَا شَهِدْنَا مَهْلِكَ أَهْلِهِ﴾
بيا به خامخا ووايو: موږ ولي دده ته چي نه وليدلی موږ ځای دهلاك دده او داهل دده (نه يو خبر چي
چا وژلی دی؟ موږ ته دده او داهل قاتل يې معلوم نه دی ﴿وَإِنَّا لَصَادِقُونَ﴾ او بېشكه چي موږ يو
خامخاله صادقانو (پخپله دعوی كي) ابن عباس رضی الله عنه وايي چي دوی دصالح عليه السلام
كورته كښلي توري راغلل نو پرښتو دوی په ډبرو وويشتل او دوی يې ووژل الله فرمايي: ﴿وَمَكَرُوا
مَكْرًا﴾ او فريب وكړ دوی په فريب كولو سره (دصالح په وژلو) ﴿وَمَكَرْنَا مَكْرًا﴾ او (جزاد) فريب
وركړه موږ په جزاء وركولو سره چي ژر مو هلاك كړل دغه ته يې دمشاكلت په توګه مكر وو ايو[1] ﴿وَهُمْ لَا
يَشْعُرُونَ﴾ حال دا چي دوی پرې نه پوهېدل ؛ ابوحيان وايي ددوی فريب دا وو چي دصالح او اهل

(١) مشاكلت لفظي توافق ته وايي چي معنا يې بېل وي.

دوڑلوپلان يې پټ جوړ کړي وو اود الله داچې دوی يې داسي هلاک کړل چې پخپل هلاک نه پوهېدل (١)﴿ فَانظُرْ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ مَكْرِهِمْ أَنَّا دَمَّرْنَٰهُمْ وَقَوْمَهُمْ أَجْمَعِينَ ﴾ (پس وګوره چې څرنګه وو عاقبت دمکر ددوی بېشکه چې موږ هلاک کړل دغه (نه واړه) اوقوم ددوی ټول ) يعني ددوی دفرېب دانجام په هکله سوچ اوفکروکړه چې نتيجه يې څه شوه ؟ څرنګه موټول هلاک کړل ؟ ﴿ فَتِلْكَ بُيُوتُهُمْ خَاوِيَةًۢ بِمَا ظَلَمُوٓا۟ ﴾ پس دغه دي کورونه ددوی وران تش پراته دي په سبب دظلم (اوکفر) چې دوی کاوو ﴿ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَةً لِّقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴾ بېشکه په دغه (اهلاک دثمود يانوکي) خامخالوی دليل (دقدرت اوعبرت) دی دپاره د(هغه) قوم چې پوهېږي (په قدرت دالله اوپندترې اخلي) ﴿ وَأَنجَيْنَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَكَانُوا۟ يَتَّقُونَ ﴾ اونجات ورکړموږ له دغه (عذابه) هغوکسانوته چې ايمان يې راوړی (له صالح عليه السلام سره ) اووو دوی چې وېرېدل (له الله مُتقيان وو ) ﴿ وَلُوطًا إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِۦٓ ﴾ او(يادکړه کيسه د ) لوط کله چې خپل قوم ته يې وويل : ( اهل سدوم ته) ﴿ أَتَأْتُونَ ٱلْفَٰحِشَةَ وَأَنتُمْ تُبْصِرُونَ ﴾ آياراځی تاسي فاحشې (قبيح کاردلواطت ) ته حال داچې وينی تاسي (چې دغه خوراناولی اومردارکار دی ؟) ﴿ أَئِنَّكُمْ لَتَأْتُونَ ٱلرِّجَالَ شَهْوَةً مِّن دُونِ ٱلنِّسَآءِ ﴾ (آياتاسي خامخاسړيوته راځی له جهته دشهوته غيرله ښځو ) دغه تکرارېې دتوبيخ لپاره دی يعني ای قومه تاسي له ډېري ناپوهي نارينه ووته راځی اوښځي دشهوت داشباع لپاره نه غواړی ؟ پس همدغه په ناولتياکي کافي دی چې سړی په بل سړي باندي لواطت کوي ﴿ بَلْ أَنتُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُونَ ﴾ بلکه تاسي يوقوم ياست ناپوهان (ځکه دغه نارواعمل کوی اوهغه چې پاکيزه اوالله درته رواکړي پرېږدی) ﴿ فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِۦٓ إِلَّآ أَن قَالُوٓا۟ أَخْرِجُوٓا۟ ءَالَ لُوطٍ مِّن قَرْيَتِكُمْ ﴾ پس نه ووځواب دقوم ددغه (لوط) مګرهم داووچې وبه يې ويل دوی وباسئ تاسي خپلخانه دلوط له دې خپله ښاره (سدوم) څخه ﴿ إِنَّهُمْ أُنَاسٌ يَتَطَهَّرُونَ ﴾ بېشکه دوی داسي سړي دي چې ځانونه يې (له پليتي ) پاک ساتلي (اوزموږ عمل ناولی ګڼي دغه دشړلولپاره علت دی ؛ قتاده وايې دوی ته يې داسي عيب ورکړچې قسم دی هغه عيب نه ووځکه دوی وويل عيب يې دادی چې له ناولي اعمالوځانونه پاک ساتي اوابن عباس رضی الله عنه وايې : چې دوی دملنډواواستهزآء په ډول داويل چې دوی دنارينه ووله لواطت څخه ځان پاک ساتي (٢) ﴿ فَأَنجَيْنَٰهُ وَأَهْلَهُۥٓ إِلَّا ٱمْرَأَتَهُۥ ﴾ پس موږ نجات ورکړدغه (لوط ) اواهل دده ته مګرنه ښځه دده ﴿ قَدَّرْنَٰهَا مِنَ ٱلْغَٰبِرِينَ ﴾ چې موږمقدره کړې وه (کافره په ازل کي ) له باقي پاتي کېدونکو(په عذاب کي له هلاک شويو )سره ﴿ وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهِم مَّطَرًا ﴾

---

(١) البحر ٨٥/٧

(٢) القرطبي ٢١٩/١٣

اووه وراوومور پر دوی باران (دتيرو له آسمانه چي پرې هلاک شول ﴿ فَسَآءَ مَطَرُ ٱلْمُنذَرِينَ ﴾ پس بد باران دوېرول شويو(په عذاب سره باران ددوی وو ) اوکله چي الله تعالى دانبياووکيسې ذکرکړې وروسته يې دخپل قدرت او وحدانيت دلائل داسي بيان کړل ﴿ قُلِ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ وَسَلَٰمٌ عَلَىٰ عِبَادِهِ ٱلَّذِينَ ٱصْطَفَىٰٓ ﴾ (ووايه (اى محمده !) چي ټولي ستاينې ثناوي خاص الله لره دي اوسلام دی پربندګانو ددغه (الله) هغه (بندګان) چي الله دوی (پرخپلو ټولو مخلوقاتو ) غوره کړي) يعني اى محمده ! دالله په انعام او احسان حمدولوله اوسلام دي پرهغه بندګانو دالله چي الله يې له خپلو ګردو مخلوقاتو څخه غورچان کړي دي اودبلني اودعوت درسالت لپاره يې ګمارلي دي زمخشري وايې چي الله پاک خپل رسول ته امرکړی چي دالله په وحدانيت باندي دلالت کونکي دغه آيتونه ولولي چي په قدرت اوحکمت يې ګويااو ناطق دي اوداچي پيل يې دالله په ثنا ، صفت اوسلام پرانبياوو وکړی اوپه دې کي ښايسته زده کړه ده اودښکلي ادب ورښودل دي چي هغه دالله حمداوپه انبياوو سلام دروددی اوهمدالامل دی چي علماووخطيبانو ، واعظانوهمدغه دود له لويه رانيولي ترلويه پوري خپل کړی چي لومړی دالله حمد ، وروسته دپيغمبر سلام اودرودکوي اوبيادعلم تدريس ، خطبه اوياخلګوته پند اونصيحت کوي

([1])﴿ ءَآللَّهُ خَيْرٌ أَمَّا يُشْرِكُونَ ﴾ آياالله بهتردی که هغه بتان چي دوی يې شريکان کوي (له الله سره) ؟دغه د مشرکانو لپاره تبکيت اوپردوی باندي تهکم اواستهزاء ده چي آياهغه خالق ،مُبدع اوحکيم ذات بهتر دی اوکه دغه کاڼه ، ګونګيان بتان چي نه اوري اونه ځواب درګرزوي ؟ !﴿ أَمَّنْ خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ ﴾ (بلکه هغه څوک (بهتردی) چي آسمانونه اوځمکه يې پيداکړي دي ) دغه دالله په وحدانيت يوبل دليل دی يعني آياهغه ذات چي ګردکائنات يې پنځولي (پيداکړي) اودغه آسمانونه يې هسک اوچت ګرزولي ، روښانه ستوري يې پکي ټومبلي ځمکه يې پيداکړي ، غرونه اودښتي يې پکي اوچتي پلني کړي اوسيندونه ، رودونه يې پکي بهولي آياهمدابهتردی اوکه هغه بتان چي دوی يې له (الله)سره شريکان نيسي ؟﴿ وَأَنزَلَ لَكُم مِّنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً فَأَنۢبَتْنَا بِهِۦ حَدَآئِقَ ذَاتَ بَهْجَةٍ ﴾ او ستاسي لپاره يې له آسمانه اوبه نازلي کړي دي پس زرغون کړل موږ په دغه اوبوسره باغونه خاوندان درونق (ښايست) ﴿ مَّا كَانَ لَكُمْ أَن تُنۢبِتُوا۟ شَجَرَهَآ ﴾ ندی کېدونکی له تاسي (دغه کار) چي (يوازي ) زرغوني کړي وني دهغو (څه خولامېوي دهغوونو) ﴿ أَءِلَٰهٌ مَّعَ ٱللَّهِ ۚ بَلْ هُمْ قَوْمٌ يَعْدِلُونَ ﴾ آيا شته بل معبود(له الله سره؟(نشته) بلکه دغه مشرکان يوداسي قوم دی چي (له توحيده) څنګ کوي (شرک غوره کوي اوالله لره مثال اوانډول ثابتوي له خالق سره بت برابروي) ﴿ أَمَّن جَعَلَ ٱلْأَرْضَ قَرَارًا ﴾ بلکه هغه څوک (بهتر) دی چي ګرزولي ده ځمکه ځای دقرار(هستوګني لپاره دانسان اوحيوان ﴿ وَجَعَلَ خِلَٰلَهَآ أَنْهَٰرًا ﴾ (اوګرزولی يې دی په مينځ ددغي ځمکي کي نهرونه ) اوددې ځمکي په خوړونو اوژورو کي يې دخوږو

([1]) الکشاف ۳/ ۲۹۵

اوبورودونه بهولي چي ختيز، لوېديزاوشمال ، سهيل ته بهېږي روان دي) ﴿ وَجَعَلَ لَهَا رَوَاسِيَ ﴾ اوګرزولي يې دي دغي ځمکي ته محکم لوړ اوچت غرونه (چي ځمکه په قراردرېدلي وساتي څوونه خوځېږي ﴿ وَجَعَلَ بَيْنَ الْبَحْرَيْنِ حَاجِزًا ﴾ اوګرزولي يې دی په مينځ ددوبحرونوکي (چي خواږه اوتروه دي) پرده (چي سره ګډ نشي اوتروې اوبه خوږې اوبه له کاره ونه باسي (¹) ﴿ أَإِلَٰهٌ مَعَ اللَّهِ ﴾ آيا شته بل معبودله الله سره؟ (نه شته) ﴿ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ بلکه اکثره ددغو (مشرکانو) نه پوهېږي (پرحق چي له الله سره شريک نيسي) ﴿ أَمَّنْ يُجِيبُ الْمُضْطَرَّ إِذَا دَعَاهُ وَيَكْشِفُ السُّوءَ ﴾ بلکه هغه څوک (بهتر دی) چي قبلوي سوال دعاجز(بېکس اوبې بس اوفريادرسي يې کوي) کله چي وبولي دغه (مضطر) هغه (الله تعالی) اوليري کوي يې بدي سختي ﴿ وَيَجْعَلُكُمْ خُلَفَاءَ الْأَرْضِ أَإِلَٰهٌ مَعَ اللَّهِ ﴾ اوګرزوي تاسي لره (الله) خليفه ګان په ځمکه کي چي يونسل وروسته له بله نسله دځمکي آبادي اوتعميرکوي ﴿ قَلِيلًا مَا تَذَكَّرُونَ ﴾ لږشانته پند قبلوي !(په هغه څه کي چي تاسوېې دسرپه سترګو وينی!) ﴿ أَمَّنْ يَهْدِيكُمْ فِي ظُلُمَاتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ وَمَنْ يُرْسِلُ الرِّيَاحَ بُشْرًا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهِ ﴾ (دغه څلورم دليل دی) بلکه هغه څوک (بهتردی) چي تاسي ته لاره ښيي (په ستوريوسره) په تيارودبېدياوواوپه (تيارو) دسيندکي (کله چي تاسي سفرونه کوی) اوهغه څوک(بهتردی) چي رالېږي بادونه زېری کونکي په مخ درحمت (باران) خپل کي (هغه چي دبندګانواوخارويولپاره رحمت دی ﴿ أَإِلَٰهٌ مَعَ اللَّهِ ﴾ آياشته بل معبودله الله سره؟ داسي څوک چي پدې شيانودي تواناوي بلکه نشته) ﴿ تَعَالَى اللَّهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴾ ډېرلوی پورته دی الله له (هغو) شيانوچي شريکوي يې دغه (مشرکان له الله سره) يعني الله لره لويې ده هغه چي خالق مقتدردی چي له داسي عاجزمخلوق سره دي ګډشي) ﴿ أَمَّنْ يَبْدَأُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ ﴾ آياهغه څوک چي ړومبی يې پيداکړي دي خلق (له نطفې په ارحاموکي) بيابه يې ژوندي کوي ( وروسته له فناڅخه) زمخشري وايې چي دابې څنګه ورته وويل سره له دې چي دوی له بعث څخه منکروو؟ ځواب داچي ددوی دغه علت په دې معرفت اواقرار يې بشپړشوله مينځه لاړنواوس يې دانکارعذرپاتي نه دی ﴿ وَمَنْ يَرْزُقُكُمْ مِنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ ﴾ اوهغه څوک چي روزي درکوي له آسمانه ( اورښت کوي) اوله ځمکي (په محصولاتودپيداواروله غلودانو اومېوو. أبوحيان وايې څرنګه چي دبني آدم خلقت اوايجاد يونعمت وواودغه نعمت بياله روزي پرته نه بشپړېدو ويې ويل ﴿ وَمَنْ يَرْزُقُكُمْ مِنَ السَّمَاءِ ﴾ په اورښت ﴿ وَالْأَرْضِ ﴾ په زرغونولو (²) ﴿ أَإِلَٰهٌ مَعَ اللَّهِ ﴾ آياشته بل معبودله الله سره؟ (چي داسي وکړي) (بلکه نشته) ﴿ قُلْ هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ ﴾ ووايه (اې محمده دوی ته) راوړئ تاسي برهان (سند)

---

(¹) دغه دحسن بصري رحمه الله وينااوابن کثيرغوره کړي څرګنده هم ده چابياويلي چي مرادخني دفارس او روم بحرونه دي
(²) البحر ٩٠/٧

خپل (په هغه گمان ستاسو چې وایاست له الله سره بل خدای شته) که چېرې تاسې رښتینې یاست (پخپله دعوی کې)[1] ﴿قُل لَّا يَعْلَمُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ الْغَيْبَ إِلَّا اللَّهُ﴾ ووایه (ای محمده! دوی ته) نه پوهېږي هغه څوک چې په آسمانونوکې دی او په ځمکه کې دي (له پرښتواوانسانانو) په غیبو أموروباندې مگر (عالم الغیب دی) الله. قرطبي وایې دغه د مشرکانو په باره کې نازل شوی دی چې دوی له رسول الله څخه وپوښتل چې قیامت به کله وي؟ ﴿وَمَا يَشْعُرُونَ أَيَّانَ يُبْعَثُونَ﴾ اونه پوهېږي (خلگ) چې کله به بیاژوندي را پاڅول شي دوی (وروسته له مرگه) ﴿بَلِ ادَّارَكَ عِلْمُهُمْ فِي الْآخِرَةِ﴾ بلکه سترې ستومان له کاره لوېدلی دی علم د دوی (په کار د آخرت کې (چې وپوښتي قیامت به کله وي؟ څکه دوی خو وربانديې ایمان نلري نو دڅه لپاره دهغه د راتلو پوښتنې کوي؟) ﴿بَلْ هُمْ فِي شَكٍّ مِّنْهَا﴾ بلکه دغه (کفار) په شک کې دي له دغه (قیامته) څکه کبرا وعناد کوي) ﴿بَلْ هُم مِّنْهَا عَمُونَ﴾ بلکه دغه (کفار) له دغه (قیامته) ړانده دي (چې دهغه د راتلو په دلائلو نه پوهېږي په نفساني ملذاتو او گېډې په شهوتونو کې داسې غوپه دي لکه څاروي نه سوچ کوي اونه هم وینې گورې ابن کثیر وایې دوی یې په وجود شکمن دي بلکه په دې هکله یو مخ ایزه ړانده اوناپوهان دي

**بلاغت:**

پدې آیتونو کې چې دبیان اوبدیع کومې ښکلاوې شته لنډیزیې دادی:

۱ - د طباق صنعت چې فرمایي: ﴿يُفْسِدُونَ وَلَا يُصْلِحُونَ﴾.

۲ - هڅونه او تحضیض لکه: ﴿لَوْلَا تَسْتَغْفِرُونَ اللَّهَ﴾ یعني ولې د الله استغفار نه کوي!؟.

۳ - اشتقاقي جناس پدې آیت کې ﴿اطَّيَّرْنَا، طَائِرُكُمْ﴾.

۴ - دمشاکلت صنعت: ﴿وَمَكَرُوا..... وَمَكَرْنَا﴾ الله تعالی د دوی هلاکول اوبربادول د مشاکلت په توگه مکرونوماوو.

۵ - طباق چې پدې کلام کې دی ﴿لِمَ تَسْتَعْجِلُونَ بِالسَّيِّئَةِ قَبْلَ الْحَسَنَةِ﴾ ؟.

---

[1] په البحر کې وایې چې دهر استفهام سره مناسب کلام راوړل شوکوم چې رومبی تېرشوی وولکه کله یې دعالم علوي اوسفلي ذکر وفرمایو اوهغه احسان چې دباران په اورښت یې کړی وو نو یې وفرمایل ﴿بَلْ هُمْ قَوْمٌ يَعْدِلُونَ﴾ یعني برابرولي له ده سره ماسوی چې مخلوق دی اوکله چې یې داوښوده چې ځمکه یې آرام اومستقر گرزولې، وپالې نهرونه یې وربانديې بهولي او پدې کې تنبیه په کفر اوتعقل وه نو یې وویل ﴿بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ﴾ اوکله چې د مضطر داجابت او دهغه د مصیبت لیرې کول وستایل نو یې پدې کلام پای ته ورساووچې ﴿قَلِيلًا مَّا تَذَكَّرُونَ﴾ څکه له انسانه چې کله مشکلات پورته شي هغه حالت یې هېرېږي اوکله چې یې په تیاروکې لاربښوونه اوزېرې کونکو بادونه یاد کړل ویې فرمایل ﴿تَعَالَى اللَّهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ﴾.

٦- توبيخي استفهام لكه ﴿ أَتَأْتُونَ ٱلْفَٰحِشَةَ وَأَنتُمْ تُبْصِرُونَ ﴾.

٧- د تبكيت استهزاء او تهكم اسلوب لكه ﴿ ءَآللَّهُ خَيْرٌ أَمَّا يُشْرِكُونَ ﴾ ؟.

٨- باريكه استعاره چي فرمايي ﴿ بَيْنَ يَدَىْ رَحْمَتِهِۦٓ ﴾ يعني ترباران اوربدوله مخه دلته يې دواړه لاسونه دوړاندي او مخي لپاره استعاره راوړل

٩- د طباق بل صنعت لكه: ﴿ أَمَّن يَبْدَؤُا۟ ٱلْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُۥ ﴾.

١٠- بله استعاره لكه: ﴿ بَلْ هُم مِّنْهَا عَمُونَ ﴾ دلته يې ړندوالى په حق باندي دنه پوهېدلولپاره استعاره كړ اوداچي څوك دالله په نعمتونوكي سوچ نه كوي لكه ړوندغوندي دي.

١١- دفواصلو رعايت او پاملرنه چي دكلام په ښايست رونق اوجمال كي بشپړ رول لري لكه چي په اوريدلوكي يې اغيزه څرګنده ده هغه لكه داچي ﴿ وَمَا يَشْعُرُونَ أَيَّانَ يُبْعَثُونَ .... أَمَّن جَعَلَ ٱلْأَرْضَ قَرَارًا وَجَعَلَ خِلَٰلَهَآ أَنْهَٰرًا ﴾ اولكه داچي: ﴿ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَةً لِّقَوْمٍ يَعْلَمُونَ .... وَأَنجَيْنَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَكَانُوا۟ يَتَّقُونَ ﴾ اونورمثالونه يې هم خورازيات دي په قرآنكريم بياني ښكلاوي دومره ډېري دي چي په ژبه دهغوی ګردوبيانول محال دی سبحان الله چي خپل پيغمبربي د دغه معجزكتاب په نزول ځانګړی وناازاوو.

***

الله تعالى فرمايي:

﴿ وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ أَءِذَا كُنَّا تُرَٰبًا وَءَابَآؤُنَآ أَئِنَّا لَمُخْرَجُونَ (٦٧) لَقَدْ وُعِدْنَا هَٰذَا نَحْنُ وَءَابَآؤُنَا مِن قَبْلُ إِنْ هَٰذَآ إِلَّآ أَسَٰطِيرُ ٱلْأَوَّلِينَ (٦٨) قُلْ سِيرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ فَٱنظُرُوا۟ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلْمُجْرِمِينَ (٦٩) وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَلَا تَكُن فِى ضَيْقٍ مِّمَّا يَمْكُرُونَ (٧٠) وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا ٱلْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ (٧١) قُلْ عَسَىٰٓ أَن يَكُونَ رَدِفَ لَكُم بَعْضُ ٱلَّذِى تَسْتَعْجِلُونَ (٧٢) وَإِنَّ رَبَّكَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى ٱلنَّاسِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَشْكُرُونَ (٧٣) وَإِنَّ رَبَّكَ لَيَعْلَمُ مَا تُكِنُّ صُدُورُهُمْ وَمَا يُعْلِنُونَ (٧٤) وَمَا مِنْ غَآئِبَةٍ فِى ٱلسَّمَآءِ وَٱلْأَرْضِ إِلَّا فِى كِتَٰبٍ مُّبِينٍ (٧٥) إِنَّ هَٰذَا ٱلْقُرْءَانَ يَقُصُّ عَلَىٰ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ أَكْثَرَ ٱلَّذِى هُمْ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ (٧٦) وَإِنَّهُۥ لَهُدًى وَرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِينَ (٧٧) إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِى بَيْنَهُم بِحُكْمِهِۦ ۚ وَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْعَلِيمُ (٧٨) فَتَوَكَّلْ عَلَى ٱللَّهِ ۖ إِنَّكَ عَلَى ٱلْحَقِّ ٱلْمُبِينِ (٧٩) إِنَّكَ لَا تُسْمِعُ ٱلْمَوْتَىٰ وَلَا تُسْمِعُ ٱلصُّمَّ ٱلدُّعَآءَ إِذَا وَلَّوْا۟ مُدْبِرِينَ (٨٠) وَمَآ أَنتَ بِهَٰدِى ٱلْعُمْىِ عَن ضَلَٰلَتِهِمْ ۖ إِن تُسْمِعُ إِلَّا مَن يُؤْمِنُ بِـَٔايَٰتِنَا فَهُم مُّسْلِمُونَ (٨١) ۞ وَإِذَا وَقَعَ ٱلْقَوْلُ عَلَيْهِمْ أَخْرَجْنَا لَهُمْ دَآبَّةً مِّنَ ٱلْأَرْضِ تُكَلِّمُهُمْ أَنَّ ٱلنَّاسَ كَانُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا لَا يُوقِنُونَ (٨٢) وَيَوْمَ نَحْشُرُ مِن كُلِّ أُمَّةٍ فَوْجًا مِّمَّن يُكَذِّبُ بِـَٔايَٰتِنَا فَهُمْ يُوزَعُونَ (٨٣) حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءُو قَالَ أَكَذَّبْتُم بِـَٔايَٰتِى وَلَمْ تُحِيطُوا۟ بِهَا عِلْمًا أَمَّاذَا كُنتُمْ

تَعْمَلُونَ ﴿٨٤﴾ وَوَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِم بِمَا ظَلَمُوا فَهُمْ لَا يَنطِقُونَ ﴿٨٥﴾ أَلَمْ يَرَوْا أَنَّا جَعَلْنَا اللَّيْلَ لِيَسْكُنُوا فِيهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿٨٦﴾ وَيَوْمَ يُنفَخُ فِي الصُّورِ فَفَزِعَ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَمَن فِي الْأَرْضِ إِلَّا مَن شَاءَ اللَّهُ ۚ وَكُلٌّ أَتَوْهُ دَاخِرِينَ ﴿٨٧﴾ وَتَرَى الْجِبَالَ تَحْسَبُهَا جَامِدَةً وَهِيَ تَمُرُّ مَرَّ السَّحَابِ ۚ صُنْعَ اللَّهِ الَّذِي أَتْقَنَ كُلَّ شَيْءٍ ۚ إِنَّهُ خَبِيرٌ بِمَا تَفْعَلُونَ ﴿٨٨﴾ مَن جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ خَيْرٌ مِّنْهَا وَهُم مِّن فَزَعٍ يَوْمَئِذٍ آمِنُونَ ﴿٨٩﴾ وَمَن جَاءَ بِالسَّيِّئَةِ فَكُبَّتْ وُجُوهُهُمْ فِي النَّارِ هَلْ تُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٩٠﴾ إِنَّمَا أُمِرْتُ أَنْ أَعْبُدَ رَبَّ هَٰذِهِ الْبَلْدَةِ الَّذِي حَرَّمَهَا وَلَهُ كُلُّ شَيْءٍ ۖ وَأُمِرْتُ أَنْ أَكُونَ مِنَ الْمُسْلِمِينَ ﴿٩١﴾ وَأَنْ أَتْلُوَ الْقُرْآنَ ۖ فَمَنِ اهْتَدَىٰ فَإِنَّمَا يَهْتَدِي لِنَفْسِهِ ۖ وَمَن ضَلَّ فَقُلْ إِنَّمَا أَنَا مِنَ الْمُنذِرِينَ ﴿٩٢﴾ وَقُلِ الْحَمْدُ لِلَّهِ سَيُرِيكُمْ آيَاتِهِ فَتَعْرِفُونَهَا ۚ وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴿٩٣﴾ النمل: ٦٧ – ٩٣

## مناسبت او تړاو:

کله چي الله تعالی په خپل وحدانیت دلائل او براهین ذکر کړل وروسته بیې دلته د مشرکانو هغه شکوک او شبهات چي په بعث او نشوریې د ایمان راوړلو په هکله لرل راوړل بیا یې د هغو لپاره کوتلي دلائل بیان او د ځینو هېښونکو او وېرونکو حالاتو چي د قیامت تر راتلو دمخه به پېښېږي یادونه وکړه.

## لغتونه:

(ردف) نږدې شو (تکن) پټوي او خوندي ساتي (داخرین) ذلیل او خوار (فوجا) ټولی (جامدة) نه خوځېدونکي او ساکن (أتقن) په ښه او بشپړه توګه جوړښت ته وایې (کبت) (کب) غورځولو ته وایې او کله چي وایې (کبیت الرجل) یعني هغه مي پړمخي وغورځاوه او (کبیت الانآء) یعني لوښی مي واړاوه.

## تفسیر:

﴿ وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَإِذَا كُنَّا تُرَابًا وَآبَاؤُنَا أَئِنَّا لَمُخْرَجُونَ ﴾ او وایې هغه کسان چي کافران شوي دي (د مکې مشرکان چي (له بعثه منکر دي) آیا کله چي موږ خاوري شوا و پلرونه زموږ (هم خاوري شي) آیا خامخا به موږ هرو مرو ایستل کېږو (ژوندي له ځمکي د حساب او جزاء لپاره ؟ دوهم ځل) ﴿ لَقَدْ وُعِدْنَا هَٰذَا نَحْنُ وَآبَاؤُنَا مِن قَبْلُ ﴾ خامخا په تحقیق وعده کړی شوي ده له موږ سره د دې (بعث بعد الموت) یعني له موږ سره محمد وعده کړي لکه چي پخوا زموږ له پلرونو سره یې هم کړي وه (نو که چېري حق وای یې هسې به شوي وو)؟ ﴿ إِنْ هَٰذَا إِلَّا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ ﴾ ندي دغه خبري مګر (لیکلي کیسي (باطلي دروغ) دي د ړومبنیو خلکو. دوی له بعث څخه انکار کوي او دا یې هېر کړي چي دوی خوله عدم څخه پیدا شوي دي او هغه ذات چي دوی یې له عدم څخه پنځولي پدې قادر دی چي دوهم ځل یې هم راپاځوي ﴿ قُلْ سِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَانظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُجْرِمِينَ ﴾ ووایه (ای محمده ! ( دې کفارو ته) چي ولاړشئ تاسي په ځمکه کي (وګرزئ) پس وګورئ چي څرنګه شو عاقبت (آخره) د ګنهګارانو (هغو چي د انبیاوو تکذیب یې

کاوو؟ آیادوی الله هلاک نکړل؟ نوهغه څه چي پخوانیو مجرمینوته ورسېدل وروستنیو مجرمینوته هم
رسېدونکي دي په آیت کي وعیداوتهدید نغښتی دی ﴿ وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَلَا تَكُن فِي ضَيْقٍ مِّمَّا يَمْكُرُونَ ﴾
اومه خفه کېږه (ای محمده!) پردوی ( که یې ایمان نه راووړ) اومه کېږه په تنگي (دزړه) کي له هغه څه
چي دوی مکرکوي (له تاسره څکه چي زه ستاحافظ او ناصریم دغه درسول الله لپاره تسلیت دی
﴿ وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴾ اووایي دا (کفار) چي کله به وي دغه وعده (دنزول
دعذاب) که یی تاسي ربښتوني (په دغه وعدې کي؟ دغه یې داستهزآء په ډول ویل اوپیغمبر صلی الله
علیه وسلم اومؤمنانوته به یې خطاب کاوو ﴿ قُلْ عَسَىٰ أَن يَكُونَ رَدِفَ لَكُم بَعْضُ الَّذِي تَسْتَعْجِلُونَ ﴾ ووایه
(ای محمده دوی ته) چي نژدې دی چي درپیوست به شي ځیني هغه (عذاب) چي تاسي یې په تلواره
غواړئ. مفسرین کرام وایې چي هغه ووپه بدر کي دوی ته قتل اوبندي کېدل ورسېدل ﴿ وَإِنَّ رَبَّكَ لَذُو
فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ ﴾ اوبېشکه رب ستاخامخاښښتن دفضل دی پرخلگو(چي پرکفراوگناهونوژرترژره
عذاب نه ورکوي ﴿ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَشْكُرُونَ ﴾ ولیکن اکثره ددوی شکرنه کوي (پدې نعمت باندي
درب خپل ) ﴿ وَإِنَّ رَبَّكَ لَيَعْلَمُ مَا تُكِنُّ صُدُورُهُمْ وَمَا يُعْلِنُونَ ﴾ اوبېشکه ستارب ته خامخامعلوم دی هغه څه
چي پټوي یې سینې (زړونه) ددغو(کفارو) اوښکاره هغه څه چي کوي یې له دښمني درسول اوفرېب
ورکول هغه ته ،ژردی چي الله به سزاورکړي ﴿ وَمَا مِنْ غَائِبَةٍ فِي السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ إِلَّا فِي كِتَابٍ مُّبِينٍ ﴾ اونشته
هیڅ شی پټ پناه په آسمان کي اوپه ځمکه کي مگر لیکلي دي په کتاب ښکاره (لوح محفوظ) کي (اوالله
جل جلاله وریاندي علم لري هیڅ ځیز ورڅخه الونیا نه دی ابن عباس رضی الله عنه وایې: معناداچي نه
دی هیڅ پټ شی په آسمانونواوځمکي کي اوښکاره شی مگرالله جل جلاله ته معلوم دی [1] ﴿ إِنَّ هَٰذَا
الْقُرْآنَ يَقُصُّ عَلَىٰ بَنِي إِسْرَائِيلَ أَكْثَرَ الَّذِي هُمْ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴾ بېشکه دغه قرآن کیسه کوي (بیانوي) پربني
اسرائیلوباندي اکثردهغو څېزونوچي دوی په هغوڅېزونوکي سره اختلاف کوي کله چي الله تعالی
دنبوت اومبدأ معادپه هکله یادونه وکړه اوقرآن کریم له خوراسترودلائلوڅخه ووچي درسول الله په
ربښتنولي اودهغه په رسالت یې دلالت کاوونودلته یې دهمدې قرآن یاد وفرمایواوصفات یې وستایل
چي دغه قرآن چي په حضرت محمد خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم باندي نازل شوی هغه حق کتاب دی
چي دبني اسرائیلولپاره هغه چي ددوی اختلافي مسئلې وي هم بیانوي اوله دې جملې څخه یوه هم
دحضرت مسیح علیه السلام په هکله اختلاف دی چي دوی یې په ډېروتولیووېشلي ووځیني به
پرځینونورو لعنت وایو که چېري دوی انصاف درلودی نوبه یې اسلام راوړی وای څکه چي قرآن دوی ته
څرگنده رایه اوښکاره دلیل راوړی دی ﴿ وَإِنَّهُ لَهُدًى وَرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِينَ ﴾ اوبېشکه دغه قرآن
خامخاهدایت اورحمت دی لپاره دمؤمنانو(چي له گمراهي یې ژغوري اوله عذاب څخه نجات ورکوي

---

(1) البحر ٧/٩٥

قرطبي وايي: دا مؤمنان بې په ځانګړي توګه يادكړل ځكه چي دوى ورباندي منتفع كېږي اوګټه ترې اخلي (۱) ﴿ إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِى بَيْنَهُم بِحُكْمِهِۦۚ ﴾ (او بېشكه ستارب به فيصله وكړي ددوى په مينځ كي په (عادلانه) حكم خپل سره ) يعني اى محمده ستا رب به دبني اسرائيلوترمينځ دقيامت په ورځ په خپل عدل حكم سره فيصله صادره كړي دحق او دباطل خاوند دواړوته به جزاء وركړي ﴿ وَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْعَلِيمُ ﴾ اوهم دى ښه غالب ، قوي دى (چي څوك بې حكم منع كولاى نشي) ښه علم والادى (په افعالودبندګانوچي هيڅ ترې پټ نه دي ﴿ فَتَوَكَّلْ عَلَى ٱللَّهِۖ إِنَّكَ عَلَى ٱلْحَقِّ ٱلْمُبِينِ ﴾ پس توكل وكړه خاص پرالله (په ټولوچاروكي) بېشكه ته چي بې په ښكاره حق بې (چي دين داسلام دى نو وروستى برى ستادى) ﴿ إِنَّكَ لَا تُسْمِعُ ٱلْمَوْتَىٰ ﴾ بېشكه ته نشې اوږولى (خبره) مړوته (چي كافران دي ځكه دوى سوچ اوفكرنه چلوي لكه مړي غوندي دي عقل اواحساس نلري ﴿ وَلَا تُسْمِعُ ٱلصُّمَّ ٱلدُّعَآءَ ﴾ او (همداسي) نشې اوږولاى كوڼ غږ دنارو؛ كله چي بې دايمان لوري ته رابولې ځكه دوى لكه كاڼه غوندي دي په غوږونو بې بې دروندوالى دى غږنه اوري ﴿ إِذَا وَلَّوْا۟ مُدْبِرِينَ ﴾ (كله چي بيامخ هم درنه واړوي) اوروان شي هو كله چي كوڼ شاكونكى وي اوبيانارې وروهې ببخي بې نه اوري ځكه چي دمسافې زياتوالى بې په كوڼ والي ورزيات شي ﴿ وَمَآ أَنتَ بِهَٰدِى ٱلْعُمْىِ عَن ضَلَٰلَتِهِمْۖ ﴾ اونه بې ته (اى محمده) لارښوونكى ړندوته (چي راوبې ګرځوې ) له ګمراهي (اوكفر) ددوى نه ﴿ إِن تُسْمِعُ إِلَّا مَن يُؤْمِنُ بِـَٔايَٰتِنَا فَهُم مُّسْلِمُونَ ﴾ نه اوروې ته (په سماع دفائدي رسولو ) مګرهغه چاته چي ايمان بې راوړى په آيتونو زموږ پس هم دوى مسلمانان دي غاړه ايښودونكي دي رحمان ته . دلته بې دهغه چاچي نه اوري اونه پوهېږي تشبيه له مړوسره وكړه اوبيابې له كڼواوړندو سره مشابه كړل كه څه هم چي حواس بې روغ رمټ وي اودوى نه اورېدل بې په دې باندي تاكيد كړل چي ﴿ إِذَا وَلَّوْا۟ مُدْبِرِينَ ﴾ ځكه دكاڼه چي كله شاشي كڼوالى بې يوپه دوه شي اومقصدله دې آيت شريف څخه دادى چي داكفارلكه مړي اوكاڼه غوندي دي نه پوهېږي نه اوري اونهويني اونه هم په كائناتي دلائلوكي سوچ كوي اونه قرآني آيات ګوري ﴿ وَإِذَا وَقَعَ ٱلْقَوْلُ عَلَيْهِمْ ﴾ (اوكله چي ثابت شي خبردعذاب پردغو(خلكو ) دادقيامت دنښانو بيان دى چي ترقيامت له مخه به پېښېږي ﴿ أَخْرَجْنَا لَهُمْ دَآبَّةً مِّنَ ٱلْأَرْضِ تُكَلِّمُهُمْ أَنَّ ٱلنَّاسَ كَانُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا لَا يُوقِنُونَ ﴾ نوراوبه باسودوى ته يوه دابه (حيوان) له ځمكي چي له دوى سره به خبري كوي چي بېشكه داخلګ چي په دلائلو(دقدرت دالوهيت) زموږبه بې يقين نه كاوو. په حديث شريف كي راځي چي قيامت به ترهغونه راځي څوتاسي لس ښښانې دهغه ونه ويني اوله هغې جملې څخه دلمرراختل له مغرب څخه اوراوتل

د(دابة الارض) دي (١) ابن كثيروايي چي دغه دابه به په آخرالزمان كي راووزي كله چي خلگ په فساد كي اخته اودالله حكمونه بې پرې ايښي وي دين بې بدل كړى وي نوبه دغه دابه له دوى سره خبري كوي. ابن عباس رضى الله عنه اوعطآء وايي چي دغه دابه به دوى ته خبري كوي او ورته وايي به چي ﴿أَنَّ النَّاسَ كَانُوا بِآيَاتِنَا لَا يُوقِنُونَ﴾ (٢) اوروايت كاوه شي چي ددغه (دابة الارض) دراوتلووخت به هله وي كله چي امربالمعروف اونهى عن المنكرودرول شي دخيردروازې وتړل شي څوك توبه گار اورجوع كونكى نه پيداكيږي نوبه دغه خارق العاده پېښې رادبره شي له دې نه وروسته الله جل جلاله دقيامت ځيني نوري نښې داسي بيانوي ﴿وَيَوْمَ نَحْشُرُ مِن كُلِّ أُمَّةٍ فَوْجًا﴾ اويادكړه هغه ورځ چي راپورته به كړو(له قبورو) دهرامت څخه يوفوج (فرقه لپاره دحساب اوعذاب) ﴿مِّمَّن يُكَذِّبُ بِآيَاتِنَا فَهُمْ يُوزَعُونَ﴾ له هغومنكرانوڅخه چي تكذيب كوي زموږپه آيتونوپس ددوى جماعتونه به سره يوځاى كيږي (بيابه روانيږي په زوربه بېول كيږي) ﴿حَتَّىٰ إِذَا جَاءُوا قَالَ أَكَذَّبْتُم بِآيَاتِي وَلَمْ تُحِيطُوا بِهَا عِلْمًا﴾ ترهغه پوري چي دوى ټول راشي (محشرته) نو(الله به) ورته وفرمايي آياتاسي زمادآيتونوتكذيب كړى ووحال داچي تاسي احاطه نه وه كړي په هغولږجهته دعلمه (په حقيقت دربښتنولي يې) ﴿أَمَّاذَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ آياڅه شى دى هغه چي تاسي به كاوو؟ دغه توبيخ اوتقريع دى چي تاسي په دنياكي څه كول؟ لومړى يې په دې وترټل چي ﴿أَكَذَّبْتُم بِآيَاتِي﴾ اوبيايې دتقريري استفهام لوري ته مخه كړي اودوى ته يې داسي تبكيت وركړلكه چي وايې: داخوپربږدئ چي تاسي تكذيب كاووداوواياست چي تاسوپه دنياكي پرته له تكذيب څخه څه كول؟ ﴿وَوَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِم بِمَا ظَلَمُوا﴾ (اوثابته به شي خبره(دعذاب) پردوى باندي په سبب دهغه چي ظلم يې كړى وو) يعني دوى به حيران شي ځواب به نلري اودعذاب خبره به وربانديثابته شي په سبب دهغه ظلم ددوى چي دالله دآيتونوتكذيب يې كاوو ﴿فَهُمْ لَا يَنطِقُونَ﴾ پس دوى به هيڅ خبري نشي كولاى (ځكه هيڅ عذراودليل ورته پاتي نه دى په لايتناهي عذاب كي داسي پټ دي چي دځواب وركولوتوان يې ځيني وړى دى وروسته بياالله دقيامت تكاليف اوپه حشرنشراوتوحيددلائل راوړي چي دايمان لوري ته لاربنوونه وكړي ﴿أَلَمْ يَرَوْا أَنَّا جَعَلْنَا اللَّيْلَ لِيَسْكُنُوا فِيهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا﴾ آيانهويني دا(منكران دحشر)چي ببشكه موږگرزولي ده (توره تياره شپه له پاره دخوب) چي دوى پكي آرام وكړي (اوډوندانه له ستړياووهوساشي اوگرزولي موده) ورځ ليدونكي (سپينه رڼاروښانه چي كسب اوكارپكي وكړي او روزي ومومي؟ ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ﴾ ببشكه په دغه (اوښتون دشپې

---

(١) أخرجه الامام احمدفى المسندوفى صحيح المسلم ان اول الآيات خروج طلوع الشمس من مغربهاوخروج الدابة على الناس ضحى وأيتهماكانت قبل صاحبتهافالاخرى على أثرهاقريبًا ) دغه دامام احمد د مسند حديث دى اوپه صحيح مسلم كي راغي چي دقيامت دراتلولومړى نښه له مغرب څخه دلمرراختل دي اوبيابه په څاښت كي دابة الارض راوزي هره يوه نښه چي له مخه شوه هغه بله سمدستي ورپسي ده.

(٢) مختصرابن كثير ٣/ ٦٨٢

اوورځې چې له روښنايۍ څخه تاريکي ته اوړي اوله تيارې روښنايي ته، خامخادلائل (دقدرت اوعبرت) دي لپاره دهغه قوم چې ايمان راوړي (عبرت اخلي ، وروسته بياالله په آخرت کې دخلکو حالاتو ته داسې اشاره کوي ﴿ وَيَوْمَ يُنفَخُ فِي ٱلصُّورِ فَفَزِعَ مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَن فِي ٱلْأَرْضِ إِلَّا مَن شَآءَ ٱللَّهُ ﴾ اوياد کړه هغه ورځ چې پوکی وکړی شي په شپېلۍ کې نووو به ېرېږي (له ډېره هيبته) هرهغه څوک چې په آسمانونو کې دي اوهرهغه څوک چې په ځمکه کې دي مګرهغه څوک چې الله يې اراده (دنه وېرېدلو) وفرمايي (له پرښتو، انبياوو اوشهيدانوڅخه. مفسرين کرام وايي چې دغه (نفخة الفزع) ده اوبيابه ورپسې (نفخة الصعق) راځي اوهغه دمرګ شپېلۍ ده وروسته بيابه (نفخة النشور) وي چې هغه دراپاڅېدلواودالله په وړاندې ددرېدلو نفخه ده ابوهريرة رضى الله عنه وايي چې دمېکائيل عليه السلام په صور(شپېلۍ) کې درې نفخې (پوکي) شته يې يوه دځوندانه ددنيا دوېرې ده اوداهغه چې فزع اکبرنه ده بله بې دمرګ پوکی، دريمه يې دراپاڅېدلواوبعث ده[۱] ﴿ وَكُلٌّ أَتَوْهُ دَٰخِرِينَ ﴾ اوټول به راشي (ددغه الله په حضورکې په قيامت) عاجزان (منونکي چې يوبه هم پاتېدلی نشي ﴿ وَتَرَى ٱلْجِبَالَ تَحْسَبُهَا جَامِدَةً ﴾ اووينې به ته غرونه (په لومړۍ نفخه کې) ګمان به پرې کوې چې کلک ولاړدي (پرځپل ځای) ﴿ وَهِيَ تَمُرُّ مَرَّ ٱلسَّحَابِ ﴾ حال داچې دوی به ځي تېرېږي په شان دوريځې. امام رازي وايي چې ددوی دغه ليدل چې ته به واکلک پرځای ولاړدي له دې جهته وي چې غټ غټ اجسام کله چې په يوه شکل ګرځندی تګ پيل کړي کتونکي داسې انګېري چې پرځای ولاړدي خوهغه په چټکي اوچسپاندتيا روان وي[۲] ﴿ صُنْعَ ٱللَّهِ ٱلَّذِيٓ أَتْقَنَ كُلَّ شَيْءٍ ﴾ کاريګري دالله دی هغه الله چې هرڅيزيې محکم کړی دی (اوله حکمت څخه يې ډک کړی ﴿ إِنَّهُۥ خَبِيرٌۢ بِمَا تَفْعَلُونَ ﴾ بېشکه چې دغه (الله) ښه خبردارد ی په هغوکارونو چې تاسي يې کوی (له خيراوشرڅخه اوپردغوبه سمه جزاء درکړي وروسته بياالله دنېکمرغانواوبدمرغانوحال پدې ورځ داسې بيانوي ﴿ مَن جَآءَ بِٱلْحَسَنَةِ فَلَهُۥ خَيْرٌ مِّنْهَا ﴾ (هرهغه څوک چې راشي په نېکي سره پس شته ده ته جزاء غوره له هغه ) يعني هرڅوک چې دقيامت په ورځ نېکي راوړي الله به يې ثواب يوپه لس ګونه ورکوي اوپه لږ عمل باندي به تل ترتله ثوابونه وروبښي ﴿ وَهُم مِّن فَزَعٍ يَوْمَئِذٍ ءَامِنُونَ ﴾ اودوی به له سختي وېرې ددغې ورځې په امان وي لکه چې الله فرمايي: ﴿ لَا يَحْزُنُهُمُ ٱلْفَزَعُ ٱلْأَكْبَرُ ﴾ (الانبيآء۱۰۳) ﴿ وَمَن جَآءَ بِٱلسَّيِّئَةِ ﴾ اوهرهغه څوک چې راشي په بدي (سئية) باندي ﴿ فَكُبَّتْ وُجُوهُهُمْ فِي ٱلنَّارِ ﴾ (پس نسکوربه وغورځول شي مخونه ددوی په اورددوزخ کې ) ابن عباس رضى الله عنه وايي: څوک چې دقيامت په ورځ بدي راوړي ، يامشرک وي نوهغه به په دوزخ کې پرمخې وغورځول شي اوسرپه څېرې به ورولوېږي ﴿ هَلْ تُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾ آياجزا درکوله کېږي (بلکه نه درکوله کېږي مګر(جزادهغه بديو)

---

(۱) البحر۷/ ۹۹
(۲) التفسيرالکبير۲۴/ ۳۴

چي وی تاسي (په دنياکي به ) موکول ﴿ إِنَّمَآ أُمِرْتُ أَنْ أَعْبُدَ رَبَّ هَٰذِهِ ٱلْبَلْدَةِ ٱلَّذِى حَرَّمَهَا ﴾ (بېشکه همدا خبره ده چي ماته داسي حکم کړی شوی دی چي عبادت کوم درب ددې) ښار هغه (الله) چي حرمت ورکړی دی (ښار دمکې ته په امن سره) يعني ای محمده دوی ته ووايه چي ماته داسي حکم شوی دی چي زه خاص دالله عبادت وکړم هغه ذات چي ددغه بلدامين پالونکی دی اومکه يې دامن حرم ګرځولي ويني پکي نه تويول کېږي اودلته هيڅوک پرچاظلم نکوي ښکارېي حرام اوزرغونه بوټي پرېکول يې لاهم حرام دي لکه چي په حديث شريف کي راځي ﴿ وَلَهُۥ كُلُّ شَىْءٍ ﴾ اوخاص همدغه (الله ) لره دي (ټول ) هرشی يعني الله يې خالق اومالک دی ﴿ وَأُمِرْتُ أَنْ أَكُونَ مِنَ ٱلْمُسْلِمِينَ ﴾ اوماته داسي حکم کړی شوی دی چي زه شم له مسلمانانو (غاړه اېښودونکو الله ته حکم منونکی دهغه اوخالص توحيد قبلونکی شم ﴿ وَأَنْ أَتْلُوَا ٱلْقُرْءَانَ ﴾ اوبل پدې (مأموريم) چي قرآن ولولم (چي خوند ورحقائق يې راته سربېره شي اوخلګوته يې ورسوم) ﴿ فَمَنِ ٱهْتَدَىٰ فَإِنَّمَا يَهْتَدِى لِنَفْسِهِۦ ﴾ پس هرچاچي سمه صافه لاره وموندله پس بېشکه همدا خبره ده چي سمه صافه لاره يې دځان لپاره وموندله ) يعني چاچي په قرآنکريم لاره وموندله زړه يې په ايمان روښانه شونودهدايت ثمره اوګټه يې ځان ته راجع ده ﴿ وَمَن ضَلَّ فَقُلْ إِنَّمَآ أَنَا۠ مِنَ ٱلْمُنذِرِينَ ﴾ اوهرڅوک چي ګمراه شوپس ووايه ای محمده دوی ته) بېشکه همدا خبره ده چي زه له وېرونکيوڅخه يم (تاسوته مي الهي رسالت ورساوو اونشته په رسولانومګرتبليغ درسالت دی ﴿ وَقُلِ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ ﴾ اووو ايه (ای محمده ) چي ټولي ثناوي خاص الله لره دي (چي زه يې دنبوت په مقام او درسالت په لوړه مرتبه نازولی يم ﴿ سَيُرِيكُمْ ءَايَٰتِهِۦ فَتَعْرِفُونَهَا ﴾ ژربه وښيي (الله) تاسي ته دلائل (دقدرت خپل) پس تاسي به وپېژنی هغه دلائل (په سترقدرت اوسلطان دالله پخپلو ځانونو اواطرافوکي مګر هغه وخت به بيادغه پېژندل تاسوته کومه ګټه نه رسوي ﴿ وَمَا رَبُّكَ بِغَٰفِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴾ اونه دی رب (پالونکي) دتابېخبره له هغوعملونوچي تاسي يې کوی ای بندګانو) الله په هرڅه خبردار دی په دې کي وعداووعيدراغلی دی

بلاغت:

پدې آيتونوکي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډون يې په دې ډول دی:

١- انکاري استفهام لکه: ﴿ أَءِذَا كُنَّا تُرَٰبًا وَءَابَآؤُنَآ أَئِنَّا لَمُخْرَجُونَ ﴾ اوپدې کلمه کي چي (أَئِنَّا) ده همزه ددې لپاره مکرر راوړل شوی چي په تعجب اوانکاردلالت وکړي.

٢- وعيداوتهديد لکه چي فرمايي: ﴿ قُلْ سِيرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ فَٱنظُرُوا۟ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلْمُجْرِمِينَ ﴾.

٣ – تاكيد په ( ان ) او(لام) سره پدې كلام كې ﴿ وَإِنَّ رَبَّكَ لَذُو فَضْلٍ ﴾ او همدارنگه په ﴿ وَإِنَّ رَبَّكَ لَيَعْلَمُ ﴾ او ﴿ وَإِنَّهُۥ لَهُدًى ﴾ كې چې راغلي دي

۴ – د طباق صنعت چې: ﴿ مَا تُكِنُّ صُدُورُهُمْ وَمَا يُعْلِنُونَ ﴾ څكه چې د ﴿ تُكِنُّ ﴾ معنا پټول دي

۵ – بديعه استعاره چې كله فرمايي: ﴿ إِنَّ هَٰذَا ٱلْقُرْءَانَ يَقُصُّ ﴾ څكه كيسه كونكي خو هغه گرېدونكى ناطق شخص ته وايي خوځرنگه چې قرآنكريم د پخوانيوأمتونو كيسې لري لكه هغه څوك داسي يې وگڼل چې خلگوته كيسې كوي نو دلته تبعيه استعاره راغلي ده.

۶ – مبالغه چې د الله جل جلاله په نومونو كې ده ﴿ وَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْعَلِيمُ ﴾ څكه فعيل د مبالغې صيغه ده.

۷ – تمثيلي استعاره لكه ﴿ إِنَّكَ لَا تُسْمِعُ ٱلْمَوْتَىٰ ﴾ دلته تعبير په مړو، كڼو او ړندو تول خايونه د استعارې په توگه دى او دغه د كفارو د هغه حالت چې په ايمان باندي گټه نشي اخيستلاى تمثيل دى چې دوى لكه مړي كاڼه او ړانده غوندي دي.

۸ – د توبيخ او ترټني أسلوب چې وايي ﴿ أَمَّاذَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾.

۹ – د طباق صنعت لكه ﴿ مَن جَآءَ بِٱلْحَسَنَةِ ...وَمَن جَآءَ بِٱلسَّيِّئَةِ ﴾.

۱۰ – بليغه تشبيه چې فرمايي ﴿ وَهِيَ تَمُرُّ مَرَّ ٱلسَّحَابِ ﴾ دلته يې د تشبيه ادات او د شبه وجه حذف كړي نو بليغه تشبيه گڼل كېږي لكه چې وو ايي (محمد سپوږمى ده).

۱۱ – د احتباك صنعت چې فرمايي ﴿ أَلَمْ يَرَوْا۟ أَنَّا جَعَلْنَا ٱلَّيْلَ لِيَسْكُنُوا۟ فِيهِ وَٱلنَّهَارَ مُبْصِرًا ﴾ له لومړۍ جملې څخه يې هغه حذف كړل كوم چې وروستۍ ته يې ثابت كړل او برعكس چې اصل يې داسي وو شپه مو تياره گرزولي چې څوپكي آرام وكړي او ورځ مو رڼا گرزولي چې كارپكي وكړي نو هلته يې د(تيارې) كلمه حذف كړه چې (رڼا ) ورباندي دلالت كوي او همداسي يې په دوهم څاى كې (كاركول) حذف كړل چې د لومړۍ جملې ﴿ لِيَسْكُنُوا۟ فِيهِ ﴾ ورباندي دلالت كوي او دغه ډول صنعت ته احتباك وايي چې د بديعي محسناتو څخه گڼل كېږي.

د الله جل جلاله په مرسته د النمل سورت تفسير بشپړ شو.

***

# دالقصص سورت مکي دی او اته اتیاآیتونه لري

## دسورت په وړاندي:

دالقصص سورت لکه نورمکي سورتونه دتوحید، رسالت اوبعث څخه ږغېږي اوداسورت له دوونوروسورتونوسره چي د(النمل) او(الشعرآء) سورتونه دي لکه چي په نزول کي ورسره موافق راغلی په څېله تګلاره اوموخه کي هم یورنګه دي نودغه سورت دتېرو دووتفصیل اوبشپړوالی ترسترګو کوي.

* دسورت محور دحق اوباطل سپیناوی کوي اودایمان اوطغیان منطق څېړي اوهمداسي دالهي اوشیطاني لښکرودجګړې انځورکاږي چي پدې هکله یې دوې کیسې راوړي لومړی هغه دطغیان کیسه چي په زور اوسلطان ولاړه اودفرعون سرکښه هغه چي بني اسرائیلوته یې ډول ډول عذابونه ورکول زامن یې ورذبح کول اوښځمني یې دځان دچوپړوهلولپاره پرې ښودل په الله جل جلاله دومره ور زرورشوي وو چي آن دالوهیت دعوی یې کړي وه ﴿ مَا عَلِمْتُ لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرِي ﴾ به یې ویل دوهمه هغه کیسه چي دمال ، دولت په نتېجه کي دقارون په شخصیت کي څرګنده شوي اودادواړه کیسې دانسان سرغړوني ته چي پدغه فاني ژوندانه کي ځني پېښېږي اشاره کوي هغه که دمال ثروت په نتېجه کي وي اوکه دجاه ، دبدبې اوسلطان په سبب.

* سورت دفرعون په طغیان بیانولوپیلېږي دهغه لوړتیااوفسادبلکه په هرزمان اومکان کي دطغیان منطق په ګوته کوي.

* وروسته له دې خبره دموسی علیه السلام له زېږېدلواوبیادهغه په ژوندي پاتي کېدلوېې دمور زړه چي څرنګه به له فرعون څخه ژوندی وژغورل شي اوهغې ته دالله له لوري داسي الهام چي په دریاب کي یې وغورځوه ترڅوبیا وروسته دفرعون په انګړکي په عزت اودرنښت داسی لوی شی لکه خوشبویه ګلاب چي دازغیوپه مینځ اوډنډکي ولاړوي او وده ومومي.

* ورپسې دموسی علیه السلام بلوغ ته رسېدل اوبیایې له لاسه دقبطي وژل کېدل همداسي دهغه هجرت مدین ته اودشعیب علیه السلام له لور سره نکاح تړل اوبیادالله جل جلاله له لوري دده مکلفیت دوره پیل کېدل چي مصرته راستون شي اودطغیان علمبردارفرعون ته دالله لوري ته بلنه ورکړي اودغه دفرعون اوموسی علیه السلام شخړي په تفصیل سره څېړي ترڅوچي الله فرعون غرق کړي اوهمداسي دمکې دکفارو څخه خبرراوړي چي دمحمدي رسالت په وړاندي په مخالفت درېږي اودانښیي چي دګمراهانو تګلاره هرچېري یو شانته وي.

* سورت بیادقارون کیسه راوړي اوپدې کي هغه ستروانښن اومسافه چي دایمان اوطغیان ترمینځ دي په ډاګه کېږي.

* په پای کي سورت دنېکمرغي لاري ته ښوونه او ارشادکوي هغه چي دایمان لاره ده اودانبیاء کرامو بلنه تل هغې لاری ته وي.

## تسمیه اونومول یې:

دې سورت ته څکه سورة القصص وایې چي الله پاک پکي دموسی علیه السلام کیسه په تفصیل سره دولادت اوزېږېدلو څخه ونیسه بیاتررسالته پوري راوړي ده اوپدې کي عجیبه اونادر ې پېښي

راغلي چي له ورايه پكي دالله جل جلاله له خپلواوليااووسره عنايت اودخپلودښمنانوتكول اوخذلان څرګند دي.

الله تعالى فرمايي:

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ طسٓمٓ (١) تِلْكَ ءَايَٰتُ ٱلْكِتَٰبِ ٱلْمُبِينِ (٢) نَتْلُواْ عَلَيْكَ مِن نَّبَإِ مُوسَىٰ وَفِرْعَوْنَ بِٱلْحَقِّ لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ (٣) إِنَّ فِرْعَوْنَ عَلَا فِى ٱلْأَرْضِ وَجَعَلَ أَهْلَهَا شِيَعًا يَسْتَضْعِفُ طَآئِفَةً مِّنْهُمْ يُذَبِّحُ أَبْنَآءَهُمْ وَيَسْتَحْيِۦ نِسَآءَهُمْ إِنَّهُۥ كَانَ مِنَ ٱلْمُفْسِدِينَ (٤) وَنُرِيدُ أَن نَّمُنَّ عَلَى ٱلَّذِينَ ٱسْتُضْعِفُواْ فِى ٱلْأَرْضِ وَنَجْعَلَهُمْ أَئِمَّةً وَنَجْعَلَهُمُ ٱلْوَٰرِثِينَ (٥) وَنُمَكِّنَ لَهُمْ فِى ٱلْأَرْضِ وَنُرِىَ فِرْعَوْنَ وَهَٰمَٰنَ وَجُنُودَهُمَا مِنْهُم مَّا كَانُواْ يَحْذَرُونَ (٦) وَأَوْحَيْنَآ إِلَىٰٓ أُمِّ مُوسَىٰٓ أَنْ أَرْضِعِيهِ فَإِذَا خِفْتِ عَلَيْهِ فَأَلْقِيهِ فِى ٱلْيَمِّ وَلَا تَخَافِى وَلَا تَحْزَنِىٓ إِنَّا رَآدُّوهُ إِلَيْكِ وَجَاعِلُوهُ مِنَ ٱلْمُرْسَلِينَ (٧) فَٱلْتَقَطَهُۥٓ ءَالُ فِرْعَوْنَ لِيَكُونَ لَهُمْ عَدُوًّا وَحَزَنًا إِنَّ فِرْعَوْنَ وَهَٰمَٰنَ وَجُنُودَهُمَا كَانُواْ خَٰطِـِٔينَ (٨) وَقَالَتِ ٱمْرَأَتُ فِرْعَوْنَ قُرَّتُ عَيْنٍ لِّى وَلَكَ لَا تَقْتُلُوهُ عَسَىٰٓ أَن يَنفَعَنَآ أَوْ نَتَّخِذَهُۥ وَلَدًا وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ (٩) وَأَصْبَحَ فُؤَادُ أُمِّ مُوسَىٰ فَٰرِغًا إِن كَادَتْ لَتُبْدِى بِهِۦ لَوْلَآ أَن رَّبَطْنَا عَلَىٰ قَلْبِهَا لِتَكُونَ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ (١٠) وَقَالَتْ لِأُخْتِهِۦ قُصِّيهِ فَبَصُرَتْ بِهِۦ عَن جُنُبٍ وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ (١١) ۞ وَحَرَّمْنَا عَلَيْهِ ٱلْمَرَاضِعَ مِن قَبْلُ فَقَالَتْ هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَىٰٓ أَهْلِ بَيْتٍ يَكْفُلُونَهُۥ لَكُمْ وَهُمْ لَهُۥ نَٰصِحُونَ (١٢) فَرَدَدْنَٰهُ إِلَىٰٓ أُمِّهِۦ كَىْ تَقَرَّ عَيْنُهَا وَلَا تَحْزَنَ وَلِتَعْلَمَ أَنَّ وَعْدَ ٱللَّهِ حَقٌّ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ (١٣) وَلَمَّا بَلَغَ أَشُدَّهُۥ وَٱسْتَوَىٰٓ ءَاتَيْنَٰهُ حُكْمًا وَعِلْمًا وَكَذَٰلِكَ نَجْزِى ٱلْمُحْسِنِينَ (١٤) وَدَخَلَ ٱلْمَدِينَةَ عَلَىٰ حِينِ غَفْلَةٍ مِّنْ أَهْلِهَا فَوَجَدَ فِيهَا رَجُلَيْنِ يَقْتَتِلَانِ هَٰذَا مِن شِيعَتِهِۦ وَهَٰذَا مِنْ عَدُوِّهِۦ فَٱسْتَغَٰثَهُ ٱلَّذِى مِن شِيعَتِهِۦ عَلَى ٱلَّذِى مِنْ عَدُوِّهِۦ فَوَكَزَهُۥ مُوسَىٰ فَقَضَىٰ عَلَيْهِ قَالَ هَٰذَا مِنْ عَمَلِ ٱلشَّيْطَٰنِ إِنَّهُۥ عَدُوٌّ مُّضِلٌّ مُّبِينٌ (١٥) قَالَ رَبِّ إِنِّى ظَلَمْتُ نَفْسِى فَٱغْفِرْ لِى فَغَفَرَ لَهُۥٓ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلْغَفُورُ ٱلرَّحِيمُ (١٦) قَالَ رَبِّ بِمَآ أَنْعَمْتَ عَلَىَّ فَلَنْ أَكُونَ ظَهِيرًا لِّلْمُجْرِمِينَ (١٧) فَأَصْبَحَ فِى ٱلْمَدِينَةِ خَآئِفًا يَتَرَقَّبُ فَإِذَا ٱلَّذِى ٱسْتَنصَرَهُۥ بِٱلْأَمْسِ يَسْتَصْرِخُهُۥ قَالَ لَهُۥ مُوسَىٰٓ إِنَّكَ لَغَوِىٌّ مُّبِينٌ (١٨) فَلَمَّآ أَنْ أَرَادَ أَن يَبْطِشَ بِٱلَّذِى هُوَ عَدُوٌّ لَّهُمَا قَالَ يَٰمُوسَىٰٓ أَتُرِيدُ أَن تَقْتُلَنِى كَمَا قَتَلْتَ نَفْسًۢا بِٱلْأَمْسِ إِن تُرِيدُ إِلَّآ أَن تَكُونَ جَبَّارًا فِى ٱلْأَرْضِ وَمَا تُرِيدُ أَن تَكُونَ مِنَ ٱلْمُصْلِحِينَ (١٩) ﴾ القصص: ١ ـ ١٩

لغتونه:

(شيعا) ټولي اوټولنه (يستحي) ژوندي يې پرېښودې نه يې وژلې (نمن) مورِاحسان كوو (اليم) بحر (المراضع) تې وركونكي (عن جنب) له ليري ,اواجنبي ته هم له دې سببه وايي چې ليري وي (وكزه) وكزيه سوك

وهلوته وايي دلغت علماء وايي چي (وكز) او(لكز) دواړه په يوه معناراځي چي په سينه كي په سوک وهلوته وايي اوچاپياويلي چي (وكز) په سينه كي او(لكز) په شاباندي په سوک وهلوته وايي (ظهيرا) مرستندوى (يستصرخه) ده ته يې چيغي نارې وهلې (استصراخ) مرسته غوښتلوته وايي اوڅوک چي مرسته غواړي اروموروغږ هم اوچتوي (يبطش) په كلكه نيولوته ويل كېږي اومكسور العين اومضموم العين دواړه راځي

تفسير:

﴿ طسٓمٓ ﴾ له مقطعاتو حروفو څخه دى اود قرآن كريم په اعجازباندي تنبيه پكي شته اودې ته اشاره كوي چي دغه په فصاحت اوبيان كي معجزكتاب له همدې تورو څخه جوړشوى دى (۱) ﴿ تِلْكَ ءَايَٰتُ ٱلْكِتَٰبِ ٱلْمُبِينِ ﴾ داآيتونه دمبين كتاب دي (هغه چي ښكاره په اعجازاو واضح په تشريع اواحكاموكي دي ﴿ نَتْلُوا۟ عَلَيْكَ مِن نَّبَإِ مُوسَىٰ وَفِرْعَوْنَ بِٱلْحَقِّ ﴾ (لولومونږ پرتا(اى محمده!) له ځينو خبرو دموسى اوفرعون څخه په حقه (رښتيا) سره) يعني اى محمده! مونږ پرتاباندي دروح الامين په وسيله مهم خبرونه دموسى اوفرعون لولوچي حق دي باطل پكي نشته رښتيادي دروغ اوشک ورسره ګډنه دي ﴿ لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴾ دپاره دهغه قوم چي ايمان راوړي (په قرآن او ورباندي نفع اخلي ، اوس د سركښه فرعون كيسه پيلوي چي ﴿ إِنَّ فِرْعَوْنَ عَلَا فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ ببشكه چي فرعون لويې (تكبر) غوره كړى وو په ځمكه كي(دمصر) ﴿ وَجَعَلَ أَهْلَهَا شِيَعًا ﴾ اوګرزولي يې وواهل ددغه (مصر)تولۍ تولۍ (په چوپړوهلواوحكمونوترسره كولوكي) ﴿ يَسْتَضْعِفُ طَآئِفَةً مِّنْهُمْ ﴾ چي ضعيفه (مقهوره) كړي يې وه يوه طائفه له دوى څخه (چي بني اسرائيل وو اوډول ډول عذابونه يې ورځكل) ﴿ يُذَبِّحُ أَبْنَآءَهُمْ وَيَسْتَحْىِۦ نِسَآءَهُمْ ﴾ وژل به يې زامن ددوى اوژوندي به يې پرېښودې ښځي ددوى (چي دده اونوروقبطيانوچوپړووهي. مفسرين كرام وايي چي دنارينه وو دوژلو سبب داووچي فرعون په خوب كي وليدل چي دبيت المقدس له لوري ستر اور راشي اوپه مصركي قبطيان ټول وسوځي اوبني اسرائيل خوندي پاتي شي نوبيې له منجمينو(ستورپېژندوتكو) څخه وپوښتل اوله كاهنانويې تپوس وكړهغوى ورته وويل چي: په بني اسرائيلوكي يوماشوم زېږېدونكى دى چي ستاپاچهي به دهغه له لاسه زوال مومي اوته به هم هلاكېږې نويې حكم صادركړچي په بني اسرائيلوكي چي نارينه ماشوم زېږې هغه دي اروموووژل شي ﴿ إِنَّهُۥ كَانَ مِنَ ٱلْمُفْسِدِينَ ﴾ ببشكه وو دغه (فرعون) له مفسدانو (جابرانوڅكه يې نودالوهيت دعوى وكړه او(دبني اسرائيلو) نارينه يې وژل اوښځمني يې په چوپړ ګمارلې) ﴿ وَنُرِيدُ أَن نَّمُنَّ عَلَى ٱلَّذِينَ ٱسْتُضْعِفُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ اواراده وكړه مونږ ددې چي احسان كنبېږدوپرهغوكسانوچي

(۱) هغه چي دالبقره سورت په پيل كي مونږليكلي ولوله.

ضعيفان کړی شوي وو په ځمکه (دمصر) کي ؛ چي بني اسرائيل وو نوموړ دوی دفرعون له ظلم اوتيري ځخه ژغورو ﴿ وَنَجْعَلَهُمْ أَئِمَّةً ﴾ اوګرزوو موږدوی امامان (دخير وروسته له هغه چي ذليل اوسپک وو. ابن عباس رضی الله عنه وايې چي امامان دخيراوقتاده وايې چي: امامان يعني حاکمان، واليان ﴿ وَنَجْعَلَهُمُ الْوَارِثِينَ ﴾ اوګرزووموږدوی وارثان (دپاچهي دده چي په هستوګنځيوکي واوسي وروسته له هغه چي قبطيان پکي باداران اوعزتمن وو ﴿ وَنُمَكِّنَ لَهُمْ فِي الْأَرْضِ ﴾ اوچي قدرت ورکړوموږدوی ته په ځمکه (دمصراوشام) کي (چي ددوی په خوښه پکي تصرف کوي بيضاوي وايې چي: تمکين په اصل کي ځای په ځای کولوته وايې، بيايې دتسليط لپاره استعاره کړچي هغه دځپلواکي په معنادی(١)﴿ وَنُرِيَ فِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَجُنُودَهُمَا مِنْهُم مَّا كَانُوا يَحْذَرُونَ ﴾ اوچي وښيوفرعون اوهامان (وزيرته يې ) اونورو قبطيانو ) اولښکروددغو دواړوته له دغو(بني اسرائيلونه) هغه چي وو دوی وېرېدل به (ترې چي پاچهي به يې دبنی اسرائيلو ديوماشوم په لاس له مينځه ځي اودوی به هلاکيږي ﴿ وَأَوْحَيْنَا إِلَىٰ أُمِّ مُوسَىٰ أَنْ أَرْضِعِيهِ ﴾ اووحی (الهام) وکړموږ موردموسی ته داسي چي تی ورکوه ته دغه (موسی) ته. ابن عباس رضی الله عنه وايې چي: مراد له وحی ځخه الهام دی اومقاتل وايې چي جبريل عليه السلام ورته دغسي وويل قرطبي وايې چي: دمقاتل په وينادغه وحی اعلام وه الهام نه وه اوپدې دګردواتفاق دی چي هغه (موريې) پيغمبره نه وه بلکه دپرښتې راتلل ورته داسي وولکه چي پرښتې پک، پيس، اورانده ته خبر ورکړی وي لکه چي په مشهورحديث شريف کي راغلي دي اوهمداسي پرښتې خلګوته خبري کوي خونبيان نه وي اوعمران بن حصين ته هم پرښتې سلام وراچولی وواوهغه پيغمبرنه وو(٢)﴿ فَإِذَا خِفْتِ عَلَيْهِ فَأَلْقِيهِ فِي الْيَمِّ ﴾ نوکله چي ته په ده ووېرېدې پس وغورځوه ته دغه (موسی سره له تابوته) په سيندکي يعني کله چي له فرعونه پرده باندي وېرېدې نوپه صندوق کي يې واچوه اوپه نيل سيندکي يې وغورځوه ﴿ وَلَا تَخَافِي وَلَا تَحْزَنِي ﴾ اومه وېرېږه ته (په هلاکت يې اومه (يې په بېلتون) خواشيني کېږه !) ﴿ إِنَّا رَادُّوهُ إِلَيْكِ وَجَاعِلُوهُ مِنَ الْمُرْسَلِينَ ﴾ ببشکه موږبېرته راوستونکي يوددغه (موسی) تاته (او(بيا ) ګرزونکي يوددغه (موسی) له پيغمبرانو(چي دغه سرکښه فرعون ته يې ورواستوو ترڅو بني اسرائيل دده له شرځخه وژغوري) ﴿ فَالْتَقَطَهُ آلُ فِرْعَوْنَ لِيَكُونَ لَهُمْ عَدُوًّا وَحَزَنًا ﴾ پس ومونددغه (تابوت دموسی) کورنی دفرعون دپاره ددې چي شي دغو(فرعونيانو) ته دښمن او(سبب) دغمګيني. قرطبي وايې چي لام په (ليکون)کي لام دعاقبت دی اودغه ته (لام الصيرورة) هم ويل کېږي ځکه دوی خوددې لپاره واخيست چي دسترګويخ والی اود نېکمرغي سبب شي خوهغه يې دښمن اودغم سبب شو نوذکردحال په مآل دی ﴿ إِنَّ فِرْعَوْنَ وَهَامَانَ

---

(١) البيضاوي ٢/ ٨٨

(٢) القرطبي ١٣/ ٢٥٠

وَجُنُودَهُمَا كَانُوا۟ خَٰطِـِٔينَ ﴾ بېشكه چي فرعون او هامان او لښكري ددوى دواړو دا (تول) خطاكاران وو. (خاطئ) هغه چاته وايې چي په قصد گناه وكړي او (مخطئ) بياهغه ته وايې چي بې له قصده گناه ورڅخه صادره شي ﴿ وَقَالَتِ ٱمْرَأَتُ فِرْعَوْنَ قُرَّتُ عَيْنٍ لِّى وَلَكَ ﴾ او وويل ښځي دفرعون (فرعون ته چي دغه هلک) يخوالى دسترگودى ماا و تاته. طبري وايې چي كله هغې دغه وينا وكړه نو فرعون ورته وويل چي: ستا لپاره هو كې, او زما لپاره دسترگو يخوالى نه دى (١) ابن عباس رضى الله عنه وايې: كه چېري يې بې ويلي واى چي زما لپاره هم دى نو به الله هدايت ورته كړى او ايمان به يې راوړى واى مگر خو هغه ونه منله ﴿ لَا تَقْتُلُوهُ ﴾ مه وژنئ دغه (هلک) هغې دجمعي په كلمه فرعون ته خطاب وكړ لكه چي جبابره كسانو ته تعظيماً همداسي خطاب كېږي ترڅو يې غوښتنه ومنل شي ﴿ عَسَىٰٓ أَن يَنفَعَنَآ أَوْ نَتَّخِذَهُۥ وَلَدًا ﴾ ښايي چي مونږ ته به گټه راورسوي (په بوډاتوب كي) او يا به دى (په) زوى ونيسو (متبنى) مفسرين كرام وايې: چي دهغې اولاد نه كېدو نو يې موسى له فرعون څخه وغوښت او هغه وركړ الله فرمايې ﴿ وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴾ حال دا چي دوى نه پوهېدل (چي هلاک دفرعون او دهغه دتالى ښتوبه دده په لاس وي ﴿ وَأَصْبَحَ فُؤَادُ أُمِّ مُوسَىٰ فَٰرِغًا ﴾ او وگرزېدو زړه دمور دموسى تش (له هرڅه چي په دنياكي دې پرته له موسى) (٢) او ځينو ويلي چي دهغې زړه له دې غمه چي زوى يې دفرعون په لاس كېووت له صبره تش شو او عقل يې والوت ﴿ إِن كَادَتْ لَتُبْدِى بِهِۦ ﴾ بېشكه چي نژدې وه چي اظهار وكړي په دې (موسى سره چي زوى مې دى) ابن عباس رضى الله عنه وايې: نژدې وو چي كله خبره شوه زوى يې دفرعون په لاس كېوتلى داسي چېغي ناري دي ووهي چي: هاى زما زويه ! ﴿ لَوْلَآ أَن رَّبَطْنَا عَلَىٰ قَلْبِهَا ﴾ كه چېري مونږ محكم كړى نه واى (صبراو زغم) پر زړه ددې ﴿ لِتَكُونَ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ چي شي داله باوركونكو (په وعده دالله چي بيرته به يې دې ته راستنوي) ﴿ وَقَالَتْ لِأُخْتِهِۦ قُصِّيهِ ﴾ او ويل (مور دموسى) خور دغه (موسى) ته چي څه برابره وريسې (دورور حال دې راوړه !) مجاهد وايې: معنادا چي دهغه لټه وكړه ويې گوره چي څه ورياندي كوي؟ ﴿ فَبَصُرَتْ بِهِۦ عَن جُنُبٍ وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴾ پس كتل به يې دغه (موسى ته له ليري ځايه حال دا چي دوى به نه پوهېدل (په دې چي دغه يې خورده او حال يې اخلي ځكه هغه دسيند په غاړه روانه وه څو صندوق د فرعون انگړته دننه شو هغې څارل )﴿ وَحَرَّمْنَا عَلَيْهِ ٱلْمَرَاضِعَ مِن قَبْلُ ﴾ او منع كړى وو مونږ پر دغه (موسى تى رودل د ) دايه گانو (هغه چي ده ته يې راغوښتي وې ) ترپخوا (له راتگه دمورې) مفسرين كرام وايې: څو ورځي وشوې چي كومه تى وركونكي به يې

---

(١) الطبري.

(٢) دغه دابن عباس، مجاهد ، ضحاک او جمهورو وينا ده او دوهم قول قرطبي راوړى چي ابن قاسم له مالک څخه اخيستى او ښايي چي هغه زيات څرگند وي.

راوستله ده به تی نه رودل نو پردوی دغه گرانه شوه او له قصر څخه بهر يې دتي ورکونکو ميرمنو لټونه پيل کړه نوبې دده خورولیده ﴿فَقَالَتْ هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَىٰٓ أَهْلِ بَيْتٍ يَكْفُلُونَهُۥ لَكُمْ﴾ نوو ويل(خوردموسى) آیاخبر کړم زه تاسي په اهل دداسي کاله چي واخلي وساتي داهلك تاسي ته ﴿وَهُمْ لَهُۥ نَٰصِحُونَ﴾ اودوى به ده ته له خير غوښتونكو وي (په تي وركولو اوروزنه كي . سدي وايې چي دوى ته يې دموسى مور وروښودله اوهغه يې راوستله ماشوم دفرعون په غيږكي ووچي ژړل يې تى يې غوښتل اوفرعون يې آراموله هڅه كوله خوكله چي يې دخپلي مور بوى ورباندي ولگېدوځان يې ورپوري ونښلاوو اوتى رودل يې پيل كړل فرعون ورته وويل: ته څوك يې چي دهيچاتى يې نه رودل اوستاتي ،روي ؟ هغې په ځواب كي ورته وويل: زه يوه داسي ميرمن يم چي پاكيزه بوى اوشيدې لرم هرهلك چي زه تى وركولوته راوبولم هغه منع نه كوي نوبې دې ته وركړ اوهغه هم سمدستي خپل كورته راستنه شوه دفرعون له خپلوانوهيڅوك پاتي نشول مگرهغې ته يې سوغات او تحفه وركړه ملغلري يې ورته ډالى كړې همدغه دالله وپناده چي فرمايې: ﴿فَرَدَدْنَٰهُ إِلَىٰٓ أُمِّهِۦ كَىْ تَقَرَّ عَيْنُهَا وَلَا تَحْزَنَ﴾ پس بيرته راووست موږ دغه (موسى ) خپلي مورته دپاره ددې چي يخي (اورنې) شي ستركي ددې اوچي نشي غم جنه (په بېلتون يې لكه چي موږ ورسره ژمنه اووعده كړي وه) ﴿وَلِتَعْلَمَ أَنَّ وَعْدَ ٱللَّهِ حَقٌّ﴾ اولپاره ددې چي وپوهيږي پدې چي دالله وعده حقه ده (چي بيرته يې راستنوي اودفرعون له شرڅخه يې ژغوري) ﴿وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ﴾ وليكن اكثردوى پردې نه پوهيږي (چي حقه ده اومترددوي) ﴿وَلَمَّا بَلَغَ أَشُدَّهُۥ وَٱسْتَوَىٰٓ﴾ اوكله چي ورسېدوموسى زور (قوت دځواني خپلي ته) اوبرابرشو(عقل دده اوپوهه يې) مجاهدوايې چي دغه دڅلويښت كلني عمردى ﴿ءَاتَيْنَٰهُ حُكْمًا وَعِلْمًا﴾ نوور كړموږده ته حكمت (نبوت) اوعلم (پوهه) په دين كي ﴿وَكَذَٰلِكَ نَجْزِى ٱلْمُحْسِنِينَ﴾ اوهم داسي جزاوركوو موږنېكي كونكوته (په نېكي ددوى باندي لكه چي په موسى اوموربې موږمهرباني وكړه) ﴿وَدَخَلَ ٱلْمَدِينَةَ عَلَىٰ حِينِ غَفْلَةٍ مِّنْ أَهْلِهَا﴾ اوننوت موسى ښار(د مصر)ته په وخت دغفلت (قيلولې) تكندي غرمې) داهل دهغه كي ﴿فَوَجَدَ فِيهَا رَجُلَيْنِ يَقْتَتِلَانِ هَٰذَا مِن شِيعَتِهِۦ وَهَٰذَا مِنْ عَدُوِّهِۦ﴾ پس وبې موندل په دغه (ښار) كي دوه سړي چي جگړه يې سره كوله دغه يوله تابعانوددغه (موسى) وواوهغه بل له دښمنانوددغه (موسى) وو (يوسبطي اوبل قبطي وو ) ﴿فَٱسْتَغَٰثَهُ ٱلَّذِى مِن شِيعَتِهِۦ عَلَى ٱلَّذِى مِنْ عَدُوِّهِۦ﴾ پس مرسته وغوښته دغه چي له تابعانوددده وو په هغه (قبطي)چي له دښمنانوددغه (موسى) وو(چي شريې ځني دفع كړي) ﴿فَوَكَزَهُۥ مُوسَىٰ فَقَضَىٰ عَلَيْهِ﴾ پس په سوك وواهوموسى هغه (قبطي) لره پس وبې واژه هغه . قرطبي وايې چي: موسى دده دوژلواراده نلرله هغه بې پوري وهل خودغه سوك مرگوني شو(١) ﴿قَالَ هَٰذَا مِنْ عَمَلِ ٱلشَّيْطَٰنِ﴾ وويل: (موسى) چي

---

(١) القرطبي ١٣/ ٢٦١

دغه کارله عمله دشيطان دی (ځکه هغه زماغضب اوغصه راوپاروله اومابياد غه قبطي په سوک وواهو ﴿ إِنَّهُۥ عَدُوٌّ مُّضِلٌّ مُّبِينٌ ﴾ بېشکه چي دغه (شيطان) دښمن دی (دانسانانو ښويونکی ښکاره دی (چي له سمي لاري بنيادمان اړوي . صاوي وايي چي: نسبت يې پدې شيطان ته وکړچي ده ته معلومه شوه چي دغه وژل خوښه کارونشوځکه فتنې ځينی پېښېږي اوشيطان په فتنو خوشحاله کېږي ځکه نو پخپله دې کړن چاره پښېمانه شو(١)﴿ قَالَ رَبِّ إِنِّي ظَلَمۡتُ نَفۡسِي فَٱغۡفِرۡ لِي فَغَفَرَ لَهُۥٓۚ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلۡغَفُورُ ٱلرَّحِيمُ ﴾ وويل(موسی) ای زماربه بېشکه زه چي يم ظلم مي کړی دی په ځان خپل(په وژلودغه قبطي) پس مغفرت وکړه ماته ددغه ګناه زما)پس مغفرت وکړ(الله) دغه (موسی) ته بېشکه چي الله همدی دی خامخابښه ښونکی (دګناهونو) دېررحم والا(په بندګانو) ﴿ قَالَ رَبِّ بِمَآ أَنۡعَمۡتَ عَلَيَّ فَلَنۡ أَكُونَ ظَهِيرٗا لِّلۡمُجۡرِمِينَ ﴾ وويل: ( موسی ) ای زماربه په حق دانعام ، احسان (ستا ) پرما(چي جاه او عزت دي راکړ) پس له سره به هيڅېري نشم مددګارلپاره دګناهګارانو(٢)داهغه معاهده اوتړون دی چي موسی عليه السلام يې له خپل پروردګارسره کوي چابياويلي چي دغه قسم اولوړه ده مګرهغه کمزوري او ضعيف قول دی ﴿ فَأَصۡبَحَ فِي ٱلۡمَدِينَةِ خَآئِفٗا يَتَرَقَّبُ ﴾ پس صباپاڅېدو(وګرزېدوموسی) په دغه ښارکي (چي قبطي يې پکي وژلی وو ) په داسي حال کي چي وېروېدونکی وو(پرځان خپل اودېدو عواقبوانتظاريې کاووچي يوڅوک به يې په همدې ګناه ونيسي) ﴿ فَإِذَا ٱلَّذِي ٱسۡتَنصَرَهُۥ بِٱلۡأَمۡسِ يَسۡتَصۡرِخُهُۥۚ ﴾ پس ناڅاپه هغه (اسرائيلي ) چي مددېي غوښتی ووله دغه (موسی) څخه پرون اوس بيا ناري وهي دغه (موسی) ته اومرسته تري غواړي چي له دښمن څخه يې وژغوري ﴿ قَالَ لَهُۥ مُوسَىٰٓ إِنَّكَ لَغَوِيّٞ مُّبِينٞ ﴾ پس وويل(موسی) دغه اسرائيلي ته) چي بېشکه ته خامخابښکاره بې لاري يې (زه پرون ستاله لاسه په قتل واوښتم نن بياغواړې په بله لانجه مي واړوې ) ﴿ فَلَمَّآ أَنۡ أَرَادَ أَن يَبۡطِشَ بِٱلَّذِي هُوَ عَدُوّٞ لَّهُمَا ﴾ پس کله چي اراده وکړه (موسی) چي ونيسي (قبطي) هغه چي وودښمن ددغو دواړو(دموسی اواسرائيلي) ﴿ قَالَ يَٰمُوسَىٰٓ أَتُرِيدُ أَن تَقۡتُلَنِي كَمَا قَتَلۡتَ نَفۡسَۢا بِٱلۡأَمۡسِۖ ﴾ نووويل يې: ای موسی ! آيااراده لرې ددې چي ووژنې ما(نن) لکه چي وژلی دی وويوتن (قبطي) پرون(٣)﴿ إِن تُرِيدُ إِلَّآ أَن تَكُونَ جَبَّارٗا فِي ٱلۡأَرۡضِ وَمَا تُرِيدُ أَن تَكُونَ مِنَ ٱلۡمُصۡلِحِينَ ﴾ اراده نلرې ته (دهيڅ شي مګرددې چي شې (ای موسی) زوروروپه ځمکه (دمصر) کي اواراده نلرې چي شې ته له اصلاح کونکو څخه (دخلکوترمينځ) .

بلاغت:

(١) حاشية الصاوي على الجلالين ٣ / ١١٢

(٢) امام رازي وايي چي په آيت شريف کي دادليل شته چي دظالمانو مرسته کول روانه دي.

(٣) څرګنده خبره داده چي دغه دي دقبطي وينا وي ځکه داسي ويناچي ﴿ إِن تُرِيدُ إِلَّآ أَن تَكُونَ جَبَّارٗا فِي ٱلۡأَرۡضِ ﴾ له مسلمان اسرائيلي څخه نه صادرېږي

پدې آيتونوكې چې دبديع اوبيان كومې ښكلاوې شته لنډيزيې دادى:

۱ – نژدې ته دليرې اشاره كولو په بڼه ددې لپاره چې دمرتبې لوړوالى يې څرګند شي لكه چې فرمايي ﴿ تِلْكَ ءَايَٰتُ ٱلْقُرْءَانِ وَكِتَابٍ مُّبِينٍ ﴾.

۲ – تېرحالت حكايت كول په ذهن كې داستحضارلپاره لكه داچې: ﴿ وَنُرِيدُ أَن نَّمُنَّ ﴾.

۳ - اسميه جمله په فعليه باندې ددې لپاره غوره كول چې هغه ثبوت او استمرار افاده كوي لكه په دې آيت كې چې ﴿ إِنَّا رَآدُّوهُ إِلَيْكِ وَجَاعِلُوهُ مِنَ ٱلْمُرْسَلِينَ ﴾ داسې يې ونه فرمايل چې (ونجعله رسولا) ترڅو زېرې اوبشارت په هكله اعتناء او پاملرنه وشي.

۴ – استعاره چې پدې كلام كې شته ﴿ لَوْلَآ أَن رَّبَطْنَا عَلَىٰ قَلْبِهَا ﴾ دلته يې هغه صبرچې پهغېږه كې يې اچولى وو له يو داسې څېزسره چې په خوښې پرېښودلو يې سړى له ضائع كېدلو وېرېږي له تړلوسره مشابه كړاو دصبرلپاره يې تړل استعاره كړل.

۵ – دتعظيم صيغه هلته چې وايي: ﴿ لَا تَقْتُلُوهُ ﴾ پدې كلمه له فرعون سره مخاطبه كېږي اوداسې يې ورته ونه ويل چې (لاتقتله) ترڅو تعظيم يې پرځاى كړي.

۶ – دمبالغې صيغې لكه (جبار، غوي، مبين،) ﴿ جَبَّارًا ..... لَغَوِيٌّ ..... مُّبِينٌ ﴾ چې فعال اوفعيل مبالغې صيغې دي.

۷ – معنوي طباق لكه ﴿ جَبَّارًا فِي ٱلْأَرْضِ وَمَا تُرِيدُ أَن تَكُونَ مِنَ ٱلْمُصْلِحِينَ ﴾ څكه چې جبارمفسد، مخرب اووينې تويونكي وژونكي ته وايي او پدې كې معنوي طباق شته

۸– استعطاف (په رحم توجه رااړول ) لكه د ﴿ فَلَنْ أَكُونَ ظَهِيرًا لِّلْمُجْرِمِينَ ﴾ په آيت شريف كې چې راغلې ده

۹ – دفواصلو توافق چې په ډېرو آيتونوكې راغلى دى لكه داچې : ﴿ وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ .....وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ اودغه هم له بديعي محسناتو څخه ګڼل كېږي.

لطيفه:

علامه قرطبي له اصمعي څخه روايت كوي چې يوه كوچنۍ نجلۍ مې وليدله چې دغه بيتونه يې ويل : استغفرالله لذنبى كله * قتلت انسانًا بغيرحله * مثل الغزال ناعمًا بدله * انتصف الليىن ولم أصلّه )ماورته وويل: الله دې مړه كړه څومره فصاحت لرې ؟ هغې راته ويل: افسوس دې پرتاوې آيادې ته هم فصاحت ويلاى شې فصاحت خو دالله په كلام كې دى چې فرمايي ﴿ وَأَوْحَيْنَآ إِلَىٰٓ أُمِّ مُوسَىٰٓ أَنْ أَرْضِعِيهِ ۖ فَإِذَا خِفْتِ عَلَيْهِ فَأَلْقِيهِ فِى ٱلْيَمِّ وَلَا تَخَافِى وَلَا تَحْزَنِىٓ ۖ إِنَّا رَآدُّوهُ إِلَيْكِ وَجَاعِلُوهُ مِنَ ٱلْمُرْسَلِينَ ﴾ چې په يوه آيت شريف كې دوه امرونه ،دوې نهې ، دوه خبرې ، اودوه ، زېرې يې راوړې دي[1]

---

[1] القرطبي ۱۳/۲۵۲

## اللہ تعالی فرماتے ہیں:

﴿ وجاء رجل من أقصا المدينة يسعى قال يموسى إن الملأ يأتمرون بك ليقتلوك فاخرج إني لك من
النصحين ﴿٢٠﴾ فخرج منها خائفا يترقب قال رب نجني من القوم الظلمين ﴿٢١﴾ ولما توجه تلقاء مدين قال عسى
ربي أن يهديني سواء السبيل ﴿٢٢﴾ ولما ورد ماء مدين وجد عليه أمة من الناس يسقون ووجد من
دونهم امرأتين تذودان قال ما خطبكما قالتا لا نسقي حتى يصدر الرعاء وأبونا شيخ كبير ﴿٢٣﴾ فسقى لهما
ثم تولى إلى الظل فقال رب إني لما أنزلت إلي من خير فقير ﴿٢٤﴾ فجاءته إحدىهما تمشي على استحياء قالت
إن أبي يدعوك ليجزيك أجر ما سقيت لنا فلما جاءه وقص عليه القصص قال لا تخف نجوت من القوم
الظلمين ﴿٢٥﴾ قالت إحدىهما يأبت استأجره إن خير من استأجرت القوي الأمين ﴿٢٦﴾ قال إني أريد أن
أنكحك إحدى ابنتي هتين على أن تأجرني ثمني حجج فإن أتممت عشرا فمن عندك وما أريد أن أشق
عليك ستجدني إن شاء الله من الصلحين ﴿٢٧﴾ قال ذلك بيني وبينك أيما الأجلين قضيت فلا
عدون علي والله على ما نقول وكيل ﴿٢٨﴾ ۞ فلما قضى موسى الأجل وسار بأهله ءانس من جانب الطور نارا
قال لأهله امكثوا إني ءانست نارا لعلي ءاتيكم منها بخبر أو جذوة من النار لعلكم تصطلون ﴿٢٩﴾ فلما
أتىها نودي من شطي الواد الأيمن في البقعة المبركة من الشجرة أن يموسى إني أنا الله رب
العلمين ﴿٣٠﴾ وأن ألق عصاك فلما رءاها تهتز كأنها جان ولى مدبرا ولم يعقب يموسى أقبل ولا تخف إنك
من الأمنين ﴿٣١﴾ اسلك يدك في جيبك تخرج بيضاء من غير سوء واضمم إليك جناحك من الرهب فذنك
برهنان من ربك إلى فرعون وملإيه إنهم كانوا قوما فسقين ﴿٣٢﴾ قال رب إني قتلت منهم نفسا فأخاف
أن يقتلون ﴿٣٣﴾ وأخي هرون هو أفصح مني لسانا فأرسله معي ردءا يصدقني إني أخاف أن يكذبون ﴿٣٤﴾
قال سنشد عضدك بأخيك ونجعل لكما سلطنا فلا يصلون إليكما بءايتنا أنتما ومن اتبعكما الغلبون ﴿٣٥﴾
فلما جاءهم موسى بءايتنا بينت قالوا ما هذا إلا سحر مفترى وما سمعنا بهذا في ءابائنا الأولين ﴿٣٦﴾ وقال
موسى ربي أعلم بمن جاء بالهدى من عنده ومن تكون له عقبة الدار إنه لا يفلح الظلمون ﴿٣٧﴾ وقال فرعون
يأيها الملأ ما علمت لكم من إله غيري فأوقد لي يهمن على الطين فاجعل لي صرحا لعلي أطلع إلى
إله موسى وإني لأظنه من الكذبين ﴿٣٨﴾ واستكبر هو وجنوده في الأرض بغير الحق وظنوا أنهم إلينا
لا يرجعون ﴿٣٩﴾ فأخذنه وجنوده فنبذنهم في اليم فانظر كيف كان عقبة الظلمين ﴿٤٠﴾

وَجَعَلْنَـٰهُمْ أَئِمَّةً يَدْعُونَ إِلَى ٱلنَّارِ ۖ وَيَوْمَ ٱلْقِيَـٰمَةِ لَا يُنصَرُونَ ﴿٤١﴾ وَأَتْبَعْنَـٰهُمْ فِى هَـٰذِهِ ٱلدُّنْيَا لَعْنَةً ۖ وَيَوْمَ ٱلْقِيَـٰمَةِ هُم مِّنَ ٱلْمَقْبُوحِينَ ﴿٤٢﴾ ﴾ القصص: ٢٠ – ٤٢

مناسبت:

همداسي آيتونه دموسى عليه السلام كيسه بيانوي په تېروآيتونوكي دهغه دولادت اوتي رودلو دوخت پېښي څېړلي چي څرنګه دفرعون په انګړكي وروزل شوآن تردې چي ځوان زلمى شودبلوغ او پوهي مرحلې ته ورسېدواوبيايې له لاسه ديوفرعوني قتل پېښ شودلته آيتونه دهغه عليه السلام دهجرت كيسه چي څرنګه مدين ته لاړاوهلته يې دحضرت شعيب عليه السلام له لورسره دكوزدې او واده مراسم ترسره شول اوبيرته مصرته دراستنېدلوپه وخت كي دنبوت سوغات وركول شواوبيادده په لاس فرعون هلاک شو بيانوي.

لغتونه:

(يأتمرون) مشوره كونكي دي ازهري وايې چي (ائتمر القوم) ددې معنادادى چي دقوم ځني خلكو ځيني نوروته امرحكم وكړ(تذودان) (ذاد ،يذود )منع كولوته وايې اوشړل يې معنادى (خطبكما) شان ستاسودواړو (الرعآء) د(راعي) جمع اوهغه شپون (شپانه) ته وايې (حجج) دحاء په كسره سره (حجة) اوكال ته وايې (جذوة) لګولى سكروټي (ردأ) مرستندوى جوهري وايې چي ددې كلمې چي (ردأته) معنادادى چي ماورسره مرسته وكړه (المقبوحين) هلاک شوى اوله رحمته ليري شوي كسانوته وايې ياپه صورت كي بدرنګه اوناز بباته ويل كېږي لكه چي وايې (قبحه الله) كله چي الله يې سپک كړي.

تفسير:

﴿ وَجَآءَ رَجُلٌ مِّنْ أَقْصَا ٱلْمَدِينَةِ يَسْعَىٰ ﴾ اوراغى يوسړى له آخره دښاره پداسي حال كي چي منډې يې وهلې يعني دفرعون له خپلوانو يوتن چي ايمان يې پټ ساتل دښارله ليري پېڅي په منډه منډه راغى. ابن عباس رضى الله عنه وايې دغه دفرعون له آل څخه يومؤمن وو ﴿ قَالَ يَـٰمُوسَىٰٓ إِنَّ ٱلْمَلَأَ يَأْتَمِرُونَ بِكَ لِيَقْتُلُوكَ ﴾ وېې ويل: اى موسى ! بېشكه چي مشران ستادوژلوپه هكله مشوره كوي ﴿ فَٱخْرُجْ إِنِّى لَكَ مِنَ ٱلنَّـٰصِحِينَ ﴾ پس ووزه ته (له مصره) بېشكه زه يم تاته له نصحيت كونكو(خيرغوښتونكو ) څخه ﴿ فَخَرَجَ مِنْهَا خَآئِفًا يَتَرَقَّبُ ﴾ پس ووت موسى له دغه (مصره څخه) پدې حال كي چي وېرېدونكى ووكتل (څارل به يې هرلوري ته چي وبه نيول شي بيايې الله ته په مناجات اوزاري كولوپيل وكړڅكه هغه پوهېدوچي له الله پرته بل دپناه ځاى هډونشته ﴿ قَالَ رَبِّ نَجِّنِى مِنَ ٱلْقَوْمِ ٱلظَّـٰلِمِينَ ﴾ ووېل(موسى) اى زماربه ! ماته نجات راكړه له قومه ظالمانو(چي فرعون اومشران يې مقصدووچي له شرڅخه يې وژغوري ﴿ وَلَمَّا تَوَجَّهَ تِلْقَآءَ مَدْيَنَ ﴾ اوكله چي متوجه شو(موسى ) په لوري دمدين (چي دشعيب عليه السلام ښاروو ) ﴿ قَالَ عَسَىٰ رَبِّىٓ أَن يَهْدِيَنِى سَوَآءَ ٱلسَّبِيلِ ﴾ وېې ويل هيله ده زماله ربه ددې چي وښيي ماته

سمه (صافه) لاره (چي مقصود ته مي ورسوي) مفسرين كرام وايي چي هغه پرته له كومي توښې اونګولې سورلۍ (مركب) څخه له ښاره راووت اودمصراومدين ترمينځ داتوشواروزو مزل ووهغه پرته له دې چي په الله جل جلاله يې ښېک باور وونوره لاره ښېخي ورته معلومه نه وه نوالله پرښته راواستوله اولاره يې وروښوده. روايت كېږي كله چي مدين ته ورسېدو دوښوشين والى يې له ډېره ډنګرتوبه په لړمون سربېره معلومېدو څكه هغه ګرده لاره دونوپاڼي خوړلې وي ﴿ وَلَمَّا وَرَدَ مَآءَ مَدْيَنَ وَجَدَ عَلَيْهِ أُمَّةً مِّنَ ٱلنَّاسِ يَسْقُونَ ﴾ اوكله چي ورسېدو (موسى) اوبودمدين ته نو ويې موندله په هغه كوهي يوه ډله دخلكوچي اوبه يې وركولې (خپلو مېږوپسوته) ﴿ وَوَجَدَ مِن دُونِهِمُ ٱمْرَأَتَيْنِ تَذُودَانِ ﴾ اوله دوى څخه رابيرته يې دوه ښځي وموندلې چي خپلي مېږي يې (له اوبو) رامنع كولې ﴿ قَالَ مَا خَطْبُكُمَا ﴾ نووويل (موسى) دغوښځوته (ستاسي څه حال دى؟ (چي خپلي ګډي له اوبومنع كوي) ﴿ قَالَتَا لَا نَسْقِى حَتَّىٰ يُصْدِرَ ٱلرِّعَآءُ وَأَبُونَا شَيْخٌ كَبِيرٌ ﴾ وويل: هغودواړوچي اوبه نه وركوومونږ(خپلومېږوته ) څوبېرته لاړشي دغه شپانه ، اوپلار زمونږ دېرزوړدى چي كارېې له لاسه نه كېږي) يعني زمونږعادت دادى چي څوشپانه اورمې يې له دې خايه ستانه شوي نه وي مونږخپلومېږو وزوته اوبه نه وركوونه موله دې زوروروسره وس رسېږي اونه له نارينه وو سره اختلاط اوګډون خوښوو پلارموبوډاسړى دى له ډېري كمزوري پسونه اوبه ولاى نشي له مجبوري څخه يې مونږپخپله اوبوو. ابوحيان وايي چي دغه ددوى له لوري موسى عليه السلام ته داوبولوپه هكله خپل عذر وړاندي كول وواوداچي پلاريې دپسونوداوبولو توان نلري همداسي دهغه پاملرنه اومهرباني يې هم رااړوله چي ورسره مرسته وكړي([1]) ﴿ فَسَقَىٰ لَهُمَا ثُمَّ تَوَلَّىٰٓ إِلَى ٱلظِّلِّ ﴾ پس اوبه كړه موسى له مهرباني رمه) ددغو دواړوبيايې شا وګرزوله (ښځوته اولاړ) سيوري ته ﴿ فَقَالَ رَبِّ إِنِّى لِمَآ أَنزَلْتَ إِلَىَّ مِنْ خَيْرٍ فَقِيرٌ ﴾ نوويې ويل اى زماربه ببشكه زه هرڅيزته چي ويې لېږي ته ماته له خيره محتاج (اړ) يم) يعني اى الله! زه ستافضل اواحسان ته محتاج اواړيم مړى ډوډۍ راكړه چي لوږه پرې ليري كړم زه داهيله لرم سخت وږى شوى وو له الله څخه يې دلوږي دليري كولوپاره خواړه وغوښتل. ضحاك وايي چي اوه ورځي شوي وې چي دخوړوخوندېې هم نه ووكتلى اوپه ونبو اونباتاتويې ګذاره كوله([2]) ابن عباس رضى الله عنه وايي چي موسى عليه السلام له مصرڅخه مدين ته په لاري هيڅ خواړه اوتوښه نه درلوده دونوپاڼي اودځمكي ګياه به يې خوړله بيلي (لوڅي) پښې ووكله چي مدين ته ورسېدودپښوتلي يې ولوېدل (اوداهغه دالله نازولى مخلوق ووچي لړمون يې له لوږي له شاسره نښتى ووخورالوږه يې تېره كړي وه دوښودرنګ شين والى يې په بدن كي څرګندوو يوه ،نيمه خرماته يې لا اړتياوه([3]) ﴿ فَجَآءَتْهُ إِحْدَىٰهُمَا تَمْشِى عَلَى ٱسْتِحْيَآءٍ ﴾ پس راغله دغه (موسى) ته يوه له

---

([1]) البحر ٧/ ١١٣
([2]) الرازي ٢٤ / ٢٤٠
([3]) مختصرابن كثير ٣ / ١٠

دوا ړوچي تګ يې کاووپه (طريقه د) حيا. په کلام کي لنډون راغلی يعني دوی دواړه نن خپل پلارته ژر ورغلې اوعادت به يې داووچي نورکله به ځنډېدلې نودغه دسرې مرسته يې ورته بيان کړه نوپلاريې يوې ته وويل چي ورشه هغه راوبوله پس راغله.. اوداسي راغله چي داصيلو ښځو حياء اوسترېې درلود خپل مخ يې په ټکري پوښلی وو. عمررضی الله عنه وايې چي: داهسي سپين سترګي وتونکي ننوتونکي نه وې(۱)(لم تکن بسلفع من النسآء خرّاجة ولاّجة) ﴿ قَالَتْ إِنَّ أَبِي يَدْعُوكَ لِيَجْزِيَكَ أَجْرَ مَا سَقَيْتَ لَنَا ﴾ نووې ويل دې (موسی ته) چي بېشکه پلارزماتابولي ددې لپاره چي درکړي تاته اجردحق داوبوکولوستا(ګډو) زموږته. ابن کثيروايې چي دغه په خبرو اترو کي دادب مراعاتول دي مطلقايې هسي ورته ونه ويل چي زماپلاردې غواړي ترڅوچي په زړه کي يې څه شک اوشبه پيدانشي(۲)﴿ فَلَمَّا جَآءَهُۥ وَقَصَّ عَلَيْهِ ٱلْقَصَصَ قَالَ لَا تَخَفْ نَجَوْتَ مِنَ ٱلْقَوْمِ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ پس کله چي راغی (موسی عليه السلام (شعيب عليه السلام ته) اوبيان يې کړه (پردغه شعيب) کيسه خپله وويل: (شعيب عليه السلام) موسی عليه السلام ته مه وېرېږه چي نجات دي وموند له قومه ظالمانو(فرعونيانو) نه؛ دلته دفرعون پاچهي نشته ته اوس دامان په ښارکي اوسې ﴿ قَالَتْ إِحْدَىٰهُمَا يَٰٓأَبَتِ ٱسْتَـْٔجِرْهُ ﴾ وويل يوې له دغودواړوای زماپلاره دی مزدورکړه (لپاره دشپني اورمې اوبولو) ﴿ إِنَّ خَيْرَ مَنِ ٱسْتَـْٔجَرْتَ ٱلْقَوِىُّ ٱلْأَمِينُ ﴾ بېشکه چي غوره دهرهغه چاچي مزدوريې نيسې هغه څوک دی چي قوتناک اوامانتګروي ابوحيان وايې چي ددې ويناډېره حکيمانه اوبشپړه ده ځکه کله چي قوت اوامانت دواړه په کوم چارواکي کي يوځای شي نومقصدترسره شو(۳) روايت کېږي چي شعيب عليه السلام له هغې څخه وپوښتل چي دده قوت اوامانت څرنګه درته معلوم شول هغې ورته ويل: چي هغه تېږه چي لس تنه يې په مټې پورته کولای شي ده يوازي پورته کړه اوکله چي زه ورسره راروانه وم زه يې دمخه وم راته ويل چي ته زماله شاپسي رادرومه اولاره راوښيه اوکله چي ورته راغلم ښکته يې کتل اوماته يې نه کتلونودلته شعيب عليه السلام دخپلولونودورکولولپاره رغبت پيداکړ ﴿ قَالَ إِنِّىٓ أُرِيدُ أَنْ أُنكِحَكَ إِحْدَى ٱبْنَتَىَّ هَٰتَيْنِ ﴾ وويل: (شعيب موسی ته) بېشکه زه غواړم داچي په نکاح درکړم تاته يوه له دغودوولونوخپلو، (مشره ياکشره) ﴿ عَلَىٰٓ أَن تَأْجُرَنِى ثَمَٰنِىَ حِجَجٍ ﴾ پدې چي مزدوري وکړې ته زمالپاره اته کاله (مهرې وزې راته څروې) ﴿ فَإِنْ أَتْمَمْتَ عَشْرًا ﴾ پس که پوره کړوتالس کاله ﴿ فَمِنْ عِندِكَ ﴾ نوهغه به ستاله طرفه (احسان) وي زموږله خوادرباندی لزوم نشته ﴿ وَمَآ أُرِيدُ أَنْ أَشُقَّ عَلَيْكَ ﴾ اوزه اراده نلرم چي پرتامشقت واچوم (چي لس کاله درباندي وترم) ﴿ سَتَجِدُنِىٓ إِن شَآءَ ٱللَّهُ مِنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ﴾ ژربه ته

---

(۱) الطبري ۲۰/ ۳۹
(۲) ابن کثير ۳/ ۱۷
(۳) البحر ۷/ ۱۱۴

ماوموې که دالله اراده وه له صالحانو (نېکانوچې په وعده وفاکونکې نرم خویه اوښه معامله کونکې یم) قرطبي وايي چې په آيت شريف کې ددې دليل شته چې دلورپلار اوولي کولای شي خپله لوردنکاح کولولپاره يو چاته وړانديز کړي لکه چې حضرت شعيب عليه السلام موسی عليه السلام ته او عمر رضی الله عنه خپله لور حفصه ابوبکر او عثمان ته وړانديز کړه اوبيوې مېرمنې خپل ځان رسول الله صلی الله عليه وسلم ته وباښونوله ښيګنو څخه داده چې سړی خپله خور اولورنېکانوته عرض کړي اوپه سلف صالحينوپسي اقتداء وکړي(١) ﴿ قَالَ ذَٰلِكَ بَيْنِي وَبَيْنَكَ ۖ أَيَّمَا الْأَجَلَيْنِ قَضَيْتُ فَلَا عُدْوَانَ عَلَيَّ ﴾ وويل (موسی شعيب ته) چې همدا (عهد) مقررشوپه مينځ زما اوستاکي چې هره يوه له دې دواړو نېټو(چې اته، يالس کاله ده چې) کله بشپړه کړه پرمابه زيادت نه وي ﴿ وَاللَّهُ عَلَىٰ مَا نَقُولُ وَكِيلٌ ﴾ اوالله پردغه چې موږيې وايو (تعهدکوو اوتړون وشو) شاهد ساتونکی دی ﴿ فَلَمَّا قَضَىٰ مُوسَى الْأَجَلَ ﴾ پس کله چې پوره کړه موسی نېټه خپله دهغه چې پرې اتفاق شوی وو؛ ابن عباس رضی الله عنه وايي: چې هغه بشپړه اولويه نېټه يې سرته ورسوله چې لس کاله وو ﴿ وَسَارَ بِأَهْلِهِ ﴾ اوروان شوسره له خپله عياله (مېرمنې مسافرد مصرپه لور) ﴿ آنَسَ مِن جَانِبِ الطُّورِ نَارًا ﴾ وليد (موسی) له لورې (دغره) دطوريو اور(چې ځلېدې) ﴿ قَالَ لِأَهْلِهِ امْكُثُوا إِنِّي آنَسْتُ نَارًا ﴾ ويې ويل: خپل اهل ته چې مداروکړئ تاسي (دلته) بېشکه مايواور وليد. مفسرين کرام وايي: سخته ديخني شپه وه لاره ترې ورکه وه طوفاني سېلۍ اوبادچلېدو رمه يې تيت اوپرک شوه مېرمنې يې دلنګون دردونه ګالل چې موسی عليه السلام دغه اورله ليرې وليدنو هلته ورغی چې ﴿ لَّعَلِّي آتِيكُم مِّنْهَا بِخَبَرٍ ﴾ ښايي مالره داچې راتله وکړم تاسي ته له دې اوره په خبرلاري ورکي (له يوچاڅخه) ﴿ أَوْ جَذْوَةٍ مِّنَ النَّارِ لَعَلَّكُمْ تَصْطَلُونَ ﴾ ياپه بخري (سکروټې شغلې) له هغه اوره لپاره ددې چې (تاسي) پرې تاوده شی! ﴿ فَلَمَّا أَتَاهَا نُودِيَ مِن شَاطِئِ الْوَادِ الْأَيْمَنِ فِي الْبُقْعَةِ الْمُبَارَكَةِ مِنَ الشَّجَرَةِ ﴾ پس کله چې (موسی) دغه اورته راغی نوغږ وکړشو (ورته) له غاړې دهغې کندې چې دموسی په ښي اړخ کي وه(دغه غاړه وه) په هغه ټوټه مبارکه کړی شوي کي له هغې ونې ﴿ أَن يَا مُوسَىٰ إِنِّي أَنَا اللَّهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ ﴾ (داسي چې ای موسی بېشکه زه هم دازه الله رب دعالميانويم) يعني ورته غږکړشوچې ای موسی له تاسره خطاب اوکلام درب العالمين دی هغه چې دنقص اوعيب له ګردوصفاتوڅخه پاک دی دانسانانو اوپېريانانواوټولو مخلوقاتو پالونکی دی ﴿ وَأَنْ أَلْقِ عَصَاكَ ﴾ (اوبل داچې وغورځوه همساخپله (چې په لاس کي دي ده) ﴿ فَلَمَّا رَآهَا تَهْتَزُّ كَأَنَّهَا جَانٌّ وَلَّىٰ مُدْبِرًا وَلَمْ يُعَقِّبْ ﴾ (پس ويې غورځوله) نوکله چې يې وليده چې خوځېدله يومارټوپ وهونکی دی نويې شاکړه مخ يې واړاوو پداسي حال کي چې تښتېدونکی وو(له وېرې) بيرته نه راوګرځېدو.

---

(١) القرطبي ۱۳/ ۲۷۱

ابن کثیروايي چي له همساځخه داسي مارجوړشوته به واپېری دی له ډېرلوی وجود سره سره ډېر ګړندی روان ووستره خوله يې درلوده ، غاښونه اوداړې يې يوله بله لګېدلې غتي تېرې به يې ترستوني تېرولې اوپه وازکومي چي به يې تېرولې ته به واپه کنده کي رغړي نوپډې وخت کي موسی علیه السلام شاورواړوله اوله وېري ځني رهي شوځکه دغه دبشري طبيعت فطرت دی(١) ﴿ يَٰمُوسَىٰٓ أَقۡبِلۡ وَلَا تَخَفۡۖ إِنَّكَ مِنَ ٱلۡأٓمِنِينَ ﴾ ( بياالله غږېړې وکړ) ای موسی مخ راواړوه او مه ويرېږه ته له آمنينو ځخه يې (نوهغه راوګرزېدو او لاس يې دماره په خوله کي کښېښودچي هغه بيرته همساشو ) ﴿ ٱسۡلُكۡ يَدَكَ فِي جَيۡبِكَ تَخۡرُجۡ بَيۡضَآءَ مِنۡ غَيۡرِ سُوٓءٖ ﴾ ننې باسه (ښې) لاس دې خپل ګرېوان کي (بيايې راوباسه) حال داچي راوزي به تک سپين (لکه دسپوږمۍ ټوټه ) بې له کوم عيب ، بدي ، ناجوړي ﴿ وَٱضۡمُمۡ إِلَيۡكَ جَنَاحَكَ مِنَ ٱلرَّهۡبِۖ ﴾ اوپيوست کړه (سينې) خپلې ته ځنګ (لاس) دې له جهته دوېري: ابن عباس رضی الله عنه وايي: معناداچي لاس دې تخرګ سينې ته نژدې کړه چي وېره دې ليري شي . مفسرين کرام وايي: چي مرادله وزر(جناح) ځخه لاس دی ځکه دانسان لاسونه دمرغانودوزروپه شان دي اوکله چي ښی لاس په چپ تخرګ کي دننه کړې نو وزرېې پيوسته کړاوپډې سره دماروېره اودبل هرڅه وېره ولاړه ترې تم او ورکه شوه ﴿ فَذَٰنِكَ بُرۡهَٰنَانِ مِن رَّبِّكَ إِلَىٰ فِرۡعَوۡنَ وَمَلَإِيْهِۦٓۚ ﴾ نودغه دواړه (عصاويدبيضآء) دوه برهانه (کوټلي دلائل) اوسندونه دي چي ستاپه رښتنولي ) رانازل شوي له لوري درب ستاطرف دفرعون اوقوم دده ته (هغه مشرانوسرغړونکوکبرجنوکسانوته) ﴿ إِنَّهُمۡ كَانُواْ قَوۡمٗا فَٰسِقِينَ ﴾ بېشکه چي دوی دي قوم فاسقان( وتلي له طاعت دالله نه اومخالف له حکمه دهغه ځخه ) ﴿ قَالَ رَبِّ إِنِّي قَتَلۡتُ مِنۡهُمۡ نَفۡسٗا فَأَخَافُ أَن يَقۡتُلُونِ ﴾ وويل( موسی) ای زماربه بېشکه ماله دغوقبطيانوځخه يوتن وژلی دی پس وېرېږم چي دوی به ماووژني ) (دهغه په قصاص کي) مفسرين کرام وايي چي مرادله دغه مړي ځخه هغه قبطي دی چي موسی علیه السلام په سوک وواهو اومړشونودلته له الله ځخه غواړي چي نورقوت ورکړي اودفرعون دمقابلې لپاره يې هارون علیه السلام وروره ورسره واستوي ﴿ وَأَخِي هَٰرُونُ هُوَ أَفۡصَحُ

(١) شهيد سيدقطب رحمه الله وايي: چي موسی دخپل مولاپه امرهمساوغورخوله څه پېښه شوه؟ نورنوهغه همسانه وه چي دېروخت يې ګرزولي وه اوپېژندله يې هغه اوس ښامارده چي چسپانده تاوېږي لکه واړه ماران غونډي سره له دې چي خوراغټ دی دايوناڅاپه پېښه ده چي موسی علیه السلام ورته تياری نه دی نيولی نوځکه يې ورته شاکړه اوراستون نه شو ددې سوچ يې نه کاووچي دغه ستره عجيبه پېښه وڅېرې چي الله ته يې غوږشو ﴿ يَٰمُوسَىٰٓ أَقۡبِلۡ وَلَا تَخَفۡۖ إِنَّكَ مِنَ ٱلۡأٓمِنِينَ ﴾ اوهغه ځوک به ولې په امن نه وي چي دالله سترګي اورحمت يې څاري اوبل خل ورته غږراځي چي ﴿ ٱسۡلُكۡ يَدَكَ فِي جَيۡبِكَ تَخۡرُجۡ بَيۡضَآءَ مِنۡ غَيۡرِ سُوٓءٖ ﴾ اوموسی دحکم منته کوي لاس په ګرېوان کي دننه کوي اوچي کله يې رابهرکړي په يوه شېبه کي بله ناڅاپي پېښه وينې چي لاس يې ځلېږي هغه چي پخواغنم رنګه وودغه دحق ځلااوروښانه معجزه ښکاري. في ظلال القرآن

مِنِّي لِسَانًا ﴾ اوزما وروړهارون هغه له ماډېرفصيح دی له جهته دژبې (ځکه چې دموسی علیه السلام په ژبه کې لکنت ووچې په ماشومتوب کې یې سکروټه خولې ته اچولې وه ﴿ فَأَرْسِلْهُ مَعِيَ رِدْءًا يُصَدِّقُنِيٓ ﴾ (پس ولېږه هغه هم له ماسره یارمددګارچې زماتصدیق کوي) یعنې هغه زما مرستندوی راسره واستوه چې زماخبرې دوی ته بیان کړي اودلائل وراندې تېرکړي ﴿ إِنِّيٓ أَخَافُ أَن يُكَذِّبُونِ ﴾ بېشکه زه په دې وېرېږم چې دوی به مادروغجن کړي ؛ ځکه دوی به زماپه خبرونه پوهېږي. امام رازي رحمه الله وایې معناداچې : زماورور هارون له ماسره مرسته کونکی واستوه چې زمادبیان اودلیل څرګندونه وکړي دایې مقصدنه دی چې زه څه وایم اودی ووایې چې ته رښتیاوایې اویاخلګوته ووایې چې موسی رښتیاوایې بلکه مطلب یې دادی چې دهغه ژبه ښه چلېږي چې په فصیحه اوبلیغه ژبه ورته زمادلائل ووایې اومرام روښانه کړي ددوی دشبهاتوځواب ووایې اوله کفاروسره بحث وکړي (١) ﴿ قَالَ سَنَشُدُّ عَضُدَكَ بِأَخِيكَ وَنَجْعَلُ لَكُمَا سُلْطَانًا ﴾ وفرمایل: (الله) ژربه قوي کړومورستامټ ستاپه ورور اوموربه تاسې ته غلبه درکړو (پردښمنانوستاسې) ﴿ فَلَا يَصِلُونَ إِلَيْكُمَا بِـَٔايَٰتِنَآ ﴾ پس وبه نه رسېږي دوی تاسې دواړوته (په ضرر رسولو) په سبب دمعجزوزمونږ (چې څرګندي دي) ﴿ أَنتُمَا وَمَنِ ٱتَّبَعَكُمَا ٱلْغَٰلِبُونَ ﴾ (تاسې دواړه اوهغه څوک چې متابعت وکړي ستاسې دواړوغالبان به اوسئ ) یعنې عاقبت بری په دنیااوآخرت کې ستاسواوستاسودااتباعودی تاسوپه مجرمانواروموغالبه کېږئ لکه چې الله بل ځای فرمایي: ﴿ كَتَبَ ٱللَّهُ لَأَغْلِبَنَّ أَنَا۠ وَرُسُلِيٓ إِنَّ ٱللَّهَ قَوِيٌّ عَزِيزٌ ﴾ (المجادله ٢١) ﴿ فَلَمَّا جَآءَهُم مُّوسَىٰ بِـَٔايَٰتِنَا بَيِّنَٰتٍ ﴾ پس کله چې راغی دوی ته موسی سره له معجزوزمونږچې ښکاره وې (دده درسالت درښتنولې یې شاهدي ورکوله) ﴿ قَالُواْ مَا هَٰذَآ إِلَّا سِحْرٌ مُّفْتَرًى ﴾ وویل (فرعونیانو) چې نه دی داخومګر کوډې دي په دروغوسره تړل شوي) یعنې چې تاراوړي لکه همسا اویدبیضاء دغه سحردی له ځانه دي جوړکړی اوالله ته یې نسبت کوې ﴿ وَمَا سَمِعْنَا بِهَٰذَا فِيٓ ءَابَآئِنَا ٱلْأَوَّلِينَ ﴾ ندی اورېدلی مونږدادتوحیددعوی) په (زمانو )دپلرونوزمونږ چې پخواني تېرشوي ﴿ وَقَالَ مُوسَىٰ رَبِّيٓ أَعْلَمُ بِمَن جَآءَ بِٱلْهُدَىٰ مِنْ عِندِهِۦ وَمَن تَكُونُ لَهُۥ عَٰقِبَةُ ٱلدَّارِ ﴾ اوووېل: موسی چې زمارب ښه عالم دانادی په هغه چاچې په هدایت راغلی (راوړی یې دی) له طرفه دهغه (رب) اوپه هغه چاباندې چې شته هغه ته ښه خاتمه) موسی علیه السلام دښکلي ځواب ورکولوتیاری ونیواوپه تبلیغ کې یې احسن الوجوه ته مخه کړه وېې ویل هغه څه چې ماراوړي کوډې نه بلکه حق دي اوزماپالونکی رب په دې ښه خبردارواوپوه دی چې زه برحق اوتاسوپرباطل یاست اوالله په هغه چاهم ښه خبرداردی چې آخره خاتمه یې ښه وي ﴿ إِنَّهُۥ لَا يُفْلِحُ ٱلظَّٰلِمُونَ ﴾ بېشکه چې ظالمان بری نه مومي ) هغه څوک چې په الله باندې دروغ تړي ﴿ وَقَالَ فِرْعَوْنُ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْمَلَأُ مَا عَلِمْتُ

(١) التفسیرالکبیر٢٤ / ٣٤٩

لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرِى ﴾ اووويل فرعون ای دمشرانو ټولی (دمصرخلکو) زه تاسي ته پرته له خانه بل خدای نه پېژنم (چي عبادت ورته وکړی) ابن عباس رضی الله عنه وايې چي ددې وينااوهغه بلې چي ويلي وو ﴿ أَنَا رَبُّكُمُ ٱلْأَعْلَىٰ ﴾ ترمينځ څلوېښت کاله موده وه اود الله دښمن دروغ ويلي وو بلکه پدې پوهېدو چي پالونکی رب لري چي خالق دده اودقوم يې دی (١) ﴿ فَأَوْقِدْ لِى يَٰهَٰمَٰنُ عَلَى ٱلطِّينِ فَٱجْعَل لِّى صَرْحًا ﴾ پس بل کړه اورزمالپاره ای هامانه په ختي باندي (خښتي راته پخې کړه) پس جوړه کړه زمالپاره لوړه اوچته ماڼۍ ﴿ لَّعَلِّىٓ أَطَّلِعُ إِلَىٰٓ إِلَٰهِ مُوسَىٰ ﴾ ښايي ماته چي دموسی خدای ته وخېژم (اووېي وينم هغه چي دی يې دراستونکي ګمان کوي دغه يې داستهزآء په ډول وويل څکه يې پسي زياته کړه ﴿ وَإِنِّى لَأَظُنُّهُۥ مِنَ ٱلْكَٰذِبِينَ ﴾ اوبېشکه خامخازه ګمان کوم پرموسی له دروغجنانو څخه (پدې کي چي وايې دآسمانونورب شته) ﴿ وَٱسْتَكْبَرَ هُوَ وَجُنُودُهُۥ فِى ٱلْأَرْضِ بِغَيْرِ ٱلْحَقِّ ﴾ اوکبروکړ دغه فرعون اولښکرودده (فرعون) په ځمکه (دمصر) کي په ناحقه سره (چي په موسی عليه السلام يې ايمان نه راووړاودمصر خاوره يې په ظلم اوباطل په سراخيستي وه) ﴿ وَظَنُّوٓا۟ أَنَّهُمْ إِلَيْنَا لَا يُرْجَعُونَ ﴾ اودوی ددې ګمان وکړچي بېشکه دوی به موږته نه راګرزول کېږي (په قيامت کي نه بعث اونه حساب کتاب شته) ﴿ فَأَخَذْنَٰهُ وَجُنُودَهُۥ فَنَبَذْنَٰهُمْ فِى ٱلْيَمِّ ﴾ پس راونيوموږهمدغه (فرعون) او(هم) لښکرددده پس وموغورځول دوی ټول په درياب کي (اوګردغرق شول يوهم ژوندی پاتي نشو) ﴿ فَٱنظُرْ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ نووګوره (ته ای محمدﷺ دپند په نظر) چي څرنګه ده آخره خاتمه دظالمانو (هغوی چي په کفراوطغيان کي وروستي سرحدته رسېدلي وو؟ ﴿ وَجَعَلْنَٰهُمْ أَئِمَّةً يَدْعُونَ إِلَى ٱلنَّارِ ﴾ اوګرزولي وو موږدوی پېشوايان (دکفرچي نورو ورپسي اقتداء کوله) چي بولي دوی (خپل تابعان) اورته ﴿ وَيَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ لَا يُنصَرُونَ ﴾ اوپه ورځ دقيامت کي به ورسره مدد ونکړی شي (چي عذاب ترې دفع کړي) ﴿ وَأَتْبَعْنَٰهُمْ فِى هَٰذِهِ ٱلدُّنْيَا لَعْنَةً وَيَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ هُم مِّنَ ٱلْمَقْبُوحِينَ ﴾ اولازم کړموږله دوی سره په دغه (ژوند) ددنياکي لعنت (دالله ملائکواومؤمنانوله خوا) اوپه ورځ دقيامت کي به دوی وي له قبيح کړل شويو څخه (بدڅېره به وي دالله له رحمته به شړل شوي وي).

بلاغت:

پدې آيتونو کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډيزيې دادی:

١- تاکيد په ان اولام باندي لکه ﴿ إِنَّ ٱلْمَلَأَ يَأْتَمِرُونَ بِكَ لِيَقْتُلُوكَ ﴾.

---

(١) القرطبي ١٣/ ٢٨٨

٢-استعطاف لكه چي فرمايي: ﴿ رَبِّ إِنِّي لِمَآ أَنزَلْتَ إِلَيَّ مِنْ خَيْرٍ فَقِيرٌ ﴾.

٣-اشتقاقي جناس داسي ﴿ وَقَصَّ عَلَيْهِ ٱلْقَصَصَ ﴾.

۴-مرسله مجمله تشبيه چي فرمايي ﴿ تَهْتَزُّ كَأَنَّهَا جَآنٌّ ﴾.

۵-طباق چي د ﴿ يُصَدِّقُنِيٓ... يُكَذِّبُونِ ﴾ ترمينځ راغلی دی.

٦-كنايه چي فرمايي ﴿ وَٱضْمُمْ إِلَيْكَ جَنَاحَكَ ﴾ له لاسه ځخه يې په وزركنايه راوړي ده ځكه لاس دانسان لپاره لکه دمرغه وزرغوندي دی،

٧-مرسل مجازيدې كلام كي ﴿ سَنَشُدُّ عَضُدَكَ بِأَخِيكَ ﴾ چي اطلاق دسبب اومرادځني مسبب دی ځکه دمټ ټينګول دلاس دټينګولو مستلزم وي شهاب وايي چي امکان لري دغه دي استعاره وي چي دموسی حال يې دوروريه تقويت سره داسي بللی لکه چي ديوچالاس دمټ په ټينګولو ټينګيږي

لطيفه:

زمخشري وايي چي کله يې وويل: ﴿ فَأَوْقِدْ لِي يَٰهَٰمَٰنُ عَلَى ٱلطِّينِ ﴾ يعني اورپه ختهبل کړه چي خښتي پخې شي داسي يې ونه ويل چي (أطبخ لی الآجر) ځکه لومړنی عبارت دقرآن لپاره په فصاحت كي برابردی اود جابرانومتکبرانوله لهجې سره هم زښته زيات مشابه دی هامان دفرعون وزير اود رعيت تدبير سمبالونکی وو.

الله تعالی فرمايي:

﴿ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْكِتَٰبَ مِنۢ بَعْدِ مَآ أَهْلَكْنَا ٱلْقُرُونَ ٱلْأُولَىٰ بَصَآئِرَ لِلنَّاسِ وَهُدًى وَرَحْمَةً لَّعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ ﴿٤٣﴾ وَمَا كُنتَ بِجَانِبِ ٱلْغَرْبِيِّ إِذْ قَضَيْنَآ إِلَىٰ مُوسَى ٱلْأَمْرَ وَمَا كُنتَ مِنَ ٱلشَّٰهِدِينَ ﴿٤٤﴾ وَلَٰكِنَّآ أَنشَأْنَا قُرُونًا فَتَطَاوَلَ عَلَيْهِمُ ٱلْعُمُرُ ۚ وَمَا كُنتَ ثَاوِيًا فِىٓ أَهْلِ مَدْيَنَ تَتْلُوا۟ عَلَيْهِمْ ءَايَٰتِنَا وَلَٰكِنَّا كُنَّا مُرْسِلِينَ ﴿٤٥﴾ وَمَا كُنتَ بِجَانِبِ ٱلطُّورِ إِذْ نَادَيْنَا وَلَٰكِن رَّحْمَةً مِّن رَّبِّكَ لِتُنذِرَ قَوْمًا مَّآ أَتَىٰهُم مِّن نَّذِيرٍ مِّن قَبْلِكَ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ ﴿٤٦﴾ وَلَوْلَآ أَن تُصِيبَهُم مُّصِيبَةٌۢ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ فَيَقُولُوا۟ رَبَّنَا لَوْلَآ أَرْسَلْتَ إِلَيْنَا رَسُولًا فَنَتَّبِعَ ءَايَٰتِكَ وَنَكُونَ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴿٤٧﴾ فَلَمَّا جَآءَهُمُ ٱلْحَقُّ مِنْ عِندِنَا قَالُوا۟ لَوْلَآ أُوتِىَ مِثْلَ مَآ أُوتِىَ مُوسَىٰٓ ۚ أَوَلَمْ يَكْفُرُوا۟ بِمَآ أُوتِىَ مُوسَىٰ مِن قَبْلُ ۖ قَالُوا۟ سِحْرَانِ تَظَٰهَرَا وَقَالُوٓا۟ إِنَّا بِكُلٍّ كَٰفِرُونَ ﴿٤٨﴾ قُلْ فَأْتُوا۟ بِكِتَٰبٍ مِّنْ عِندِ ٱللَّهِ هُوَ أَهْدَىٰ مِنْهُمَآ أَتَّبِعْهُ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴿٤٩﴾ فَإِن لَّمْ يَسْتَجِيبُوا۟ لَكَ فَٱعْلَمْ أَنَّمَا يَتَّبِعُونَ أَهْوَآءَهُمْ ۚ وَمَنْ أَضَلُّ مِمَّنِ ٱتَّبَعَ هَوَىٰهُ بِغَيْرِ هُدًى مِّنَ ٱللَّهِ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٥٠﴾ ۞ وَلَقَدْ وَصَّلْنَا لَهُمُ ٱلْقَوْلَ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ ﴿٥١﴾ ٱلَّذِينَ ءَاتَيْنَٰهُمُ ٱلْكِتَٰبَ مِن قَبْلِهِۦ هُم بِهِۦ يُؤْمِنُونَ ﴿٥٢﴾ وَإِذَا يُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ قَالُوٓا۟ ءَامَنَّا بِهِۦٓ إِنَّهُ ٱلْحَقُّ مِن رَّبِّنَآ إِنَّا كُنَّا مِن قَبْلِهِۦ مُسْلِمِينَ ﴿٥٣﴾ أُو۟لَٰٓئِكَ يُؤْتَوْنَ أَجْرَهُم مَّرَّتَيْنِ بِمَا صَبَرُوا۟ وَيَدْرَءُونَ بِٱلْحَسَنَةِ ٱلسَّيِّئَةَ وَمِمَّا

رَزَقْنَٰهُمْ يُنفِقُونَ ﴿٥٤﴾ وَإِذَا سَمِعُوا۟ ٱللَّغْوَ أَعْرَضُوا۟ عَنْهُ وَقَالُوا۟ لَنَآ أَعْمَٰلُنَا وَلَكُمْ أَعْمَٰلُكُمْ سَلَٰمٌ عَلَيْكُمْ لَا نَبْتَغِى ٱلْجَٰهِلِينَ ﴿٥٥﴾ إِنَّكَ لَا تَهْدِى مَنْ أَحْبَبْتَ وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ يَهْدِى مَن يَشَآءُ وَهُوَ أَعْلَمُ بِٱلْمُهْتَدِينَ ﴿٥٦﴾ وَقَالُوٓا۟ إِن نَّتَّبِعِ ٱلْهُدَىٰ مَعَكَ نُتَخَطَّفْ مِنْ أَرْضِنَآ أَوَلَمْ نُمَكِّن لَّهُمْ حَرَمًا ءَامِنًا يُجْبَىٰٓ إِلَيْهِ ثَمَرَٰتُ كُلِّ شَىْءٍ رِّزْقًا مِّن لَّدُنَّا وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٥٧﴾ وَكَمْ أَهْلَكْنَا مِن قَرْيَةٍۭ بَطِرَتْ مَعِيشَتَهَا فَتِلْكَ مَسَٰكِنُهُمْ لَمْ تُسْكَن مِّنۢ بَعْدِهِمْ إِلَّا قَلِيلًا وَكُنَّا نَحْنُ ٱلْوَٰرِثِينَ ﴿٥٨﴾ وَمَا كَانَ رَبُّكَ مُهْلِكَ ٱلْقُرَىٰ حَتَّىٰ يَبْعَثَ فِىٓ أُمِّهَا رَسُولًا يَتْلُوا۟ عَلَيْهِمْ ءَايَٰتِنَا وَمَا كُنَّا مُهْلِكِى ٱلْقُرَىٰٓ إِلَّا وَأَهْلُهَا ظَٰلِمُونَ ﴿٥٩﴾ وَمَآ أُوتِيتُم مِّن شَىْءٍ فَمَتَٰعُ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا وَزِينَتُهَا وَمَا عِندَ ٱللَّهِ خَيْرٌ وَأَبْقَىٰٓ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿٦٠﴾ أَفَمَن وَعَدْنَٰهُ وَعْدًا حَسَنًا فَهُوَ لَٰقِيهِ كَمَن مَّتَّعْنَٰهُ مَتَٰعَ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ثُمَّ هُوَ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ مِنَ ٱلْمُحْضَرِينَ ﴿٦١﴾ وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ فَيَقُولُ أَيْنَ شُرَكَآءِىَ ٱلَّذِينَ كُنتُمْ تَزْعُمُونَ ﴿٦٢﴾ قَالَ ٱلَّذِينَ حَقَّ عَلَيْهِمُ ٱلْقَوْلُ رَبَّنَا هَٰٓؤُلَآءِ ٱلَّذِينَ أَغْوَيْنَآ أَغْوَيْنَٰهُمْ كَمَا غَوَيْنَا تَبَرَّأْنَآ إِلَيْكَ مَا كَانُوٓا۟ إِيَّانَا يَعْبُدُونَ ﴿٦٣﴾ وَقِيلَ ٱدْعُوا۟ شُرَكَآءَكُمْ فَدَعَوْهُمْ فَلَمْ يَسْتَجِيبُوا۟ لَهُمْ وَرَأَوُا۟ ٱلْعَذَابَ لَوْ أَنَّهُمْ كَانُوا۟ يَهْتَدُونَ ﴿٦٤﴾ وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ فَيَقُولُ مَاذَآ أَجَبْتُمُ ٱلْمُرْسَلِينَ ﴿٦٥﴾ فَعَمِيَتْ عَلَيْهِمُ ٱلْأَنۢبَآءُ يَوْمَئِذٍ فَهُمْ لَا يَتَسَآءَلُونَ ﴿٦٦﴾ فَأَمَّا مَن تَابَ وَءَامَنَ وَعَمِلَ صَٰلِحًا فَعَسَىٰٓ أَن يَكُونَ مِنَ ٱلْمُفْلِحِينَ ﴿٦٧﴾ وَرَبُّكَ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ وَيَخْتَارُ مَا كَانَ لَهُمُ ٱلْخِيَرَةُ سُبْحَٰنَ ٱللَّهِ وَتَعَٰلَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴿٦٨﴾ وَرَبُّكَ يَعْلَمُ مَا تُكِنُّ صُدُورُهُمْ وَمَا يُعْلِنُونَ ﴿٦٩﴾ وَهُوَ ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ لَهُ ٱلْحَمْدُ فِى ٱلْأُولَىٰ وَٱلْءَاخِرَةِ وَلَهُ ٱلْحُكْمُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿٧٠﴾ القصص: ٤٣ – ٧٠

## مناسبت او تړاو:

وروسته له هغه چي الله جل جلاله د خپل هغه نعمت يادونه وکړه چي په بني إسرائيلو يې پېرزو کړي وو هغه چي د فرعون جابرچي د طغيان مخ کښ وو غرقېدل او دوی يې له شرڅخه ژغورلي وو نود لته د يو بل سترنعمت يادونه کوي چي هغه د تورات نزول دی کوم کتاب چي په هغه کي هدايات او روښنايې شته لکه چي په عربو يې قرآنکريم نازل کړی او دِدې نعمت يادونه يې هم کړي ده.

لغتونه: (ثاويا) اقامت او هستوګنه کول (يدرؤن) دفع کوي په حديث شريف کي راځي: (ادرءوا الحدود بالشبهات) حدود په شبهاتو مات کړی (دفع کړی) (يجبى) جمع کاووشي (الجابية) سترتالاب او حوض ته وايې (بطرت) په نعمت کي طغيان ته بطر وايې (أنباء) أخبارته وايې د (نبأ) جمع او مهم خبرته ويل کېږي

## د نزول سبب

کله چي ابو طالب د ځنکندن په حال کي وو رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وويل: ای اکا! لا اله الا الله وو وايه زه به په قيامت کي ستا (د ايمان) شاهدی وو وايم نو هغه په ځواب کي ورته وويل: که زه پدې نه وېرېدلای چي قريش به پېغور راکړي او وبه وايې: د مرګ له وېري يې داسي وکړل نو ما به ويلي وای

اوستاسترګي به مې له خوښې يخي کړي وای نو الله جل جلاله داآيت نازل کړ ﴿ إِنَّكَ لَا تَهْدِي مَنْ أَحْبَبْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ يَهْدِي مَن يَشَاءُ ۚ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ ﴾.

تفسير:

﴿ وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ مِن بَعْدِ مَا أَهْلَكْنَا الْقُرُونَ الْأُولَىٰ ﴾ (اوخامخاپه تحقيق ورکړې وموږموسی ته کتاب (تورات) وروسته له هغه چې موږ هلاک کړي وو(اهل د ) زمانوړومبنيو) لام دقسم لپاره توطئه ده يعني قسم دی چې موږ موسی ته تورات ورکړی وو وروسته له هلاکته دنوروأمتونو لکه دنوح، عاد، ثمود اولوط عليهم السلام قومونه چې دخپلوانبياووتکذيب يې کړی وو ﴿ بَصَائِرَ لِلنَّاسِ وَهُدًى وَرَحْمَةً لَّعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ ﴾ حال داچې سبب دانوارو وو دزړونولپاره دخلکو (دوی ته به حقائق وربانديې معلومېدل) اوسمه لاره ښوونکی وو لپاره دمؤمنانواورحمت ووښايې چې ورباندې پندواخلي (اوالهي ارشادات واوري) ﴿ وَمَا كُنتَ بِجَانِبِ الْغَرْبِيِّ إِذْ قَضَيْنَا إِلَىٰ مُوسَى الْأَمْرَ ﴾ اونه وې ته (ای محمده حاضرله موسی سره) په جانب دهغه(غره) چې غربي وو(له موسی څخه دمناجات په وخت کې هغه ځای چې هلته الله له موسی سره خبرې کولې) هغه وخت چې ولېږه موږموسی ته حکم (درسالت چې فرعون اودهغه قوم ته دې ورشي) ﴿ وَمَا كُنتَ مِنَ الشَّاهِدِينَ ﴾ اونه وې ته له حاضرينو (هلته خوالله درته وحی کړې چې ستادرښتنولي دليل اوبرهان وي. ابن کثيروايي چې دلته الله درسول الله په نبوت باندې دبرهان راوړلوتنبيه فرمايلې چې دتېروزمانوپټ رازونه داسې بيانوي لکه چې پخپلوسترګويې ليدلي وي هغه خوينونالوستی (أمي) ووچې هيڅ ليکلې يې نه وو لوستلي پداسې تېرکې لوی شوی ووچې هغوی له دې ليک اولوست څخه هيڅ خبرنه وو، معناداچې ته هلته حاضرنه وې خوالله درته وحی وکړه ترڅودوی ته دذغومغيبباتوخبرورکړې[1]) ﴿ وَلَٰكِنَّا أَنشَأْنَا قُرُونًا فَتَطَاوَلَ عَلَيْهِمُ الْعُمُرُ ﴾ ولکن موږ پيداکړل اهل دزمانو ( وروسته له موسی) پس اوږده شول پردوی) عمرونه (مو دې) چې دالله يادې له ياده وايست اوپه شريعتونوکې يې تحريف اوتبديل وکړنوته موراواستولې (ای محمده ترڅوچې دين ژوندی کړې. ابوالسعودوايي معناداچې: موږستا اودموسی دزمانې ترمينځ ډېرې پېړۍ پيداکړې چې موده وربانديې اوږده شوه اودشريعت حکمونه يې بدل کړل اوپټ شوپردوی خبرونه ددينې چارونو ته مو راواستولې[2]) ﴿ وَمَا كُنتَ ثَاوِيًا فِي أَهْلِ مَدْيَنَ ﴾ اونه وې ته (ای محمده!) اوسېدونکی په اهل دمدين کې ﴿ تَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِنَا ﴾ چې لوستل به دې پردوی باندې زموږآيتونه (اودوی (دمکې خلګوته) به دې دموسی، شعيب اودهغه ددوولونو خبرې ورښودلې ) ﴿ وَلَٰكِنَّا كُنَّا مُرْسِلِينَ ﴾ ولېکن موږچې يولېږونکي يو(تالره دمکې په خلګوکې چې دغه خبرونه مو درته وحی

---

[1] ابن کثيرالمختصر ٣/ ٢٥

[2] ابوالسعود ٤/ ١٥٥

کړي او که داسي نه واى نوتاته به هم معلوم نه وو) ﴿ وَمَا كُنتَ بِجَانِبِ ٱلطُّورِ إِذْ نَادَيْنَا ﴾ او نه وې ته (اى محمده !) په جانب دطور کله چي غږ وکړمونږ(موسى ته اوورسره خبري موکولې) ﴿ وَلَٰكِن رَّحْمَةً مِّن رَّبِّكَ لِتُنذِرَ قَوْمًا مَّآ أَتَىٰهُم مِّن نَّذِيرٍ مِّن قَبْلِكَ ﴾ ولېکن( دربنودلي يې دي اووحى کړي يې دي دغه کيسې) رحمت له طرفه درب ستاپاره ددې چي وویروې ته هغه قوم چي ندى راغلى دوى ته هيڅ وېرونکى ترپخوا اله تانه ﴿ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ ﴾ دپاره ددې چي دوى پرې پندواخلي (اوستاپه دين کې دننه شي مفسرين کرام وايې چي مرادله قوم څخه هغه کسان دي چي دعيسى اومحمد عليهما السلام ترمينځ زمانه کي چي دفترت زمانه يې بولي اوسېدل اودغه نژدې شپږسوه کاله موده وه ﴿ وَلَوْلَآ أَن تُصِيبَهُم مُّصِيبَةٌۢ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ ﴾ اوكه چېري نه واى داچي وبه رسېږي دوى ته مصيبت(عذاب، غم) په سبب دهغوگناهونوچي پخوا لېږلي وولاسونو ددوى ﴿ فَيَقُولُوا۟ رَبَّنَا لَوْلَآ أَرْسَلْتَ إِلَيْنَا رَسُولًا فَنَتَّبِعَ ءَايَٰتِكَ وَنَكُونَ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ پس وبه وايې دغه (كفار) اى زمونږربه ولي دي نه رالېږه مونږته كوم پيغمبر(چي احکام يې مونږته راوړي واى پس مونږبه ستادآيتونومتابعت کړى وواوشوي به وومونږله مؤمنانو(پرتااوهغه رسول) قرطبي وايې چي دلولاځواب حذف شوى هغه داچي (لمابعثناالرسل) يعني مابه استازى نه وورالېږلى(۱) په التسهيل کي وايې چي لومړى (لولا) دامتناع تورى دى اودوهمه (لولا) (لولا) دتحضيض ،معنادا كه داسي نه واى چي دوى ته به ددوى دکفر په سبب مصيبت و رسېږى نومونږ به دوى ته پيغمبران نه وورااستولي خومونږپيغمبران ورته راواستول چي ددوى عذرپاتي نشي اوپردوى دليل راوړل شي دوى بياهسي ونه وايې چي ﴿ لَوْلَآ أَرْسَلْتَ إِلَيْنَا رَسُولًا فَنَتَّبِعَ ءَايَٰتِكَ وَنَكُونَ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ (۲) بياالله تعالى دمشرکانوعناد دحق په وړاندي داسي بيانوي ﴿ فَلَمَّا جَآءَهُمُ ٱلْحَقُّ مِنْ عِندِنَا قَالُوا۟ لَوْلَآ أُوتِىَ مِثْلَ مَآ أُوتِىَ مُوسَىٰٓ ﴾ پس کله چي راغى دغو(كفارو) ته حق (قرآن دمحمد په نبوت) زمونږله جانبه نووې ويل دغو کفاروپه سرکښي اوتعنت سره ) ولي نه دي ورکړى شوي (محمدته معجزې) لکه چي ورکړى شوي وې موسى عليه السلام ته (لکه همسااويدبيضاء غوندي) الله ددوى په ترديد کي فرمايې: ﴿ أَوَلَمْ يَكْفُرُوا۟ بِمَآ أُوتِىَ مُوسَىٰ مِن قَبْلُ ﴾ آيانه ووکافران شوي په هغو(معجزو) چي موسى ته پخوااورکول شوي وې؟ مجاهدوايې چي يهودانوقريشوته وويل : محمدته ووايااست چي دموسى په شان معجزې درته راوړي نوالله ددوى ترديدوفرمايوچي دوى خودموسى په معجزاتوکافران شوي ووونوپدې روايت د ﴿ أَوَلَمْ يَكْفُرُوا۟ ﴾ ضمير يهودانو ته راجع دى اودغه دابن جريرغوره کړي ده ابوحيان وايې چي ماته داسي ښکاري چي ضميربه قريشوته راجع وي هغوى چي ويل يې: ولي محمدته

---

(۱) القرطبي ۱۳ / ۲۹۳
(۲) البحر۷ / ۱۲۳

داسي معجزې نه دې ورکړی شوي لکه چي موسی ته ورکول شوي وې اوداېدې چي ددوی تکذیب چي دمحمدرسول الله یې کاوو دموسی تکذیب هم دی اوداچي دوی رسول الله ته دسحر(کوډو) نسبت کاووهمدغه موسی ته دکوډونسبت دی خکه نبیان خوګردديوه آسماني رسالت اوچتونکي دي اوچي څوک یوه نبي ته نامناسب نسبت وکړي لکه چي ټولوته یې کړی وي دلته به نوټول ضمائرولګېږي(١)﴿ قَالُواْ سِحۡرَانِ تَظَٰهَرَا ﴾ وویل: (منکرانو چي تورات اوقرآن) سحردی دواړه چي مددکوي یوله بله (په تصدیق کولویودبل. سدي وایې چي یودبل تصدیق کوي. ابوالسعودوایې چي همدغه ددوی په کفرباندي تصریح ده چي دوی په خپل کفراوطغیان کي ورروستي سرحدته رسېدلي دي(٢)﴿ وَقَالُوٓاْ إِنَّا بِكُلّٖ كَٰفِرُونَ ﴾ دآیت معناداچي: دوی ویل چي بېشکه موږپه هریوددوې دواړو(تورات او(قرآن) کافران یو ﴿ قُلۡ فَأۡتُواْ بِكِتَٰبٖ مِّنۡ عِندِ ٱللَّهِ هُوَ أَهۡدَىٰ مِنۡهُمَآ أَتَّبِعۡهُ ﴾ ووایه (ای محمده! دوی ته) پس راوړئ تاسي یوداسي کتاب له جانبه دالله چي هغه ښه لاره ښوونکی وي له دغو دواړو کتابونوچي زه دهغه (کتاب) متابعت وکړم. دغه دتعجیزپه توګه یوامردی چي تاسی چي پدې دووکتابونوسره له دې چي په شریعتونوحکمونواو مکارم الاخلاقو) مشتمل دي کافریاست نوتردې یوښه کتاب چي دالله له لوري رااستول شوی وي راوړئ چي زه یې پیروي وکړم ﴿ إِن كُنتُمۡ صَٰدِقِينَ ﴾ که چېري تاسي رښتوني یاست (چي داکوډي دي) ابن کثیروایې چي داخوله ورایه هوښیارانوته معلومه ده چي الله پاک له آسمانه تردې قرآنکریم ښه بشپړ، فصیح اوسترکتاب چي په محمدرسول الله یې نازل کړی بل ندی رااستولی اوله هغه وروسته بیاتورات دی چي الله یې په شان کي فرمایلي ﴿ إِنَّآ أَنزَلۡنَا ٱلتَّوۡرَىٰةَ فِيهَا هُدٗى وَنُورٞ ﴾ اوانجیل خودتورات لپاره بشپړونکی اودځینوهغو شیانوچي په بني اسرائیلو حرام شوي وودحلال ګڼلولپاره راغلی دی(٣)﴿ فَإِن لَّمۡ يَسۡتَجِيبُواْ لَكَ فَٱعۡلَمۡ أَنَّمَا يَتَّبِعُونَ أَهۡوَآءَهُمۡۚ ﴾ پس که چېري دوی ستاخبره ونه منله پس پوه شه چي بېشکه همداخبره ده دوی دخپلوخواهشاتومتابعت کوي (کوم سنداوبرهان نلري ﴿ وَمَنۡ أَضَلُّ مِمَّنِ ٱتَّبَعَ هَوَىٰهُ بِغَيۡرِ هُدٗى مِّنَ ٱللَّهِۚ ﴾ اوڅوک دی ډېرګمراه له هغه چاچي متابعت کوي دخپل خواهش بې هدایته له ښوولو دلاري له طرفه دالله (بلکه نشته) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهۡدِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ (بېشکه چي الله نه ښیي سمه لارقوم ظالمانوته) یعني الله هغوظالمانوته چي پخپلو نفسي خواهشاتوکي غوپه وي اوله سمي لاري څخه یې څنګ کړی وي دحق توفیق نه ورکوي ﴿ وَلَقَدۡ وَصَّلۡنَا لَهُمُ ٱلۡقَوۡلَ لَعَلَّهُمۡ يَتَذَكَّرُونَ ﴾ اوخامخاپه تحقیق پرله پسې موږدوی ته خبره لېږلي ده (چي قرآنکریم ځیني په ځیني نورپسي وعد، وعید، کیسي، پندونه اونصیحتونه) دپاره ددې چي دوی

---

(١) البحر ٧ / ١٢٣
(٢) تفسیرابوالسعود ٤ / ١٥٢
(٣) مختصرابن کثیر ٣ / ١٧

پندواخلي ﴿ ٱلَّذِينَ ءَاتَيْنَـٰهُمُ ٱلْكِتَـٰبَ مِن قَبْلِهِۦ هُم بِهِۦ يُؤْمِنُونَ ﴾ هغه كسان چي موږ دوى ته پخواله دغه قرآنه كتاب وركړى دى (تورات اوانجيل) دوى په دغه (قرآن) ايمان راوړي؛ ابن عباس رضى الله عنه وايي: معناداچي هغه كسان داهل كتابو چي په محمدصلى الله عليه وسلم يې ايمان راوړى(١) ﴿ وَإِذَا يُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ قَالُوٓاْ ءَامَنَّا بِهِۦٓ إِنَّهُ ٱلْحَقُّ مِن رَّبِّنَآ ﴾ (اوكله چي ولوست شي (دغه قرآن) پردوى باندي وايي دوى چي موږايمان راوړى په دغه (قرآن) چي حق دى (راغلى دى) له لوري درب (پالونكي) زموږ) يعني چي كله دوى ته قرآن ولوستل شي دوى وايي هغه چي پدې كي دي زموږورباندي باوردى موږيې تصديق كوو ﴿ إِنَّا كُنَّا مِن قَبْلِهِۦ مُسْلِمِينَ ﴾ بېشكه چي وموږ پخواله (نزوله) دقرآن مسلمانان (موحدين غاړه اينبودونكي حكمونوته يې ورباندى باور لرونكي چي الله جل جلاله به محمدصلى الله عليه وسلم رااستوي اوقرآن كريم به ورباندي نازلوي) ﴿ أُوْلَـٰٓئِكَ يُؤْتَوْنَ أَجْرَهُم مَّرَّتَيْنِ ﴾ دغه (موصوف شوي پدې ښايسته صفتونو) وربه كړى شي دوى ته اجرددوى دوه كرته (يوځل په خپل كتاب دايمان راوړلواوبل ځل په قرآن عظيم باندي په ايمان راوړلوپه حديث شريف كي راځي چي: درې تنه دي چي دوه ځلي به اجرور كول كېږي يوهغه اهل كتاب مؤمن چي پخپل پيغمبربي ايمان راوړى اوبياپرماايمان راوړي(٢) دحديث ترپايه ﴿ بِمَا صَبَرُواْ ﴾ په سبب ددې چي دوى صبركړى وو(دحق په اتباع) اودالله په لاري كي دكړاوونوګاللو، قتاده وايي چي دادهغواهل كتابوپه شان كي نازل شوى دى چي دوى دحق شريعت پابندووترڅوچي محمدرسول الله رااستول كېدوبيايې پرهغه ايمان راووړ اوربتونى يې وبالوالله ورته دوه ځلي اجروركړاوله دوى څخه دسلمان فارسي اوعبدالله بن سلام رضى الله عنه يادونه شوي ده ﴿ وَيَدْرَءُونَ بِٱلْحَسَنَةِ ٱلسَّيِّئَةَ ﴾ اودفع كوي په نېكي سره بدي) يعني دښكنځلوځواب په ښكلي پاكيزه خبره ورګرزوي. ابن كثيروايي: معناداچي بدي په بدي باندي نه ورتلي بلكه عفوه اوبښنه كوي(٣) ﴿ وَمِمَّا رَزَقْنَـٰهُمْ يُنفِقُونَ ﴾ اوله ځينوهغومالونوچي موږدوى ته وركړي لګوي يې (په لاره دالله كي) ﴿ وَإِذَا سَمِعُواْ ٱللَّغْوَ أَعْرَضُواْ عَنْهُ ﴾ (اوكله چي واوري دوى كومه چټي بېكاره خبره نودوى له هغي نه څنګ كوي) يعني كله چي له كفاروكومه ناسمه خبره، يابنكنځل واوري دهغې ځواب نه وركوي اوله پامه يې غورځوي ﴿ وَقَالُواْ لَنَآ أَعْمَـٰلُنَا وَلَكُمْ أَعْمَـٰلُكُمْ سَلَـٰمٌ عَلَيْكُمْ لَا نَبْتَغِى ٱلْجَـٰهِلِينَ ﴾ اووايي هغوى (چټي ويناكونكوته) موږته زموږخپل عملونه دي اوتاسي ته ستاسي عملونه دي سلام دي وي پرتاسو) (نه درسره ګډېږو) نه غواړوموږ (مجلس) دجاهلانو. زجاج وايي چي دسلام معناتعظيم نه بلكه پرېكړه ده چي له تاسوسره موږ مقاطعه (شلون) كوو. صاوي وايي چي: مشركانوبه داهل كتاب مؤمنانوته ښكنځل كول ورته ويل به يې هلاكت دي تاسوته وي تاسوخپل دين پرېښودنودوى به ترې څنګ كاوو ورته ويل

(١) الطبري ٢٠/ ٥٢
(٢) أخرجه مسلم
(٣) مختصرابن كثير

به یې ستاسي خپل عملونه اوزموږ خپل (١) الله ددوی لوړې صفت ایمان دوهم بیا احسان وروسته بیا عفو له دښمنانو وفرمایله بیا الله خپل پیغمبرته خطاب فرمایي ﴿ إِنَّكَ لَا تَهْدِي مَنْ أَحْبَبْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ يَهْدِي مَن يَشَاءُ ﴾ بېشکه ته (ای محمده !) نشې ښودلي (حقه لاره) هغه چاته چې ستاخوښ وي ولیکن الله سمه صافه لاره ښیي هغه چاته چې اراده وفرمایي (دسمي لاري بې) نوالله ته دخپلي چاري سپارښتنه وکړه چې الله په نېکمرغانواوبدمرغانوښه خبردار دی چې څوک سعیداوڅوک شقي دی؟ ﴿ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ ﴾اوهم دغه الله ښه عالم دی په سمه صافه لاره موندونکوباندې (چې دچادهدایت استعدادشته نوورته هدایت کوي. مفسرین کرام وایې داآیت درسول الله صلی الله علیه وسلم دتره ابوطالب په شان کې نازل شوی چې کله دځنکندن په وخت کې ورته رسول الله صلی الله علیه وسلم اسلام وړاندې کړخوهغه ونه مانو. ابوحیان وایې چې: ددې کلام چې ﴿ إِنَّكَ لَا تَهْدِي مَنْ أَحْبَبْتَ ﴾ معناداچې ستاپه واک کې دهدایت پیدا ښت نشته اوبیاوایې چې دنوموړي کلام اوداچې فرمایي ﴿ وَإِنَّكَ لَتَهْدِي إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴾ ترمینځ منافات نشته ځکه چې دلته یې معنالاره ښودنه ده اووایې چې پدې اجماع راغلي چې پورتنی آیت دابوطالب په هکله راغلی دی (٢) بیاالله تعالی دمشرکانویوه شبه ذکرکوي اوپه څرګندبیان یې تردیدفرمایي: ﴿ وَقَالُوا إِن نَّتَّبِعِ الْهُدَىٰ مَعَكَ نُتَخَطَّفْ مِنْ أَرْضِنَا ﴾ اووایې (دمکې کفار) که چېرې متابعت وکړو موږ د هدایت له تاسره (اوایمان راوړو) وابه الوزول شوله خپلې ځمکې نه (دعربانوله لوري مبردوایې چې (تخطف) په زوره ځېزپورته کول اووړلوته وایې الله جل جلاله ددوی هسې تردیدکوي: ﴿ أَوَلَمْ نُمَكِّن لَّهُمْ حَرَمًا آمِنًا ﴾ (آیاندی ورکړې ځای موږدوی ته داسې حرم چې په امان دي) یعني آیاددوی ځای موږغه دامن حرم ندی ټاکلی چې دبیت العتیق د حرمت په سبب ددوی وینې خوندي دی نوکله چې په کفرکې دوی دلته په امن دي آیاپه اسلام کې به نه وي؟ ﴿ يُجْبَىٰ إِلَيْهِ ثَمَرَاتُ كُلِّ شَيْءٍ رِّزْقًا مِّن لَّدُنَّا ﴾ را چلولي شوي دي (حرم ته) مېوې دهرڅېزروزي ددوی زموږله لوري (سره له دې چې دغه داسې وادی (ناوه) ده چې کښت کرونده پکې نشته ) ﴿ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ ولیکن اکثره ددوی نه پوهېږي (پدې کې سوچ نکوي اونه ورته پاملرنه کوي. ابوحیان وایې چې الله تعالی پدې څرګندبیان سره ددوی دلیل غوڅ کړهغه داچې سره ددوی له کفره اوبت پرستي بیاهم الله امن اوسوکالي ورکړې هرډول مېوې ورته راچلول شوي نوچې ایمان راوړي لابه څرنګه وي؟ ﴿ وَكَمْ أَهْلَكْنَا مِن قَرْيَةٍ بَطِرَتْ مَعِيشَتَهَا ﴾ اوڅومره (ډېر) هلاک کړې دي موږله اهل دکلیو (اوښارونوچې پخپل معاش کې یې سرکښي کړې وه (دنعمتونوکفران یې کړی وونوالله خراب کړل ) ﴿ فَتِلْكَ مَسَاكِنُهُمْ لَمْ تُسْكَن مِّن بَعْدِهِمْ إِلَّا

---

(١) الصاوي علی الجلالین ٣ / ٢٣١
(٢) البحر اسباب النزول وګوره ٧ / ١٢٢

﴿ قَلِيلًا ﴾ پس دادي كورونه ددوى چي هستوگنه نده پكي كړى شوي پس له (هلاكته) ددوى مگر لږ وخت (چي مسافران هلته دمه كوي يوه ورځ يا شپه تېروي) ﴿ وَكُنَّا نَحْنُ الْوَارِثِينَ ﴾ او يو موږ دا موږ وارثان (دمالونو او ښارونو ددوى په البحر كي وايي چي په آيت شريف كي دمكې داهل لپاره تخويف دى چي هغوى هم ددوى په شان په امن او سوكالي كي ژوند تېرول خو دالله دنعمتونو كفران يې وكړ غرور او تكبر ته يې ملا وتړله نو الله هلاك كړل او ښارونه يې وران ويجاړ شول[1]) ﴿ وَمَا كَانَ رَبُّكَ مُهْلِكَ الْقُرَىٰ ﴾ اوندى ستا رب (عادتًا) هلاكونكى (دكافرا هل ددې) قريو ﴿ حَتَّىٰ يَبْعَثَ فِي أُمِّهَا رَسُولًا يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِنَا ﴾ ترهغه پوري چي ولېږي په مور (لويه قريه يا ښار) دهغوكي يو پيغمبر چي لولي پردوى آيتونه زموږ (چي عذربې پاتي نشي) ﴿ وَمَا كُنَّا مُهْلِكِي الْقُرَىٰ إِلَّا وَأَهْلُهَا ظَالِمُونَ ﴾ (اونه يو موږ هلاكونكي خرابوونكي دكليو ښارونو مگر په هغه وخت كي چي اهل دهغو ظالمان وي) يعني موږتر هغو پوري ښارونه كلي نه هلاكوو ترڅويې اهل دهلاكت مستحق نه وي چي دانبيا وو له ورتگه وروسته هم دوى په كفر باندي اصرار كوي قرطبي وايې معنادا چي الله يې نه هلاكوي ترڅو يې دخپل ظلم په نتيجه كي ځان دهلاكت وړنه وي گرزولى او پدي كي دالله دعدل او له ظلم څخه دتقدس او سپېڅلتيا بيان دى چي الله يې ددوى له ظلم سره سره بيا هم نه هلاكوي ترڅو يې دانبيا وو په رالېږلو پردوى حجت او دليل درولى نه وي او دالله جل جلاله علم يې ددوى پراحوالو دليل نه وي گرزولى (٢) ﴿ وَمَا أُوتِيتُم مِّن شَيْءٍ فَمَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَزِينَتُهَا ﴾ او هرهغه څه چي تاسي ته دركړل شوي دي له كوم څېزه پس هغه معاشي نفع ددغه ژوندانه ددنيا دى (چي فاني كېږي. ابن كثير وايې چي الله پاك ددنيا د سپكتيا خواري او لږوالي څخه اخبار كوي چي داهرڅه ښكلا او ښايست چي پكې دي فاني دى او هغه چي الله په آخرت كي دخپلو صالحانو بندگانو لپاره تيار كړي هغه تل پاتي او دائم نعمتونه دي(٣)) ﴿ وَمَا عِندَ اللَّهِ خَيْرٌ وَأَبْقَىٰ ﴾ او هرهغه چي دالله په نزد دي خير غوره او تلپاتي دي (تردې فاني نعمتونو ددنيا) ﴿ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴾ ايا پس تاسي عقل نه چلوئ؟ چي باقي ترفاني بهتردى دغه استفهام د توبيخ لپاره دى امام فخررازي وايي چي الله دابيان كړل چي دنيوي نعمتونو په ضررونو باندي ككړ او گډ وي بلكه زيانونه يې زيات وي او دآخرت گټي تلپاتي د دنيا شلېدونكي او فاني دي كله چي متناهي له غيرمتناهي سره پرتله شي لكه چي متناهي هيڅ هم نه وي په دنيا كي دهرڅا برخه لكه څاڅكي له درياب څخه ده نو څوك چي دآخرت گټي او نعمتونه تردنيا لوړ او شبوه ونه گڼي هغه لكه چي دعقل له دائرې وتلي دي(٤)) ﴿ أَفَمَن وَعَدْنَاهُ وَعْدًا حَسَنًا فَهُوَ

---

(١) البحر المحيط ٧ / ١٣٢
(٢) القرطبي ١٣ / ١٣٢
(٣) مختصر ابن كثير ٣ / ٢٠
(٤) التفسير الكبير ٢٥ / ٣٢

لَاقِيهِ ﴾ آيا پس هغه څوک چې موږ ورسره وعده کړې ده ښه وعده (د جنت) پس دی مومندونکی دی هغې وعدې (خامخا) څکه چې الله تعالی دوعدې مخالفت نه کوي) ﴿كَمَن مَّتَّعْنَٰهُ مَتَٰعَ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا﴾ (داسې دی) لکه هغه څوک چې معاش ورکړی وي موږ ده ته معاش د دنیا (فاني له ضرره ډک له کړاوونو سره هغه چې په فنایې خامخا غمجن کېږي)؟ ﴿ثُمَّ هُوَ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ مِنَ ٱلْمُحْضَرِينَ﴾ بیا دې په ورځ دقیامت کې له حاضرکړی شوودی (اورته ؟ عذاب ته آیا هوښیار سړی دغه دواړه سره برابرګڼي؟ ابن جزي وايې چې ددې دواړو ترمینځ خوراا ورېدواتین دی مراد له ﴿أَفَمَن وَعَدْنَٰهُ وَعْدًا﴾ څخه مؤمنان او له ﴿كَمَن مَّتَّعْنَٰهُ﴾ څخه کافران دي(١) ﴿وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ فَيَقُولُ أَيْنَ شُرَكَآءِىَ ٱلَّذِينَ كُنتُمْ تَزْعُمُونَ﴾ اویادکړه هغه ورځ چې غږ به وکړي دوی ته الله پس وبه وایي الله جل جلاله چېرته دي زما هغه شریکان چې تاسو به (پرې) ګمان کاوو (چې دا زما شریکان دی) ؟ دغه دتوبیخ او تقریع په ډول دي یعني الله به دوی ته ووایي چې هغه بُتان او شریکان چې له ما پرته موددوی عبادت کاوونن چېري دي ؟ چې تاسو پرې ګمان کاوو چې هغوی به ستاسي مرسته او شفاعت کوي ﴿قَالَ ٱلَّذِينَ حَقَّ عَلَيْهِمُ ٱلْقَوْلُ﴾ وبه وایې هغه کسان (مشران اولویان یې) چې حقه ثابته شوي پردوی خبره (دعذاب په سبب د ګمراهي او طغیان ددوی) ﴿رَبَّنَا هَٰٓؤُلَآءِ ٱلَّذِينَ أَغْوَيْنَآ أَغْوَيْنَٰهُمْ كَمَا غَوَيْنَا﴾ ای زموږ ربه دا (ضعیفان تابعان) هغه کسان دي چې ګمراه کړي وو موږ دوی لکه چې موږ ګمراه کړی شوي وو؛ دغه په زوراو جبرسره نه بلکه دوسوسې او تزئین په نتېجه کي لکه چې موږ هم دغسې ګمراه کړی شوي وو ﴿تَبَرَّأْنَآ إِلَيْكَ مَا كَانُوٓا۟ إِيَّانَا يَعْبُدُونَ﴾ بېزاره یو موږتا ته (له دوی او له کفره یې) نه وو دوی چې زموږ عبادت به یې کاوو (بلکه دنفسي خواهشاتو عبادت یې کاوو. ﴿وَقِيلَ ٱدْعُوا۟ شُرَكَآءَكُمْ﴾ اووبه ویلی شي (کفارو ته) چې وغواړئ تاسي شریکان ستاسي چې په دنیاکي بې تاسو عبادت کاوتر څو موله عذابه وژغوري دغه به دتهکم په ډول ورته ویل کېږي ﴿فَدَعَوْهُمْ فَلَمْ يَسْتَجِيبُوا۟ لَهُمْ﴾ پس راوبه غواړي دا (کفار) هغه بُتان) پس هیڅ ځواب به ورنکړي (دابُتان) هغوته (اونه به ترې کومه ګټه ترلاسه کړي دغه ددوی دعقلونو کمزوري ښیي) ﴿وَرَأَوُا۟ ٱلْعَذَابَ ۚ لَوْ أَنَّهُمْ كَانُوا۟ يَهْتَدُونَ﴾ اووبه ویني دغه (دواړه تابعان او متبوعان ) عذاب (تمنابه کوي ) چې کاشکي دوی سمه صافه لاره نیولي وای (نوبه نه معذب کېدل. طبري وايې نودوی به چې کله عذاب ووینې هیله څرګنده کړي چې کاشکي خوېې په دنیاکي دحق لاره نیولي وای(٢) ﴿وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ فَيَقُولُ مَاذَآ أَجَبْتُمُ ٱلْمُرْسَلِينَ﴾ اویادکړه هغه ورځ چې غږبه وکړي دوی ته (الله) پس وبه وایې چې څه ځواب ورکړی وو تاسي رسولانو ته ؟

---

(١) التسهیل لعلوم التنزیل.

(٢) الطبري ٢٠ /٧٣ داپه هغه صورت کي چې (لو) دتمنا لپاره شي هغه چې موږغوره کړی او زجاج وايې چې د (لو) ځواب محذوف دی که چېري یې سمه صافه لاره نیولي وای نوبه یې ددوی متابعت نه کاوو او س به یې عذاب نه لیدلو.

دا د مشرکانو لپاره یو بل توبیخ دی چي آیا تاسو زما د رسولانو تصدیق وکړ او که تکذیب ؟ ﴿ فَعَمِيَتْ عَلَيْهِمُ الْأَنْبَاءُ يَوْمَئِذٍ فَهُمْ لَا يَتَسَاءَلُونَ ﴾ پس پټ به شي پر دوی خبرونه (دلائل به نلري تو لي چاري به پر تکي توري شي) پدې ورځ پس دوی به پوښتنه نه کوي یو تر بله (له ډېره دهشته او حیرانتیا څخه) ﴿ فَأَمَّا مَنْ تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَعَسَىٰ أَنْ يَكُونَ مِنَ الْمُفْلِحِينَ ﴾ پس هرهغه څوک چي توبه وباسي (له شرکه) او ایمان راوړي (په الله او رسول) او عمل وکړي د نېکیو پس ښایي چي وي به دی له خلاصېدونکو (بری موندونکو په جنت کي) صاوي وايي چي په قرآن کریم کي د ترجی کلمه د تحقق او ثابت شوي په معناده څکه دغه د کریم ذات وعده ده او له شانه سره يې دا لازم دی چي په وعده کي خلاف نه کوي (١) ﴿ وَرَبُّكَ يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ وَيَخْتَارُ ﴾ او رب ستا پیدا کوي هغه څه چي اراده وفرمايي (د پیدا ایښت يې) او غوره کوي يې) یعني الله متصرف مختار دی چي څه پیدا کوي او څه کوي څوک ور باندي اعتراض نشي کولای چي حکم يې رد کړي مقاتل وايي دغه د ولید بن مغیره په هکله نازل شوي چي ویل يې ﴿ وَقَالُوا لَوْلَا نُزِّلَ هَٰذَا الْقُرْآنُ عَلَىٰ رَجُلٍ مِنَ الْقَرْيَتَيْنِ عَظِيمٍ ﴾ (الزخرف ۳۱) ﴿ مَا كَانَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ ﴾ نشته دوی ته هیڅ اختیار (اختیار او اراده یوازي د الله ده) ﴿ سُبْحَانَ اللَّهِ وَتَعَالَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴾ پاکي ده الله لره او لوی پورته دی له هغه څه چي دوی يې ورسره شریکوي قرطبي وايي معنا دا چي الله هغه څه چي وغواړي پیدا کوي يې او چي وغواړي نبوت ته يې غوره کوي اختیار گردسره د الله تعالی دی او هغه يې په حکمت ښه پوهېدونکی دی هیڅوک واک نلري چي ده ته غوراوی او اختیار وروښيي ﴿ وَرَبُّكَ يَعْلَمُ مَا تُكِنُّ صُدُورُهُمْ وَمَا يُعْلِنُونَ ﴾ او رب ستا ته معلوم دي هر هغه چي پټوي يې سیني د دوی (له کفر او د رسول او مؤمنانو له عداوت نه) او هر هغه چي ښکاروي يې (پخپلو ژبو له پېغور ورکولو رسول الله ته چي وايي الله د ابو طالب په یتیم باندي وحی نه دی رالیږلي ﴿ وَهُوَ اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ﴾ او همدی دی الله نشته بل لائق د عبادت مگر هم دی دی ﴿ لَهُ الْحَمْدُ فِي الْأُولَىٰ وَالْآخِرَةِ ﴾ خاص همده ته ټوله ثنا دي په دنیا او آخرت کي (څکه الله دی چي په بندگانو يې د دواړو دارینو نعمتونه لورولي دي) ﴿ وَلَهُ الْحُكْمُ ﴾ او خاص ده ته حکم (قضا او فیصله د بندگانو) ﴿ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴾ او ده ته به تاسي ورو ستلی شي (په قیامت کي او هر چا ته به بیا پخپل عمل باندي جزاء ورکول شي).

بلاغت:

پدې آیتونو کي چي د بدیع او بیان کومي ښکلاوي شته لنډیز يې دا دی:

---

(١) صاوي ۳/ ۲۲۳

١-بليغه تشبيه چي ﴿ بَصَآئِرَ لِلنَّاسِ ﴾ يعني تورات موور كړى لكه دزړونو رڼاځكه هغه زړونه چي دتورات نور پكي نه وي لكه ړانده داسي دي چي حق له باطل څخه بېلولاى نشي (١) دتشبيه ادات اووجه شبه حذف شوي نوبليغه تشبيه ده.

٢-عقلي مجازلكه ﴿ أَنشَأْنَا قُرُونًا ﴾ مرادځني أمتونه دي ځكه هغوى په دغوزمانوكي پيداكېږي نودوى ته دپېړيو نسبت دعقلي مجازپه توگه شوى دى.

٣-اشتقاقي جناس لكه ﴿ تُصِيبَهُم مُّصِيبَةٌ ﴾.

٤-مرسل مجازلكه داچي ﴿ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ ﴾ مرادځني كسب دى چي دلته اطلاق دجزء اومرادځني كل دى زمخشري وايي چي څرنگه چي دېركارونه په لاسونو ترسره كېږي ځكه يې نودهرعمل نسبت لاسونو ته وكړ(٢)

٥-دځواب حذف چي دكلام سياق وربانديې دلالت كوي لكه ﴿ وَلَوْلَا أَن تُصِيبَهُم مُّصِيبَةٌ ﴾ ځواب يې حذف شوى هغه داچي اى محمده! مابه ته دوى ته نه وې رااستولى اودغه ايجاز بالحذف دى.

٦-تحضيض اوهڅونه لكه ﴿ لَوْلَا أُوتِيَ مِثْلَ مَا أُوتِيَ مُوسَىٰ ﴾ يعني ولي نه دى وركول شوى دغه (لو) دامتناع لپاره نه دى.

٧-تعجيزلكه چي وايي ﴿ قُلْ فَأْتُوا بِكِتَابٍ ﴾ امرله خپله حقيقته تعجيزته وتلى دى.

٨-سلبي طباق چي دادى: ﴿ إِنَّكَ لَا تَهْدِي مَنْ أَحْبَبْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ يَهْدِي ﴾.

٩-عقلي مجاز ﴿ حَرَمًا آمِنًا ﴾ دامن نسبت يې حرم ته وكړ خو په امن يې اهل دى

١٠-دتهكم اواستهزاء اسلوب لكه داچي ﴿ أَيْنَ شُرَكَائِيَ الَّذِينَ كُنتُمْ تَزْعُمُونَ ﴾.

١١-مرسله تشبيه لكه ﴿ أَغْوَيْنَاهُمْ كَمَا غَوَيْنَا ﴾.

١٢-تصريحي تبعيه استعاره چي فرمايي ﴿ فَعَمِيَتْ عَلَيْهِمُ الْأَنبَاءُ ﴾ شهاب وايي چي: دنه لاربنوونې لپاره يې (عمى) استعاره كړه نودوى خبروته لاره نشي موندلاى بيا يې پدې كي اوښتون(قلب) راووست چي خبرونه دوى ته لاره نشي موندلاى اواصل خوداسي دى (چي دوى له خبرونو څخه ناليدونكي دي اوڅرنگه چي د(خفاء )معنا پكې وه نو يې په (على) سره متعدي كړچي دبلاغت څوډولونه پكي شته استعاره، قلب اوتضمين درې سره پكي نغښتي دي

١٣-دطباق صنعت چي د﴿ تُكِنُّ . . يُعْلِنُونَ ﴾ ترمينځ اود﴿ الْأُولَىٰ . وَالْآخِرَةِ ﴾ ترمينځ شتون لري اودا له بديعي محسناتو څخه گڼل كېږي.

---

(١) حاشيه شيخ زاده على البيضاوي ٣/ ٥١٥

(٢) الكشاف ٣/ ٣٢٠

تنبيه:

داچي وايې: ابو طالب په كفر كي مړشوى دى صحيح دى او قرآن او حديث دواړه وربانديې دلالت كوي خيني متصوفين چي وايې هغه ترمرگ له مخه په اسلام مشرف شوى له نصوصو سره په ټكر كي دى ښايې چي دوى به دابو طالب اسلام دهغه له دې شعرونو څخه اخيستى وي چي وايې:

ولقد علمت بأن دين محمد من خير اديان البرية دينا والله لن يصلوا اليك جميعهم حتى اوسد في التراب دفينا.

يعني په خداى قسم چي زه په دې وپوهېدم چي دمحمد دين ترگردو اديانو بهتر او غوره دى زمادي په الله سوگند وي كه به كفار ټول تاته هيڅ تاوان در ورسوي مگر كه زه په خاوروكي ښخ شوم

زه وايم چي وروسته له هغه ممانعته چي له اسلامه يې وكړ بيادا شعر څه معنالري؟.

***

الله تعالى فرمايي:

قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِن جَعَلَ ٱللَّهُ عَلَيْكُمُ ٱلَّيْلَ سَرْمَدًا إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْقِيَـٰمَةِ مَنْ إِلَـٰهٌ غَيْرُ ٱللَّهِ يَأْتِيكُم بِضِيَآءٍ ۖ أَفَلَا تَسْمَعُونَ ﴿٧١﴾ قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِن جَعَلَ ٱللَّهُ عَلَيْكُمُ ٱلنَّهَارَ سَرْمَدًا إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْقِيَـٰمَةِ مَنْ إِلَـٰهٌ غَيْرُ ٱللَّهِ يَأْتِيكُم بِلَيْلٍ تَسْكُنُونَ فِيهِ ۖ أَفَلَا تُبْصِرُونَ ﴿٧٢﴾ وَمِن رَّحْمَتِهِۦ جَعَلَ لَكُمُ ٱلَّيْلَ وَٱلنَّهَارَ لِتَسْكُنُوا۟ فِيهِ وَلِتَبْتَغُوا۟ مِن فَضْلِهِۦ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴿٧٣﴾ وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ فَيَقُولُ أَيْنَ شُرَكَآءِىَ ٱلَّذِينَ كُنتُمْ تَزْعُمُونَ ﴿٧٤﴾ وَنَزَعْنَا مِن كُلِّ أُمَّةٍ شَهِيدًا فَقُلْنَا هَاتُوا۟ بُرْهَـٰنَكُمْ فَعَلِمُوٓا۟ أَنَّ ٱلْحَقَّ لِلَّهِ وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُوا۟ يَفْتَرُونَ ﴿٧٥﴾ ۞ إِنَّ قَـٰرُونَ كَانَ مِن قَوْمِ مُوسَىٰ فَبَغَىٰ عَلَيْهِمْ ۖ وَءَاتَيْنَـٰهُ مِنَ ٱلْكُنُوزِ مَآ إِنَّ مَفَاتِحَهُۥ لَتَنُوٓأُ بِٱلْعُصْبَةِ أُو۟لِى ٱلْقُوَّةِ إِذْ قَالَ لَهُۥ قَوْمُهُۥ لَا تَفْرَحْ ۖ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ ٱلْفَرِحِينَ ﴿٧٦﴾ وَٱبْتَغِ فِيمَآ ءَاتَىٰكَ ٱللَّهُ ٱلدَّارَ ٱلْءَاخِرَةَ ۖ وَلَا تَنسَ نَصِيبَكَ مِنَ ٱلدُّنْيَا ۖ وَأَحْسِن كَمَآ أَحْسَنَ ٱللَّهُ إِلَيْكَ ۖ وَلَا تَبْغِ ٱلْفَسَادَ فِى ٱلْأَرْضِ ۖ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ ٱلْمُفْسِدِينَ ﴿٧٧﴾ قَالَ إِنَّمَآ أُوتِيتُهُۥ عَلَىٰ عِلْمٍ عِندِىٓ ۚ أَوَلَمْ يَعْلَمْ أَنَّ ٱللَّهَ قَدْ أَهْلَكَ مِن قَبْلِهِۦ مِنَ ٱلْقُرُونِ مَنْ هُوَ أَشَدُّ مِنْهُ قُوَّةً وَأَكْثَرُ جَمْعًا ۚ وَلَا يُسْـَٔلُ عَن ذُنُوبِهِمُ ٱلْمُجْرِمُونَ ﴿٧٨﴾ فَخَرَجَ عَلَىٰ قَوْمِهِۦ فِى زِينَتِهِۦ ۖ قَالَ ٱلَّذِينَ يُرِيدُونَ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا يَـٰلَيْتَ لَنَا مِثْلَ مَآ أُوتِىَ قَـٰرُونُ إِنَّهُۥ لَذُو حَظٍّ عَظِيمٍ ﴿٧٩﴾ وَقَالَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْعِلْمَ وَيْلَكُمْ ثَوَابُ ٱللَّهِ خَيْرٌ لِّمَنْ ءَامَنَ وَعَمِلَ صَـٰلِحًا وَلَا يُلَقَّىٰهَآ إِلَّا ٱلصَّـٰبِرُونَ ﴿٨٠﴾ فَخَسَفْنَا بِهِۦ وَبِدَارِهِ ٱلْأَرْضَ فَمَا كَانَ لَهُۥ مِن فِئَةٍ يَنصُرُونَهُۥ مِن دُونِ ٱللَّهِ وَمَا كَانَ مِنَ ٱلْمُنتَصِرِينَ ﴿٨١﴾ وَأَصْبَحَ ٱلَّذِينَ تَمَنَّوْا۟ مَكَانَهُۥ بِٱلْأَمْسِ يَقُولُونَ وَيْكَأَنَّ ٱللَّهَ يَبْسُطُ ٱلرِّزْقَ لِمَن يَشَآءُ مِنْ عِبَادِهِۦ وَيَقْدِرُ ۖ لَوْلَآ أَن مَّنَّ ٱللَّهُ عَلَيْنَا لَخَسَفَ بِنَا ۖ وَيْكَأَنَّهُۥ لَا يُفْلِحُ ٱلْكَـٰفِرُونَ ﴿٨٢﴾ تِلْكَ ٱلدَّارُ ٱلْءَاخِرَةُ نَجْعَلُهَا لِلَّذِينَ لَا يُرِيدُونَ عُلُوًّا فِى ٱلْأَرْضِ وَلَا فَسَادًا ۚ وَٱلْعَـٰقِبَةُ لِلْمُتَّقِينَ ﴿٨٣﴾ مَن جَآءَ بِٱلْحَسَنَةِ فَلَهُۥ خَيْرٌ مِّنْهَا ۖ وَمَن جَآءَ بِٱلسَّيِّئَةِ فَلَا يُجْزَى ٱلَّذِينَ عَمِلُوا۟ ٱلسَّيِّـَٔاتِ إِلَّا مَا كَانُوا۟

يَعْمَلُونَ ﴿٨٤﴾ إِنَّ ٱلَّذِى فَرَضَ عَلَيْكَ ٱلْقُرْءَانَ لَرَآدُّكَ إِلَىٰ مَعَادٍ قُل رَّبِّىٓ أَعْلَمُ مَن جَآءَ بِٱلْهُدَىٰ وَمَنْ هُوَ فِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴿٨٥﴾ وَمَا كُنتَ تَرْجُوٓا۟ أَن يُلْقَىٰٓ إِلَيْكَ ٱلْكِتَٰبُ إِلَّا رَحْمَةً مِّن رَّبِّكَ فَلَا تَكُونَنَّ ظَهِيرًا لِّلْكَٰفِرِينَ ﴿٨٦﴾ وَلَا يَصُدُّنَّكَ عَنْ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ بَعْدَ إِذْ أُنزِلَتْ إِلَيْكَ وَٱدْعُ إِلَىٰ رَبِّكَ وَلَا تَكُونَنَّ مِنَ ٱلْمُشْرِكِينَ ﴿٨٧﴾ وَلَا تَدْعُ مَعَ ٱللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ كُلُّ شَىْءٍ هَالِكٌ إِلَّا وَجْهَهُۥ لَهُ ٱلْحُكْمُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿٨٨﴾ القصص ۷۱ ـ ۸۸

## مناسبت:

کله چي الله ددې یادونه وکړه چي هغه خالق مختاردی اومشرکان ناپوهان دي چي له الله څخه پرته دبل چاعبادت کوي ورپسي یې دالله په عظمت اوسلطان دلائل راوړي ترڅوبندګان دالله جل جلاله دنعمتونوشکرته متوجه کړي بیایې دقارون کیسه هغه چي دمال دولت په سبب یې طغیان غوره کړی وو راوړه اودهغه بدمرغه برخه لیک چي په ده اوخزانویې ځمکه وچودله دوی پکي ننوتل وښود چي همدغه دغرور اواستعلاء نتیجه ده.

## لغتونه:

(سرمدًا) تلپاتي همېشه (مفاتحه) دمفتح جمع اوهغه څه ته وایې چي ورباندي بل څېزخلاصېږي اودمفتاح جمع مفاتیح راځي (لتنوء) دروندوالي ته وایې چي سړی کړوي (العصبة) ټولی اوهمداسي ده (عصابة) اوله دې څخه دالله تعالی ویناده (ونحن عصبة) ټولی ته یې ځکه عصبه وویل چي ځیني دځیني نورو ټینګول کوي (ویکان) جوهري وایې چي (وی) دتعجب کلمه ده اوکله کله په (کأن) داخلېږي نوویلای شي (ویکأن) اوچاپیاویلي دي دغه دخطا دتدارک په وخت کي ویل کېږي چي سړی پښېماني څرګندوي خلیل وایې چي: قوم متوجه شواوپخپل کړو وړو پښېمانه شو ویې ویل: (وَی)[1]

## تفسیر:

﴿ قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِن جَعَلَ ٱللَّهُ عَلَيْكُمُ ٱلَّيْلَ سَرْمَدًا إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْقِيَٰمَةِ ﴾ ووایه (ای محمده ! دغودمکې منکرینوکفاروته آیاوینی (څرنګه درته ښکاري؟) که چېري وګرزوي الله پرتاسودغه شپه اوږده تروروځي دقیامته پوري ﴿ مَنْ إِلَٰهٌ غَيْرُ ٱللَّهِ يَأْتِيكُم بِضِيَآءٍ ﴾ نوڅوک دی هغه (معبود ) بې له الله چي تاسي ته رڼاراوړي (اوتاسي دژوندانه اړتیاوي پکي بشپړي کړی) ﴿ أَفَلَا تَسْمَعُونَ ﴾ آیاپس تاسي دغه خبره نه اورئ ؟ (دزړه په غوږونو چي ویې منئ اودالله په وحدانیت یې دلیل وګرزوی) ﴿ قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِن جَعَلَ ٱللَّهُ عَلَيْكُمُ ٱلنَّهَارَ سَرْمَدًا إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْقِيَٰمَةِ ﴾ ووایه (ای محمده دوی ته !) آیاوینی تاسي (څرنګه درته ښکاري) که چېري الله وګرزوي پرتاسي ورځ اوږده همېشه تر ورځي دقیامته ﴿ مَنْ إِلَٰهٌ غَيْرُ ٱللَّهِ يَأْتِيكُم بِلَيْلٍ تَسْكُنُونَ فِيهِ ﴾ نوڅوک دی (معبود ) بې له الله چي راوړي تاسي ته شپه چي تاسي پکي آرام وکړی

---

[1] تفسیرکبیر ۲۵/ ۱۹ *په پښتوکي هم د(وَی) کلمه دافسوس اوپښېماني په وخت کي ویل کېږي (ژباړن).

؟ ستوماني ليري كړی ﴿ أَفَلَا تُبْصِرُونَ ﴾ آیا نه وینی تاسي ؟ (دغه دالهي قدرت نښاني ، چي تاسي په ضلالت اوگمراهي کي اوسی بیا وروسته الله په بندگانو دخپل بشپړ رحمت دپېرزويني داسي يادونه کوي ﴿ وَمِن رَّحْمَتِهِۦ جَعَلَ لَكُمُ ٱلَّيْلَ وَٱلنَّهَارَ ﴾ اوخاص له رحمته مهرباني خپلي يې پیداکړي ده تاسي شپه او ورځ (چي په خورادقت اوباريکي يوپه بل پسي رادرومي ) ﴿ لِتَسْكُنُوا۟ فِيهِ وَلِتَبْتَغُوا۟ مِن فَضْلِهِۦ ﴾ دپاره ددې چي آرام وکړی تاسي په هغه (شپه ) کي اوچي ولټوی تاسي په دغه ورځ کي له فضله ددغه (الله) معاش اوكسب كار ) ﴿ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴾ اولپاره ددې چي تاسي شکروکړی (دنعمتونو ) دالله چي هیڅ شمېرېې نشته اودهغو له ډلي څخه يونعمت هم شپه او ورځ دي امام رازي رحمه الله وايې چي الله تبارک وتعالی پدې آيت شريف کي پدې تنبيه وفرمايله چي دغه شپه او ورځ دالله نعمتونه دي چي يوپه بل پسي راځي څکه انسان په دنياکي دې ته اړدی چي دخپلو ضروریاتوپه ترلاسه کولو کي به ستومانه کېږي اودغه بې دورځي له رڼا څخه ممکنه نده اونه هم دشپې راحت اوآرام څخه پرته کېدونکي ده نودوی دواړه نهايت ضروري دي او په جنت کي خوستوماني اوربړونه نشته نوځکه روښنايې اوخوندونه تل ترتله وي (۱) ﴿ وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ فَيَقُولُ أَيْنَ شُرَكَآءِىَ ٱلَّذِينَ كُنتُمْ تَزْعُمُونَ ﴾ (اويادکړه هغه ورځ چي غږبه وکړي دوی ته (الله) پس وبه فرمايې (الله) چېري دي شريكان زما هغه چي تاسوبه پرې د (شريکانو ) گمان کاوو ؟ ) ابن کثيروايي دغه دوهمه نداء (غږ) دی چي دتوبيخ لپاره هغه چاته چي له الله سره يې شريکان نیولي دخلگوپه وړاندي کېږي (۲) ﴿ وَنَزَعْنَا مِن كُلِّ أُمَّةٍ شَهِيدًا ﴾ اوراوبه باسوله هرامت څخه يو شاهد (چي گواهي ورکړي په عملونوددوی هغه به ددوی نبي وي ﴿ فَقُلْنَا هَاتُوا۟ بُرْهَـٰنَكُمْ ﴾ (پس موږبه دوی ته ووایوراوړئ تاسي برهان خپل ) يعني خپل دليل راوړئ چي له څه کبله مو کفرغوره کړی وو دغه ددوی دتوبيخ او تعجيزلپاره دی ﴿ فَعَلِمُوٓا۟ أَنَّ ٱلْحَقَّ لِلَّهِ ﴾ پس (هلته) به دوی پوه شي چي حق (په الوهيت ) يوازي الله لره دی زيې له الله بل دعبادت لائق څوک نشته ) ﴿ وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُوا۟ يَفْتَرُونَ ﴾ او ورک به شي له دوی نه هغه څه چي دوی به دروغ جوړول ، له الله سره به يې شريکان نيول بيادقارون کيسه اودغرور اوطغيان پايله اونتيجه داسي بيانېږي ﴿ إِنَّ قَـٰرُونَ كَانَ مِن قَوْمِ مُوسَىٰ ﴾ بېشکه چي قارون وو له قومه دموسی ؛ ابن عباس ﷺ وايې چي دتره زوی يې وو ﴿ فَبَغَىٰ عَلَيْهِمْ ﴾ پس سرکشي وکړه (قارون) پردوی (بني اسرائيلوچي ده ته الله خزانې اومال دولت ورکړی ووطبري وايې معناداچي له حد څخه يې تجاوز وکړ اوپردوی يې ځان لوړ اوجابرگاڼه (۳) ﴿ وَءَاتَيْنَـٰهُ مِنَ ٱلْكُنُوزِ مَآ إِنَّ مَفَاتِحَهُۥ لَتَنُوٓأُ بِٱلْعُصْبَةِ أُو۟لِى ٱلْقُوَّةِ ﴾ او ورکړی وو موږ ده ته له خزانو دومره قدرچي بېشکه کليگاني دهغوبه خامخا

---

(۱) تفسیر کبیر امام رازي ۱۱/۲۵
(۲) مختصر ابن کثیر ۲۲/۳
(۳) الطبري ۶۷/۲۰

درنېدلې پرداسي تولی چي خاوندان دقوت به وو؛ چي خورا ډېري اودرنې به وې مالونه اوخزانې بې لاځه کوې،دغه په آیت شریف کي دقارن دډېرو مالونو ، دولتونو اوخزانوانځور (تصویر) دی ﴿ إِذْ قَالَ لَهُ قَوْمُهُ لَا تَفْرَحْ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْفَرِحِينَ ﴾ (یادکړه) هغه وخت چي وويل دغه (قارون) ته قوم دده (چي مسلمانان وو) مه خوشحالېږه (په کبراوغرور) بېشکه چي الله نه خوښوي خوشحالېدونکي (په مال اودولت ددنیاهغوی چي دالله دنعماووشکرنه اداکوي اودالله په بندګانوباندي دمال لرلو په ویاړ تکبر اوغرور کوي ﴿ وَابْتَغِ فِيمَا آتَاكَ اللَّهُ الدَّارَ الْآخِرَةَ ﴾ او وغواړه په هغه (دولت ) چي الله تاته درکړی دی کور دآخرت ، نېکي اوصالحات ترسره کړه صدقې ورکړه اومال دطاعاتوپه لاره کي ولګوه ﴿ وَلَا تَنسَ نَصِيبَكَ مِنَ الدُّنْيَا ﴾ اومه هېروه برخه خپله له (ماله د) دنيا، حسن بصري رحمه الله وايي چي معناداچي خپله دنيايي برخه دي هم پدې لاره کي مه هېروه (۱)﴿ وَأَحْسِن كَمَا أَحْسَنَ اللَّهُ إِلَيْكَ ﴾ اواحسان کوه (له بندګانودالله سره په ورکولودمال) لکه چي الله له تاسره احسان کړی دی (چي ډېر دولت يې درکړی) ﴿ وَلَا تَبْغِ الْفَسَادَ فِي الْأَرْضِ ﴾ مه غواړه (ای قارونه) فساد(په تکبراوظلم کولوسره) په ځمکه کي) يعني په دغه ډېرمال او دولت سره په خلګو لوېي مه کوه اوپه عصيان کولوپه ځمکه کي فسادمه جوړوه !﴿ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُفْسِدِينَ ﴾ بېشکه چي الله نه خوښوي فسادکونکي (باغيان په ځمکه کي) ﴿ قَالَ إِنَّمَا أُوتِيتُهُ عَلَىٰ عِلْمٍ عِندِي ﴾ وويل:( قارون خپل قوم ته کله چي يې ده ته نصيحت وکړ) بېشکه همداخبره ده چي راکړی شوی دی ماته دغه مال په هغه پوهه چي له ماسره ده (دمال موندلواوکسب اوکار)که الله له ماخوښ نه وای اوزمااستحقاق يې نه ګڼلای بيابه يې نه راکاوو الله جل جلاله يې داسي ترديدفرمايي:﴿ أَوَلَمْ يَعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ قَدْ أَهْلَكَ مِن قَبْلِهِ مِنَ الْقُرُونِ مَنْ هُوَ أَشَدُّ مِنْهُ قُوَّةً وَأَكْثَرُ جَمْعًا ﴾ آيانه پوهېدو(قارون) چي بېشکه (الله) په تحقيق هلاک کړي دي پخواله دغه (قارون) څخه له (اهل د) زمانوهرهغه څوک چي دی ډېرسخت وو له دغه (قارون) څخه له جهته دزور ، قوت اوله سببه دمال راټولولو. بيضاوي وايې چي: په آيت شريف کي دده په غرور، تعجب اوده ته توبيخ شته چي دی څرنګه پخپل زور اوبډايې غره دی سره له علمه دده چي تورات يې لوستلی اوله تاريخ پوهانوڅخه يې هم اورېدلي دي (۲)﴿ وَلَا يُسْأَلُ عَن ذُنُوبِهِمُ الْمُجْرِمُونَ ﴾ (اونه به شي پوښتلی له خپلو ګناهونوڅخه کافران) يعني الله به دوی دخپلوګناهونوله څرنګوالي اوڅووالي نه پوښتي هغه په هرڅه عالم دی نود دوی هلاکت ددوی ترپوښتلو اړه نلري اوکله چي دالله ورته عذاب اراده شي نابېره يې هلاکوي وروسته بيالله دې ته اشاره کوي چي قارون دخپل تېرپه نصيحت کولوپندنه واخيست بلکه لانورپخپل جبروت

(۱) چاپیاویلي معناداچي عمردي په پرهېزودلودنېکواعمالوکي مه ضائع کوه دغه دابن عباس اومجاهد وېناده خوهغه چي حسن بصري اوقتاده ويلي څرګنده اوابن کثيرغوره کړي ده.

(۲) البيضاوي ۳/ ۹۵

او تکبر کي وغزېدو ﴿ فَخَرَجَ عَلَىٰ قَوْمِهِۦ فِي زِينَتِهِۦ ﴾ پس راووت (قارون) پرخپل قوم په (پوره) ښایست خپل کي. مفسرین کرام وایې هغه یوه ورځ په پوره ښایست اودبدبه کي له خپلو پلویانو سره پداسي حال کي چي ورېښميني جامې يې اغوستي اودزروکمي يې نه ووپه سمبالو آسانو سپاره راووتل چي نجوني اوهلکان هم ورسره وو هيښوونکی کاروان يې روان وو ﴿ قَالَ ٱلَّذِينَ يُرِيدُونَ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا يَٰلَيْتَ لَنَا مِثْلَ مَآ أُوتِيَ قَٰرُونُ ﴾ (وويل هغوچي غوښت يې دغه ژوندون ددنيا ای کاشکي چي وای موږته هم (له ثروته) په شان دهغو(اموالو) چي قارون ته ورکړی شويدي) يعني کله چي ضعيف الايمانه خلکوهغه چي ددنياد ژوندانه په څلاغولېږي وليدنويې دغه افسوس وکړ ﴿ إِنَّهُۥ لَذُو حَظٍّ عَظِيمٍ ﴾ بيشکه دا قارون دلويي برخي خاوند دي (له دنيا څخه) ﴿ وَقَالَ ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلْعِلْمَ ﴾ اوويل(دوی ته) هغوکسانوچي دوی ته علم ورکړل شوی وو(پوهان وواواستقامت يې په برخه وو) ﴿ وَيْلَكُمْ ثَوَابُ ٱللَّهِ خَيْرٌ لِّمَنْ ءَامَنَ وَعَمِلَ صَٰلِحًا ﴾ (افسوس دی تاسي ته (ای دنياغوښتونکو) ثواب دالله ډېر غوره دی هغه چاته چي ايمان يې راوړی وي (په الله اورسول) اوعمل يې کړی وی دنېکيو) يعني له دې خبرو لاس واخلئ هغه ثواب چي الله يې نېکانوته ورکوي تردې ډېر ښه دی. زمخشري وايې چي: د(ويلک) اصلی معناښېراده اوبياوروسته په زجر اوترټنه کي استعمال شوه چي هسي مکوه !(۱) ﴿ وَلَا يُلَقَّىٰهَآ إِلَّا ٱلصَّٰبِرُونَ ﴾ اونشي ښوولي دغه (خبره) مگر صبر کونکيوته (په امرد الله ﷻ وروسته بيادده دبدمرغه برخه ليک تنبيه الله تعالى داسي فرمايې: ﴿ فَخَسَفْنَا بِهِۦ وَبِدَارِهِ ٱلْأَرْضَ ﴾ (پس ننې يوست موږ دغه (قارون) اوکورده په ځمکه کي) يعني موږځمکه وچودله او هغه موسره له کوره اوخزانوپکي ښخ کړاودغه دهغه دتکبراوغرور سزاوه ﴿ فَمَا كَانَ لَهُۥ مِن فِئَةٍ يَنصُرُونَهُۥ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ پس څه نه وو ده ته (په دغه وخت کي) هيڅ ډله (ددوستانو) چي مددگاري يې کړي وي له ده سره غيرله الله څخه (څوچي له عذابه يې وژغوري) ﴿ وَمَا كَانَ مِنَ ٱلْمُنتَصِرِينَ ﴾ اونه وو (قارون) پخپله له بدل اخيستونکوڅخه (چي ځان دي وژغوري بلکه هلاک شو) ﴿ وَأَصْبَحَ ٱلَّذِينَ تَمَنَّوْاْ مَكَانَهُۥ بِٱلْأَمْسِ ﴾ او وګرزېدل هغه کسان چي آرزوبه يې کوله دمرتبې ددغه (قارون) بېگاه ( وروسته له ليدلوډوبېدودده په ځمکه کي) ﴿ يَقُولُونَ وَيْكَأَنَّ ٱللَّهَ يَبْسُطُ ٱلرِّزْقَ لِمَن يَشَآءُ مِنْ عِبَادِهِۦ وَيَقْدِرُ ﴾ ( ويل به يې (يوبل ته) افسوس دی چي بېشکه الله پراخوي روزي هرهغه چاته چي اراده وفرمايې له خپلوبندگانواوتنگوي (الله دغه روزي چي هرچاته اراده وفرمايې دتنگولويې) يعني دوی به دافسوس په توگه يوبل ته ويل چي دوی پرون کومه تمناکوله هغه دپښېماني ده وگورئ ای خلگوالله ته چي څرنگه پراخوي روزي اوتنگوي يې له خپل حکمت اومشيت سره سم نه د روزي پراخوالی په کرامت پسي اړه لري اونه خواري ښوزلي په سپکتياپوري

بلکه دایو ازموینښت دی. زمخشري وايې چې (ویکأن) دوې کلمې دي يوه يې (وَی) چې له کأن څخه جلاکړی شوي اوپه خطاباندي دتنبيه معنا ورکوي معناداچي ای خلکو په خپله خطاپوه شئ چې دقارون دمنزلت غوښتنه موکوله پښېمانه شئ([1]) اوويل يې ﴿ لَوْلَآ أَن مَّنَّ ٱللَّهُ عَلَيْنَا لَخَسَفَ بِنَا ﴾ که چېري دالله احسان په موږ نه وای نو خامخا موږبه يې په ځمکه کي ډوب کړي وو(لکه چې قارون يې ډوب کړ) ﴿ وَيْكَأَنَّهُۥ لَا يُفْلِحُ ٱلْكَٰفِرُونَ ﴾ افسوس دی ته نه پوهېږي نه وينې چې نه خلاصېږي کافران (له عذابه) نه په دنیااونه په آخرت کي اوترديې ځايه دقارون کيسه پای ته رسېږي هغه چې دمال اودولت دطغيان کيسه وه وروسته له هغه راغله چې دهغه دجاه اوسلطان طغيان وو اودموسی عليه السلام او فرعون په کيسه کي نغښتي وه وروپسې سمدستي دالله داکلام راځي چې: ﴿ تِلْكَ ٱلدَّارُ ٱلْءَاخِرَةُ نَجْعَلُهَا لِلَّذِينَ لَا يُرِيدُونَ عُلُوًّا فِى ٱلْأَرْضِ وَلَا فَسَادًا ﴾ (دغه کورداخرت (چې جنت دی) ورکوو موږ دادپاره دهغو کسانوچي دلويې اوفسادااراده په ځمکه کي نلري اونه فسادظلم کوي (پرخلکو) ( تِلْكَ )اشاره دتفخيم او تعظيم لپاره ده يعني دغه لوړ اوچت کورچي تاپې خبر واورېدو اوصفت يې درته ورسېدودغه تلپاتي جنت دی چې داسي نعمتونه پکي خوندي دي نه سترګوليدلی ، نه غوږو اورېدلي اونه دچاپه زړه اُورېدلي دي دادهغوپرهېزګارانولپاره دي چې تکبر نه کوي، طغيان اوعدوان نه خوښوي اونه په دنياکي دفساداراده لري ﴿ وَٱلْعَٰقِبَةُ لِلْمُتَّقِينَ ﴾ اوعاقبت ښه خاتمه لپاره دپرهېزګارانودی (هغوی چې له الله وېرېږي اودالله خوښي اورضاغواړي ﴿ مَن جَآءَ بِٱلْحَسَنَةِ فَلَهُۥ خَيْرٌ مِّنْهَا ﴾ هرچاچي وکړه کومه نېکي پس شته ده ته جزاء غوره چې الله يې ځوچنده ثواب ورکوي په قيامت کي ﴿ وَمَن جَآءَ بِٱلسَّيِّئَةِ فَلَا يُجْزَى ٱلَّذِينَ عَمِلُوا۟ ٱلسَّيِّـَٔاتِ إِلَّا مَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴾ اوهرچاچي وکړه کومه بدي پس نشي ورکولای جزاهغو کسانوته چې کړی يې دی (عمل د )بدي مګر(جزاء دهغه شي) چې دوی به کاوو اودغه دالله فضل او احسان دی چې دبندګانونېکي څوچنده کوي اوبدي يې پخپل حال پرېږدي ﴿ إِنَّ ٱلَّذِى فَرَضَ عَلَيْكَ ٱلْقُرْءَانَ لَرَآدُّكَ إِلَىٰ مَعَادٍ ﴾ بېشکه هغه (الله) چې فرض (نازل) کړي يې دي پرتا(احکام د ) قرآن (او عمل کول پرهغه ای محمده !) خامخابېرته بېوونکی دی دتاهغه ځای دوعدې(مکې) ته (لکه چې يې ځني راايستلی يې دغه دالله هغه وعده ده چې دمکې دفتحې په هکله يې له رسول الله ﷺ سره فرمايلي وه وروسته له هغه چې رسول الله ځني هجرت وکړ. ابن عباس وايې معناداچي بېرته بېوونکی ستادی مکې ته اوضحاک وايې کله چې رسول الله ﷺ له مکې څخه بهرراووت اوچي د(جحفة) مقام ته راورسېدومکه شريفه يې ويادېدله نوالله ﷻ داپورتنۍ ايت نازل کړ([2]) ﴿ قُل رَّبِّىٓ أَعْلَمُ مَن جَآءَ بِٱلْهُدَىٰ وَمَنْ هُوَ فِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴾ ووايه

---

([1]) الکشاف ۳ / ۲۴۲ هودغه دخليل اوسيبويه مذهب هم دی اوجمهوروغوره کړی په جلالين تفسيرکي وايې(وی) اسم فعل دی چې معنايې زه تعجب کوم او(ک) دلام په معناچي په مجموع کي يې معناداسي راځي (أعجب لأن الله يبسط ) اوطبري بيا له قتاده څخه روايت راوړي چې د(ويکأن) معنی (ألم ترأن) اودغه يوه کلمه ده دطبري همداغوره ده والله اعلم.

([2]) تفسيرابن الجوزي ۶ / ۲۳۹

(ای محمده دوی ته!) زمارب ته هغه څوک ښه معلوم دی چي راوړي يې ده سمه لاره اوهغه څوک چي په ښکاره گمراهي کي دی (زه يم اوكه تاسو؟ الله ته نېكو كارله بدكاره ښه معلوم دی اوهريوه ته پخپل عمل سزا وركوي دا دمكې دكفارو دهغې خبري ځواب دی چي دوی به ويل: (انک يامحمدفی ضلال مبين) ای محمده بېشکه ته په ښكاره گمراهي کي يې! ﴿ وَمَا كُنتَ تَرْجُوٓاْ أَن يُلْقَىٰٓ إِلَيْكَ ٱلْكِتَٰبُ إِلَّا رَحْمَةً مِّن رَّبِّكَ ﴾ اونه وې ته چي هيله دي درلوده ددې چي راوبه لېږلی شي تاته كتاب (قرآن) ليکن (راولېږل شو) په رحمت مهرباني له (جانبه) درب ستا. فراء وايي دغه استثناء منقطع ده معناداچي ستاپالونکی درباندي مهربان شو اوكتاب يې درته راواستاوو ﴿ فَلَا تَكُونَنَّ ظَهِيرًا لِّلْكَٰفِرِينَ ﴾ پس مه كېږه ته خامخا مددگارلپاره دكافرانو (په دين ددوی کي چي له دوی سره مدارات وكړي اوپه گمراهي کي يې مرستندوی شي بلكه ددوی مخالفت وكړه! مفسرين كرام وايي چي: مشركانورسول الله دخپلو پلرونو دين ته وروبالونو الله ورته امروفرمايو چي له دوی څخه ځان گوره اوهغوی په ډاگه دحق لوري ته راوبوله خطاب پدې آيت اوهمداسي نورو آيتونوكي پيغمبر عليه السلام ته دی اومقصديې امت دی څوچي له كفاروسره موافقه ونكړي اودبې ديني په لاره کي يې مددگار ثابت نشي ﴿ وَلَا يَصُدُّنَّكَ عَنْ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ بَعْدَ إِذْ أُنزِلَتْ إِلَيْكَ ﴾ (چي وادي نه ړوي (كفار) خامخاتا (په مكراو فريب) له آيتونود الله پس له هغه چي تاته نازل كړل شول) يعني دغومشركانوته التفات مكوه اومه ورته غوږ نيسه نودوی به تاله نازل كړی شوي ښكاره آيتونو څخه واړوي ﴿ وَٱدْعُ إِلَىٰ رَبِّكَ ﴾ اووبوله خلگ (توحيد اوعبادت د) رب خپل ته ﴿ وَلَا تَكُونَنَّ مِنَ ٱلْمُشْرِكِينَ ﴾ اومه كېږه ته خامخاله مشركانوڅخه (چي ددوی په غاړه ورسره څي څكه څوک چي ديوچاپه طورطريقه خوښ وي هغه دهغوي له ډلي څخه دی ﴿ وَلَا تَدْعُ مَعَ ٱللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ ﴾ اومه بوله ته له الله سره بل معبود ﴿ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ﴾ نشته هيڅ لائق دبللو بل هيڅوک مگرهم دی دی. بيضاوي وايي چي: دغه اوهغه پخوانی حكم دهڅوني لپاره دی اوداچي دمشركانوتمه وخېژي چي رسول الله به يې مرسته وكړي (١) ﴿ كُلُّ شَىْءٍ هَالِكٌ إِلَّا وَجْهَهُۥ ﴾ هرڅيزفاني كېدونكی دی مگرذات دده (چي تل باقي دی) دلته يې (وجه) ذكركړي اومرادڅني مقدس ذات دالله تعالی دی. ابن كثيروايي چي دغه ددې اخباردی چي الله تل ترتله -الحي القيوم- دی چي خلگ به مري اوالله به تل باقي وي نوتعبيرپه (وجه) سره له ذات نه راغلی لكه داقول دالله چي فرمايي: ﴿ كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ وَيَبْقَىٰ وَجْهُ رَبِّكَ ذُو ٱلْجَلَٰلِ وَٱلْإِكْرَامِ ﴾ الرحمن: ٢٦ - ٢٧ ﴿ لَهُ ٱلْحُكْمُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴾ هم ده ته حكم (نافذه قضاء) اوهم ده ته به بيرته بوتلی شی تاسي (لپاره دجزاء په ورځ دقيامت کي نه بل چاته).

بلاغت:

پدې آیتونوکي چي دبدیع اوبیان کومي ښکلاوي شته لنډیزيې دادی.

۱- تبکیت اوتوبیخ لکه: ﴿مَنۡ إِلَٰهٌ غَيۡرُ ٱللَّهِ يَأۡتِيكُم بِضِيَآءٍ﴾ اوپدې ډول ﴿يَأۡتِيكُم بِلَيۡلٍ﴾ ؟

۲- کله چي مرتب لف اونشرراوړي ﴿وَمِن رَّحۡمَتِهِۦ جَعَلَ لَكُمُ ٱلَّيۡلَ وَٱلنَّهَارَ﴾ شپه اوورځ يې یوځای کړه ورپسي يې وفرمايل ﴿لِتَسۡكُنُواْ فِيهِ وَلِتَبۡتَغُواْ مِن فَضۡلِهِۦ﴾ نوسکون يې دشپې لپاره راووړ اودمعاش لټول دورځي لپاره اودغه دبدیع دعلماوو اوپوهانوپه نظر لف اونشر مرتب بولي څکه لومړی دلومړي لپاره اودوهم ددوهم لپاره راوګرزېدو اودغه له بدیعي محسناتو څخه ګڼل کېږي.....

۳- اشتقاقي جناس لکه: ﴿لَا تَفۡرَحۡ...ٱلۡفَرِحِينَ﴾ اوهمداسي ﴿ٱلۡفَسَادَ...ٱلۡمُفۡسِدِينَ﴾ .

۴- دجملې تاکیدپه (ان) او (لام) سره چي کله فرمايي: ﴿إِنَّهُۥ لَذُو حَظٍّ عَظِيمٍ﴾ څکه چي اورېدونکي شکمن اومتردد دي.

۵- کنايه لکه داچي: ﴿تَمَنَّوۡاْ مَكَانَهُۥ بِٱلۡأَمۡسِ﴾ له قريب ماضي زمانې څخه يې په بېګاه باندي کنايه راوړه.

۶- دطباق صنعت لکه: ﴿يَبۡسُطُ ٱلرِّزۡقَ وَيَقۡدِرُ﴾ .

۷- لطیفه مقابله چي فرمايي: ﴿مَن جَآءَ بِٱلۡحَسَنَةِ فَلَهُۥ خَيۡرٌ مِّنۡهَاۖ وَمَن جَآءَ بِٱلسَّيِّئَةِ فَلَا يُجۡزَى﴾ دآيت ترپايه.

۸- مرسل مجاز لکه داسي ﴿إِلَّا وَجۡهَهُۥۚ﴾ جزء يې راوړی اوراده يې دکل ده یعني مقدس ذات دالله تعالی اوپدې کي مرسل مجازدی.

دالله په مرسته دالقصص سورت تفسير بشپړشو.

***

## دالعنكبوت سورت مكي اونه شپېته آياتونه لري

دسورت په وړاندې:

دالعنكبوت سورت مكي اوموضوع يې پخپلواساسي ټكوكي چې وحدانيت ، رسالت اوبعث اوجزاء دى دعقيدې موضوع ده دسورت محور ايمان دى اودهغه په شاو خواراګرزي او دازموينت سنت چې په ژوندانه كې ار ومروشته خبرې لكه چې مسلمانانو داسلام په لومړيوكې په مكه مكرمه كې ډول ډول كړاوونه اوستونزې وګاللې نوځكه دازموينې په هكله سورت خوراپه تفصيل سره بيان كوي په ځانګړې توګه كله چې دانبياوو عليهم السلام كيسې راواخلې.

* سورت پدې څرګندو اوښكاره ټكو پيلېږي چې ﴿ الٓمٓ أَحَسِبَ ٱلنَّاسُ أَن يُتۡرَكُوٓاْ أَن يَقُولُوٓاْ ءَامَنَّا وَهُمۡ لَا يُفۡتَنُونَ ﴾ همداسې سورت دهغوخلكوبيان كوي چې ايمان يوازې په خوله باندې دكلمې لوستل ګڼي اوچې كله وړباندې سختې اوكړاوونه راشي نوهله بيا سمدستي دګمراهي دوزخ ته درومي اومرتدكېږي څوچې له دنيوي مشكلاتو اوتكليفونوځان وژغورې ته به وا ګواكې چې دآخرت عذاب ددنياتر عذاب سپک اوآسانه وي ﴿ وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَقُولُ ءَامَنَّا بِٱللَّهِ فَإِذَآ أُوذِيَ فِي ٱللَّهِ جَعَلَ فِتۡنَةَ ٱلنَّاسِ كَعَذَابِ ٱللَّهِ ﴾ دآيتونوترپايه.

* سورت په تلوتلوكې دانبياوو عليهم السلام تكليفونه اوهغه سختې بيانوي چې دوى دتبليغ په لاره كې ګاللې اودنوح ﷺ كيسه پيل كوي وروسته ابراهيم ، بيالوط وروپسې شعيب عليهم السلام راوړې اودځينوسرغړونكومتجبرينولكه عاد ، ثمود ، قارون ، اوهامان دهلاكت پېښې بيانوي چې: ﴿ فَكُلًّا أَخَذۡنَا بِذَنۢبِهِۦۖ فَمِنۡهُم مَّنۡ أَرۡسَلۡنَا عَلَيۡهِ حَاصِبٗا ﴾ اودانبياووپه كيسوكې دابتلاء اوازموينت درسونه دي چې ځې څومره دتبليغ زيارونه يې ګالل اوپه لاس به هيڅ نه ورتلل دغه نوح ﷺ دى چې دنه سوه پنځوس كلونوپه اوږده موده كې يې قوم دالله لارې ته بالو، خوډېرلږ كسانوله ده سره ايمان راووړ چې فرمايي: ﴿ وَلَقَدۡ أَرۡسَلۡنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوۡمِهِۦ فَلَبِثَ فِيهِمۡ أَلۡفَ سَنَةٍ إِلَّا خَمۡسِينَ عَامٗا فَأَخَذَهُمُ ٱلطُّوفَانُ وَهُمۡ ظَٰلِمُونَ ﴾ اودغه دانبياوو پلار ابراهيم ﷺ دى چې پرهره وسيله غوارې خپل قوم دالله لورې ته راوبولي اوپه دليلونواوعلمي سندونوهغوى ته قناعت وركړي خودغه ګردې هلې ځلې هغوى ته پرته له طغيان بل څه نه ورزياتوي اووايي: ﴿ قَالُواْ ٱقۡتُلُوهُ أَوۡ حَرِّقُوهُ فَأَنجَىٰهُ ٱللَّهُ مِنَ ٱلنَّارِۚ ﴾.

* همداسې دلوط ﷺ په كيسه كې دهغه دقوم هغه درذالت اوبې حيايې ښكاره مثال دى چې الله فرمايي: ﴿ وَلُوطًا إِذۡ قَالَ لِقَوۡمِهِۦٓ إِنَّكُمۡ لَتَأۡتُونَ ٱلۡفَٰحِشَةَ مَا سَبَقَكُم بِهَا مِنۡ أَحَدٖ مِّنَ ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴾ دآيتونوترپايه او وروسته له دغه څرګنده كتنې چې دانبياووپه هكله يې كوي سورت دمحمدي رسالت رښتنولي بيانوي چې هغه يوأمي سړى دى هغه ليک اولوست نلري خودوى ته يې دغه

معجز كتاب راوړی چي دغه له خوراسترو دلائلو څخه دی دغه درب العالمين كتاب دی ﴿ وَمَا كُنتَ تَتْلُوا۟ مِن قَبْلِهِۦ مِن كِتَـٰبٍ وَلَا تَخُطُّهُۥ بِيَمِينِكَ ۖ إِذًا لَّٱرْتَابَ ٱلْمُبْطِلُونَ ﴾.

• اوبيا سورت له دې دلائلو او براهينو څخه دالله قدرت او وحدانيت ته لېږدي كوم چي په دغه پراخ ځمکه آسمان او کائناتو کي ليدل کېږي وروسته بيا دهغو کسانو ثوابونه رااخلي چي دازموينېتونو په وړاندي يې ټينګار کړی وي او پدې لاره کي يې په مال او نفس جهاد او هلي ځلي سرته رسولي وي فرمايي:

﴿ وَٱلَّذِينَ جَـٰهَدُوا۟ فِينَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا ۚ وَإِنَّ ٱللَّهَ لَمَعَ ٱلْمُحْسِنِينَ ﴾.

نوم ول او تسميه:

ځکه دې سورت ته دالعنکبوت سورت ويلای شي چي الله پکي هغو سکښتل شوېتو ړل شوو بتانو ته چي مشرکانو په ألوهيت نيولي وو د العنکبوت دکور (جال) مثال ورکړی الله فرمايي: ﴿ مَثَلُ ٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُوا۟ مِن دُونِ ٱللَّهِ أَوْلِيَآءَ كَمَثَلِ ٱلْعَنكَبُوتِ ٱتَّخَذَتْ بَيْتًا ۖ ﴾ د آيتونو تر پايه.

الله تعالی فرمايي:

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَـٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ الٓمٓ ﴿١﴾ أَحَسِبَ ٱلنَّاسُ أَن يُتْرَكُوٓا۟ أَن يَقُولُوٓا۟ ءَامَنَّا وَهُمْ لَا يُفْتَنُونَ ﴿٢﴾ وَلَقَدْ فَتَنَّا ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۖ فَلَيَعْلَمَنَّ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ صَدَقُوا۟ وَلَيَعْلَمَنَّ ٱلْكَـٰذِبِينَ ﴿٣﴾ أَمْ حَسِبَ ٱلَّذِينَ يَعْمَلُونَ ٱلسَّيِّـَٔاتِ أَن يَسْبِقُونَا ۚ سَآءَ مَا يَحْكُمُونَ ﴿٤﴾ مَن كَانَ يَرْجُوا۟ لِقَآءَ ٱللَّهِ فَإِنَّ أَجَلَ ٱللَّهِ لَـَٔاتٍ ۚ وَهُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ ﴿٥﴾ وَمَن جَـٰهَدَ فَإِنَّمَا يُجَـٰهِدُ لِنَفْسِهِۦٓ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَغَنِىٌّ عَنِ ٱلْعَـٰلَمِينَ ﴿٦﴾ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّـٰلِحَـٰتِ لَنُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّـَٔاتِهِمْ وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ أَحْسَنَ ٱلَّذِى كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴿٧﴾ وَوَصَّيْنَا ٱلْإِنسَـٰنَ بِوَٰلِدَيْهِ حُسْنًا ۖ وَإِن جَـٰهَدَاكَ لِتُشْرِكَ بِى مَا لَيْسَ لَكَ بِهِۦ عِلْمٌ فَلَا تُطِعْهُمَآ ۚ إِلَىَّ مَرْجِعُكُمْ فَأُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٨﴾ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّـٰلِحَـٰتِ لَنُدْخِلَنَّهُمْ فِى ٱلصَّـٰلِحِينَ ﴿٩﴾ وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَقُولُ ءَامَنَّا بِٱللَّهِ فَإِذَآ أُوذِىَ فِى ٱللَّهِ جَعَلَ فِتْنَةَ ٱلنَّاسِ كَعَذَابِ ٱللَّهِ وَلَئِن جَآءَ نَصْرٌ مِّن رَّبِّكَ لَيَقُولُنَّ إِنَّا كُنَّا مَعَكُمْ ۚ أَوَلَيْسَ ٱللَّهُ بِأَعْلَمَ بِمَا فِى صُدُورِ ٱلْعَـٰلَمِينَ ﴿١٠﴾ وَلَيَعْلَمَنَّ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَلَيَعْلَمَنَّ ٱلْمُنَـٰفِقِينَ ﴿١١﴾ وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لِلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱتَّبِعُوا۟ سَبِيلَنَا وَلْنَحْمِلْ خَطَـٰيَـٰكُمْ وَمَا هُم بِحَـٰمِلِينَ مِنْ خَطَـٰيَـٰهُم مِّن شَىْءٍ ۖ إِنَّهُمْ لَكَـٰذِبُونَ ﴿١٢﴾ وَلَيَحْمِلُنَّ أَثْقَالَهُمْ وَأَثْقَالًا مَّعَ أَثْقَالِهِمْ ۖ وَلَيُسْـَٔلُنَّ يَوْمَ ٱلْقِيَـٰمَةِ عَمَّا كَانُوا۟ يَفْتَرُونَ ﴿١٣﴾ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِۦ فَلَبِثَ فِيهِمْ أَلْفَ سَنَةٍ إِلَّا خَمْسِينَ عَامًا فَأَخَذَهُمُ ٱلطُّوفَانُ وَهُمْ ظَـٰلِمُونَ ﴿١٤﴾ فَأَنجَيْنَـٰهُ وَأَصْحَـٰبَ ٱلسَّفِينَةِ وَجَعَلْنَـٰهَآ ءَايَةً لِّلْعَـٰلَمِينَ ﴿١٥﴾ وَإِبْرَٰهِيمَ إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ وَٱتَّقُوهُ ۖ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿١٦﴾

إِنَّمَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ أَوْثَٰنًا وَتَخْلُقُونَ إِفْكًا ۚ إِنَّ ٱلَّذِينَ تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ لَا يَمْلِكُونَ لَكُمْ رِزْقًا فَٱبْتَغُوا۟ عِندَ ٱللَّهِ ٱلرِّزْقَ وَٱعْبُدُوهُ وَٱشْكُرُوا۟ لَهُۥٓ ۖ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿١٧﴾ وَإِن تُكَذِّبُوا۟ فَقَدْ كَذَّبَ أُمَمٌ مِّن قَبْلِكُمْ ۖ وَمَا عَلَى ٱلرَّسُولِ إِلَّا ٱلْبَلَٰغُ ٱلْمُبِينُ ﴿١٨﴾ أَوَلَمْ يَرَوْا۟ كَيْفَ يُبْدِئُ ٱللَّهُ ٱلْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُۥٓ ۚ إِنَّ ذَٰلِكَ عَلَى ٱللَّهِ يَسِيرٌ ﴿١٩﴾ قُلْ سِيرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ فَٱنظُرُوا۟ كَيْفَ بَدَأَ ٱلْخَلْقَ ۚ ثُمَّ ٱللَّهُ يُنشِئُ ٱلنَّشْأَةَ ٱلْءَاخِرَةَ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ﴿٢٠﴾ يُعَذِّبُ مَن يَشَآءُ وَيَرْحَمُ مَن يَشَآءُ ۖ وَإِلَيْهِ تُقْلَبُونَ ﴿٢١﴾ وَمَآ أَنتُم بِمُعْجِزِينَ فِى ٱلْأَرْضِ وَلَا فِى ٱلسَّمَآءِ ۖ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ مِن وَلِىٍّ وَلَا نَصِيرٍ ﴿٢٢﴾ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ وَلِقَآئِهِۦٓ أُو۟لَٰٓئِكَ يَئِسُوا۟ مِن رَّحْمَتِى وَأُو۟لَٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٢٣﴾ فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِۦٓ إِلَّآ أَن قَالُوا۟ ٱقْتُلُوهُ أَوْ حَرِّقُوهُ فَأَنجَىٰهُ ٱللَّهُ مِنَ ٱلنَّارِ ۚ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَٰتٍ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿٢٤﴾ وَقَالَ إِنَّمَا ٱتَّخَذْتُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ أَوْثَٰنًا مَّوَدَّةَ بَيْنِكُمْ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا ۖ ثُمَّ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ يَكْفُرُ بَعْضُكُم بِبَعْضٍ وَيَلْعَنُ بَعْضُكُم بَعْضًا وَمَأْوَىٰكُمُ ٱلنَّارُ وَمَا لَكُم مِّن نَّٰصِرِينَ ﴿٢٥﴾ ۞ فَـَٔامَنَ لَهُۥ لُوطٌ ۘ وَقَالَ إِنِّى مُهَاجِرٌ إِلَىٰ رَبِّىٓ ۖ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ ﴿٢٦﴾ وَوَهَبْنَا لَهُۥٓ إِسْحَٰقَ وَيَعْقُوبَ وَجَعَلْنَا فِى ذُرِّيَّتِهِ ٱلنُّبُوَّةَ وَٱلْكِتَٰبَ وَءَاتَيْنَٰهُ أَجْرَهُۥ فِى ٱلدُّنْيَا ۖ وَإِنَّهُۥ فِى ٱلْءَاخِرَةِ لَمِنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ﴿٢٧﴾ العنكبوت: ١ – ٢٧

**لغتونه:** (فتنة) ابتلاء ازمويښت (الثقالهم) دثقل جمع اودرانه پېټي ته وايي چي په انسان تکليف راوړي اودلته مراد خپني گناهونه دي (لبث) درنگ کولو اوميشته کېدلوته وايي (افكا) دروغ اوله خانه تړلوته ويل کېږي (تقلبون) تاسو ستنېدونکي ياست.

**دنزول سبب يې:**

سعدبن ابي وقاص رضي الله عنه وايي: مادخپلي مورښه خبره منله اوچي کله مسلمان شوم نويې راته ويل: اى سعده داخه دين دى چي تامنلى ؟! يابه دغه دين پرېږدي که نه بيا زه نه خوراک کوم اونه څښاک څو ومرم نوبه خلگ تاته زما په سبب پېغور درکوي چي دغه دمورقاتل (وژونکى) دى ماورته ويل: موري هسي مکوه زه دغه خپل دين دهيڅ شي لپاره پرېښودلاى نشم وايي چي يوه ورځ اوشپه مي وکتل چي هيڅ خوراک، څښاک يې ونکړل دوهمه شپه او ورځ يې هم دغسي يې دنه خوړلواعتصاب جاري وساتلو نومي ورته وويل: اى مورکى! زمادي په الله تعالى سوگندوي که ستاسل ساوي وي اويوه يوه سادي وار په وار خېژي زه به خپل دين دهيڅ شيزلپاره پرېږ نه ږدم که غواړې خوراک وکړه اوکه دي خوښه وي مه يې کوه او وږي تږي اوسه کله چي زمادغه ټينگ عزم اواراده يې وليدله نويې په خوړلو پيل وکړ اوالله ﷻ داآيت شريف نازل کړ: ﴿ وَوَصَّيْنَا ٱلْإِنسَٰنَ بِوَٰلِدَيْهِ حُسْنًا ۖ وَإِن جَٰهَدَاكَ لِتُشْرِكَ بِى مَا لَيْسَ لَكَ بِهِۦ عِلْمٌ فَلَا تُطِعْهُمَآ ۚ ﴾ دآيتترپايه ([1])

---

([1]) اسباب النزول للواحدي ١٩٥ اوپه څينو روايتونوکي راغلي چي زامنو کله چي به يې وغوښتل هغې ته مړى دوډۍ ورکړي نوبه يې په زوره په خوله کي لرگى وردننه کړ څو خوله پرانيزي اوخوراک، څښاک وکړي.

تفسير:

﴿ الٓمٓ ﴾ دغه له مقطعاتو حروفو څخه دی چي د قرآنکريم په اعجاز باندي تنبيه ورکړي ﴿ أَحَسِبَ ٱلنَّاسُ أَن يُتْرَكُوٓاْ أَن يَقُولُوٓاْ ءَامَنَّا وَهُمْ لَا يُفْتَنُونَ ﴾ آيا ګمان کوي دا خلک چي دوی به پرېښودی شي يوازي پردې چي ووايي موږ ايمان راوړی دی او دوی به وانه ازمويل شي؟ همزه دانکاري استفهام لپاره دی يعني همداسي نه ده لکه چي دوی ګمان کوي بلکه خامخا به ازموينښت راځي څو منافق او مخلص سره بېل شي. ابن جزي وايي: دغه د يو مسلمانانو ټولګي په هکله چي په بېوزلي سره په مکه کي او سېدل نازل شوي چي د دوی له ډلي څخه عمار بن ياسر او نور کسان وو او د قريشو کفارو به هغوی په ډول ډول کړاوونو ځورول او عذاب ازار به يې ورکاوو چي ولي يې اسلام راوړی دی او دوی به زړه تنګي شو نو الله تعالی د دوی دلاسايني لپاره پدې آيت کي ورته پند واستاوو چي دغه ازموينه ده تر څو دوی په تکاليفو باندي زغم ومومي او په خپل ايمان ثبات وکړي او پدې يې وپوهول چي دغه د الله تعالی تېره شوي لاره ده چي کفار په مؤمنانو باندي مسلط کوي چي دوی وازمويي او په ايمان کي صادق او کاذب سره جلا کړي([1]) ﴿ وَلَقَدْ فَتَنَّا ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ﴾ او خامخا په تحقيق موږ ازمويلي وو هغه کسان چي له دوی نه ړومبي وو (په ډول ډول ربړونو او تکاليفو باندي. بيضاوي وايي: معنادا چي دغه د الله پخوانی سنت دی چي په ګردو امتونو کي ترسره شوی او ددې په خلاف هيله او توقع نشي کېدای([2]) ﴿ فَلَيَعْلَمَنَّ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ صَدَقُواْ وَلَيَعْلَمَنَّ ٱلْكَـٰذِبِينَ ﴾ پس خامخا معلوم به کړي هرو مرو الله تعالی.(په ظاهري علم سره هم) هغه کسان چي رښتوني دي د (ايمان په دعوی کي) او خامخا معلوم به کړي الله هرو مرو هغه دروغجنان (په ظاهري علم سره هم) دلته يې له صادقينو څخه په لفظ او فعل باندي تعبير وفرمايو چي ﴿ ٱلَّذِينَ صَدَقُواْ ﴾ او له دروغجنانو څخه يې د اسم فاعل په لفظ ﴿ ٱلْكَـٰذِبِينَ ﴾ باندي ترڅو وښيي چي دروغجنان پخپل وصف کي همېشني دي او دروغ يې په زړونو کي ځای نيولی دی برخلاف د صادقانو ځکه چي فعل تجدد مومي. امام فخر رازي وايي چي: اسم فاعل په ډېرو ځايونو کي د مصدر په رسوخ او ثبوت باندي دلالت کوي خو د ماضي فعل ورباندي دلالت نه کوي لکه وويل شي: (فلان شرب الخمر) پلاني سړي شراب څښلي او ياداچي (فلان شارب الخمر) پلانی سړی شراب څښونکی دی ځکه په لومړی ويناکي ثبوت او تل ترتله والی نشته([3]) ﴿ أَمْ حَسِبَ ٱلَّذِينَ يَعْمَلُونَ ٱلسَّيِّـَٔاتِ أَن يَسْبِقُونَا ۚ ﴾ آيا ګمان کوي هغه کسان چي دوی عمل کوي د بديو (لکه شرک او ګناوي) ددې چي ړومبی به شي دوی پر موږ (انتقام به ځني ونشو اخيستی؟ ﴿ سَآءَ مَا يَحْكُمُونَ ﴾ بد دی هغه حکم چي دوی يې کوي. صاوي وايي: په آيت شريف کي له يوه توبيخ څخه بل سخت توبيخ ته انتقال او لېږد بدل دي لومړی توبيخ د خلکو هغه ګمان دی چي

---

([1]) التسهيل ۳ / ۱۱۳

([2]) البيضاوي ۲ / ۹۷

([3]) التفسير الکبير ۲۵ / ۲۹

دوی به دالله له عذابه وتښتي سره له دې چي په کفربه تل ټينګ ولاړوي (١) ﴿ مَن كَانَ يَرْجُواْ لِقَآءَ ٱللَّهِ فَإِنَّ أَجَلَ ٱللَّهِ لَآتٍ ﴾ هرڅوک چي وي دالله دملاقات اميدلري (په جنت کي) پس بېشکه نېټه دالله دملاقات راتلونکي ده) کله چي داوښودل شوچي بنده په دنياکي خوشی نه پرېښودل کېږي نودلته يې دابيان کړل چي کله څوک په آخرت ايمان ولري اودهغه لپاره عمل وکړي الله يې عمل هيڅکله نه ضائع کوي اوهيله به يې نيمه خوانشي معنادا چي که چېري څوک دالله له لوري دثواب ورکولوپه تمه وي نوپه دنياکي دي په طاعتونوکولو زغم اوصبرکوي په دې لاره کي دي کړاوونه وګالي ترڅوچي له الله سره يوځای شي دالله ملاقات راتلونکی دی اوهر راتلونکی نژدې دی په آيت شريف کي دمسلمانانو لپاره تسلا اودادينه ده بل داچي له دوی سره په دارالنعيم (جنت ) کي د نېکيوژمنه اووعده ده ﴿ وَهُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ ﴾ اوهمدی ښه اورېدونکی (دبندګانودااقوالو) ښه عالم دی (پرټولواحوالويې چي ظاهردي اوکه باطن ) ﴿ وَمَن جَٰهَدَ فَإِنَّمَا يُجَٰهِدُ لِنَفْسِهِۦٓ ﴾ اوهرڅوک چي جهادکوي ( له نفسه سره صبرپه طاعاتوکوي اوله شهواتوڅخه راګرزوي) پس بېشکه همدا خبره ده چي جهادکوي لپاره (دګټي) دځان خپل ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَغَنِىٌّ عَنِ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ بېشکه چي الله خامخابې پروادی له ټولو عالميانوڅخه نه الله ته دخلګوطاعت ګټه رسوي اونه دګنهګاروګناوي هغه ته تاوان رسولای شي ﴿ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ ﴾ اوهغه کسان چي ايمان يې راوړی دی اوکړي يې دي ښه عملونه (ايمان اونېک عملونه يې يوځای کړي دي) ﴿ لَنُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّـَٔاتِهِمْ ﴾ خامخاوبه رژوو موږ ارو مروله دوی نه ګناهونه ددوی (په سبب دايمان اوصالح اعمالوددوی ﴿ وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ أَحْسَنَ ٱلَّذِى كَانُواْ يَعْمَلُونَ ﴾ اوخامخاجزابه ورکړو موږ دوی ته جزاء دهغه (عمل) چي وو دوی چي کاووبه يې (په اسلام کي) ﴿ وَوَصَّيْنَا ٱلْإِنسَٰنَ بِوَٰلِدَيْهِ حُسْنًا ﴾ او(مؤکد ) امرکړی دی موږپرانسان دنېکي کول له خپل مور او پلارسره ځکه چي هغوی دده دوجودسبب شوی اوپرده يې نهايته زيات فضل اواحسان پوردی چي پلاربه ورته نفقه رسوله اوموربه وريباندي شفقت لوراوو . صاوي وايې چي الله پاک ځکه اولادونو ته دنېکي کولو امر وفرمايوچي دوی په نافرماني اوقسوت روږدي دي نوالله په داسي څه مکلف کړل چي ددوی له طبيعت څخه مخالف وو اوموراوپلارخوداولادلپاره درحمت اوشفقت سرچينه دي ځکه نوالله هغوی ته له اولادونوسره دنېکي کولومارېينه نه ده کړي اوپنځپل حال يې پرې اينبي دي (٢) ﴿ وَإِن جَٰهَدَاكَ لِتُشْرِكَ بِى مَا لَيْسَ لَكَ بِهِۦ عِلْمٌ فَلَا تُطِعْهُمَآ ﴾ اوکه چېري کوښښ کوي (دوی دواړه) له تاسره چي شريک ونيسې ته له ماسره هغه څيزچي نشته تاته (په الوهيت د) هغه کي هيڅ علم پس ته اطاعت ددوی دواړومکوه ، ځکه چي (لاطاعة لمخلوق فی معصية الخالق) ﴿ إِلَىَّ مَرْجِعُكُمْ

---

(١) حاشية الصاوي على الجلالين ٣ / ٢٣٠

(٢) حاشية الصاوي على الجلالين ٣ / ٢٣١

﴿ فَأُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾ خاص ماته دی بیا راتله ستاسي (تولو) پس زه به تاسي خبر کړم (جزابه درکړم) پر (هغو) اعمالوچي تاسي به کول ، یعني ماته دګردوخلګوکه مؤمنان دي که کافران نېکان دي که فاجران هرچا ته به دهغه له کړو وړوسره سمه جزاورکړم اوپدې کي دهغه چالپاره چي دمور اوپلار سره یې احسان کړی وي اودهدایت متابعت یې کړی او غوره کړی وي دنېکي وعده ده اوهغه لپاره چي دمور اوپلاره آزار کتي اوکږه لاره یې نیولی وي تهدید او اخطاردی ﴿ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَنُدْخِلَنَّهُمْ فِي الصَّالِحِينَ ﴾ اوهغه کسان چي ایمان یې راوړی دی اوکړي یې دي ښه (عملونه) خامخا داخل به کړو موږ دوی (په تولی د) صالحانو کي په جنت کي. قرطبي وایې چي الله تعالی دعمل کونکومؤمنانو په حال تمثیل څکه تکرار راوور چي ددوی خپلو مرتبوته هڅونه وکړي اوپه ﴿ الصَّالِحِينَ ﴾ کي مبالغه شته یعني هغوی چي په نهایت صلحیت او وروستي پړاو کي اوسي کله چي الله دمؤمنانو مخلصانو حال وستایو وروسته یې دمذبذبو منافقانو حال داسي بیان کړچي: ﴿ وَمِنَ النَّاسِ مَن يَقُولُ آمَنَّا بِاللَّهِ فَإِذَا أُوذِيَ فِي اللَّهِ جَعَلَ فِتْنَةَ النَّاسِ كَعَذَابِ اللَّهِ ﴾ ( اوځیني له خلګو هغه څوک دي چي (تش په خوله) وایې ایمان راوړی دی موږ(هم) په الله پس کله چي دوی ته سختي ورسوله شي (په لاره د ) الله کي نووګرزوي فتنه سختي دخلګو په شان دعذاب دالله) یعني کله چي ورته سختي ورسول شي نوله ایمانه مرتد اووګرزي اودغه سختي دده له ایمانه د۔ځ اړولو سبب شي اودغه لکه دالله عذاب غوندي ګڼي هغه عذاب چي انسان له کفرڅخه راګرزوي. مفسرین کرام وایې چي دغه تشبیه چي فرمایې: ﴿ كَعَذَابِ اللَّهِ ﴾ ددې لپاره دی چي دالله عذاب د مؤمنانوله کفرڅخه مانع کېږي نو دغسي منافقان دکوم تکلیف په رسېدلوایمان پرېږدي اودایمان مانع یې ګرزيَ دایمان مقتضا او غوښتنه خوداده چي صبریې درلودی او مېړانه یې ښکاره کړي وای اوپه دغسي عذاب کي یې خوندونه احساسولای اوپه محنت کي یې انعام ګڼلای څکه چي دنېکي خاتمې خاوندان متقیان دي. امام فخر رازي وایې چي دمکلفینوډلي درې دي یوه ډله مؤمنان چي نېک اعتقادیې څرګند وي بله کافران چي کفریې ښکاره وي دریمه ډله هغه منافقان دي چي په خوله دایمان نارې وهي خوپه زړه کي یې کفر خوندي وي نوکله چي الله تعالی لومړنی دوه ډلي پدې آیت شریف کي یادي کړې چي: ﴿ فَلَيَعْلَمَنَّ اللَّهُ الَّذِينَ صَدَقُوا وَلَيَعْلَمَنَّ الْكَاذِبِينَ ﴾ نویې دریمه ډله داسي وستایله چي ﴿ وَمِنَ النَّاسِ مَن يَقُولُ آمَنَّا بِاللَّهِ ﴾ اوپه آیت شریف کي باریکي اولطیفه داده چي الله تعالی دصبرکونکي مؤمن دشرافت او دکافرمنافق دسپکتیادښکاره کولواراده کړي هلته یې وویل چي مسلمان مؤمن ته تکالیف ورسېږي چي دین پرېږدي مګرهغه دین نه پرېږدي اوچي منافق ته کومه سختي ورسېږي نو هغه پخپله الله پرېږدي او کفر غوره کوي داامکان یې درلوده چي په خوله یې دهغوی موافقت کړی وای اوزړه یې په ایمان مطمئن وای خوهسي یې ونکړل یومخ ایزه یې ایمان اوالله ته شاکړه [1] ﴿ وَلَئِن جَاءَ نَصْرٌ مِّن

---

[1] التفسیرالکبیر ۲۵ / ۳۷

﴿ رَبِّكَ لَيَقُولُنَّ إِنَّا كُنَّا مَعَكُمْ ﴾ اوقسم دی که چېرې راشي مددګاري (دمؤمنانو) له (لوري) درب ستا(چي فتح او غنيمت راشي) نومخامخا دغه (منافقان) به وواييې خامخابېشکه موږهم له تاسي سره يو(نوموږ هم په غنيمت کي شريک کړئ) يعني کله چي الله تعالی مؤمنانو ته فتح اونصرت نصيب کړي نودغه منافقان وايي چي موږهم ستاسي ملګرتياکوله اوپه دښمنانومو درسره يوځای ګذارونه کول اوس نودغه ولجي او غنيمتونه موږته هم راووېشئ الله تعالی ددوی ترديدداسي فرمايي: ﴿ أَوَلَيْسَ اللَّهُ بِأَعْلَمَ بِمَا فِي صُدُورِ الْعَالَمِينَ ﴾ آيانه دی الله ښه عالم په هغه (اخلاص اونفاق) چي په سينو(زړونو) دخلګوکي دي؟ (بلکه په هرڅه باندي الله ښه عالم دی وروسته الله داسي تاکيدفرمايي: ﴿ وَلَيَعْلَمَنَّ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَلَيَعْلَمَنَّ الْمُنَافِقِينَ ﴾ (اوخامخامعلوم دی هرومرو الله ته هغه څوک چي ايمان يې راوړی دی اوخامخامعلوم دي الله ته منافقان) يعني الله به ددوی حال بندګانو ته ښکاره کړي ترڅودوی سره بېل شي ، منافق رسواشي اوصادق مؤمن شرافت ښکاره شي . مفسرين کرام وايي چي مرادله ﴿ وَلَيَعْلَمَنَّ اللَّهُ ﴾ څخه اظهاردعلم دی لپاره دخلګوترڅودوی ته معلوم شي الله ته خومعلوم دی هرهغه څه چي شوي اوياکېدونکي دي هيڅ څيزله الله څخه پټ اوالونيا نه دی نودلته له علم څخه په نسبت دالله تعالی کي ځرګندونه اوښکارونه مراده ده نه هغه علم دغيب اوخفاء اوابن عباس ﷺ دلته دعلم تفسيرپه رؤيت سره کړی دی(¹) ﴿ وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلَّذِينَ آمَنُوا اتَّبِعُوا سَبِيلَنَا وَلْنَحْمِلْ خَطَايَاكُمْ ﴾ اوواييې هغه کسان چي کافران شوي دي هغوکسانو ته چي ايمان يې راوړی دی تاسي زموږ دلاري متابعت وکړي (په دنياکي) اوباربه کړو موږ پرځانونوخپلوستاسي ګناوي (اوعذاب که چېري هلته عذاب وو) ابن کثيروايي ددې مثال داسي دی لکه څوک چي چاته وايي: دغه کار وکړه ګناه يې زماپه غاړه ! که چاپوښتنه وکړه چي (ولنحمل) دامرصيغه ده نوځرنګه يوتن پخپل ځان دامرصيغه کارولی شي؟ ځواب داچي که څه هم دامرصيغه ده خومعنايي دشرط اوجزاء ده يعني که تاسوزموږ متابعت وکړ نوبه موږ ستاسي ګناوي په خپله اوږه بارکړو ﴿ وَمَا هُم بِحَامِلِينَ مِنْ خَطَايَاهُم مِّن شَيْءٍ ﴾ حال داچي نه دي دوی پخپل ځان اخيستونکي له ګناهونوددوی هيڅ شی(ځکه چي هيڅوک دبل چاپېټی نه وړي) ﴿ إِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ ﴾ بېشکه دوی خامخادروغجنان دي (پدې وعده کي) الله وروسته فرمايي ﴿ وَلَيَحْمِلُنَّ أَثْقَالَهُمْ وَأَثْقَالًا مَّعَ أَثْقَالِهِمْ ﴾ اوخامخاباربه کړی هرو مرودغه (کفار) بارونه درانه دګناهونوخپلو اونوردرانه بارونه هم (دهغه چاچي دوی ګمراه کړي ) سره له بارونوخپلو (بې له دې چي دهغوی له درنوپېټوڅخه دي څه کم شوي وي لکه چي په حديث شريف کي راځي کله چي څوک يوبل څوک ګمراهي اوضلالت ته راوبولي نوپه بلونکي هغه ټولي ګناوي کوم چي تابع يې کړي دي راځي بې له دې چي دهغه له ګناهونودي څه کم

(¹) وګوره هغه چي علامه ابن کثيرپدې هکله ليکلي مختصرابن کثير ٣ / ٢٨

شوي وي (١)﴿ وَلَيُسْـَٔلُنَّ يَوْمَ ٱلْقِيَـٰمَةِ ﴾ اوخامخابه وپوښتېدلى شي دوى هرومرو دقيامت په ورځ (په پوښتنه دتوبيخ اوترټني) ﴿ عَمَّا كَانُوا۟ يَفْتَرُونَ ﴾ له هغودروغو چي دوى به له ځانه جوړول (اوپه الله به يې تړل) بيا الله تعالى خپل پيغمبرته دنوح ﷺ كيسه دتسليت په ډول بيانوي چي هغه عليه السلام له خپله تبره (قومه) ډېرتكليفونه وګالل ﴿ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِۦ فَلَبِثَ فِيهِمْ أَلْفَ سَنَةٍ إِلَّا خَمْسِينَ عَامًا ﴾ اوخامخاپه تحقيق موږ نوح لېږلى ووقوم دده ته پس موده يې تېره كړه په دوى كي زركاله (لپاره دتوحيددبلني) مګرپنځوس كاله كم ( له زرونه يعني نه نيم سوه كاله) چي هغوى دبتانوعبادت كاوودنوح ﷺ يې تكذيب وكړ ﴿ فَأَخَذَهُمُ ٱلطُّوفَانُ وَهُمْ ظَـٰلِمُونَ ﴾ پس ونيول دوى طوفان (غرق شول) حال داچي دوى ظالمان وو(په كفراوضلالت كي غوپه وو. ابوالسعودوايي چي طوفان هرهغه څه ته وايې چي په شدت اوډېروالي په يوشي راچارپېراوځرخېږي هغه كه بادوي ، كه اوبه اوكه تاريكه خوداوبوپه سيل كي غالب استعمالېږي (٢) امام رازي وايي چي: دالله تعالى په دې ويناكي چي فرمايي ﴿ وَهُمْ ظَـٰلِمُونَ ﴾ يوې باريكي ته اشاره ده هغه داچي الله تعالى په يوازي ظلم پيل كولوباندي څوك نه نيسي بلكه كله چي په ظلم كولوباندي اصراركوي هغه وخت يې هلاكوي څكه يې وويل ﴿ وَهُمْ ظَـٰلِمُونَ ﴾ يعني دوى يې هله هلاك كړل چي په ظلم كي بوخت ول (٣)﴿ فَأَنجَيْنَـٰهُ وَأَصْحَـٰبَ ٱلسَّفِينَةِ ﴾ نو نجات مو وركړده ته اوخاوندانودبېړۍ ته (چي له ده سره وو له اهل اولاده اومؤمنانو) ﴿ وَجَعَلْنَـٰهَآ ءَايَةً لِّلْعَـٰلَمِينَ ﴾ اوومو ګرزوله دغه (كيسه يوه لويه) نښه لپاره (دعبرت) عالميانوته (چي پند ترې واخلي ) ﴿ وَإِبْرَٰهِيمَ إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ وَٱتَّقُوهُ ﴾ او(يادكړه كيسه د) ابراهيم كله چي خپل قوم ته يې وويل: چي تاسي عبادت دالله كوئ او ووېرېږئ (له عذابه) ددغه (الله) ابن كثيروايي چي الله تعالى له خپل بنده پيغمبراوخليل څخه اخباركوي هغه چي دحنفاوو امام وواوخپل قوم يې دالله وحدانيت ته راوبللواو ورته يې وويل چي يوازي دهمدغه ذات دنعمتونوشكر كوى بل څوک له ده پرته دنعمت بخښونكى نشته (٤)﴿ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴾ دغه ( عبادت اوويره) غوره ده تاسي ته ( له كفره) كه چېري يى تاسي چي پوهېږى ؟ (په خپل خيرياندي له خپله شره څخه اوخيراوشر بېلولاى شى ؟) ﴿ إِنَّمَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ أَوْثَـٰنًا وَتَخْلُقُونَ إِفْكًا ﴾ بېشكه همداخبره ده چي عبادت كوئ تاسي بې له الله نه دبُتانو(چي نه ګټه رسولاى شي اونه ضرر دفع كولاى شي تاسوپخپلو لاسونو توږلي اوجوړكړي دي)

---

(١) دا حديث شريف په صحيحينو كي راغلي.
(٢) ابوالسعود ٤ / ١٢٢
(٣) التفسيرالكبير ٢٥ / ٤٢
(٤) مختصرابن كثير ٣ / ٣٢

اوجوړوی دروغ له ځانه (چي خدایان یې بولی) ابن عباس وایې معناداچي تاسي دوی پخپل لاس جوړوی اود دروغو تصویرکوی (۱) ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ تَعۡبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ لَا يَمۡلِكُونَ لَكُمۡ رِزۡقٗا﴾ بېشکه هغه کسان چي تاسي یې عبادت کوي بې له الله نه نه دي مالکان دوی تاسي ته دروزي (رزق) ﴿فَٱبۡتَغُواْ عِندَ ٱللَّهِ ٱلرِّزۡقَ﴾ پس دالله په نزد روزي طلب کړئ ﴿وَٱعۡبُدُوهُ وَٱشۡكُرُواْ لَهُۥٓ﴾ اوعبادت کوئ دهغه (الله یوازي) اوشکروباسئ همغه (الله) ته (په هغونعمتونوېې چي تاسوته یې درکړي دي ﴿إِلَيۡهِ تُرۡجَعُونَ﴾ همدغه (الله) ته به بیرته بېولی کېږئ تاسي (دقیامت په ورځ اوهرچاته به په خپل عمل جزاورکړي) ﴿وَإِن تُكَذِّبُواْ فَقَدۡ كَذَّبَ أُمَمٞ مِّن قَبۡلِكُمۡۖ﴾ (اوکه نسبت ددروغو وکړ تاسي (ای کفارو رسول الله ته) نوپه تحقیق نسبت ددروغو کړی وو (خپلونبیانوته) ډېرو قومونوپخواله تاسي) کله چي دتوحیدله بیان څخه وزګاراوفارغ شونودتهدید څرګندونه یې وکړه چي که چېري تاسي زماتکذیب وکړ ستاسي تکذیب ماته زیان نه رارسوي بلکه تاسوخپلوځانونوته ور باندي زیان رسوئ پخواهم امتونو دخپلوانبیاووتکذیب کړی وواو دالله په عذاب اخته شوي وو پرتاسوبه هم هغه څه راشي کوم چي پرهغوی راغلي وو (۲) ﴿وَمَا عَلَى ٱلرَّسُولِ إِلَّا ٱلۡبَلَٰغُ ٱلۡمُبِينُ﴾ اونشته پررسول باندي مګررسونه (دپیغام) ښکاره (خلګوته هدایت کول دهغه کار نه دی) طبري وایې چي ﴿ٱلۡبَلَٰغُ ٱلۡمُبِينُ﴾ معناهغه پیغام دی چي اورېدونکي ته یې مقصد روښانه ښکاره وي اوپه هغه څه چي دمبلغ (رسونکي) مرادوي پوهېدلای شي (۳) ﴿أَوَلَمۡ يَرَوۡاْ كَيۡفَ يُبۡدِئُ ٱللَّهُ ٱلۡخَلۡقَ ثُمَّ يُعِيدُهُۥٓۚ﴾ آیانهویني (دغه منکران له بعثه) چي څرنګه الله پیداکوي اول داخلګ بیابه یې دوهم ځلي هم پیداکړي (نودوی دي له لمړي ځل پیداینښت څخه په حشراواعاده استدلال وکړي قتاده وایې معناداچي آیادوی ولي په نظر اواستدلال دانه ګوري چي څرنګه به الله اجسام له مرګه وروسته را ګرزوي؟ ﴿إِنَّ ذَٰلِكَ عَلَى ٱللَّهِ يَسِيرٞ﴾ بېشکه دغه (اعاده) پرالله آسانه ده نودوی ولي له بعث او نشور څخه منکرېږي؟ هغه څوک چي په لمړي پیداینښت قدرت لري هغه بیاپه اعاده قدرت لري. قتاده وایې دآیت معناځینو له خولې داچي دوی ولي نه ګوري چي الله تعالی مېوې څرنګه لومړی پیداکوي او بیاورسېږي وروسته بیافاني شي بیایې تل ترتله راپیداکوي همداسي دانسان پیداینښت

---

(۱) څرګنده دادی چي دغه دي له خلقت (پیداینښت) څخه اخیستل شوی وی اودغه دمجاهداوحسن رحمهما الله ویناده ابن جریرغوره کړي چاپیاویلي چي له اختلاق څخه اخیستل شوی چي دروغ یې معناده.

(۲) ابن کثیروایې چي له سیاقه ظاهره داده چي دادي دابراهیم خلیل الله کلام وي چي دمعادلپاره وریاندي دلیل وایې څکه چي وروسته له دې تولوبیاوایې ﴿فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوۡمِهِۦٓ﴾ اوامام طبري بیادې لوري ته تللی چي دغه دالله تعالی کلام دی چي دمکې کفاروته وایې اودرسول الله دلاساینه کوي دابراهیم علیه السلام کلام نه دی هغه چي ابن کثیروایې څرګند دی والله اعلم.

(۳) الطبري ۲۰ ۸۹

کېږي وروسته يې اولادونه وشي اوبيادي ومري اوداولادونو اولادونه يې پيداشي همداسي تول ساکښن حيوانات دي نوکله چي تاسو دالله قدرت په ابدآء اوايجادپه سترګووينئ همدغه (الله) په بيرته راژوندي کولوهم قادردي اوچي ديوشي اراده وکړي ورته ووايي موجودشه (کن) (فيکون) نو موجودشي (١) ﴿ قُلْ سِيرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ فَٱنظُرُوا۟ كَيْفَ بَدَأَ ٱلْخَلْقَ ﴾ (ووايه (اى محمده دوى ته!) چي وګرزئ تاسي په ځمکه کي پس وګورئ چي څرنګه الله شروع کړي دي پيداينښت له نشتوالي څخه) يعني اى محمده! دغومنکرانوته ووايه چي ولاړشئ دځمکي ګوټ ګوټ ته وګورئ چي عظيم او قدير الله څرنګه مخلوق پيداکړی سره له ډېروالي دهغوی اومختلف والي د هيئاتوددوی همداسي ددوی رنګونه ژبي اوطبيعتونه سره څومره توپيرلري؟ اووګورئ ددوی پخوانيوهستوګن ځايونوته چي هغوی الله څنګه هلاک کړي دي څودالله تعالى بشپړقدرت درته معلوم شي ﴿ ثُمَّ ٱللَّهُ يُنشِئُ ٱلنَّشْأَةَ ٱلْـَٔاخِرَةَ ﴾ بيابه الله پيداکړي پيداکول وروستني هم (په بعث بعد الموت کي) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ﴾ بېشکه الله په هرشي باندي ښه قادردی (چي ځيني يې ابدأ اوعاده ده) ﴿ يُعَذِّبُ مَن يَشَآءُ وَيَرْحَمُ مَن يَشَآءُ ﴾ عذاب ورکوي هرهغه چاته چي اراده و فرمايي (د تعذيب يې) اورحم کوي په هغه چاچي اراده وفرمايي (درحمت يې) يعني الله پاک تصرف کونکی حاکم ذات دی هغه څه چي خوښه يې شي هغه کوي الله لره پيداينښت اوالله لره حکم دی هيڅوک له الله څخه دهغه دکړوپوښتنه نه کوي اوله مخلوقاتوڅخه پوښتنه کول کېږي ﴿ وَإِلَيْهِ تُقْلَبُونَ ﴾ اوخاص همدغه (الله) ته تاسي بېرته بېول کېږئ (په ورځ دقيامت) ﴿ وَمَآ أَنتُم بِمُعْجِزِينَ فِى ٱلْأَرْضِ وَلَا فِى ٱلسَّمَآءِ ﴾ اونه يئ تاسي (اى خلکو) عاجزونکي (دالله) په ځمکه کي اونه په آسمان کي (يعني له الهي عذاب څخه نه په ځمکي کي خلاصون شته اونه هم په آسمان کي قرطبي وايي معناداچي که تاسي په آسمان کې هم ياست الله جل جلاله عاجزولای نشی لکه چي الله فرمايي ﴿ وَلَوْ كُنتُمْ فِى بُرُوجٍ مُّشَيَّدَةٍ ﴾ النسآء ٧٨) (٢) ﴿ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ مِن وَلِىٍّ وَلَا نَصِيرٍ ﴾ اونشته تاسي ته غيرله الله هيڅ دوست (چي تاسي دده له عذابه وساتي) اونه هيڅ مددګار (چي ستاسي مرسته وکړي په دفع دعذاب کي) ﴿ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ بِـَٔايَـٰتِ ٱللَّهِ وَلِقَآئِهِۦٓ ﴾ اوهغه کسان چي کافران شوي دي په آيتونودالله اوپه ملاقات ددغه (الله) يعني کافران دي په قرآن اوبعث ﴿ أُو۟لَـٰٓئِكَ يَئِسُوا۟ مِن رَّحْمَتِى ﴾ دغه (منکر) کسان ناامیده دي زماله رحمته. ابن جريروايي چي دغه به په آخرت کي هغه وخت وي کله چي عذاب ووينئ (٣) ﴿ وَأُو۟لَـٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ اودغه کسان مقرردی دوی ته ډېردردناک عذاب ﴿ فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِۦٓ إِلَّآ أَن قَالُوا۟ ٱقْتُلُوهُ أَوْ حَرِّقُوهُ ﴾ (پس نه وو ځواب دقوم ددغه (ابراهيم) مګردا

---

(١) القرطبي ١٣/ ٣٣٦

(٢) قرطبي ١٣/ ٣٣٧

(٣) الطبري ٢٠/ ٩٠

وو چي وويل دوی ووژنئ دغه (ابراهيم) يابې وسوځوئ) يعني كله چي ابراهيم عليه السلام دوی دالله لوري ته دعوت كړل اوله بتانوبې منع كړل نوددوی مشرانو مجرمانو همداسي وويل: چي وبې وژنئ، يابې وسوځوئ چي له غمه بې بېغمه شی ﴿فَأَنجَىٰهُ ٱللَّهُ مِنَ ٱلنَّارِ﴾ (پس نجات وركړ دغه (ابراهيم) ته الله له اوره) يعني دوی په اوركي وغورځاوو خوالله تعالى هغه ورته (بردًا وسلامًا) وگرزاوو ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأٓيَٰتٍ لِّقَوۡمٍ يُؤۡمِنُونَ﴾ بېشكه په دغه (نجات وركولو ابراهيم ته له اوره) كي خامخا ډېر دلائل دي (دقدرت (دالله) دپاره دهغه قوم چي ايمان بې راوړی دی (په وجود دالله اوبشپړ قدرت اوجلال دده)

﴿وَقَالَ إِنَّمَا ٱتَّخَذۡتُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ أَوۡثَٰنًا مَّوَدَّةَ بَيۡنِكُمۡ فِي ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا﴾ (وويل (ابراهيم خپل قوم ته دتوبيخ په توگه) بېشكه همداخبره ده چي تاسي نيولي دي غيرله الله بتان (په خدايې سره) دپاره ددوستي ستاسي په مينځ كي په دغه ژوند ددنياكي (چي په عبادت بې راټول ياست) ﴿ثُمَّ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ يَكۡفُرُ بَعۡضُكُم بِبَعۡضٍ﴾ بيا په ورځ دقيامت كي بېزاره (منكر) به شي ځيني ستاسي له ځينو نورو سره (دغه دوستي به موپه دښمني بدله شي) ﴿وَيَلۡعَنُ بَعۡضُكُم بَعۡضًا﴾ اولعنت به وايي ځيني ستاسي (چي تابعان دي) پرځينو نورو (چي متبوعان دي) ځكه چي په دنياكي دوستي بې دالله لپاره نه وه) ﴿وَمَأۡوَىٰكُمُ ٱلنَّارُ وَمَا لَكُم مِّن نَّٰصِرِينَ﴾ اوستاسي دهستوگني ځای اوردی اونه به وي تاسي ته (په قيامت كي) هيڅوك له مددگارانو (چي خني وموژغوري) ﴿فَـَٔامَنَ لَهُۥ لُوطٞۘ وَقَالَ إِنِّي مُهَاجِرٌ إِلَىٰ رَبِّيٓۖ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلۡعَزِيزُ ٱلۡحَكِيمُ﴾ پس ايمان راووړ (اوتصديق بې وكړ) دغه (ابراهيم) ته لوط (چي وراره بې وو اوكله چي بې څرگندي نښانې وليدي لومړی تن وو چي وربانديي ايمان بې راووړ) اووويل (ابراهيم) بېشكه زه هجرت كوونكی يم (له خپله هيواده دالله درضالپاره) رب زماته بېشكه چي همدی بنه غالب دی (چي څوک وربانديي اعتمادوكړي نه بې ذليل كوي) بنه خاوند دحكمت دی (چي هركارپه تدبيراومصلحت سره كوي) مفسرين كرام وايي چي ابراهيم عليه السلام دعراق له كليودشام په لور ولېږدېدوترڅو د دين په خپراوي اوڅرگندولو كي پرمختگ وكړي ﴿وَوَهَبۡنَا لَهُۥٓ إِسۡحَٰقَ وَيَعۡقُوبَ وَجَعَلۡنَا فِي ذُرِّيَّتِهِ ٱلنُّبُوَّةَ وَٱلۡكِتَٰبَ﴾ اووبانبه موړدغه (ابراهيم) ته زوی اسحاق او(لمسي) يعقوب اوگرزولي وو موږپه اولاده ددغه (ابراهيم) كي نبوت اوكتاب (يعني دوی موپه دغه فضل اواحسان ځانگړي كړل چي گرد انبياء دده له نسله اوآسماني كتابونه بې دده په زامنونازل كړل ابن كثيروايي چي: دغه يوستر خصلت دی سره له دې چي الله هغه خپل خليل غوره كړی اودخلگولپاره بې پېشواټاكلی له ده وروسته هيڅ پيغمبر نشته مگرهغه دده له اولادې څخه دی دبني اسرائيلوگردانبياء دده دزوی يعقوب عليه السلام له اولادې څخه دي اودا سماعيل عليه السلام له اولادې څخه پرته له رسول الله محمد عليه افضل التحية والتسليم نه بل څوک نشته ﴿وَءَاتَيۡنَٰهُ أَجۡرَهُۥ فِي ٱلدُّنۡيَا﴾ او وركړی موو دغه ابراهيم) ته اجر

دده په دنیاکي (چي ټول اديان يې په ښکه ثنا يادونه کوي) ﴿ وَإِنَّهُۥ فِى ٱلْـَٔاخِرَةِ لَمِنَ ٱلصَّـٰلِحِينَ ﴾ او بېشكه هغه په آخرت كي له صالحانو څخه دی (دغه په ابو الانبياء( دانبیاوو په پلار) باندي غټه ثناده).

بلاغت:

پدې آیتونو کي چي دبدیع اوبیان کومي ښکلاوي شته لنډ يزيې دادی:

۱- استفهام دتوبیخ، تقریع او انکارلپاره دی لکه داچي: ﴿ أَحَسِبَ ٱلنَّاسُ أَن يُتْرَكُوٓاْ أَن يَقُولُوٓاْ ءَامَنَّا ﴾.

۲- دطباق صنعت چي د ﴿ صَدَقُواْ ..... ٱلْكَـٰذِبِينَ ﴾ او ﴿ ءَامَنُواْ ..... ٱلْمُنَـٰفِقِينَ ﴾ او ﴿ يُعَذِّبُ ..... وَيَرْحَمُ ﴾ او ﴿ يُبْدِئُ ..... يُعِيدُهُۥٓ ﴾ ترمینځ راغلی دی.

۳- تاکید په ان او لام سره لکه چي فرمایي: ﴿ فَإِنَّ أَجَلَ ٱللَّهِ لَـَٔاتٍ ﴾ ځکه مخاطب منکردی.

۴- دمبالغې صیغه لکه ﴿ وَهُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ ﴾.

۵- غیرتام دجناس صنعت چي په ﴿ يَسِيرٌ ..... سِيرُواْ ﴾ کي شته.

۶- مرسله مجمله تشبیه لکه ﴿ فِتْنَةَ ٱلنَّاسِ كَعَذَابِ ٱللَّهِ ﴾ وجه دشبه حذف شوي نومجمله بلل کېږي.

۷- په تعبیرکي تفنن لکه چي فرمایي: ﴿ أَلْفَ سَنَةٍ إِلَّا خَمْسِينَ عَامًا ﴾ هسي يې ونه ويل چي (الاخمسین سنة) ځکه په یوه کلام کي تکرار دبلاغت مخالف دی مګرهغه وخت بیادامخالفت نشته چي دکوم مقصد لپاره لکه تفخیم اویاتهویل راوړل شي لکه ﴿ ٱلْقَارِعَةُ مَا ٱلْقَارِعَةُ ﴾.

۸- داطناب اسلوب پدې آیت کي ﴿ إِنَّمَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ أَوْثَـٰنًا وَتَخْلُقُونَ إِفْكًا ۚ إِنَّ ٱلَّذِينَ تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ دغه دبتانو دعبادت دبدي او شناعت لپاره راغلی دی.

۹- دایجاز اسلوب چي ﴿ ٱقْتُلُوهُ ..... حَرِّقُوهُ ﴾ بیا وروسته فرمايي: ﴿ فَأَنجَىٰهُ ٱللَّهُ مِنَ ٱلنَّارِ ﴾ یعني دوی اورته وغورځاوو او بیا الله نجات ورکړ دغه ددوی اورته غورځول په آیت شریف دایجاز لپاره حذف شوی دی.

۱۰- لطیفه او باریکه استعاره چي ﴿ وَلَيَحْمِلُنَّ أَثْقَالَهُمْ ﴾ ګناهونه يې له درنوبارونوسره تشبیه کړي ځکه هغه هم دانسان اوږي درنوي

***

الله تعالى فرمايي:

﴿ وَلُوطًا إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِۦٓ إِنَّكُمْ لَتَأْتُونَ ٱلْفَٰحِشَةَ مَا سَبَقَكُم بِهَا مِنْ أَحَدٍ مِّنَ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٢٨﴾ أَئِنَّكُمْ لَتَأْتُونَ ٱلرِّجَالَ وَتَقْطَعُونَ ٱلسَّبِيلَ وَتَأْتُونَ فِى نَادِيكُمُ ٱلْمُنكَرَ ۖ فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِۦٓ إِلَّآ أَن قَالُوا۟ ٱئْتِنَا بِعَذَابِ ٱللَّهِ إِن كُنتَ مِنَ ٱلصَّٰدِقِينَ ﴿٢٩﴾ قَالَ رَبِّ ٱنصُرْنِى عَلَى ٱلْقَوْمِ ٱلْمُفْسِدِينَ ﴿٣٠﴾ وَلَمَّا جَآءَتْ رُسُلُنَآ إِبْرَٰهِيمَ بِٱلْبُشْرَىٰ قَالُوٓا۟ إِنَّا مُهْلِكُوٓا۟ أَهْلِ هَٰذِهِ ٱلْقَرْيَةِ ۖ إِنَّ أَهْلَهَا كَانُوا۟ ظَٰلِمِينَ ﴿٣١﴾ قَالَ إِنَّ فِيهَا لُوطًا ۚ قَالُوا۟ نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَن فِيهَا ۖ لَنُنَجِّيَنَّهُۥ وَأَهْلَهُۥٓ إِلَّا ٱمْرَأَتَهُۥ كَانَتْ مِنَ ٱلْغَٰبِرِينَ ﴿٣٢﴾ وَلَمَّآ أَن جَآءَتْ رُسُلُنَا لُوطًا سِىٓءَ بِهِمْ وَضَاقَ بِهِمْ ذَرْعًا وَقَالُوا۟ لَا تَخَفْ وَلَا تَحْزَنْ ۖ إِنَّا مُنَجُّوكَ وَأَهْلَكَ إِلَّا ٱمْرَأَتَكَ كَانَتْ مِنَ ٱلْغَٰبِرِينَ ﴿٣٣﴾ إِنَّا مُنزِلُونَ عَلَىٰٓ أَهْلِ هَٰذِهِ ٱلْقَرْيَةِ رِجْزًا مِّنَ ٱلسَّمَآءِ بِمَا كَانُوا۟ يَفْسُقُونَ ﴿٣٤﴾ وَلَقَد تَّرَكْنَا مِنْهَآ ءَايَةًۢ بَيِّنَةً لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴿٣٥﴾ وَإِلَىٰ مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا فَقَالَ يَٰقَوْمِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ وَٱرْجُوا۟ ٱلْيَوْمَ ٱلْءَاخِرَ وَلَا تَعْثَوْا۟ فِى ٱلْأَرْضِ مُفْسِدِينَ ﴿٣٦﴾ فَكَذَّبُوهُ فَأَخَذَتْهُمُ ٱلرَّجْفَةُ فَأَصْبَحُوا۟ فِى دَارِهِمْ جَٰثِمِينَ ﴿٣٧﴾ وَعَادًا وَثَمُودَا۟ وَقَد تَّبَيَّنَ لَكُم مِّن مَّسَٰكِنِهِمْ ۖ وَزَيَّنَ لَهُمُ ٱلشَّيْطَٰنُ أَعْمَٰلَهُمْ فَصَدَّهُمْ عَنِ ٱلسَّبِيلِ وَكَانُوا۟ مُسْتَبْصِرِينَ ﴿٣٨﴾ وَقَٰرُونَ وَفِرْعَوْنَ وَهَٰمَٰنَ ۖ وَلَقَدْ جَآءَهُم مُّوسَىٰ بِٱلْبَيِّنَٰتِ فَٱسْتَكْبَرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ وَمَا كَانُوا۟ سَٰبِقِينَ ﴿٣٩﴾ فَكُلًّا أَخَذْنَا بِذَنۢبِهِۦ ۖ فَمِنْهُم مَّنْ أَرْسَلْنَا عَلَيْهِ حَاصِبًا وَمِنْهُم مَّنْ أَخَذَتْهُ ٱلصَّيْحَةُ وَمِنْهُم مَّنْ خَسَفْنَا بِهِ ٱلْأَرْضَ وَمِنْهُم مَّنْ أَغْرَقْنَا ۚ وَمَا كَانَ ٱللَّهُ لِيَظْلِمَهُمْ وَلَٰكِن كَانُوٓا۟ أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴿٤٠﴾ مَثَلُ ٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُوا۟ مِن دُونِ ٱللَّهِ أَوْلِيَآءَ كَمَثَلِ ٱلْعَنكَبُوتِ ٱتَّخَذَتْ بَيْتًا ۖ وَإِنَّ أَوْهَنَ ٱلْبُيُوتِ لَبَيْتُ ٱلْعَنكَبُوتِ ۖ لَوْ كَانُوا۟ يَعْلَمُونَ ﴿٤١﴾ إِنَّ ٱللَّهَ يَعْلَمُ مَا يَدْعُونَ مِن دُونِهِۦ مِن شَىْءٍ ۚ وَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ ﴿٤٢﴾ وَتِلْكَ ٱلْأَمْثَٰلُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ ۖ وَمَا يَعْقِلُهَآ إِلَّا ٱلْعَٰلِمُونَ ﴿٤٣﴾ خَلَقَ ٱللَّهُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ بِٱلْحَقِّ ۚ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَةً لِّلْمُؤْمِنِينَ ﴿٤٤﴾ ٱتْلُ مَآ أُوحِىَ إِلَيْكَ مِنَ ٱلْكِتَٰبِ وَأَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ ۖ إِنَّ ٱلصَّلَوٰةَ تَنْهَىٰ عَنِ ٱلْفَحْشَآءِ وَٱلْمُنكَرِ ۗ وَلَذِكْرُ ٱللَّهِ أَكْبَرُ ۗ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ مَا تَصْنَعُونَ ﴿٤٥﴾ ﴾ العنكبوت: ٢٨ ـ ٤٥ .

مناسبت:

كله چي الله تعالى دنوح اوابراهيم عليهما السلام كيسې راوړې اوهغه دپندا وعبرت ځايونه يې بكي وښودل ورپسې بيادلته دنورو انبياوو لكه لوط، شعيب ، هود اوصالح عليهم السلام دكيسو يادونه كوي چي آخره خاتمه د دروغجنانو په لنډه توګه بيانوي اودغه ټول دهغه څه لپاره چي دسورت په

پیل کي راغلي تکرار او تاکید دی چي ازموینت دژوندانه سنت اولاره ده او د پېړیو په اوږدو کي همدغه ازموینتونه راغلي اولا پسی راځي به

لغتونه:

(الفاحشة) په بدي او قبح کي نهایت ته رسېدلي فاحشه بولي هغه کار چي قباحت يې له ورایه څرګند وي فاحش دی (ناديکم) مجلس دناستي ځای هغه چي خلک د مشورې کولو، ګپ شپ او مرکه کولو هلته کښېني (تعثوا) عثی سخت فسادته ویل کېږي (رجزًا) عذاب (جاثمين) په ګونډو (سابقين) تښتیدونکی خلاصېدونکي له عذابه (اوهن) ډېر کمزوری او سست ته وایي.

تفسیر:

﴿ وَلُوطًا إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ ﴾ او (یادکړه ای محمده کیسه د) لوط کله چي خپل قوم ته يې وویل ﴿ إِنَّكُمْ لَتَأْتُونَ الْفَاحِشَةَ ﴾ بېشکه تاسي خامخا بدکار ته راځی (دلواطت لپاره) ﴿ مَا سَبَقَكُم بِهَا مِنْ أَحَدٍ مِّنَ الْعَالَمِينَ ﴾ (ندی رومبی شوی پر تاسي (په دغه قبیح کارکي) هیڅوک (له تېرو) عالمیانو) یعني په دغه ناولي کار(لواطت کي هیڅوک تر تاسو دمخه شوی نه دی اوبیایې دغه بدکار داسي تفسیر کړچي: ﴿ أَئِنَّكُمْ لَتَأْتُونَ الرِّجَالَ ﴾ آیا تاسي خامخا راځی سړیو ته (دلواطت لپاره)؟ او دغه نهایت ناولی او پلیت کار دی هیڅا هم دغه پدې سبب چي له ډېره تاولتیا طبیعت ځني کرکه کوي نه دی کړی آن تردې چي هیڅ نارینه په بل نارینه دلوط ﷺ دقوم ترمخه په هیڅ قوم کي ندی ختلی (١) ﴿ وَتَقْطَعُونَ السَّبِيلَ ﴾ او شوکوی لاري (دخلګو مالونه ترې اخلی ) ابن کثیر وایي دوی به دخلګو په لاروکي درېدل هغوی به يې وژل او مالونه به يې ترې اخیستل (٢) ﴿ وَتَأْتُونَ فِي نَادِيكُمُ الْمُنكَرَ ﴾ او راځی تاسي پخلو مجلسونوکي ناکاره کارونو ته (په ښکاره) دغه موبس نه دی چي ناولي کارونه کوی ؟ بلکه په سپین سیدان او دخلګو په وړاندي يې کوی؟ مجاهد وایي: دوی به دنورو په وړاندي لواطت کاوو ځینو به ځینو نورو ته کتل. ابن عباس ﷺ وایي: چي دوی به چي کله څوک وربانديتېرېدل هغه تېرېدونکي به يې په ډېرو ویشتل، توکي به يې کولې، پرتګونه به يې واګي پرانیستي وو، شپېلکی به يې کاوو او داسي نورنا روا خویونه يې لرل ﴿ فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِ إِلَّا أَن قَالُوا ائْتِنَا بِعَذَابِ اللَّهِ ﴾ پس نه وو جواب دقوم ددغه لوط چي کله يې دوی.ته نصیحت او وعظ وکړ او دوی يې وویل مګر داچي: ( راوړه موږ ته عذاب دالله (دغه به يې په ملنډو او استهزآء ویل ﴿ إِن كُنتَ مِنَ الصَّادِقِينَ ﴾ که چېري يې ته له صادقانو رښتیني ویونکو(په هغه تهدید کي چي موږ ته دي دعذاب راکاوو. امام فخر رازي وایي چي که چاپوښتنه کوله چي الله پاک دلته فرمایي ﴿ إِلَّا أَن قَالُوا ائْتِنَا ﴾ او بل ځای فرمایي

---

(١) البحر المحیط ٧ / ١٤٩

(٢) مختصر ابن کثیر ٣ / ٣٥

﴿ إِلَّآ أَن قَالُوٓاْ أَخۡرِجُوٓاْ ءَالَ لُوطٖ مِّن قَرۡيَتِكُمۡۖ إِنَّهُمۡ أُنَاسٞ يَتَطَهَّرُونَ ﴾ نودا دواړه څرنګه يو ځای کېدای شي ؟ موږ وايو چي لوط ﷺ پخپل ارشاد ټينګ ولاړ وو او په مکرر ډول يې خلګو ته امر او نهي بيانول نو دوی لومړی خل ورته وويل: ﴿ ٱئۡتِنَا بِعَذَابِ ٱللَّهِ ﴾ او چي دهغه بلنه او دعوت په پرله پسې توګه دوام وموند او له خپلي لاري څخه نه واوښت نو بيا هغوی وويل: ﴿ أَخۡرِجُوٓاْ ءَالَ لُوطٖ ﴾ (١) او چي کله لوط ﷺ له دوی څخه نا اميده (ناهيلی) شو نو يې دالله مرسته وغوښتله چي ﴿ قَالَ رَبِّ ٱنصُرۡنِي عَلَى ٱلۡقَوۡمِ ٱلۡمُفۡسِدِينَ ﴾ (وويل (لوط) ای زما ربه له ما سره مدد وکړه (په لېږلو د عذاب) پر دغه قوم مفسدانو) يعني دغه هسي ناپوهان فساد کونکي دي چي د سمي لاري هيله هډو څني کېدای نشي تول سرتر پايه په سرکشي او طغيان کي ډوب دي . امام رازي وايي چي: هيڅ نبي هم دخپل قوم هلاکت ترهغو نه دی غوښتی ترڅو چي يو مخ ايزه يې له هدايت څخه ناهيلی شوی نه وي او پدې پوهېدلی نه وي چي ددې قوم تر وجود عدم بهتر دی نوح ﷺ ويلي ﴿ إِنَّكَ إِن تَذَرۡهُمۡ يُضِلُّواْ عِبَادَكَ ﴾ همدارنګه لوط ﷺ کله چي وليدل دوی په فساد کي اوس داسي غوپه او لاهو دي په راتلونکي هم ورڅخه د سمي لاري هيلي نشي کېدای نو يې ددوی لپاره عذاب وغوښت(٢) ﴿ وَلَمَّا جَآءَتۡ رُسُلُنَآ إِبۡرَٰهِيمَ بِٱلۡبُشۡرَىٰ ﴾ او کله چي راغلل رسولان زموږ ابراهيم ته (په زېري د زوی ورکېدلو) ﴿ قَالُوٓاْ إِنَّا مُهۡلِكُوٓاْ أَهۡلِ هَٰذِهِ ٱلۡقَرۡيَةِۖ ﴾ نو وويل دغو (پرښتو) بېشکه موږ هلاکونکي يو د اهل ددې کلي (ښار د لوط) ﴿ إِنَّ أَهۡلَهَا كَانُواْ ظَٰلِمِينَ ﴾ (بېشکه چي اهل ددغو ځايونو وو دوی ظالمان) يعني په ظلم او فساد کي ښخي غرق وو طبيعت او ختې يې په بغی او فساد اخښړوه مفسرين کرام وايي کله چي لوط ﷺ دعا وکړه دعا يې ومنل شوه او الله ملائک راواستول ابراهيم ﷺ دخپل وراره لوط په هکله ورته وويل: ﴿ قَالَ إِنَّ فِيهَا لُوطٗاۚ ﴾ (وويل ابراهيم ملکو ته چي بېشکه په هغه ښار کي لوط (هم) دی) يعني آيا څرنګه هغه ښار هلاکوی چي په هغه کي صالح پيغمبر حضرت لوط هم دی ؟ ﴿ قَالُواْ نَحۡنُ أَعۡلَمُ بِمَن فِيهَاۖ ﴾ وويل: دغو ملائکو موږ ښه پوه يو په هر هغه چا چي په دغه ښار کي دي (له مؤمنانو څخه صاوي وايي چي دغه يې ورو سته له هغې شخړي ورته وويل کوم چي په سوره هود کي تېره شوي چي: ﴿ يُجَٰدِلُنَا فِي قَوۡمِ لُوطٍ ﴾ چي هلته يې ورته وويل چي آيا هغه ښار هلاکوی چي درې سوه تنه پکي مسلمانان اوسي !؟ ملائکو وويل: نه. بيا يې ورته وويل چي که يو تن مؤمن پکي اوسي بيا يې هلاکوئ؟ هغوی وويل: نه ,نو يې ورته وويل ﴿ إِنَّ فِيهَا لُوطٗا ﴾ هغوی ځواب ورکړ ﴿ نَحۡنُ أَعۡلَمُ بِمَن فِيهَا ﴾ (٣) او بيا يې دلوط ﷺ او د مؤمنانو د نجات په هکله زېری ورکړ ﴿ لَنُنَجِّيَنَّهُۥ

---

(١) التفسير الكبير ٢٥ / ٥٩

(٢) نفس المرجع.

(٣) حاشية الصاوي ٣ / ٢٣٦

وَأَهْلَهُۥٓ إِلَّا ٱمْرَأَتَهُۥ كَانَتْ مِنَ ٱلْغَٰبِرِينَ ﴾ خامخا به موږ نجات ورکړو هرومرو ده ته هم اهل دده ته مګر ښځه دده چي ده له پاتي کېدونکو (په عذاب کي ځکه چي هغې دکفرلپاره چوپړ واهو بيا هغوی دلوط ﷺ کاله ته دښو ښايسته ځوانانو په بڼه ورغلل ﴿ وَلَمَّآ أَن جَآءَتْ رُسُلُنَا لُوطًا سِىٓءَ بِهِمْ وَضَاقَ بِهِمْ ذَرْعًا ﴾ اوکله چي راغلل رسولان زموږ لوط ته نوخپه شو لوط په (سبب د) دوی اوتنګ شوپه دی له جهته دزړه (چي دوی خوراښايسته ميلمانه دي منکران به يې راڅخه بوزي نوهغوی ورته وويل چي دوی دالله استازي دي ﴿ وَقَالُوا۟ لَا تَخَفْ وَلَا تَحْزَنْ ﴾ او وويل: دغو (ملائکولوط ته) مه وېرېږه اومه خفه کېږه ا (زموږ په سبب دغه مجرمان موږ ته نشي رارسېدلای ﴿ إِنَّا مُنَجُّوكَ وَأَهْلَكَ إِلَّا ٱمْرَأَتَكَ كَانَتْ مِنَ ٱلْغَٰبِرِينَ ﴾ بېشکه موږ نجات درکونکي يوتاته اوستااهل ته (له عذابه) مګرښځه ستاده هغه له پاتي کېدونکي (په عذاب کي) ﴿ إِنَّا مُنزِلُونَ عَلَىٰٓ أَهْلِ هَٰذِهِ ٱلْقَرْيَةِ رِجْزًا مِّنَ ٱلسَّمَآءِ بِمَا كَانُوا۟ يَفْسُقُونَ ﴾

بېشکه موږ نازلونکي يوپراهل ددې کلي (ښاردسدوم) باندي عذاب له آسمانه په سبب ددې چي دوی وو فسق اوبدکاري به يې کوله (پرله پسې همېشه )ابن کثيروايي چي دغه عذاب داسي ووچي جبريل ﷺ يې کلي دځمکي را وايستل آسمان ته يې لوړوخېژول اوبيايي سرچپه راوغورځول اودډبرينو ګاټو باران يې وورباندي و اوراوو اوپرځای يې الله يوه بحيره ناولي اوبدبويه پرېښوده اود قيامت ترورځي پوري يې دخلګو دعبرت لپاره سبق کړل دوی به په آخرت کي هم ترګردوخلګوپه سخت عذاب کي اخته وي (١) ﴿ وَلَقَد تَّرَكْنَا مِنْهَآ ءَايَةًۢ بَيِّنَةً ﴾ اوخامخاپه تحقيق موږ پرېښوده له هغه (کلي ښار)نه يوه ښنه ښکاره (چي دهغوی کنډوالې دي) ﴿ لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴾ دپاره دهغه قوم چي عقل لري) اودعقل په چلولو عبرت ترې اخلي بياورپسې الله تعالی دحضرت شعيب ﷺ کيسه راوړي وايي:

﴿ وَإِلَىٰ مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا ﴾ اولېږلی موږ (اهل د ) مدين ته ورور ددوی شعيب ﴿ فَقَالَ يَٰقَوْمِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ وَٱرْجُوا۟ ٱلْيَوْمَ ٱلْءَاخِرَ ﴾ (پس وويل دغه (شعيب) ای زماقومه يوازي دالله عبادت کوئ اواميدلرئ (دثواب) وروستی ورځي) يعني خپل قوم ته يې دنصيحت په توګه داسي يادونه وکړه چي دالله توحيد ومنئ اودآخرت دورځي له عذابه ووېرېږئ! ﴿ وَلَا تَعْثَوْا۟ فِى ٱلْأَرْضِ مُفْسِدِينَ ﴾ اومه ګرزئ تاسي په ځمکه کي پداسي حال کي چي فسادکونکي ياست (ډول ډول دښمني اوبغاوتونه کوی) ﴿ فَكَذَّبُوهُ فَأَخَذَتْهُمُ ٱلرَّجْفَةُ ﴾ پس دوی دروغجن وبالو دغه شعيب پس ونيول دوی لره سختي زلزلې (لويې) حيرانونکي دهشت ناکي چيغي چي زړونه يې له وېري ترستوني راايستل ﴿ فَأَصْبَحُوا۟ فِى دَارِهِمْ جَٰثِمِينَ ﴾ پس وګرزېدل دوی په کورونوخپلوکي (مړه) پرمخي پراته نسکورپر زنګنونو.

---

(١) مختصرابن کثير ٣ / ٣٦

﴿ وَعَادًا وَثَمُودَاْ وَقَد تَّبَيَّنَ لَكُم مِّن مَّسَٰكِنِهِمْۖ ﴾ اوهلاک کړي وو موږ قوم دعاد او ثمود او په تحقيق ښکاره شوي دي تاسي ته (اى دمکې خلګو) (هلاکت ددوى) له کورونو ددوى (چې وران ويجاړ پاتي دي (نو آيا تاسي پند نه اخلئ؟) ﴿ وَزَيَّنَ لَهُمُ ٱلشَّيْطَٰنُ أَعْمَٰلَهُمْ ﴾ او ښايسته کړي وو دوى ته شيطان (بد) عملونه ددوى (له کفر او ګناهونو څخه) ﴿ فَصَدَّهُمْ عَنِ ٱلسَّبِيلِ وَكَانُواْ مُسْتَبْصِرِينَ ﴾ پس اړولي وو دوى دغه (شيطان) له لاري دحق او وو دوى بېنايان (هوښياران) يعني دوى به دحق له لاري څخه وګرزول حال دا چې دوى پوهېدل او دا استدلال او نظر دپوهي خاوندان وو خو دعناد او تکبر له مخي به د شيطان ملګرتيا وکړه ﴿ وَقَٰرُونَ وَفِرْعَوْنَ وَهَٰمَٰنَۖ ﴾ (او (هلاک کړي موو و) قارون او فرعون (او وزيرېې) هامان يعني او موږ نور جابران او ظالمان هم هلاک کړي وو لکه قارون چې دزيات مال او بډايي خاوند وو فرعون چې دسلطان او واکمني څښتن وو او هغه وزيرېې هامان چې ده ته به یې دظلم په لاروکي مرستي ورکولې ﴿ وَلَقَدْ جَآءَهُم مُّوسَىٰ بِٱلْبَيِّنَٰتِ ﴾ په تحقيق راغلی وو دوى ته موسی په ښکاره معجزاتو سره ﴿ فَٱسْتَكْبَرُواْ فِى ٱلْأَرْضِ وَمَا كَانُواْ سَٰبِقِينَ ﴾ پس تکبر وکړ دوى په ځمکه د(مصر) کي او نه وو دوى ړومبي کېدونکي (چې زموږ له عذابه خلاص شي. طبري وايې معنا دا چې دوى نشو کولای له موږ نه وتښتي بلکه زموږ ورباندي قدرت وو(١) ﴿ فَكُلًّا أَخَذْنَا بِذَنۢبِهِۦۖ ﴾ پس هر يو له دغو مذکورينو موږ ونيول (په سبب) دګناه خپلي يې (او سزا موورکړه ابن کثير وايې چې عذاب يې له ګناه سره مناسب وو(٢)) ﴿ فَمِنْهُم مَّنْ أَرْسَلْنَا عَلَيْهِ حَاصِبًا ﴾ پس ځيني ددوى هغه څوک دی چې ولېږل موږ پرې سخت (عذاب (کاڼي اورونکی) باد (لکه دلوط قوم) ﴿ وَمِنْهُم مَّنْ أَخَذَتْهُ ٱلصَّيْحَةُ ﴾ او ځيني له دوى هغه څوک دي چې دوى چيغي ونيول (سره له زلزلې لکه ثموديان چې زړونه يې وچاودل) ﴿ وَمِنْهُم مَّنْ خَسَفْنَا بِهِ ٱلْأَرْضَ ﴾ او ځيني له دوى هغه څوک دي چې ښکته ننې ايستل موږ دوی پر ځمکه (لکه قارون او ملګري یې ﴿ وَمِنْهُم مَّنْ أَغْرَقْنَاۚ ﴾ او ځيني له دوى هغه څوک دي چې موږ غرق کړل لکه قوم دنوح، فرعون او لښکريې ﴿ وَمَا كَانَ ٱللَّهُ لِيَظْلِمَهُمْ وَلَٰكِن كَانُوٓاْ أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴾ (او نه وو الله چې ظلم يې کړی وي پر هغو ولکن وو دوى چې پر خپلو ځانونو به يې ظلم کاوو) يعني الله دوى بېګناه نه دي آزار کړي چې ورباندي يې ظلم کړی وي ليکن دوى پر خپلو ځانونو ظلم کړی وو نو دعذاب وړ او مستحق وګرزېدل بيا الله دمشرکانو مثال داسي بيانوي هغوی چې له الله پرته يې بل څوک بتان دخان فريادرس او چاره جوړونکي بللي لکه دجولاګي خونه چې نه دژمي يخني ترې دفع کولای شي او نه ددوبي تودوخه او نه باد او باران ځني ګرزوي قرطبي وايې دا دهغه چا مثال دی چې له الله تعالی پرته

(١) الطبري ٢٠/ ٩٢

(٢) مختصر ابن کثير ٣/ ٣٧

څوک بل خدای نیسي اوهغه ورته نه ګته رسوي اونه ورڅخه تاوان دفع کوي لکه دجولاګي کوته چي نه يخ دفع کوي اونه ګرمي ﴿ مَثَلُ ٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُواْ مِن دُونِ ٱللَّهِ أَوْلِيَآءَ كَمَثَلِ ٱلْعَنكَبُوتِ ٱتَّخَذَتْ بَيْتًا وَإِنَّ أَوْهَنَ ٱلْبُيُوتِ لَبَيْتُ ٱلْعَنكَبُوتِ ﴾ مثل حال داهغو کسانوچي نيولي يې دي بې له الله دوستان (معبودان) لکه مثل حال دعنکبوت غني جولاګي داسي دی چي جوړکړي يو کور (له تارونو خپلوڅخه ) اوبېشکه چي ډېرضعيف کمزوری دټولو کورونو خامخاکورد غني دی (چي خوراسپک بې اعتباره دی) ﴿ لَوْ كَانُواْ يَعْلَمُونَ ﴾ که چېري وای دوی چي پوهېدلای (نو دغيرالله عبادت به يې نه کاوو ) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يَعْلَمُ مَا يَدْعُونَ مِن دُونِهِۦ مِن شَيْءٍ ﴾ بېشکه چي الله ته معلوم دی هرهغه چي بولي يې (عبادت يې کوي) دوی غيرله الله له هرڅېزه چي وي (نوالله به ددوی دکفرسزاورکړي) ﴿ وَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ ﴾ اوهم دی ډېرغالب قوي (پخپله پاچهي کي) ډېرحکمت والا(په خپل صنعت کي چي هرکارپه تدبيرسره کوي﴿ وَتِلْكَ ٱلْأَمْثَٰلُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ ﴾ اودغه (مذکوره )مثالونه (په قرآنکريم کي) بيانوومونږلپاره دخلګو(چي ذهنونوته نژدې شي) ﴿ وَمَا يَعْقِلُهَآ إِلَّا ٱلْعَٰلِمُونَ ﴾ اونه پوهېږي پردغو (مثالونو) مګرپوهيالي (چي راسخ دي په علم کي اود الله په مرادپوهېږي ) ﴿ خَلَقَ ٱللَّهُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ بِٱلْحَقِّ ﴾ پيداکړي دي الله آسمانونه اوځمکه پرحق سره (نه چټي اوبېکاره ) ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَءَايَةً لِّلْمُؤْمِنِينَ ﴾ بېشکه په دغه (تخليق په بديع شکل اومحکم والي کي) خامخالوی دليل (دوجود اووحدانيت دالله دی) لپاره دمؤمنانو﴿ ٱتْلُ مَآ أُوحِيَ إِلَيْكَ مِنَ ٱلْكِتَٰبِ ﴾ ولوله (ای محمده) هغه چي وحی کړل شوي ده تاته له کتاب (دغه قرآن مجيدنه اودهغه په تلاوت کولو اوګردان سره الله ته نژدې شه ځکه چي محاسن الاداب اومکارم الاخلاق پکې دي) ﴿ وَأَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ ﴾ اوقائموه (سم اداکوه سره له ټولو حقوقو ، شرائطو اوآدابو ) لمونځ (چي ددين ستني ده او ورباندي دوام کوه ﴿ إِنَّ ٱلصَّلَوٰةَ تَنْهَىٰ عَنِ ٱلْفَحْشَآءِ وَٱلْمُنكَرِ ﴾ (بېشکه لمونځ منع کونکی دلمونځ کونکي) له بېحيايي اوله بده کاره څخه) يعني هغه لمونځ چي ګرد اداب شروط اوحقوق سره له خشوع او نورو احکامو پکي وي او لمونځ کونکی يې اداکړي دالله ﷻ عظمت اولويې په ياد ولري هغه څه چي په لمانځه کي لولي په هغوکي سوچ کوي نودغه لمونځ بيالمونځ کونکی له بدوکارونو راګرزوي ﴿ وَلَذِكْرُ ٱللَّهِ أَكْبَرُ ﴾ (اوخامخا يادول دالله ډېرلوی دی) يعني دغه لمونځ ددې خبري په يادونکی دی چي الله له ټولو هغوڅېزونوچي په دنياکي دي لوی دی اودغه دالله عظمت و جلال به په لمانځه کي په تجارت اوسوداګري کي دڅوند په نورو چارو کي په يادلري اوهيڅ کله به ځني غافل کېږي نه ﴿ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ مَا تَصْنَعُونَ ﴾ اوالله ته معلوم دی هرهغه (عمل) چي تاسي يې کوی (نوجزابه درکړي په ښه جزاسره) ابو العالية وايي : په لمانځه کي درې خويونه دي اخلاص ، خشيت (ويره) اودالله يادونه اخلاص ورته دښوکارونو ماربينه کوي اوخشيت يې له

بدو کارونو ځخه راګرزوي اودالله ذکرقرآنکریم دی چي امر اونهي پکښ وي اوهرلمونځ چي دغه دری ګوني ځېزونه پکي نه وي نوهغه لمونځ نه دی[1].

بلاغت:

پدې آیتونوکي چي دبدیع اوبیان کومې ښکلاوي شته لنډېزیې دادی:

۱ – تاکید په ځومؤکداتوباندې اوهمدارنګه اطناب دفعل په تکرار سره چي ددوی دفعل شناعت اوبدي وښیي لکه: ﴿ إِنَّكُمْ لَتَأْتُونَ ٱلْفَٰحِشَةَ ......أَئِنَّكُمْ لَتَأْتُونَ ٱلرِّجَالَ ﴾ دآیت ترپایه.

۲ – استهزآء اوسخریه لکه داچي ﴿ ٱئْتِنَا بِعَذَابِ ٱللَّهِ إِن كُنتَ مِنَ ٱلصَّٰدِقِينَ ﴾ خواب دشرط محذوف دی چي پخوانی کلام ورباندې دلالت کوي یعني که چېري ته پدې وعده دعذاب راتلوکي رښتونی یې نوبیې راوړه.

۳ – تنکیردهیبت اوهول لپاره لکه: ﴿ رِجْزًا مِّنَ ٱلسَّمَآءِ ﴾ یعني سترعذاب هیبتناک.

۴ – دمفعول رومبی راوړل چي په هکله یې پاملرنه اواهتمام وشي لکه: ﴿ فَكُلًّا أَخَذْنَا بِذَنۢبِهِۦ ﴾ بیا وروسته له اجماله دتفصیل راوړل لکه ﴿ فَمِنْهُم مَّنْ أَرْسَلْنَا عَلَيْهِ حَاصِبًا وَمِنْهُم مَّنْ أَخَذَتْهُ ٱلصَّيْحَةُ ﴾ ترپایه پوري (چي دادوه دوله صنائع دي).

۵ – تمثیلي تشبیه لکه ﴿ مَثَلُ ٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُوا۟ مِن دُونِ ٱللَّهِ أَوْلِيَآءَ كَمَثَلِ ٱلْعَنكَبُوتِ ٱتَّخَذَتْ بَيْتًا وَإِنَّ أَوْهَنَ ٱلْبُيُوتِ لَبَيْتُ ٱلْعَنكَبُوتِ ﴾ الله تعالی دلته کافران په خپل عبادت کولو بتانوته له جولاګي سره مشابه کړل چي ځرنګه ناکاره اوکمزوري خونه یې جوړه کړي چي له نري شماله سره اوپه پوکي خوځېږي اودغه ته تمثیلي ځکه وایو چي دمشابهت وجه له متعددوځخه راکښل شوي ده.

۶ – دفواصلو موافقت په وروستیوتوروکي چي په دې کي خوندور آهنګ اوآزانګه وي لکه ﴿ قَالَ رَبِّ ٱنصُرْنِى عَلَى ٱلْقَوْمِ ٱلْمُفْسِدِينَ ﴾، ﴿ إِنَّ أَهْلَهَا كَانُوا۟ ظَٰلِمِينَ ﴾، ﴿ وَإِنَّ أَوْهَنَ ٱلْبُيُوتِ لَبَيْتُ ٱلْعَنكَبُوتِ ﴾او ﴿ بِمَا كَانُوا۟ يَفْسُقُونَ ﴾ ...... ﴿ ءَايَةًۢ بَيِّنَةً لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴾ ترآخره پوري او همدغه قرآني ځانګړتیاده.

تنبیه:

په آیت شریف کي داافاده راغلي چي لمونځ سړی له بدو کارونو راګرزوي اوپه احادیثوکي راغلي چي رسول الله ﷺ ته یوچاوویل: چي پلانی دشپې لمونځ کوي خوچي سهار پاځي بیاغلاکوي نورسول الله ﷺ ورته وفرمایل: ژربه یې دغه لمونځ له غلا ځخه راوګرزوي (بزار یې روایت کړیدی) درسول الله ﷺ مقصداوو چي که چېري لمونځ په بشپړه توګه اداء شي نولمونځ کونکی به له بدوکارونو ځخه را وګرزوي لمونځ سړی الله ته نژدې کوي لیري کوي یې نه.

---

[1] مختصرابن کثیر ۳ / ۲۸

صفوة التفاسير 4 ټوک

د نصيراحمد احمدي

لخوا سکين او pdf سو

تاريخ. ۲۶-۱۱-۱۳۹۸

واتساپ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

د دعــا محتــاج احمدي!